# الدرالمنضود

فی حل

# سنن أبي داؤد

**افادات**:- حضرت مولانا محمد عاقل صیب

صدر مدرّس مظاهرالعلوم سهارنپور (هند)

**مترجمین**:

[ رفقاء ] دار التصنیف والتحقیق

**زیر نگرانی**

مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس

**پښتو.............................دویم جلد**

**خصوصیات**

① دکتاب په اول کښې د اصول حدیث مفیده مقدمه.
② د بذل المجهود شرح أبي داود عربی شرحې خلاصه اونچوړ
③ د متن ټولو احادیث ته اعراب ورکول
④ د هرکتاب په اول کښې هغې سره متعلقه ضروری مباحث.
⑤ د هر حدیث تخریج د مصدر، کتاب او رقم په حوالې سره.
⑥ د مشکلولغاتو حل
⑦ په فقهی مباحثوکښې د مذاهبو بیان.
⑧ دفریق مخالف دلائل
⑨ د فریق مخالف د دلائلو ځخه جوابونه.
⑩ د مذهب حنفی دلائل او وجوه ترجیح

**خورونکی**

**فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور**

د کتاب نوم: الدرالمنضود فی حل سنن أبی داؤد
مؤلف: حضرت مولانا محمد عاقل صاحب دامت برکاتهم
زیرنگرانی:- مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس
خورونکی: فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور

## د ملاویدو پتې

- مکتبه فخرالدین رازی هرات [نمائنده فیصل کتبخانه درهرات]
- جدید اسلامی کتب خانه خوست
- المصباح کتب خانه کابل
- روغانیوال کتب خانه جلال آباد
- رحیمی کتب خانه خوست
- حرم کتب خانه کابل
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- موئے مبارک کتب خانه غزنی
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- واحدی کتب خانه خوست
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوٰی کتب خانه جلال آباد
- نعمت کتب خانه کابل
- شریف الله کتب خانه کابل
- حقانیه کتب خانه گردیز
- مسلم کتب خانه جلال آباد
- مکتبه نعمانیه غزنی
- کودر کتب خانه جلال آباد
- مسلم کتب خانه خوست
- حاجی سردار کتب خانه کابل
- مکتبه رشیدیه کابل

خپرونکی

# فیصل کتب خانه

مدینه تاور محله جنگی پیښور قصه خوانئ پیښور
موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

# فهرست ابواب جلد دوم

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

.............

# بَابُ الْمَرْأَةِ تَغْسِلُ ثَوْبَهَا الَّذِي تَلْبَسُهُ فِي حَيْضِهَا

## باب دې په بيان د ښځه کې چې وينځي خپله هغه جامه چې اغوندې يې په حيض کې

### د ما قبل سره ربط او په ترجمة الباب سره مقصود

دلته مصنف رحمه الله د هغه مسائلو او ابوابو مسئله شروع کوی د کوم نه چه فقهاء کرام په باب تطهير الانجاس سره تعبير کوی، د نجاست دوه قسمونه دی حسية او معنوية، يعنی انجاس او احداث، اوسه پورې د اودس او د غسل بيان شروع وو چه د هغې تعلق د احداث سره دې ددې نه چه فارغ شو نو اوس مصنف رحمه الله طهارة عن النجاسات الحسية بيانوی باب فرض الوضوء کښې مونږ دا اختلاف بيان کړې دې چه د صحة صلوة دپاره د طهارت عن الحدث شرط کيدل اجماعی دی او په طهارت عن الخبث کښې اختلاف دې، د جمهورو په نزد د صحة صلوة دپاره دا هم ضروری دی، د مالکيانو په دې کښې اختلاف دې امام شافعي رحمه الله هم په قول قديم کښې د امام مالک رحمه الله سره دې.

[۳۵۷](¹)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَتْنِي أُمُّ الْحَسَنِ يَعْنِي جَدَّةَ أَبِي بَكْرٍ الْعَدَوِيِّ، عَنْ مُعَاذَةَ، قَالَتْ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْحَائِضِ يُصِيبُ ثَوْبَهَا الدَّمُ، قَالَتْ: "تَغْسِلُهُ، فَإِنْ لَمْ يَذْهَبْ أَثَرُهُ فَلْتُغَيِّرْهُ بِشَيْءٍ مِنْ صُفْرَةٍ، قَالَتْ: وَلَقَدْ كُنْتُ أَحِيضُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَ حِيَضٍ جَمِيعًا لَا أَغْسِلُ لِي ثَوْبًا".

**ترجمه:** د معاذة نه روايت دې، وايې چې ما تپوس وکړو د عائشې رضي الله عنها نه د حائضې په باره کښې چې رسېږی جامې د هغې ته وينه، هغې ووېل: وينځي به ئې که چرې د هغې اثر ختم نه شی نو تغير دې ورته ورکړی په څه شی سره د صفرې نه، هغې ووېل: په تحقيق سره وم زه چې حائضه کيدم به د رسول الله ﷺ سره درې حيضونه تول، نه به وينځله ما خپله جامه.

**تشريح: قوله:** ﴿ قوله سُئِلَتْ عَائِشَةُ – رضی الله عنها – عَنِ الْحَائِضِ يُصِيبُ ثَوْبَهَا الدَّم ﴾ د عائشې رضي الله عنها نه تپوس اوکړې شو چه د حائض په کپړه باندې که وينه اولګی نو څۀ به کوی؟ هغوی اوفرمائيل هغه دې وينځی بيا که د وينې اثر يا رنګ باقی پاتې شی نو هغه دې د صفرة په ذريعة زائل کړی، د صفرة نه مراد ورس يا زعفران دی لکه چه په بعض رواياتو کښې ددې تصريح ده.

[۳۵۸](²)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ الْعَبْدِيُّ، أَخْبَرَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ نَافِعٍ، قَالَ: سَمِعْتُ الْحَسَنَ يَعْنِي ابْنَ مُسْلِمٍ يَذْكُرُ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: قَالَتْ عَائِشَةُ: "مَا كَانَ لِإِحْدَانَا إِلَّا ثَوْبٌ وَاحِدٌ تَحِيضُ فِيهِ، فَإِنْ أَصَابَهُ شَيْءٌ مِنْ دَمٍ بَلَّتْهُ بِرِيقِهَا ثُمَّ قَصَعَتْهُ بِرِيقِهَا".

**ترجمه:** د مجاهد نه روايت دې هغه وايې چې وئيلی دی عائشې رضي الله عنها نه وو د يوې کسې لپاره زمونږ نه مګر يوه جامه چې مونږ به حائضې کيدو په هغې کښې، که چېرې څه شی به ورته ورسيدو د وينې نه نو هغه به لمده کړه په لاړو بيا به ئې ومږلو په لاړو.

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۷۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۲۵۰)، سنن الدارمي/الطهارة ۱۰۴ (۱۰۵۲) (صحيح)

²): صحيح البخاري/الحيض ۱۱ (۳۱۲)، (تحفة الأشراف: ۱۷۵۷۵)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الطهارة ۱۰۴ (۱۰۵۵) (صحيح)

**تشریح: قوله:** ﴿ قوله فإذا أصابهُ شيءٌ من دمٍ بلّتهُ بريقها الخ ﴾ سیده عائشه رضي الله عنها فرمائی چه مونږ سره به د حیض په زمانه کښې د اغوستلو دپاره یوه جامه وه هغه به مو د حیض نه د پاکیدلو نه پس اغوستله (د پاکیدلو ذکر په وړاندې روایت کښې راروان دی) هغه فرمائی چه زه دا کېږه وینم پس که په هغې باندې وینه لګیدلې وې نو دا به مې په خپل ریق او د خولې لاړو باندې تر کولو سره مږله په دې حدیث کښې صرف د مږلو ذکر دې د هغې نه روستو د غسل ذکر نشته.

**(په دې حدیث کښې د غسل ذکر نشته، ددې وجوهات)**

ددې درې وجې کیدې شي.

۱: دا د خولې په لاړو باندې ددې تر کول او مږل په زمانه د حیض کښې وو د انقطاع حیض نه پس نه وو، لهذا د جامې د پاکولو حاجت نشته ځکه چه په دې سره مونږ نه دی کول پکار.

۲: د وینې د مقدار د قلیل کیدو په وجه باندې کوم چه شرعا معاف دی.

۳: اګر چه په دې روایت کښې د غسل ذکر نشته خو مراد دې د دم معفو مقدار او په دې کښې اختلاف زمونږ په نزد په باب الوضوء من الدم کښې تیر شوې دی.

[۳۵۹](1) حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ يَعْنِي ابْنَ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا بَكَّارُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَتْنِي جَدَّتِي، قَالَتْ: دَخَلْتُ عَلَى أُمِّ سَلَمَةَ فَسَأَلَتْهَا امْرَأَةٌ مِنْ قُرَيْشٍ عَنِ الصَّلَاةِ فِي ثَوْبِ الْحَائِضِ، فَقَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ: "قَدْ كَانَ يُصِيبُنَا الْحَيْضُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَلْبَثُ إِحْدَانَا أَيَّامَ حَيْضِهَا ثُمَّ تَطَّهَّرُ فَتَنْظُرُ الثَّوْبَ الَّذِي كَانَتْ تَقْلِبُ فِيهِ، فَإِنْ أَصَابَهُ دَمٌ غَسَلْنَاهُ وَصَلَّيْنَا فِيهِ، وَإِنْ لَمْ يَكُنْ أَصَابَهُ شَيْءٌ تَرَكْنَاهُ، وَلَمْ يَمْنَعْنَا ذَلِكَ مِنْ أَنْ نُصَلِّيَ فِيهِ، وَأَمَّا الْمُمْتَشِطَةُ، فَكَانَتْ إِحْدَانَا تَكُونُ مُمْتَشِطَةً فَإِذَا اغْتَسَلَتْ لَمْ تَنْقُضْ ذَلِكَ وَلَكِنَّهَا تَحْفِنُ عَلَى رَأْسِهَا ثَلَاثَ حَفَنَاتٍ، فَإِذَا رَأَتِ الْبَلَلَ فِي أُصُولِ الشَّعْرِ دَلَكَتْهُ ثُمَّ أَفَاضَتْ عَلَى سَائِرِ جَسَدِهَا".

**ترجمه:** بکار بن یحیی وایې حدیث بیان کړې دې ماته زما نیا ویلی دي: زه داخل شوم په ام سلمة باندې نو تپوس وکړو د هغې نه یوې ښځې چې د قریشو نه وه په باره د ما نځه کښې په جامه د حائضې کښې، نو ام سلمة ورته وویل: بیشکه چې رسیدلو به مونږ ته حیض په زمانه د رسول الله صلی الله علیه وسلم کښې نو وخت به تېرولو یوې کسې زمونږ نه بیا به پاکه شوه، نو کتله به ئې هغه جامه چې دا به پکې اوریدله، که چیرې به رسیدلی وه ورته وینه نو مونږ به وینځلو او مونځ به مو وکړو په هغې کښې، او که چرې نه به وو رسیدلی هغې ته څه شی نو مونږ به هغه پریخوده او مونږ به دغی نه منع کولو چې مونځ وکړو په هغې کښې، او هر چې ممتشطه وه (کمځو والا) نو وه به یوه کسه زمونږ نه کمځو والا کله چې به ئې غسل کولو نو هغه به ئې نه سپړدلې، لکن اړولې به ئې په خپل سر باندې درې لپې، چې کله به ئې لوندوالی ولیدلو په ویخونو د ویختو کښې هغه به ئې ومږلو، بیا به ئې اوبه واړولې په ټول بدن باندې.

---

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۲۹۸) (ضعیف)

[۳٦۰]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ، قَالَتْ: سَمِعْتُ امْرَأَةً تَسْأَلُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ تَصْنَعُ إِحْدَانَا بِثَوْبِهَا إِذَا رَأَتِ الطُّهْرَ، أَتُصَلِّي فِيهِ؟ قَالَ: "تَنْظُرُ، فَإِنْ رَأَتْ فِيهِ دَمًا فَلْتَقْرُصْهُ بِشَيْءٍ مِنْ مَاءٍ، وَلْتَنْضَحْ مَا لَمْ تَرَ وَلْتُصَلِّي فِيهِ".

**ترجمه**: د اسماء بنت ابی بکر نه روايت دي هغې ويلی دي. ما واوريدل د يوې زنانه نه چې تپوس ئې کولو د رسول الله ﷺ نه چې څنګه چل به کوی يوه زمونږ نه په خپله جامه باندې کله چې وينې طهر ايا مونځ به کوی په هغې کې؟ ووېل هغه: ګورې به که ويې ليده په هغې کې وينه نو ودې توړی په څه شی سره د اوبو نه، او پوګنه دې وکړی که نه ئې وی ليدلی او مونځ دې وکړی په هغې کښې.

**تشريح: قوله**:﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ – قوله فَلْتَقْرُصْهُ بِشَيْءٍ مِنْ مَاءٍ وَلْتَنْضَحْ مَا لَمْ تَر ﴾ يعنی په کپړه چه کومه وينه لګيدلې ده هغه دې په اوبو باندې مږلو سره وينځی چه د هغې بالکلية ازالة اوشی، او د جمله ثانية ﴿ وَلْتَنْضَحْ مَا لَمْ تَر ﴾ دوه مطلبونه کيدې شی، يو دا چه دا د ماقبل سره متعلق دې او مطلب دا دې چه د کپړې د وينځلو په وخت دې په هغې باندې اوبه اچوی ترڅو ه اثر د نجاست اونه وينی (لکه چه د کپړې د پاکولو طريقه ده) په دې صورت کښې به ما په معنی د مادام وی.

## د ثوب مشکوک د طهارت طريقه:

دويم احتمال دا دې چه دا ما موصوله وی او ددې جملې تعلق د ماقبل سره نشته، او مطلب دا دې چه د حيض د زمانې په کومه جامه کښې چه د وينې اثر لګيدلې دې هغه خو دې باقاعده وينځلې شی، او په کومه جامه کښې چه وينه لګيدلې وی او په نظر نه راځی بلکه صرف شبه ده د ناپاکيدلو نو هغه دې په ځائې د غسل نضح يعنی رش الماء اوکړې شی لکه چه د مالکيانو مذهب دې مالکيان فرمائی د ثوب نجس حکم غسل دې او د ثوب مشکوک د پاکولو طريقه دا ده چه په هغې باندې صرف اوبه اوبهيولې شی

دا روايت په کوم کښې چه ﴿ وَلْتَنْضَحْ مَا لَمْ تَر ﴾ مذکور دې د فاطمې بنت المنذر روايت دې د محمد بن اسحق په طريق سره، ددې نه پس مصنف رحمه الله د فاطمې روايت په طريق د هشام بن عروة ذکر کړې دې په هغې کښې دا جمله نشته او هشام بن عروة د محمد بن اسحق نه اثبت او اقوی دې لهذا د هغوی روايت به راجح وی، په دې سره ددې جملې په ثبوت کښې ضعف پيدا شو کومه چه د يوې معنې په اعتبار سره د جمهورو خلاف وه. فزال الاشکال عن مذهب الجمهور.

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۷٤۲) (حسن صحيح)

[۳٦۱]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ، أَنَّهَا قَالَتْ: سَأَلَتِ امْرَأَةٌ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَرَأَيْتَ إِحْدَانَا إِذَا أَصَابَ ثَوْبَهَا الدَّمُ مِنَ الْحَيْضَةِ، كَيْفَ تَصْنَعُ؟ قَالَ: "إِذَا أَصَابَ إِحْدَاكُنَّ الدَّمُ مِنَ الْحَيْضِ، فَلْتَقْرُصْهُ ثُمَّ لِتَنْضَحْهُ بِالْمَاءِ ثُمَّ لِتُصَلِّي".

**ترجمه**: د اسماء بنت ابی بکر نه روایت دې بیشکه هغې ویلی دي: تپوس وکړو یوې ښځې د رسول الله ﷺ نه ویې وئیل: اې د الله رسوله! خبر راکړه ماته یوې کسې زمونږ نه چې کله ورسېږي جامې د هغې ته وینه د حیض نو څه چل به کوي؟ هغه ووېل: کله چې ورسېږي یوې کسې ته ستاسو نه وینه د حیض نو هغه دې ومږي او بیا دې پرې اوبه وشیندي، بیا دې مونځ کوي.

[۳٦۲]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ. ح وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ هِشَامٍ، بِهَذَا الْمَعْنَى، قَالَ: حُتِّيهِ ثُمَّ اقْرُصِيهِ بِالْمَاءِ ثُمَّ انْضَحِيهِ.

**ترجمه**: حدیث بیان کړي دې یعنی ابن سملة. د هشام نه په هم دی معنی سره، هغه وئیلی دي: ویې مږه، بیا ئې وتوږه په اوبو سره، بیا ئې اووینځه

[۳٦۳]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ سَعِيدٍ الْقَطَّانَ، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي ثَابِتٌ الْحَدَّادُ، حَدَّثَنِي عَدِيُّ بْنُ دِينَارٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أُمَّ قَيْسٍ بِنْتَ مِحْصَنٍ، تَقُولُ: سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ دَمِ الْحَيْضِ يَكُونُ فِي الثَّوْبِ، قَالَ: "حُكِّيهِ بِضِلْعٍ وَاغْسِلِيهِ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ".

**ترجمه**: عدی بن دینار وایي چې اوریدلی دی د ام قیس بنت محصن نه چې هغې وئیل: ما تپوس وکړو د رسول الله ﷺ نه په باره د وینې د حیض کښې چې جامه کښې وي، هغه وفرمائیل: هغه وتوږه په یو لرګي سره او ویې وینځه په اوبو او بېره باندې.

**تشریح**: **قوله**: ﴿قوله حُكِّيهِ بِضِلْعٍ وَاغْسِلِيهِ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ﴾ ضلع په اصل کښې د پختئ هډوکی ته وائي او دلته ترې نه مراد مطلقاً سخت څیز دې چه د هغې په ذریعه د حیض وینه اوکرولې شي.

[۳٦٤]()حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "قَدْ كَانَ يَكُونُ لِإِحْدَانَا الدِّرْعُ فِيهِ تَحِيضُ فِيهِ قَدْ تُصِيبُهَا الْجَنَابَةُ، ثُمَّ تَرَى فِيهِ قَطْرَةً مِنْ دَمٍ فَتَقْصَعُهُ بِرِيقِهَا".

**ترجمه**: د عائشې رضي الله عنها نه روایت دې هغې ویلی دي: بیشکه شان دادی چې وو د یوې کسې زمونږ لپاره څادر چې په هغې به حائضه کیده، کله به ورته رسیدلو جنابت، بیا به ئې لیدلو

[۱]: صحیح البخاري/الوضوء ٦۳ (۲۲۷)، والحیض ۹ (۳۰۷)، صحیح مسلم/الطهارة ۳۳ (۲۹۱)، سنن الترمذي/الطهارة ۱۰٤ (۱۳۸)، سنن النسائي/الطهارة ۱۸٥ (۲۹٤)، والحیض ۲ (۳٥۰)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۱۸ (٦۲۹)، (تحفة الأشراف: ۱٥۷٤۳)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطهارة (۱۰۳/۲۸)، مسند احمد (۳٤٥/٦، ۳٤٦، ۳٥۳)، سنن الدارمي/الطهارة ۸۲ (۷۹۹) (صحیح)

[۲]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱٥۷٤۳) (صحیح)

[۳]: سنن النسائي/الطهارة ۱۸٥ (۲۹۳)، والحیض ۲٦ (۳۹٥)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۱۸ (٦۲۸)، (تحفة الأشراف: ۱۸۳٤٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳٥٥/٦، ۳٥٦)، سنن الدارمي/الطهارة ۱۰٤ (۱۰٥۹) (صحیح)

[٤]: تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ۱۷۳۸۰) (صحیح)

په هغې کښې يوه قطره د وينې نو هغه به ئې توړله په خپلو لاړو.

**په حديث الباب کښې دوه اختلافي مسئلې :**

ځان پوهه کړه چه د حديث الباب نه دوه اختلافي مسئلې نورې ثابتيږي،

**﴿د پليتئ د ازالې دپاره د اوبو تعين﴾**

يودا چه د جمهورو په نزد چه پکښې ائمۀ ثلاثه هم دی د ازالة نجاسات دپاره اوبه متعين دی، د اوبو نه علاوه په نورو مائعاتو باندې طهارت نه حاصليږی، او د احنافو په نزد د حدث د ازالې دپاره خو اوبه متعين دی او د خبث د ازالې دپاره د اوبو او نورو مائعاتو استعمال هم جائز دې، امام خطابی رحمه الله فرمائی حديث الباب په دې مسئله کښې د احنافو دليل دې ځکه چه په دې حديث کښې د ريق په ذريعه باندې ازالة النجاسة مذکور دې او که ريق مزيل النجاست او نه منلې شی نو بيا به په سره نور هم تلويث راشی، خطابی وائی جمهور ددې جواب دا ورکولې شی چه د ريق په ذريعه د نجاست ازاله مقصود نه ده بلکه صرف تحليل دم چه روستو په اوبو سره په سهولت باندې پاک شی.

**﴿په اوبو کښې د طاهر څيز ملاويدلو مسئله﴾**

مسئله ثانيه په دې حديث کښې د ماء مخلوط بشئ طاهر ده د هغې په ذريعه ازاله د نجاست جائز ده ځکه چه په دې حديث کښې فرمائی، ﴿ بماء وسدر ﴾ دا مسئله دلته په باب الرجل يغسل راسه بالخطمی کښې په تفصيل تيره شوې ده.

[۳۶۵]([1])حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ عِيسَى بْنِ طَلْحَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ خَوْلَةَ بِنْتَ يَسَارٍ أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّهُ لَيْسَ لِي إِلَّا ثَوْبٌ وَاحِدٌ وَأَنَا أَحِيضُ فِيهِ، فَكَيْفَ أَصْنَعُ؟ قَالَ: "إِذَا طَهُرْتِ فَاغْسِلِيهِ ثُمَّ صَلِّي فِيهِ، فَقَالَتْ: فَإِنْ لَمْ يَخْرُجِ الدَّمُ، قَالَ: يَكْفِيكِ غَسْلُ الدَّمِ وَلَا يَضُرُّكِ أَثَرُهُ".

**ترجمه:** د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې چې بيشکه خوله بنت يسار راغله نبی صلی الله عليه وسلم ته نو هغې ووېل: اې د الله رسوله! بيشکه نشته زما لپاره مګر يوه جامه او زه حائضه کيږم په هغې کښې نو څنګه وکړم؟ هغه ووېل: کله چې ته پاکه شې نو هغه وينځه بيا مونځ کوه په هغې کښې. هغې ووېل: که وينه نه وی وتلې؟ هغه وفرمائيل: کافی دی ستا لپاره وينځل د وينې او ضرر نه رسوی تاته اثر د هغې.

## (۱۳۴) بَابُ الصَّلَاةِ فِي الثَّوْبِ الَّذِي يُصِيبُ أَهْلَهُ فِيهِ

**باب دې په بيان د مونځ په هغه جامه کې چې د خپل اهل سره مصاحبت وکړي په هغې کې**

[۳۶۶]([2])حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ حَمَّادٍ الْمِصْرِيُّ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ سُوَيْدِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ حُدَيْجٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ، أَنَّهُ سَأَلَ أُخْتَهُ أُمَّ حَبِيبَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "هَلْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي الثَّوْبِ الَّذِي يُجَامِعُهَا فِيهِ؟ فَقَالَتْ: نَعَمْ، إِذَا لَمْ يَرَ فِيهِ أَذًى".

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۴۲۸۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۶۴/۲، ۳۸۰) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/الطهارة ۱۸۶ (۲۹۵)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۸۳ (۵۴۰)، (تحفة الأشراف: ۱۵۸۶۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۲۷/۶)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۰۲ (۱۴۱۵) (صحيح)

**ترجمه**:د معاوية بن ابي سفيان نه روايت دي، بيشکه هغه تپوس وکړو د خپلي خور ام حبيبه نه چي د نبي ﷺ بي بي ده، ايا وو رسول الله ﷺ چي مونځ ئي کولو په هغه جامه کښي چي مجامعت ئي کولو د هغي سره په هغي کي؟ هغي وويل: آو کله چي به ئي ونه ليدلو په هغي څه شی.

**تشريح**: **قوله**:﴿ قوله نَعَمْ إِذَا لَمْ يَرَ فِيهِ أَذًى ﴾ په بذل کښي ليکلي دی دا حديث په نجاست د مني باندي دلالت کوی، په دي کښي اختلاف زمونږ په نزد په أبواب الغسل کښي باب فيما يفيض الرجل والمراة کښي تير شوي دي هغه دا چه د احناف او مالکيان ددي د نجاست قائل دی او شوافع او حنابله على القول المشهور د طهارت قائل دی، او په دلائلو باندي کلام وړاندي نزدي راروان دي.

## (۱۳۵) بَابُ الصَّلَاةِ فِي شُعُرِ النِّسَاءِ

### باب دي په بيان د جامو د ښځو کښي د مونځ نه کولو

[۳۶۷]() حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا الْأَشْعَثُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُصَلِّي فِي شُعُرِنَا أَوْ فِي لُحُفِنَا"، قَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ: شَكَّ أَبِي.

**ترجمه**:د عائشی ﷺ نه روايت دي هغي ويلی دي: وو رسول الله ﷺ چي مونځ ئي نه کولو زمونږ په هغه جامو کښي چي د بدن سره به متصل وی او يا زمونږ په لحفو کښي. وئيلی دی عبيد الله: شک کړی دی زما پلار (معاذ).

**تشريح**: شعر جمع د شعار ده کوم چه مقابل دي د دثار، هغه جامه کومه چه د بدن سره متصل وی او د هغي نه پورته والا ته دثار وائی خو دلته د شعار نه مراد پورته کپړه ده، لکه څادر، بستره، کمبل وغيره، پس په حديث الباب کښي لفظ د لحف مذکور دي او هم دغه شان امام ترمذی ﷫ په دي باندي ترجمة باب الصلوة فی لحف النساء تړلي دي، او مطلب دا دي چه د زنانو هغه کپړه کومه چه سړی هم استعمالولي شی، په داسي کپړه کښي سړو له مونځ نه دی کول پکار،

### د ممانعت وجه

د دي دوه وجي کيدي شی لکه چه په کوکب الدری کښي دی، (۱) يو دا چه د زنانو په مزاج کښي د طهارت او نجاست په مسئله کښي احتياط نه وی لهذا سړو له د هغوی له کپړو کښي احتياط کول پکار دی، دويم وجه دا چه په هر ملبوس کښي د لابس بوئی وی نو په داسي صورت کښي د زنانه څادر وغيره اغوستلو سره مونځ کولو کښي د شغل بال ويره ده چه خيال به د هغي طرف ته لاړ شی.

زمصرش بوئے پيراهن شنيدی چرا در چاه کنعانش نه ديدی

خو دا حکم صرف استحبابی دي ددي په جواز کښي هيڅ تردد نشته، هم په دي وجه

---

[1] (): سنن الترمذي/الجمعة ٦٧ (٦٠٠)، سنن النسائي/الزينة ٦١ (٥٣٦٨)، وأعاده المؤلف برقم: ٦٤٥، (تحفة الأشراف: ١٦٢٢١ و ١٧٥٨٩ و ١٩٢٩٦)، ويأتي هذا الحديث عند المؤلف برقم (٦٤٥) (صحيح)

مصنف رحمه الله وړاندې تلو سره دويم باب د رخصت ترلې دي.

[۳۶۸]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ هِشَامٍ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يُصَلِّي فِي مَلَاحِفِنَا" قَالَ حَمَّادٌ: وَسَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ أَبِي صَدَقَةَ، قَالَ: سَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْهُ، فَلَمْ يُحَدِّثْنِي، وَقَالَ: سَمِعْتُهُ مُنْذُ زَمَانٍ وَلَا أَدْرِي مِمَّنْ سَمِعْتُهُ، وَلَا أَدْرِي أَسَمِعْتُهُ مِنْ ثَبْتٍ أَوْ لَا فَسَلُوا عَنْهُ.

**ترجمه**: د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې بيشکه نبي ﷺ وو چې مونځ ئې نه کولو په ملاحفو زمونږ کښې. وئيلې دی حماد: ما اوريدلی دی د ابن ابی صدقة نه هغه وئيلي دي: ما تپوس وکړو د محمد نه د دغې حديث نو ماته ئې بيان نه کړو، او وېي وئيل: ما اوريدلی دی د يوې زمانې نه، او زه نه پوهېږم چې د چانه مې اوريدلی دې، او زه نه پوهېږم چې ما د ثبت نه اوريدلی او که نه، تپوس وکړی د هغې په باره کښې د بل چانه.

### تشريح سند :

**قوله**:﴿ قَالَ حَمَّادٌ وَسَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ أَبِي صَدَقَةَ الخ ﴾ دا حماد، حماد بن زيد او د سند په راويانو کښې دې هغوی چه پورته کوم سند بيان کړو هغه داسې دې ﴿ عَنْ هِشَامٍ عَنِ ابْنِ سِيرِينَ عَنْ عَائِشَةَ ﴾ حال دا چه د ابن سيرين رحمه الله د عائشې رضي الله عنها نه سماع ثابت نه ده دا خو د خپل بيان کړې شوی روايت منقطع کيدل بيانوی هغوی وائی ما د سعيد بن ابی صدقة نه واوريدل هغوی به وئيل چه ما د محمد بن سيرين نه ددې حديث په باره کښې تپوس کړې وو، خو هغوی ماته زما په سوال باندې حديث بيان نه کړو او عذر ئې ښکاره کړو چه ما دا حديث ډيره زمانه مخکښې اوريدلې وو خو اوس مې په ذهن کښې نشته چه د چا نه مې اوريدلې وو او د چا نه مې چه اوريدلې دې هغه ثقة هم دې او که نه!

واضحه دې وی چه په دې سند کښې انقطاع د حماد بن زيد د طريق په اعتبار سره ده او ددې نه مخکښې سند کوم چه په غير د طريق د حماد نه دې هغه ددې انقطاع نه سالم او محفوظ دې په هغې کښې د محمد بن سرين او عائشې رضي الله عنها ترمينځه د عبدالله بن شقيق واسطه موجود ده کوم چه ثقة راوی دې، لهذا سند ثانی يعنی د حماد بن زيد د طريق انقطاع د سند اول په حق کښې موثر او قادح نه ده هغه په خپل ځائې محفوظ دې ځکه چه ظاهره ده چه محمد بن سرين باندې د سماع حديث څه موده پس نسيان راغلو په شروع کښې هغوی ته دا سند محفوظ وو نو کوم راوی چه دا سند متصلاً ذکر کړې دې بغير د انقطاع نه نو د هغه روايت د شروع د زمانې شو لهذا د هغه قول به حجت وی په هغه سرې باندې کوم چه د هغوی نه روايت کوی په هغوی باندې د نسيان راتلو نه پس يعنی من حفظ عنه به حجت وی په من روی عنه بعد النسيان باندې (كذا فى المنهل) او حضرت په بذل کښې د سند ثانی د لاندې کوم چه منقطع دې ليکلې دی ﴿ فلا يثبت هذا الحديث بهذا السند ﴾ او سند اول کوم چه سالم دې د انقطاع نه هغې سره حضرت هيڅ تعرض نه دې فرمائيلې.

---

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۶۳) (صحيح)

# بَاب فِي الرُّخْصَةِ فِي ذَلِكَ

## باب دې په بيان د رخصت کې په ديکښې کې

[۳۶۹]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ بْنِ سُفْيَانَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ الشَّيْبَانِيِّ، سَمِعَهُ مِنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَدَّادٍ، يُحَدِّثُهُ، عَنْ مَيْمُونَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى وَعَلَيْهِ مِرْطٌ وَعَلَى بَعْضِ أَزْوَاجِهِ مِنْهُ وَهِيَ حَائِضٌ وَهُوَ يُصَلِّي وَهُوَ عَلَيْهِ".

**ترجمه**:عبد الله بن شداد حديث بيانوى د ميمونى نه، بيشكه نبى ﷺ مونځ وکړو او په هغه باندې لوپټه وه او په بعضو بيبيانو د هغه باندې د هغې نه څه حصه وه او هغه حائضه وه، او هغه مونځ کولو او هغه ورباندې وو.

**تشريح**: **قوله**:﴿ قوله وَعَلَيْهِ مِرْطٌ وَعَلَى بَعْضِ أَزْوَاجِهِ مِنْهُ ﴾ يعنى رسول الله ﷺ مونځ کولو په خوا کښې ورسره يو زوجه محترمه موجود وه، او په رسول الله ﷺ باندې څادر وو د هغې څه حصه د هغوى په ښځه باندې دپاسه وه.

په دې حديث کښې په يو څادر کښې د سړي او ښځې اشتراک په حالت د مانځه کښې خو ثابت شو ددې تصريح نشته چه هغه څادر خپله د هغوى وو يا که د هغوى د ښځې خو د ترجمې د ثبوت دپاره دا اشتراک کافى دې، خو ددې نه پس چه د عائشې ﷞ کوم حديث راروان دې د هغې مضمون هم دا دې په هغې کښې ددې خبرې تصريح ده چه هغه څادر د عائشې ﷞ وو.

[۳۷۰]([2])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعُ بْنُ الْجَرَّاحِ، حَدَّثَنَا طَلْحَةُ بْنُ يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي بِاللَّيْلِ وَأَنَا إِلَى جَنْبِهِ وَأَنَا حَائِضٌ وَعَلَيَّ مِرْطٌ لِي وَعَلَيْهِ بَعْضُهُ".

**ترجمه**:د عائشى ﷞ نه روايت دې، هغې ويلى دي: وو رسول الله ﷺ چې مونځ ئې کولو دشپې او زه د هغه په خوا کښې ومه، او زه حائضه وم او په ما باندې لوپټه وه زما او بعضې حصه ئې په هغه وه.

**تشريح**: **قوله**:په دې حديث سره په يو څادر کښې د سړي او ښځې اشتراک په حالت د مانځه کښې خو ثابت شو ددې تصريح نشته چه هغه څادر خپله د رسول الله ﷺ وو يا د هغوى د زوجې وو خو د ترجمې د ثبوت دپاره دا اشتراک کافى دې، خو ددې نه پس چه د عائشې ﷞ کوم حديث راروان دې د هغې مضمون هم دا دې او په هغې کښې ددې خبرې تصريح ده چه هغه څادر د عائشې ﷞ وو.

[1]: سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۳۱ (۶۵۳)، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۶۳)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحيض ۳۰ (۳۳۳)، صحيح مسلم/الصلاة ۵۲ (۵۱۹)، مسند احمد (۲۰۴/۶) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الصلاة ۵۲ (۵۱۴)، سنن النسائي/القبلة ۱۷ (۲۶۹)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۳۱ (۶۵۲)، (تحفة الأشراف: ۱۶۳۰۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۰۴/۶) (صحيح)

## بَابُ الْمَنِيِّ يُصِيبُ الثَّوْبَ

### باب دې په بیان کې چې جامې ته ورسېږي

[۳۷۱]([1])حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ الْحَارِثِ، أَنَّهُ كَانَ عِنْدَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فَاحْتَلَمَ، فَأَبْصَرَتْهُ جَارِيَةٌ لِعَائِشَةَ وَهُوَ يَغْسِلُ أَثَرَ الْجَنَابَةِ مِنْ ثَوْبِهِ أَوْ يَغْسِلُ ثَوْبَهُ، فَأَخْبَرَتْ عَائِشَةَ، فَقَالَتْ: "لَقَدْ رَأَيْتُنِي وَأَنَا أَفْرُكُهُ مِنْ ثَوْبِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَاهُ الْأَعْمَشُ، كَمَا رَوَاهُ الْحَكَمُ.

**ترجمه**:د همام بن الحارث نه روایت دې، بیشکه هغه وو د عائشې رضي الله عنها سره او محتلم شو، نو ولیدلو یوې وینزې د عائشې او هغه وینځلو اثر د جنابت د خپلې جامې نه، او یا یې وینځله خپله جامه، نو خبرې ورکړو عائشې ته، هغې وویل: ما لیدلې وو خپل ځان ما به ګروله دا د جامې د رسول الله ﷺ نه.

**مضمون حدیث:**

**قوله**: ﴿ قوله عَنْ هَمَّامِ بْنِ الْحَارِثِ أَنَّهُ كَانَ عِنْدَ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - فَاحْتَلَمَ الخ ﴾ همام بن الحارث رحمه الله یو ځل د عائشې رضي الله عنها کره میلمه شو هغه ته په شپه کښې احتلام اوشو، چه سحر پاسیدو نو د کپړې نه ئې اثر د نجاست وینځلو، د عائشې رضي الله عنها یوې وینځې په وینځلو باندې اولیدو هغه لاړه او عائشې رضي الله عنها ته ئې ذکر اوکړو، دا روایت په ترمذی کښې هم دې او ددې نه معلومیږی چه دا څادر د عائشې رضي الله عنها وو او کله چه هغه وینځې هغې ته د میلمه د وینځلو ذکر اوکړو نو هغې اوفرمائیل ﴿ لم افسد علینا ثوبنا ﴾ یعنی هسې ئې زمونږ کپړه خرابه کړه څه ضرورت وو د وینځلو مطلب دا وو چه د اوچیدلو نه پس به هسې به هم ګرولې شوې وې.

[۳۷۲]([2])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كُنْتُ أَفْرُكُ الْمَنِيَّ مِنْ ثَوْبِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُصَلِّي فِيهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَافَقَهُ مُغِيرَةُ، وَأَبُو مَعْشَرٍ، وَوَاصِلٌ.

**ترجمه**:د عائشې نه روایت دې هغې ویلې دې: وم زه چې توړل مې منی د جامې د رسول الله ﷺ نه نو هغه به مونځ کولو په هغې کښې.

**د طرق حدیث د اختلاف تشریح او تحقیق:**

**تشریح: قوله**:﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَافَقَهُ مُغِيرَةُ وَأَبُو مَعْشَرٍ وَوَاصِلٌ ﴾ حدیث الباب مصنف رحمه الله په دوه طرقو سره ذکر کړې دې په اول سند کښې د ابراهیم نه نقل کونکې حکم وو او په دویم سند کښې حماد بن ابی سلیمان، خو په دواړو سندونو کښې فرق دا دې چه د حکم په روایت کښې دا وه چه ابراهیم روایت کوی د همام نه، او د حماد د روایت نه معلومیږی چه ابراهیم روایت کوی د اسود نه، هم ددې په باره کښې مصنف رحمه الله فرمائی چه بعض راویان د حماد

---

[1]: صحیح مسلم/الطهارة ۳۲ (۲۸۸)، سنن الترمذي/الطهارة ۸۵ (۱۱۶)، سنن النسائي/الطهارة ۱۸۸ (۲۹۸)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۸۲ (۵۳۷)، (تحفة الأشراف: ۱۷۶۷۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۶۷، ۱۲۵، ۱۳۵، ۲۱۳، ۲۳۹، ۲۶۳، ۲۸۰) (صحیح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۹۳۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۱۲۵، ۱۳۲، ۲۱۳) (صحیح)

موافقت او متابعت کوي، او هغوی هم دا درې پورته ذکر شوې کسان دي او اعمش د حکم موافقت کړې دې نو ګويا د حماد موافقت متابعت کونکې يو جماعت شو او د حکم متابعت کونکې صرف اعمش شو، په بذل کښې ليکلې دي چه دا سند په دواړو طريقو باندې صحيح او ثابت دې ځکه چه دا ټول راويان حفاظ او ثقات دي کوم چه په اضطراب باندې نه شي محمول کيدې پس د طحاوي په روايت کښې دي ﴿ عن ابراهيم عن الاسود وهمام﴾ او هم دا خبره صاحب منهل هم ليکلې ده، خو زه وائم چه د مصنف رحمه الله په کلام کښې ددې خبرې اشاره ده چه هغوی د حکم د روايت په مقابله کښې د حماد روايت ته کيدې شي چه ترجيح ورکوي، ځکه چه هغوی د حماد متابعت کونکی درې بيان کړل او د حکم په متابعت کښې ئې صرف يو ذکر کړو.

**په دې سلسله کښې د امام ترمذي رحمه الله رائې:**

او امام ترمذي رحمه الله ددې برعکس کار کړې دې هغوی د اعمش [1] روايت ته ترجيح ورکړې ده د منصور د متابعت د وجې نه.

**تنبيه**: حديث الباب په دې ټولو طرقو سره د کومو چه امام ابوداؤد حواله ورکړې ده په صحيح مسلم کښې موجود دې خو په هغې کښې د ضيف محتلم تعين نشته هم دغه شان د ترمذي روايت هم مبهم دې د ابوداؤد په روايت کښې تعين دې چه هغه همام بن الحارث وو، خو امام مسلم رحمه الله ددې حديث د ذکر کولو نه پس يو بل حديث ذکر کړې دې چه د هغې مضمون دا دې چه عبدالله بن شهاب الخولاني وائي چه زه يو ځل د عائشې رضي الله عنها کره ميلمه اوم ﴿ فاحتلمت في ثوبي ﴾، امام نووي رحمه الله دې ته تعرض نه دې کړې، زمونږ حضرت په بذل کښې ليکلې دي چه دا دواړه قصې بيلې بيلې دي يو د همام بن الحارث او يو د عبدالله بن شهاب الخولاني، دا دې تعارض اونګڼړلې شي.

---

[1] ، اصل کښې صورت حال دا دې چه امام ترمذي رحمه الله ددې حديث اولا تخريج په طريق د اعمش سره کړې دې او بيا ئې وړاندې تلو سره فرمائيلې دي وهکذا روي عن منصور عن ابراهيم عن همام مثل رواية الاعمش ته او ددې دواړو د روايت په مقابله کښې هغوی صرف د ابومعشر د روايت حواله ورکړې ده او فرمائي وروي ابومشعر هذا الحديث عن ابراهيم عن الاسود او د ابومعشر ئې څوک هم متابع نه دې ذکر کړې، لهذا د امام ترمذي رحمه الله د علم په اعتبار سره ابومعشر په خپل روايت کښې متفرد شو هم په دې وجه هغوی د ابومعشر روايت ته مرجوح او د هغې مقابل د اعمش روايت ته راجح وئيلې دې، پس فرمائي وحديث الاعمش اصح لهذا د امام ترمذي رحمه الله د ترجيح د پورته صورت حال په اعتبار سره زمونږ په خيال کښې صحيح ده خو شارحين د ترمذي په دې باندې نقد کوی چه امام ترمذي رحمه الله حديث الاعمش ته ځنکه اصح اوونيلو، خو زمونږ د پورته تقرير نه دا خبره واضحيږی چه په امام ترمذي رحمه الله باندې نقد صحيح نه دې اګر چه دا خبره في نفسه په خپل ځائې باندې محقق ده چه په دې دواړو کښې د هر يو متابع په صحيح مسلم او ابوداؤد وغيره کښې موجود دی چه د هغې مقتضی دا ده چه دواړو طريقو ته صحيح اوونيلې شي، کما تقدم عن البذل)

زه دخپلې دې رائې نه رجوع کوم بلکه نقد صحيح دې دامام ترمذي دطرف نه دا عذر پيش کولی چه هغه دخپل علم په اعتبار سره فرمائي، مانع عن النقد نه دې، ځکه چه هرعالم کوم څه وائی دخپل علم په اعتبار سره ئې وائی کنی نو بيا به د تنقيد باب مغلق شي. فقط ۱۴۱۸هـ)

[۳۷۳]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ بْنِ حِسَابٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمٌ يَعْنِي ابْنَ أَخْضَرَ، الْمَعْنَى وَالْإِخْبَارُ فِي حَدِيثِ سُلَيْمٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مَيْمُونِ بْنِ مِهْرَانَ، سَمِعْتُ سُلَيْمَانَ بْنَ يَسَارٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ عَائِشَةَ، تَقُولُ: "إِنَّهَا كَانَتْ تَغْسِلُ الْمَنِيَّ مِنْ ثَوْبِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: ثُمَّ أَرَى فِيهِ بُقْعَةً أَوْ بُقَعًا".

**ترجمه**:عائشي ﷞ ويلي دي: بيشکه هغه وه چې وينځل به ئې منى د جامې د رسول الله ﷺ نه. هغې ويلي دي: بيا به ما ليدل په هغې کښې تاکى او يا تاکې.

**تشريح: قوله**:﴿ قوله سَمِعْتُ عَائِشَةَ تَقُولُ إِنَّهَا كَانَتْ تَغْسِلُ الْمَنِيَّ مِنْ ثَوْبِ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم ﴾ يعنى سيده عائشه ﷞ فرمائى چه ما به د رسول الله ﷺ د کپړې نه منى وينځله، او په هغه کپړه کښې به مې يو يا دوه د وينځلو نخښې ليدلې، ظاهره ده چه کله د يوې کپړې څه حصه وينځلې شى نو کوم ځائې چه وينځلې شوې دې هغه ځائې به محسوسيږى ترڅو چه اوچه شوې نه وى اوس که ئې کپړه د يوځائې نه وينځلې وى نو صرف يو نخښه به ئې ښکاره کيږى او که د ډيرو ځايونو نه ئې وينځلې وى نو ډيرې نخښې به ئې محسوسيږى، هغوى هم دا بيانوى چه ﴿ ثُمَّ أَرَى فِيهِ بُقْعَةً أَوْ بُقَعًا ﴾

## د منى په طهارت او نجاست کښې د فريقينو دلائل :

ځان پوهه کړه چه په دې حديث او ترجمة الباب کښې د يوې مسئلې اختلافى بحث دې يعنى د منئ د طهارت او د نجاست اصل مسئله مخکښې تيره شوه خو په دلائلو باندې کلام تراوسه پورې نه دې شوې، کوم حضرات چه د نجاست د منى قائل دى هغوى د غسل د رواياتو نه استدلال کوى او کوم چه د طهارت قائل دى هغوى د روايات فرک نه استدلال کوى، ځکه چه د ثوب منى په باره کښې د غسل او فرک دواړه قسم روايات په کثرت سره راغلى دى هم په دې وجه حضرات محدثين د باب غسل المنى او د باب فرک المنى بيل بيل بابونه قائموى لکه چه په نسائي وغيره کښې دا ابواب دى، قائلين د طهارت په دې دواړه قسم روايتونو کښې تطبيق داسې کوى چه د غسل روايات په استحباب او تنظيف باندې محمول دى او د فرک په بيان جواز باندې، او د قائلين نجاست د غسل روايات په منى رطب او د فرک روايات په يابس باندې محمول کوى، ځکه چه د هغوى په نزد د طهارت ثوب دپاره د منى ازاله ضرورى ده، که تر وى نو په ذريعه د غسل او که اوچه وى نو په طريقه د فرک، ځکه چه د رسول الله ﷺ نه د هغوى په عمر مبارک کښې يو ځل هم نه دى ثابت چه هغوى د منئ سره بغير د هغې د غسل يا د فرک نه مونځ کړې وى که منى پاکه وې نو کم از کم يو ځل خو به رسول الله ﷺ د بيان جواز دپاره داسې کړې وې، باقى د شوافعو د روايات فرک نه استدلال صحيح نه دې ځکه چه فرک هم د تطهير يو طريقه ده

(١): صحيح البخاري/الوضوء ٦٤ (٢٢٩)، ٦٥ (٢٣٢)، صحيح مسلم/الطهارة ٣٢ (٢٨٩)، سنن الترمذي/الطهارة ٨٦ (١١٧)، سنن النسائي/الطهارة ١٨٧ (٢٩٦)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٨١ (٥٣٦)، (تحفة الأشراف: ١٦١٣٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٢/٦، ٢٣٥) (صحيح)

لکه چه په روايت کښې راځي ﴿ اذا وطئ احدکم بنعله الاذى فان التراب له طهور ﴾ (١) څنګه چه په دې حديث کښې د وطئ اذى نه پس حصول طهارت بالتراب نه په طهارت د اذى باندې استدلال صحيح نه دې هم دغه شان د روايات فرک نه په طهارت د منى باندې استدلال صحيح نه دې ځکه چه په دواړو ځايونو کښې غسل نشته يو ځائې کښې فرک دې او بل ځائې کښې په زمکه پورې راښکل دی.

## ابوالفضل ابن حجر او ابو جعفر طحاوي رحمهما الله :

امام طحاوي رحمه الله په شرح معاني الاثار کښې د غسل او فرک رواياتو ته يو بل سره داسې تطبيق ورکړې دې، هغه دا چه د غسل روايات په ثياب صلوة باندې محمول دی او د فرک ثياب په نوم باندې، په دې باندې حافظ ابن حجر رحمه الله په امام طحاوي رحمه الله باندې زوردار نقد کړې دې چه ثوب صلوة هم په فرک او روايات صحيحه سره ثابت دې، خو ددې جواب دا دې چه ماشاء الله! حافظ ابن حجر رحمه الله ډير مصروف او مشغول سړې وو هغوی ته د امام طحاوي رحمه الله د طويل او عريض پوره کلام لوستلو موقع غالبا نه وه ملاؤ شوې، د امام طحاوي رحمه الله عادت دې چه هغوی خپل مقصد او مدعی په تدريج سره ثابتوی، ډير کرته کلام کولو کولو سره ډير لرې اوځي او د باب په آخر کښې د هغوی د رائې استقرار معلوميږی، په دې وجه د هغوی د کلام د ابتداء نه بعض وخت کتونکو ته دهوکه راشی پس په ﴿ باب مباشرة الحائض ﴾ کښې هم حافظ رحمه الله هم دغه دهوکه خوړلې ده هغوی په دغه باب کښې د امام طحاوي رحمه الله اول کلام ليدلو سره دا اوګنړله چه په دې مسئله کښې امام طحاوي رحمه الله د امام محمد رحمه الله قول ته ترجيح ورکوی حال دا چه داسې نه ده د امام طحاوي رحمه الله د آخرى کلام نه معلوميږی چه هغوی د امام صاحب قول ته ترجيح ورکړې ده لکه چه مونږ سره په باب مباشرة الحائض کښې ددې تفصيل تير شوې دې، هم دغه شان په مسئلة الباب کښې امام طحاوي رحمه الله اولا د ثياب صلوة او د ثياب نوم ترمينځه فرق ذکر کړې دې، بيا ئې وړاندې تلو سره خپله خبره پرانستلې ده چه د بعض رواياتو نه په ثياب صلوة کښې هم فرک ثابت دې.

## د امام طحاوي رحمه الله د رائې ماحصل :

د امام طحاوي رحمه الله د کلام خلاصه دا ده چه هغوی فرمائی د قائلين طهارت منى د روايات فرک نه استدلال صحيح نه دې اولا خو په دې وجه چه په روايات صحيحه شهيره کښې د فرک ثبوت په ثياب صلوة کښې نشته، په ثياب نوم کښې دې او په حالت د نوم کښې ناپاک کپړه اغوستل جائز دی بيا وړاندې تلو سره فرمائی چه که اومنلې شی چه د فرک ثبوت په ثياب صلوة کښې هم دې او في الواقع په بعض رواياتو کښې دې هم، نو بيا به مونږ وايو چه د فرک منى نه په طهارت د منى باندې استدلال صحيح نه دې ځکه چه فرک هم د ازالة نجاست يو طريقه ده لکه چه ﴿ اذا وطئ احدکم بنعله الاذى الحديث ﴾ نه په طهارت اذى باندې استدلال نه شی کيدې، هم دغه شان د فرک منى نه په طهارت د منى باندې استدلال

(١) ددې حديث تشريح په باب الرجل يطأ الأذي بنعله کښې راروانه ده.

نه شي کيدي پس حافظ ابن حجرؒ د امام طحاویؒ صرف اول کلام اوليدلو او آخر کلام ئې نه دې ليدلې چه حافظ صاحب د امام طحاویؒ د کلام هغه جزء خو واخستلو کوم چه د هغوی په نزد قابل نقد وو او کوم جزء چه رافع د نقد وو هغه ئې پريخودلو، په اصل کښې خبره هم هغه صحيح ښکاره کيږی کومه چه مونږ پورته اووئيله چه د امام طحاویؒ خو عادت دې د کلام خورولو او په تدريج سره منزل مقصود ته د رسيدلو او حافظ صاحب د هغوی صرف اول کلام ګوری.

دويمه خبره دا ده چه د ثياب صلوٰة او ثياب منام کوم فرق چه امام طحاویؒ بيان کړې دې هغه بعض مالکيانو مثلا ابن بطال مالکی او قاضی ابوبکر بن العربی هم اختيار کړې دې لکه چه په الفيض السمائی کښې مونږ نقل کړې دې لهذا امام طحاویؒ په دې رائې کښې متفرد نه شو.

## بَابُ بَوْلِ الصَّبِيِّ يُصِيبُ الثَّوْبَ

### باب دې په بيان د بولو د ماشوم کې چې جامې ته ورسيږي

کومه مسئله چه مصنفؒ د دې ترجمې نه ثابتول غواړی يعنی د صبی رضيع او د جارية رضيعه د بول په طريق د تطهير فرق، هغه مختلف فيه دې.

**مذاهب ائمة:**

**(د ماشوم هلک او جينئ د متيازو په تطهير کښې فرق)**

پس شوافع او حنابله د ظاهر احاديث د وجې نه فرمائی چه په بول صبی کښې نضح يعنی رش الماء کافی دې او د احنافو او د مالکيانو په قول مشهور کښې په دواړو کښې هيڅ فرق نشته غسل ضروری دې، دريم مذهب دلته د امام اوزاعی دې هغوی فرمائی په دواړو کښې نضح کافی ده، ولکن لا دليل عليه، وهذا الاختلاف مالم يطعم فاذا طعم فالغسل متعين عند الکل، هم دغه شان خپله بول صبی او صبيه دواړه د ائمة اربعه په نزد نجس دی، داؤد ظاهری او ابوثور وغيره بعض علماء د بول صبی د طهارت قائل دی، او بعض شارحينو چه په دې کښې د امام شافعی او امام مالک کوم اختلاف نقل کړې دې د هغوی په نزد بول صبی طاهر دې دا نقل غلط دې امام نووی او علامه زرقانی د دې تصريح کړې ده.

احنافو او مالکيان کوم چه د عدم الفرق قائل دی هغوی وائی چه په دې حديث کښې د لفظ نضح نه مراد غسل او صب الماء دې د نضح معنی د صب الماء راځی پس په يو روايت کښې دی کوم چه امام طحاویؒ په شرح معانی الاثار کښې ذکر کړې دې ﴿انی لاعرف مدينة ينضح البحر بناحيتها﴾ په دې حديث کښې د نضح نه مراد بهيدل دی رسول اللهﷺ فرمائی چه زه يو داسې ښهر پيژنم چه د هغې په يو طرف کښې درياب بهيږی، وئيلې شوې دی چه دا اشاره ده د قسطنطنيه طرف ته، هم دغه شان د مذی په باره کښې هم لفظ د نضح راغلې دې حال دا چه عند الجمهور د هغې غسل ضروری دې هم دغه شان د دم استحاضه په باره کښې لفظ د نضح مذکور دې کوم چه اوس نزدې دوه درې بابونه مخکښې تير شو ﴿ولتنضح ما لم تر﴾ حال دا چه د دم حيض غسل بالاتفاق ضروری دې، بلکه

دا چه په صحيح مسلم کښې د بول غلام د تطهير په سلسله کښې څلور قسمه الفاظ راغلي دي، النضح، الرش، الصب، اتباع الماء، په ټولو رواياتو باندې به عمل هله اوکړې شی چه کله غسل اومونډلې شی.

**بول صبی او بول صبية کښې وجه د فرق:**

اوس دلته يو سوال پيدا کيږي هغه دا چه هر کله په دواړو کښې غسل ضروري دې او د نضح نه هم مراد غسل دې نو بيا په احاديثو کښې هر يو د بيل بيل فرق سره ولې بيان کړې شوي دي ددې څه وجه ده؟ احناف شارحينو ددې دوه مصلحتونه ليکلې دی، ملا علی قاری رحمه الله ليکی چه د زنانو په مزاج کښې رطوبت او برودت غالب وی چه د هغې په وجه باندې بول صبية غليظ او منتن زياتې وی لهذا ددې ازالې دپاره د مبالغة فی الغسل اجازت دې په خلاف د صبی نه چه د هغه د مزاج د حرارت د وجې نه د هغه بول رقيق زائد وی او په هغې کښې نه دومره بوئې وی لهذا د هغې د ازالې دپاره غسل خفيف کافی دې، او امام طحاوی رحمه الله وجه د فرق دا ليکلې ده چه د زنانه د بولو مخرج چونکه فراخه دې په دې وجه د هغې متيازې چه په کومه کپړه باندې هم غورځيږي نو منتشر کيدو سره به غورځيږي، لهذا ضرورت دې ددې خبرې چه په ښه طريقې سره تتبع کولو باندې په اهتمام سره پاک کړې شی ځکه چه په بول جارية کښې غسل استعمال کړې شوې دې او په بول غلام کښې لفظ نضح، دريمه وجه هغه ده کومه چه د ابن ماجه په روايت کښې ده د امام شافعی رحمه الله نه د هغوی شاګرد رشيد ابواليمان المصری ددې فرق حکمت اوتپوسلو نو هغوی ارشاد اوفرمائيلو وجه ددې دا ده چه بول جارية پيدا شوې دی د لحم او دم نه او بول د غلام د ماء او طين نه لهذا د دواړو د متيازو د صفت او خاصيت د فرق د وجې نه په حکم کښې هم فرق شو، ددې نه پس امام صاحب د شاګرد نه تپوس اوکړو فهمت؟ شاګرد عرض اوکړو ما فهمتُ... امام صاحب رحمه الله اوفرمائيل خبره دا ده چه د آدم عليه السلام تخليق د خاورې نه شوې دې او د حوا رضي الله عنها تخليق د ادم عليه السلام د پختئ نه شوې دې، لهذا د بول غلام تخليق د ماء اوطين نه او د بول انثی د لحم او دم نه شوې دې.

[۳۷۴]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنْ أُمِّ قَيْسٍ بِنْتِ مِحْصَنٍ، "أَنَّهَا أَتَتْ بِابْنٍ لَهَا صَغِيرٍ لَمْ يَأْكُلِ الطَّعَامَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَجْلَسَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حِجْرِهِ فَبَالَ عَلَى ثَوْبِهِ، فَدَعَا بِمَاءٍ فَنَضَحَهُ وَلَمْ يَغْسِلْهُ".

**ترجمه**: د ام قيس بنت محصن نه روايت دې، بيشکه هغې راوستلو يو ماشوم د هغې سره چې خوراک ئې نه کولو رسول الله ﷺ ته، نو هغه کينولو رسول الله ﷺ په خپله غيږ کښې نو متيازې ئې وکړې په جامه د هغه، نو راويې غوښتلې اوبه نو څڅکاو ئې کړې او ويې نه وينځلو.

(۱): صحيح البخاري/الوضوء ۵۹ (۲۲۳)، والطب ۱۰ (۵۶۹۳)، صحيح مسلم/الطهارة ۳۱ (۲۸۷)، سنن الترمذي/الطهارة ۵۴ (۷۱)، سنن النسائي/الطهارة ۱۸۹ (۳۰۳)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۷۷ (۵۲۴)، (تحفة الأشراف: ۱۸۳۴۲)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطهارة ۳۰(۱۱۰)، مسند احمد (۳۵۵/۶، ۳۵۶)، سنن الدارمي/الطهارة ۶۲ (۷۶۷) (صحيح)

**تشریح: قوله:** ﴿ قوله عَنْ أُمِّ قَيْسٍ بِنْتِ مِحْصَنٍ أَنَّهَا أَتَتْ بِابْنٍ لَهَا صَغِيرٍ الخ ﴾ په دې کښې دا ده چه د ام قیس بنت محصن رضی الله عنها ولد صغیر د رسول الله ﷺ په جامو باندې متیازې اوکړې او د هغې نه په وړاندې روایت کښې راځی چه حسین بن علی رضی الله عنهما د هغوی په غیږ کښې متیازې اوکړې او د هغې نه په وړاندې روایت کښې د راوی د شک سره راځی چه حسن یا حسین په دې دواړو کښې یو کس د هغوی په سینه مبارکه باندې متیازې اوکړې، د حدیث شارحینو لیکلې دی د پنځو ماشومانو د رسول الله ﷺ په غیږ کښې متیازې کول ثابت دی، حسن، حسین، عبدالله بن الزبیر، ابن ام قیس، سلیمان بن هشام او وئیلې شوې دی چه صحیح سلیمان بن هاشم دې رضی الله عنهم.

قد بال في حجر النبي اطفال :: حسن حسين ابن الزبير بالوا
و كذا سليمان بن هشام :: وابن ام قيس جاء في الختام

**(د احنافو په مسلک باندې اشکال)**

﴿ قوله: فَدَعَا بِمَاءٍ فَنَضَحَهُ وَلَمْ يَغْسِلْهُ ﴾ په دې حدیث کښې د غسل نفی ده، لهذا معلومه شوه چه په احادیث الباب کښې د نضح نه مراد رش دې صب الماء یا غسل مراد نه دې، لهذا د احنافو تاویل صحیح نه دې، جواب دا دې چه ددې لفظ ﴿ ولم يغسله ﴾ په ثبوت کښې کلام دې چه د زهری د طرف نه مدرج دې، دویم جواب دا دې چه د مسلم په یو روایت کښې دی ﴿ ولم يغسله غسلا ﴾ او مفعول مطلق د تاکید دپاره هم راځی لهذا په روایت کښې د نفس غسل نفی اونشوه بلکه د غسل موکد او د مبالغ فیه نفی ده.

**(د امام طحاوی د طرفه عقلی دلیل)**

امام طحاوی رحمه الله فرمائی د نظر عقل تقاضه هم دا ده چه په دواړو کښې فرق نه دی کیدل پکار، په دې وجه په دې باندې د ټولو اتفاق دې چه د اکل طعام نه پس د غلام او جاریة د دواړو متیازې یو شان دی پس د قیاس تقاضه دا ده چه ددې نه مخکښې هم یو شان کیدل پکار دی.

[۳۷۵] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، وَالرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ أَبُو تَوبة المعنى، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ قَابُوسَ، عَنْ لُبَابَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ، قَالَتْ: كَانَ الْحُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فِي حِجْرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَبَالَ عَلَيْهِ، فَقُلْتُ: الْبَسْ ثَوْبًا وَأَعْطِنِي إِزَارَكَ حَتَّى أَغْسِلَهُ، قَالَ: "إِنَّمَا يُغْسَلُ مِنْ بَوْلِ الْأُنْثَى، وَيُنْضَحُ مِنْ بَوْلِ الذَّكَرِ".

**ترجمه:** د لبابة بنت الحارث نه روایت دې هغې ویلی دي: وو حسن بن علی رضی الله عنه په غیږ د رسول الله ﷺ کښې، نو متیازی ئې وکړی په هغه باندې، نو ما وویل: بله جامه واغونده او راکړه ماته ستا دا لنګ چې زه ئې وینځم، هغه وویل: بیشکه وینځلی به شی د بولو د جینۍ نه او څڼرکاو کولی به شی د بولو د هلک نه.

¹: سنن ابن ماجه/الطهارة ۷۷ (۵۲۲)، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۵۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۳۹/۶) (حسن صحيح)

[٣٧٦](¹)حَدَّثَنَا مُجَاهِدُ بْنُ مُوسَى، وَعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ الْعَنْبَرِيُّ المعنى، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ الْوَلِيدِ، حَدَّثَنِي مُحِلُّ بْنُ خَلِيفَةَ، حَدَّثَنِي أَبُو السَّمْحِ، قَالَ: كُنْتُ أَخْدِمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَكَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَغْتَسِلَ قَالَ: وَلِّنِي قَفَاكَ، فَأُوَلِّيهِ قَفَايَ فَأَسْتُرُهُ بِهِ، فَأُتِيَ بِحَسَنٍ، أَوْ حُسَيْنٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، فَبَالَ عَلَى صَدْرِهِ، فَجِئْتُ أَغْسِلُهُ، فَقَالَ: "يُغْسَلُ مِنْ بَوْلِ الْجَارِيَةِ، وَيُرَشُّ مِنْ بَوْلِ الْغُلَامِ"، قَالَ عَبَّاسٌ: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ الْوَلِيدِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ أَبُو الزَّعْرَاءِ، قَالَ هَارُونُ بْنُ تَمِيمٍ عَنْ الْحَسَنِ، قَالَ: الْأَبْوَالُ كُلُّهَا سَوَاءٌ.

**ترجمه**:ابو السمح ویلی دي: وم زه چې خدمت مې کولو د نبی ﷺ، وو هغه کله چې به ئې اراده وکړه چې غسل وکړی نو وبه ئې وئیل: راوګرځوه ماته خپل شڅ. نو ما به ورته شڅ واړولو ما به پټ کړو په هغې، پس راوړی شو حسن او حسین رضی الله عنهما نو متیازی ئې وکړی په سینه د هغه، زه راغلم چې ویې وینځم نو هغه وویل: وینځلی به شی د متیازو د جینئ نه، او اوبه به شیندلې شی په متیازو د هلک. وئیلی دی عباس: مونږ ته حدیث بیان کړې دې یحیی بن الولید. وئیلی دی ابوداود: او هغه ابو الزعراء دې، وئیلی دی هارون بن تمیم د حسن نه، هغه وایې: متیازې ټولې برابرې دي.

[٣٧٧](²)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ ابْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي حَرْبِ بْنِ أَبِي الْأَسْوَدِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "يُغْسَلُ مِنْ بَوْلِ الْجَارِيَةِ، وَيُنْضَحُ مِنْ بَوْلِ الْغُلَامِ مَا لَمْ يَطْعَمْ".

**ترجمه**:د علی رضی الله عنه نه روایت دې هغه وایې: وینځلی به شی د متیازو د جینئ نه او پوګنه به کولی شی د متیازو د هلک نه ترکومه ئې چې خوراک نه وی شروع کړی.

[٣٧٨](³)حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي حَرْبِ بْنِ أَبِي الْأَسْوَدِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ وَلَمْ يَذْكُرْ مَا لَمْ يَطْعَمْ زَادَ، قَالَ قَتَادَةُ: هَذَا مَا لَمْ يَطْعَمَا الطَّعَامَ، فَإِذَا طَعِمَا غُسِلَا جَمِيعًا.

**ترجمه**:د علی بن ابی طالب رضی الله عنه نه روایت دې، بیشکه نبی ﷺ فرمائیلی دي: نو ذکر ئې کړه پشان د هغې، الا ذکر ئې نه کړه (مَا لَمْ يَطْعَمْ) وئیلی دی قتادة: دا هله چې نه خوری طعام، کله چې خوراک کوی نو دواړه به وینځلی شي.

[٣٧٩](⁴)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرِو بْنِ أَبِي الْحَجَّاجِ أَبُو مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ يُونُسَ، عَنْ الْحَسَنِ، عَنْ أُمِّهِ، أَنَّهَا أَبْصَرَتْ أُمَّ سَلَمَةَ تَصُبُّ الْمَاءَ عَلَى بَوْلِ الْغُلَامِ مَا لَمْ يَطْعَمْ، فَإِذَا طَعِمَ غَسَلَتْهُ، وَكَانَتْ تَغْسِلُ بَوْلَ الْجَارِيَةِ".

**ترجمه**:حسن بصری د خپلې مور نه روایت کوی چې هغې ام سلمة ولیده: چې اوبه ئې اړولې په متیازو د هلک ترکومه ئې چې خوراک نه کوي، کله چې خوراک کوی نو وینځلو به یې، او وه چې وینځلی به ئې متیازی د جینی.(په دواړو صورتونو کښې).

[1]: سنن النسائي/الطهارة ١٩٠ (٣٠٥)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٧ (٥٢٦)، ١١٣ (٦١٣) (تحفة الأشراف: ١٢٠٥١) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ٣١٣ (٦١٠)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٧ (٥٢٥)، (تحفة الأشراف: ١٠١٣١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩٧/١)، (صحيح)

[3]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠١٣١) (صحيح)

[4]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٢٥٦) (صحيح)

# بَابُ الْأَرْضِ يُصِيبُهَا الْبَوْلُ

## باب دی په بیان د زمکې چې بولې ورته ورسیږي

په دې باب سره مصنف رحمه الله د ناپاکې زمکې د پاکولو طريقه بيانوي.

### د تطهير ارض د طرقو تفصيل سره د علماء كرامو د اختلاف نه :

د احنافو په نزد د زمکې د پاکولو درې طریقې دی، اول جفاف، يعنى ناپاكه زمكه په اوچیدو سره خپله پاکیږی، خو په جفاف سره طهارت كامله نه حاصليږی يعنی طاهر كيږی خو مطهر نه وی هم په دې وجه په داسې زمکه باندې مونځ خو کولې شي خو تيمم ترې نه نه شي کولی، طريق ثاني صب الماء چه په زمكه باندې اوبه بهيولو سره هغه پاكه شی خو هر قسمه زمکه په صب الماء سره نه پاکیږی په دې کښې تفصيل دې کوم چه به وړاندې راشی، طريق ثالث د زمکې د پاکولو حفر دې چه زمکه په کنستلو او د ناپاکې خاورې په منتقل کولو سره پاکیږی.

د زمکې په صب الماء سره د پاکیدلو تفصیل دا دې چه زمکه به د دوه حالو نه خالی نه وی، رخوة او صلبة، كه رخوة وی نو په اوبه بهیولو سره پاکیږی په وجه د تسفل ماء چه د زمکې د رخوة او نرم كيدو د وجې نه په اوبو سره نجاست ختمیږی چه په هغې سره به د هغې پورته حصه پاکه شی، تسفل ماء دلته په منزله د عصر دې، چه څنګه د ناپاکې کپړې د پاکولو په وخت نچوړ كول ضروری دی هم دغه شان دلته تسفل دې کوم چه پخپله کیږی، او که هغه ناپاکه زمکه رخوه نه وی بلکه صلبه او بنجر وی نو بیا ددې دوه صورتونه دی، منحدرة يعنى لوړه ژوره او مستوية يعنى برابره قسم اول په صب الماء سره پاکیږی او د قسم ثانی د تطهير دپاره حفر او نقل تراب ضروری دې داسې زمکه به په صب الماء سره نه پاکیږی ځکه چه په داسې زمکه باندې د اوبو بهيدل ګران دی هغه نجاست به هم هلته ولاړ وی یا به کم از کم پوره نه زائل کیږی دا تفصيل هم دغه شان علامه عینی رحمه الله په شرح د بخاری کښې لیکلې دې، او صاحب د بحر الرائق د زمکې یو بل قسم هم لیکلې دې یعنی مجصصه پوخ فرش کوم چه د چونې وغيره نه جوړ وی، ددې تطهير طريقه هغوی دا لیکلې ده چه په دې باندې اوبه واچوئ او دا اومږئ او په کپړه سره ئې اوچه کړئ تردې چه د نجاست اثر زائل شی او د جمهور علماء كرامو په نزد هر قسم زمکه بغير د څه تفصيل نه په صب الماء سره پاکیږی د هغوی په نزد په يوه زمكه كښې هم د حفر حاجت نشته او د احنافو په نزد د بعض زمكو حفر ضروری دی، هم دغه شان جمهور په جفاف سره هم د طهارت د حصول قائل نه دی، او په حديث الباب کښې صب الماء مذکور دې ددې نه استدلال کوی، بلکه امام نووی رحمه الله دا هم لیکلې دی چه دا حديث په امام ابوحنيفه رحمه الله باندې حجت دې او د هغوی خلاف دې ځکه چه د هغوی په نزد حفر ضروری دې خو دا د امام صاحب نه يو روايت دې حكاه العينى فى شرح البخارى قول مختار نه دې، اصح دا ده چه په دې کښې زمونږ په نزد هغه تفصيل دې کوم چه پورته ذکر شو، پس عینی په شروع کښې دا تفصيل په قال اصحابنا سره ذکر کړې دې.

**د سنن په روایاتو سره د حفر ثبوت:**

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه د بول اعرابي والا قصه کښې د صحيحين په حديث کښې د زمکې د پاکولو دپاره صرف د صب الماء ذکر دی، د صحيحين نه علاوه د سنن ابوداؤد په روايت کښې کوم چه هم ددې باب په بل حديث کښې دې، د حفر هم ذکر موجود دې، هم دغه شان طحاوي او دارقطني کښې هم په بعض رواياتو کښې د حفر ذکر دې، په دې رواياتو کښې بعض مرسل دی او بعض مسند ددې رواياتو په بعض راويانو باندې کلام هم دې، په احنافو باندې شوافع الزام لګوی چه هغوی د صحيحين قوی حديث پريږدی او په دې ضعيف حديث باندې عمل کوی، زمونږ د طرف نه علامه عيني رحمه الله وغيره جواب کړې دې چه مونږ د صحيحين روايت کله ترک کړې دې، د زمکې په بعض حصو کښې د صحيحين په روايت باندې عَمل کوو او په بعض کښې د سنن په روايت باندې، تاسو صرف د صب الماء روايت اخستلې دې او د حفر روايت مو ترک کړې دې، ګويا تاسو د اعمال البعض او د احمال البعض مرتکب شوې.

خو دلته يو اشکال پاتې کيږی چه د سنن په دې رواياتو کښې کوم چه احناف اختياروی صب الماء او حفر الارض دواړه ځيزونه کښې جمع دی نو بيا زمونږ په نزد ددې دواړو ځيزونو جمع کول ضروری کيدل پکار دی خو ددې جواب دا کيدې شی چه دې اعرابي چونکه بول قائما کړې وو نو د اصل متيازو ځائې خو حفر کړې شو خو رشاش البول کوم چه په ظاهره ده لرې رسيدلې وی اوس ظاهره ده چه د ټول ځائې کنستل ګران وو په دې وجه ددې مواضع په اعتبار سره صب الماء هم اختيار کړې شو، افاد هذا التوجيه مولانا محمد يوسف رحمه الله في اماني الاحبار.

[٣٨٠]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، وَابْنُ عَبْدَةَ، في آخرين وهذا لفظ ابن عبدة، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْسَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ أَعْرَابِيًّا دَخَلَ الْمَسْجِدَ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ فَصَلَّى، قَالَ ابْنُ عَبْدَةَ: رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُمَّ ارْحَمْنِي وَمُحَمَّدًا، وَلَا تَرْحَمْ مَعَنَا أَحَدًا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَقَدْ تَحَجَّرْتَ وَاسِعًا، ثُمَّ لَمْ يَلْبَثْ أَنْ بَالَ فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ، فَأَسْرَعَ النَّاسُ إِلَيْهِ، فَنَهَاهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ: "إِنَّمَا بُعِثْتُمْ مُيَسِّرِينَ وَلَمْ تُبْعَثُوا مُعَسِّرِينَ، صُبُّوا عَلَيْهِ سَجْلًا مِنْ مَاءٍ، أَوْ قَالَ: ذَنُوبًا مِنْ مَاءٍ".

**ترجمه:** د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې، چې يو بانډچی راغې مسجد ته او رسول الله صلى الله عليه وسلم ناست وو نو مونځ ئې وکړو. وئيلی دی ابن عبدة: دوه رکعاته، بيا ئې ووئيل: اې الله رحم وکړی په ما باندې او په محمد باندې او رحم مه کوه په هيڅ کس زمونږ سره چې کوم دې، نو نبی صلى الله عليه وسلم ووئيل: يقينا تا راتنګ کړو فراخه رحمت د الله تعالى، بيا وخت تېر نه شو چې متيازې ئې وکړې په يو طرف د مسجد کښې نو خلقو جلتې وکړه د هغه طرف ته، نبی صلى الله عليه وسلم هغوی منع کړل او وې وئيل: بيشکه تاسو لېږلی شوی ئې آسانی کونکې، او نه ئې ياستئ لېږلی شوی

[1]: سنن الترمذي/الطهارة ١١٢ (١٤٧)، سنن النسائي/الطهارة ٤٥ (٥٦)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٨ (٥٢٩)، (تحفة الأشراف: ١٣١٣٩)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الوضوء ٥٨ (٢٢٠)، صحيح مسلم/الطهارة (٢٧٤، ٢٧٥)، مسند احمد (٢٣٩/٢، ٥٠٣) (صحيح)

سختی کونکي، واړوئ په دې باندې يوه بوکه د اوبو. او ياپې وويل (ذَنُوبًا من ماء).

**تشريح: قوله:**﴿ قوله عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ أَعْرَابِيًّا دَخَلَ الْمَسْجِدَ ﴾ د اعرابی اطلاق په ساکن البادية يعنی باندچی، د آبادئ نه په لرې اوسيدونکی باندې کيږی کوم چه ښهر ته د څه ضرورت د وجې نه راځی او د دې ترجمة په (باندچی) کلی وال سره هم کولې شی.

## د اعرابی په تعيين کښې اقوال:

د دې اعرابی په تعين او تسمية کښې اقوال مختلف دی، الاقرع بن حابس، عيينة بن حصن، ذوالخويصرة اليمانی يا التميمی دا درې اقوال شو کوم چه عام طور سره شراح حديث ليکی، خو علامه دمنتی په حاشية د ترمذی نفع قوة المغتدی کښې ليکی چه په ذوالخويصرة سره د دې تعين ګران دې ځکه چه هغه سرې راس الخَوارج شوې دې او ښکاره خبره ده چه د يو جماعت سردار داسې جاهل او کم عقل نه شی کيدې.

**قوله:**﴿ لَقَدْ تَحَجَّرْتَ وَاسِعًا ﴾ د الله بنده تا خو د الله پاک وسيع رحمت راتنګ کړو د هغه رحمت خو ډير وسيع دې، هغه دا دعاء چه يا الله ما او محمد ﷺ نه علاوه په چا باندې هم رحم مه کوه په ظاهر کښې ددې دپاره کړې وه چه که الله پاک خپل رحمت عام کړی نو د هر يو په حصه کښې به لږ لږ راځی په دې وجه هغه اووې چه خپل ټول رحمت صرف په مونږ دواړو باندې تقسيم کړه.

**قوله:**﴿ قوله وَقَالَ « إِنَّمَا بُعِثْتُمْ مُيَسِّرِينَ وَلَمْ تُبْعَثُوا مُعَسِّرِينَ ﴾ صحابه کرامو رضی الله عنهم چه کله هغوی سره د هغه په بولو کولو باندې د سختئ اراده اوکړه نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د يسر معامله کوئ نه د عسر، دلته دا سوال واردېږی چه صحابه کرام چرته مبعوث شوې دی، مبعوث خو رسول الله ﷺ وو، جواب دا دې چه صحابه کرام رضی الله عنهم اګر چه مبعوث نه وو خو نائب مبعوث او حق نيابت ادا کونکی خو دی پس هم په دې حيثيت سره هغوی ته مبعوث وئيلې شوې دی يا دې دا تاويل اوکړې شی چه دا صحابه کرام رضی الله عنهم چا چه دې اعرابی سره د سختئ معامله کړې وه دا به يو سرية او دسته وه کومه چه به رسول الله ﷺ يو علاقې ته ليږلې وی او اهل سرية به هم هغه وخت واپس شوې وی، او د رسول الله ﷺ عادت شريفه وو چه يو سرية به ئې روانوله نو هغوی ته به ئې هدايت فرمائيلو ﴿ يسروا ولا تعسروا ﴾ نو دلته هغوی ته مبعوث هم په دې معنی وئيلې شوې دی يعنی د بعث نه مراد بعث الی الدنيا نه دې بلکه الی ناحية وجانب دې کوم چه د سرايا دپاره وی.

[٣٨١](1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ يَعْنِي ابْنَ حَازِمٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ الْمَلِكِ يَعْنِي ابْنَ عُمَيْرٍ يُحَدِّثُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَعْقِلِ بْنِ مُقَرِّنٍ، قَالَ: صَلَّى أَعْرَابِيٌّ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ فِيهِ: وَقَالَ: يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، خُذُوا مَا بَالَ عَلَيْهِ مِنَ التُّرَابِ فَأَلْقُوهُ وَأَهْرِيقُوا عَلَى مَكَانِهِ مَاءً، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ مُرْسَلٌ، ابْنُ مَعْقِلٍ لَمْ يُدْرِكِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه:** د عبد الله بن معقل بن مقرن نه روايت دې هغه وئيلی دي: مونځ وکړو يو اعرابی د

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٩٤٤) (صحيح)

نبي ﷺ سره، په دې قصې سره، هغه وئيلي دي په هغې کښې: او وويل نبي ﷺ: واخلئ هغه خاوره چې متيازې پرې کړې دي ويې غورځوئ، او د هغې په ځائې باندې اوبه واړوئ. وئيلي دي ابوداود: اودا روايت مرسل دابن معقل دى نبى ﷺ ئې نه دى موندلى.

## بَابٌ فِي طُهُورِ الْأَرْضِ إِذَا يَبِسَتْ

### باب دې په بيان د صفايې د ځمکه کې کله چې اوچه شي

[٣٨٢]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، حَدَّثَنِي حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ ابْنُ عُمَرَ: "كُنْتُ أَبِيتُ فِي الْمَسْجِدِ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكُنْتُ فَتًى شَابًّا عَزَبًا، وَكَانَتِ الْكِلَابُ تَبُولُ وَتُقْبِلُ وَتُدْبِرُ فِي الْمَسْجِدِ، فَلَمْ يَكُونُوا يَرُشُّونَ شَيْئًا مِنْ ذَلِكَ".

**ترجمه**: وئيلي ابن عمر: وم زه چې شپه مې تېروله په زمانه د رسول الله ﷺ کښې په مسجد کښې، او وم زه کلک ځوان بې واده، او وو سپي چې متيازې ئې کولې او تلل راتلل به په جمات کښې، نه وو هغوى چې شيندل به ئې څه شى په هغې.

**تشريح**: دا باب سراسر د مذهب حنفيه تائيد او د جمهورو خلاف دې.

**قوله**:﴿ قَالَ ابْنُ عُمَرَ كُنْتُ أَبِيتُ فِي الْمَسْجِدِ الخ ﴾ سيدنا عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرمائى زه به په ځوانئ کښې د وادهٔ نه مخکښې چه کله زه مجرد اوم په مسجد کښې به مې شپه تيروله،[٢] او چونکه په هغه زمانه کښې د مسجد د بندولو دستور نه وو په دې وجه به کله کله سپى مسجد ته راغلل او په هغې کښې به ئې متيازې هم اوکړې او د هغې نه روستو به مسجد د ورځې نه وينځلې کيدو، د ابن عمر رضي الله عنهما دا حديث په صحيح بخارى کښې هم دې خو په هغې کښې لفظ د ﴿ تبول ﴾ نشته، حافظ وائى چه دا حديث په سند د بخارى سره په غير بخارى کښې هم دې او په هغې کښې لفظ د تبول هم موجود دې، مصنف رحمه الله په ترجمة الباب او د هغې په حديث سره د طهارة الارض بالجفاف مسئله ثابت کړې ده لکه چه د احنافو مذهب دې.

(سوال) اوس که يو سړې اوائى چه زمکه په جفاف سره پاکيږى نو بول اعربى فى المسجد والا قصه کومه چه په باب سابق کښې تيره شوه، د اوبو د بهيولو څه ضرورت وو؟ جواب دا دې چه دا يو فضول شان اعتراض دې چه هر کله د تطهير الارض دواړه طريقه دى نو بيا په هغې دواړو کښې د يو په اختيارولو کښې څه اعتراض دې، دويم خبره دا ده چه په جفاف سره زمکه خو پاکيږى خو د رائحه کريهة ازاله او ښه طريقې سره نظافت خو په اوبو باندې کيدې شى، يو خبره بله هم ده چه هغه واقعه د ورځې وه کيدې شى د مانځه وخت نزدې وو په دې وجه تعجيلا د اوبو په ذريعه پاک کړې شوې وى او د بول کلاب قصه د شپې ده دلته په وخت کښې ګنجائش ښکاره دې.

---

[١]: صحيح البخاري/الوضوء ٣٣ (١٧٤)، تعليقًا (تحفة الأشراف: ٦٧٠٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٧١/٢) (صحيح)

[٢]، که دا واقعه کومه چه بيانولې شى د خوب والاقصې نه خکښې وى چه د هغې ذکر وړاندې راروان دې نو دا شپه تيرول په اودو دى، او که د خوب نه روستو قصه بيانوى نو بيا دا شپه تيرول په ويخه باندې وو)

### د امام خطابی رحمه الله تاویل او د هغې رد :

امام خطابی رحمه الله د حدیث الباب توجیه دا کړې ده چه دلته درې افعال مذکور دی ﴿ تبول، تقبل، تدبر ﴾ د فی المسجد تعلق د اخیرین سره دې د تبول سره نه دې، بول خو به هغوی خارج مسجد کول خو د هغوی اقبال او ادبار به کله کله په مسجد باندې کیدلو، ددې جواب دا دې چه سپو ته په مسجد کښې اقبال او ادبار مانع نه وی نو د بول نه څه څیز مانع کیدې شی، او بله دا چه په دې معنی کښې غلطی په یو بل اعتبار سره هم ده هغه دا چه هر کله د ﴿ فی المسجد ﴾ تعلق د ﴿ تبول ﴾ سره پاتې نه شو نو مطلب دا شو چه په هغه زمانه کښې به سپو متیازې کولې، په دې کښې د هغه زمانې څه تخصیص دې هغه اوس هم کوی، علامه عینی رحمه الله فرمائی صحیح دا ده چه د ظرف تعلق د افعال ثلاثه سره دې، که بول ددې نه مستثنی اومنلې شی او صرف د اقبال او ادبار سره ددې تعلق باقی اومنلې شی نو بیا په دې صورت کښې د رش څه ضرورت وو د کوم چه نفی کولې شی، بیا خو د ﴿ فلم یرشون شیئا من ذلک ﴾ جمله بې معنې شوه.

احنافو سره د طهارة الارض بالجفاف په سلسله کښې یو حدیث بل هم دې ﴿ زکوة الارض یبسها ﴾، صاحب هدایة خو دې ته مرفوع وئیلې دې، خو د هغې مخرج علامه زیلعی لیکی چه دا حدیث مرفوعا ثابت نه دې بلکه په مصنف ابن ابی شیبة کښې د محمد بن علی او محمد بن الحنفیة نه خپله د هغوی خپل قول مروی دې، او بعضو دا هم لیکلې دی چه دا د عائشې رضی الله عنها نه موقوفا مروی دې.

**فائده** : په حدیث الباب کښې د ابن عمر رضی الله عنهما په مسجد کښې شپه تیرول مذکور دی هم ددې سره متعلق د بخاری په یو روایت کښې دی ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه په شروع کښې به ماپه مسجد کښې شپه تیروله، یو شپه ماپه خوب کښې اولیدل چه ګویا دوه ملائکو زه جنهم ته بوتلم ﴿ فاذا هی مطویة کطی البئر ﴾ ما اوکتل چه دهغې نه چاپیر داسې دیوال اوچت کړې شوې وو لکه د کوهی څلورو وارو طرفونو ته چه وی، ما په هغې کښې دننه څه داسې خلق هم اولیدل کوم چه ما پیژندل، زه ډیر اوویریدم او ﴿ اعوذ بالله من النار ﴾ وئیل مې شروع کړل په دې کښې یوملائک راته ښکاره شو هغه ماته اووې ویریږه مه، ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی ما د خپل خوب دا قصه خپلې خور حفصه رضی الله عنها ته بیان کړه، حفصه رضی الله عنها رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دهغې ذکر اوکړو رسول الله صلی الله علیه وسلم دخوب اوریدلو نه پس اوفرمائیل ﴿ نعم الرجل عبدالله لوکان یصلی من اللیل ﴾ بیا وراندې راوی وائی چه ددې واقعې نه پس به ابن عمر رضی الله عنهما په مسجد کښې د اودهٔ کیدو په ځائې توله شپه په ویخه باندې تیروله، الا قلیلا.

.......

# بَابٌ فِي الْأَذَى يُصِيبُ الذَّيْلَ

## باب دې په بيان د ګندګۍ کې چې لمن ته ورسيږي

يعنې که په تلو کښې د کرتې په لمن يا په لنګ پورې د لارې ناپاکي اولګي نو ددې څه حکم دې؟

[۳۸۳]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عُمَارَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أُمِّ وَلَدٍ لِإِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، أَنَّهَا سَأَلَتْ أُمَّ سَلَمَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: إِنِّي امْرَأَةٌ أُطِيلُ ذَيْلِي وَأَمْشِي فِي الْمَكَانِ الْقَذِرِ، فَقَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُطَهِّرُهُ مَا بَعْدَهُ".

**ترجمه**: د ام ولده د ابراهيم بن عبد الرحمن بن عوف نه (حميره) روايت دې، بيشکه هغې تپوس وکړو د ام سلمة نه چې بي بي د نبي ﷺ ده هغې ووېل: زه يوه ښځه يم چې اوږده لوپټه مې ده، او ګرځم په ګنده ځائې کښې، نو ووېل ام سلمة ووېل رسول الله ﷺ: پاکوې هغې لره هغه څه چې د دېنه وروسته دې.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ – قوله عَنْ أُمِّ وَلَدٍ ([2]) لِإِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ أَنَّها سَأَلَتْ أُمَّ سَلَمَةَ ﴾

د ابراهيم بن عبدالرحمن د ام ولدة نوم حميده ده هغې د ام سلمة نه تپوس اوکړو ﴿ فَقَالَتْ إِنِّي امْرَأَةٌ أُطِيلُ ذَيْلِي وَأَمْشِي فِي الْمَكَانِ الْقَذِرِ ﴾ هغه وائي چه زما عادت دې چه کله زه د کور نه اوځم نو خپله کپړه اوږدوم (يعنې د تغطيه قدمين دپاره) او په کومه لاره باندې چه ځم په هغې کښې ګندګۍ هم وي، اوس هغه کپړه کومه چه زوړنده وي په نجاست پورې لګيږي.

**قوله**: ﴿ قوله فَقَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ ﴾ د سياق روايت نه په ظاهره داسې معلوميږي لکه چه ام سلمة رضي الله عنها ته ددې جواب د مخکښې نه معلوم وو د رسول الله ﷺ حديث د هغې په علم کښې وو په دې وجه د سوال کونکې په سوال باندې هغې فورا حکم بيان کړو بلکه د رسول الله ﷺ هغه حديث ئې بيان کړو کوم چه د هغې په علم کښې وو چه مسئله او دليل د مسئلې دواړه يو ځائې يو ځائې معلوم شي. (منهل)

### حديث الباب بالاتفاق تاويل ته محتاج دې:

ځان پوهه کړه چه که کپړه په تر نجاست سره ناپاکه شي نو د هغې د تطهير دپاره بالاتفاق غسل ضروري دې علامه توربشتي رحمه الله په دې باندې د علماء کرامو اجماع نقل کړې ده او په دې حديث کښې رسول الله ﷺ فرمائي ﴿ يُطَهِّرُهُ مَا بَعْدَه ﴾ يعنې د زمکې په ناپاکه حصه باندې د تيريدلو نه پس چه کله د زمکې په پاکه حصه باندې تيريږي نو کوم نجاست وغيره

---

[1]): سنن الترمذي/الطهارة ۱۰۹ (۱۴۳)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۷۹ (۵۳۱)، (تحفة الأشراف: ۱۸۲۹۶)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الطهارة ۴(۱۶)، سنن الدارمي/الطهارة ۶۳ (۷۶۹) (صحيح)

[2]) وهكذا في رواية مالك في الموطاء وفي رواية الترمذي عن ام ولد لعبدالرحمن بن عوف وقال الترمذي وروي عبدالله بن المبارك بهذا الطريق عن ام ولد لهود بن عبدالرحمن وهو وهم وانما هو عن ام ولد لابراهيم بن عبدالرحمن بن عوف)

چه په کپړه باندې لګيدلې وی هغه به ددې پاکې خاورې په مړولو سره زائل شی او کپړه به ئې پاکه شی په ظاهر کښې دا حديث د علماء کرامو د اجماع خلاف دې په دې وجه ددې تاويل دا کولې شی چه په حديث کښې لفظ قذر سره نجاست مراد نه دې بلکه طين شارع (د لارې ختې او چقړې وغيره) يا کرکڼ خيز لارې، بلغم وغيره مراد دی او په دې صورت کښې هغه جامه په اصل کښې ناپاکه شوې نه ده ځکه چه طين شارع معاف دې او په حديث کښې د ﴿ يطهره ﴾ نه مراد ينظفه دې او که دا په نجاست باندې محمول کړې شی نو ددې نه به نجاست يابسه مراد کولې شی نه رطبة، چه دا حديث د اجماع خلاف نه شی، او که څوک په تر نجاست مراد کولو باندې اصرار اوکړی نو وئيلې به شی چه دا حديث ضعيف دې ځکه چه ددې په سند کښې ام ولد راويه مجهوله ده.

[۳۸۴]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، وَأَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، قَالَا: حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عِيسَى، عَنْ مُوسَى بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ امْرَأَةٍ مِنْ بَنِي عَبْدِ الْأَشْهَلِ، قَالَتْ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ لَنَا طَرِيقًا إِلَى الْمَسْجِدِ مُنْتِنَةً، فَكَيْفَ نَفْعَلُ إِذَا مُطِرْنَا؟ قَالَ: "أَلَيْسَ بَعْدَهَا طَرِيقٌ هِيَ أَطْيَبُ مِنْهَا؟. قَالَتْ: قُلْتُ: بَلَى، قَالَ: فَهَذِهِ بِهَذِهِ".

**ترجمه**: د موسی بن عبد الله بن يزيد نه روايت دې، هغه روايت کوی د يوې ښځې د بنی عبد الاشهل نه، هغې وئيلی دې: ما عرض اوکړو: اې د الله رسوله! بيشکه زمونږ لاره مسجد ته ګنده ده مونږ به څنګه چل کوو کله چې په مونږ باران اوشی؟ هغه وفرمائيل: ايا نشته وروسته د هغې نه لار چې هغه ښه پاکه وی د دېنه؟ هغه وايې: ما وويل: ولې نشته، هغه وفرمائيل: پس دا د هغې په بدله کښې شوه.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ – قوله عَنِ امْرَأَةٍ مِنْ بَنِى عَبْدِ الْأَشْهَلِ الخ ﴾ دا امراة مجهولة ده خو صحابية ده لهذا هيڅ باک نشته، هغه فرمائی چه ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه د کور نه تر لارې پورې زمونږ لاره ګنده ده خصوصا کله چه باران وی نو نور هم مشکل پيښيږی چه د لارې ګندګی وغيره په لمن پورې اينخلی په دې باندې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو کوم ئې چه په تير حديث د ام سلمة ﷺ کښې فرمائيلې وو، لهذا دلته هم ددې تاويل حاجت دې کوم چه په اول حديث کښې وو، خو په حديث د ام سلمة ﷺ او ددې امراة اشهلية په حديث کښې فرق دې هغه دا چه په اول حديث کښې خو دا تاويل چليدې شو چه د نجاست نه مراد نجاست يابسه دې خو دلته به دا تاويل نه چليږی ځکه چه په دې کښې د باران هم ذکر دې، لهذا دويم تاويل متعين دې.

واضحه دې وی چه ددې قسم يو حديث په باب الرجل يطاء الاذی برجله د لاندې هم تير شوې دې، ﴿ کنا لا نتوضاء من موطئ ﴾ په دواړو کښې فرق دې چه د تير باب تعلق د بدن يعنی رجل سره وو او د زير بحث باب تعلق د ثوب سره دې.

(): سنن ابن ماجه/الطهارة ۷۹ (۵۳۳)، (تحفة الأشراف: ۱۸۳۸۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۳۵/۶) (صحيح)

# بَابٌ فِي الأَذَى يُصِيبُ النَّعْلَ

## باب دې په بیان د ګندګۍ کې چې رسیږي پیزار ته

مصنف رحمه الله په دې باب کښې دا بیانوی لکه چه په حدیث الباب کښې دی چه که خف یا نعل ته په تلو کښې د لارې نجاست اولګی سرې په هغې باندې تیریدلو سره لاړ شی نو بیا روستو زمکه کومه چه پاکه ده په هغې باندې د راښکلو د وجې نه به هغه نعل پاک شی، په حدیث کښې د نعل او خف ذکر دې خو فقهاء کرامو ددې دواړو په حکم کښې هر هغه څیز داخل کړی دې کوم چه صیقل یعنی صیقل شده او صفا وی په هغې کښې مسامات نه وی، لکه مرآة (آئینه) توره او ظفر (نوک) وغیره.

[۳۸۵](۱)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْمُغِيرَةِ. ح وحَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ الْوَلِيدِ بْنِ مَزْيَدٍ، أَخْبَرَنِي أَبِي، ح وحَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عُمَرُ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الْوَاحِدِ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ الْمَعْنَى، قَالَ: أُنْبِئْتُ أَنَّ سَعِيدَ بْنَ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيَّ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا وَطِئَ أَحَدُكُمْ بِنَعْلِهِ الْأَذَى، فَإِنَّ التُّرَابَ لَهُ طَهُورٌ".

**ترجمه:** د اوزاعی نه روایت دې په هم دغه معنی، هغه ووېل: خبر راکړې شوی دی ماته بیشکه سعید بن ابی سعید المقبری حدیث بیان کړې دې، د خپل پلار نه، او هغه د ابو هریره نه، بیشکه رسول الله ﷺ ویلی دي: کله چې پیمال کړی یو کس ستاسو نه په خپل پیزار باندې ګندګي، بیشکه خاوره د هغې پاکونکی ده.

### د حدیث توضیح او د مذاهب ائمة تفصیل :

**قوله:**﴿ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « إِذَا وَطِئَ أَحَدُكُمْ بِنَعْلَيْهِ الأَذَى فَإِنَّ التُّرَابَ لَهُ طَهُورٌ »﴾ په دې کښې اختلاف دې چه د اذی نه څه مراد دې؟ په دې کښې درې اقوال دی،

اول قول: ابوثور، اسحق بن راهویه، اوزاعی، ظاهریة امام احمد فی روایة او د امام شافعی رحمه الله په قول قدیم کښې ددې نه مطلق نجاست مراد کوی که یابسه وی او که راطبه وی په هر صورت کښې خف او نعل په دلک سره پاکیږی د غسل حاجت نشته او د ظاهر الفاظ حدیث نه هم ددې تائید کیږی، ابن قدامه رحمه الله د امام احمد رحمه الله هم دې قول ته ترجیح ورکړې ده،

دویم قول: په دې کښې د امام مالک رحمه الله دې مغوی فرمائی د اذی نه شئ مستقذر یعنی کرکژن څیز یا نجاست یابسه مراد دې، نجاست رطبه په دې کښې داخل نه دې، تر نجاست که خف یا نعل ته اولګی نو د هغې غسل ضروری دې صرف په دلک سره به طهارت نه حاصلیږی، د امام احمد رحمه الله دویم روایت(۲) او د امام شافعی رحمه الله قول جدید هم دا دې، په

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱٤۳۲۹) (صحیح)

(۲) د امام احمد دریم روایت لکه چه په مغنی کښې دې دا دې چه خف یا نعل باندې که بول و براز اولګی نو بیا خو غسل ضروری دې که ددې دواړو نه علاوه پرې بل څه ناپاک څیز اولګی نو بیا په دې کښې دلک کافی دې)

کتب شافعيه کښې غسل ضروري ليکلې شوې دې،
دريم قول په دې کښې د احنافو دې چه ددې نه نجاست يابسه او هم دغه شان نجاست رطبة متجسده يعنى ذى جرم مراد ده رطبه غير متجسده په دې کښې داخل نه ده نجاست متجسده ته مرئية هم وائى يعنى چه د اوچيدو نه پس هم په نظر راځى لکه براز، او غير مرئية لکه بول چه هغه د اوچيدو نه پس په نظر نه راځى بيا په احنافو کښې او امام صاحب رحمه الله او امام ابويوسف رحمه الله ترمينځه اختلاف دې، د امام صاحب رحمه الله په نزد به په دې قسم نجاست سره پس د جفاف نه په مږلو سره پاکى حاصليږى قبل الجفاف نه ځکه چه د نجاست د اوچيدو نه مخکښې به په مږلو سره نور هم تلويث راځى او د امام ابويوسف رحمه الله په نزد د جفاف قيد نشته، قبل الجفاف هم په دلک سره پاکى حاصليږى، په درمختار کښې د ابوداؤد د حديث الباب د اطلاق او عموم د وجې نه د امام ابويوسف رحمه الله قول ته ترجيح ورکړې شوې ده، لهذا دا حديث د امام مالک او امام شافعى د قول جديد کوم چه د هغوى په نزد معتبر دې په ظاهره د هغې خلاف شو دا حضرات ددې تاويل دا کوى چه په حديث کښې د اذى نه مراد شئ مستقذر دې يعنى کرکژن څيز، اويا زيات نه زيات نجاست يابسة.
د پورته تفصيل نه معلومه شوه چه په دې مسئله کښې زيات وسعت د ظاهريه او حنابله په قول راجح کښې دې او د مالکيانو او شوافعو په نزد په دې کښې تنګسيا ده، د هغوى په نزد نجاست رطبه مطلقا په دې کښې داخله نه ده ددې غسل ضرورى دې او د احنافو په مسلک کښې اعتدال دې د هغوى په نزد د نجاست رطبه يو قسم يعنى متجسده په دې کښې داخل دې دويم قسم يعنى غير متجسده په کښې داخل نه دې.
دسند وضاحت ﴿ عن الاوزاعى المعنى ﴾ دلته درې سندونه جمع شو په اول کښې د مصنف رحمه الله استاذ امام احمد بن حنبل رحمه الله دې ددې نه پس په تحويل اول کښې عباس بن الوليد او په تحويل ثانى کښې محمود بن خالد، او بيا ددې درې واړو استاذ کوم چه په سند کښې ذکر دې هغه ابوالمغيرة وليد بن مزيد، عمر بن عبدالواحد دا درې واړه روايت کوى د امام اوزاعى رحمه الله نه، لهذا امام اوزاعى ملتقى الاسانيد شو، اود ﴿المعنى﴾ مطلب دا دې چه ددې درې دواړو د روايت مضمون يو دې او الفاظ مختلف دى، وړاندې اوزاعى فرمائى ﴿ انبئت ان سعيد بن ابى سعيد المقبرى ﴾ يعنى اوزاعى براه راست د سعيد نه نه روايت کوى بلکه بالواسطه، او هغه واسطه کيدې شى چه محمد بن عجلان وى لکه چه د وړاندې سند نه معلوميږى.

[٣٨٦](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ يَعْنِي الصَّنْعَانِيَّ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ، قَالَ: إِذَا وَطِئَ الْأَذَى بِخُفَّيْهِ، فَطَهُورُهُمَا التُّرَابُ.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٣٢٩) (صحيح)

**ترجمه**:ابو هريره ﷺ د نبی ﷺ نه روايت کوی په معنی د هغې سره، هغه وئيلی دي: کله چې پيمال کړی ګندګی په خپلو موزو نو پاکونکی د هغې خاوره ده.

[۳۸۷]()حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ عَائِذٍ، حَدَّثَنِي يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ حَمْزَةَ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْوَلِيدِ، أَخْبَرَنِي أَيْضًا سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ الْقَعْقَاعِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ.

**ترجمه**:دعائشی ﷺ نه روايت، هغه روايت کوی د رسول الله ﷺ نه په معنی د هغې سره.

## تشريح د سند :

**قوله**:﴿ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ – قوله عَنِ الأَوْزَاعِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْوَلِيدِ أَخْبَرَنِي أَيْضًا سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ ﴾ د دې سند په شرح کښې درې اقوال دی، اول دا چه، قال، اخبرنی کښې د قال ضمير ابعد يعنی اوزاعی ته راجع دې، مطلب دا دې چه اوزاعی فرمائی په دې حديث کښې زما دوه شيوخ دی، يو محمد بن الوليد، دويم سعيد بن ابی سعيد، څنګه چه ددې حديث خبر ماته محمد بن الوليد راکړو هم دغه شان سعيد بن ابی سعيد هم راکړو، بيا دا دواړه روايت کوی د ﴿ عن القعاع بن حکيم ﴾ دويم قول دا دې چه د قال ضمير اقرب يعنی محمد بن الوليد ته راجع دې او د ايضا تعلق د ﴿ عن القعاع ﴾ سره دې په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه محمد بن الوليد وائی چه ددې حديث خبر راکړو ماته سعيد بن ابی سعيد د قعقاع نه هم، او د هم مطلب دا دې چه ددې نه مخکښې سند کښې محمد بن الوليد چه کله دا حديث د سعيد بن ابی سعيد نه روايت کړې وو نو هلته د سعيد استاذ د هغوی پلار وو، اول سند داسې وو ﴿ عن سعيد بن ابی سعيد عن ابيه ﴾ او په دې دويم سند کښې د سعيد استاذ قعقاع بن حکيم دې، دريم قول د ادې محمد بن الوليد وائی چه ددې حديث خبر ما ته د قعقاع بن حکيم نه سعيد بن ابوسعيد هم راکړې دې، او د هم مطلب دا دې چه د سعيد نه علاوه بل استاذ هم ماته دا حديث د قعقاع نه روايت کړې دې، حاصل دا چه محمد بن الوليد ته دا حديث د قعقاع نه د دوه استاذانو په واسطه رارسيدلې دې، سعيد او غير سعيد.

(**يوبل قول**): حضرت ناظم رحمه الله ددې يوه بله څلورمه معنی هم ليکلې ده هغه داچه د قال ضمير اقرب يعنی محمد بن الوليد طرف ته راجع دې خو د ايضًا تعلق په اخبرنی کښې چه کومه ياء د متکلم ده هغې سره دې، او مطلب دادې چه محمد بن الوليد وائی چه سعيد بن ابیء سعيد دا حديث څرنګه چه زما نه علاوه د نورو شاګردانو نه بيان کړې دغسې ئې زمانه هم بيان کړې دې، خودا معنی صرف يو عقلی احتمال دې څکه چه په دې وئيلو کښې څه خاص فائده نشته، اود حضرت ناظم صاحب نورالله مرقده مقصد هم غالبًا د تشحيذ اذهان دپاره بيانول دی.

(): تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ١٧٥٦٨) (صحيح)

## باب الإعادة من النجاسة تكون في الثوب

**باب دې په بيان د اعاده د مانځه کښې کې د وجې د نجاست نه چې په جامه کې وي**

**د صحة الصلوة دپاره د طهارة عن النجاسة په شرط کيدو کښې اختلاف:**

يعنى که يوسړې ته د مانځه د فارغ کيدو نه پس معلومه شي چه د هغه په جامه باندې نجاست دې نو آيا د هغه دپاره د مانځه اعاده ضروري ده؟ دا مسئله زمونږ په نزد په باب فرض الوضوء کښې تيره شوې ده چه د طهارة الثوب عن النجاسة شرط صحة صلوة کيدل د جمهور علماء کرامو او ائمة ثلاثه مذهب دې، د مالکيانو په نزد دلته شرط نه دې د هغوی په نزد دوه روايتونه دي يو دوجوب او دويم د سنيت، او د امام شافعي رحمه الله قول قديم هم عدم اشتراط دې يعنى اختلاف به په دې صورت کښې هم جاري وی کوم چه په دې ترجمة الباب او حديث کښې مذکور دې، پس ابن رسلان ليکی چه په دې صورت کښې د امام مالک او امام شافعي په قول قديم کښې به مونځ صحيح شی د اعادې حاجت نشته، او د امام ابوحنيفه، امام احمد او امام شافعي رحمهم الله په قول جديد کښې به مونځ باطل شی، هم دا د جمهور علماء سلف و خلف مذهب دې.

حضرت په بذل کښې ددې ترجمې په مطلب کښې يو بل احتمال هم ليکلې دې خو زما په نزد هم دا مطلب اصح دې کوم چه پورته اوليکلې شو.

[۳۸۸]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، حَدَّثَتْنَا أُمُّ يُونُسَ بِنْتُ شَدَّادٍ، قَالَتْ: حَدَّثَتْنِي حَمَاتِي أُمُّ جَحْدَرٍ الْعَامِرِيَّةُ، أَنَّهَا سَأَلَتْ عَائِشَةَ عَنْ دَمِ الْحَيْضِ يُصِيبُ الثَّوْبَ، فَقَالَتْ: "كُنْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْنَا شِعَارُنَا وَقَدْ أَلْقَيْنَا فَوْقَهُ كِسَاءً، فَلَمَّا أَصْبَحَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَ الْكِسَاءَ فَلَبِسَهُ، ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى الْغَدَاةَ ثُمَّ جَلَسَ، فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، هَذِهِ لُمْعَةٌ مِنْ دَمٍ، فَقَبَضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى مَا يَلِيهَا فَبَعَثَ بِهَا إِلَيَّ مَصْرُورَةً فِي يَدِ الْغُلَامِ، فَقَالَ: اغْسِلِي هَذِهِ وَأَجِفِّيهَا ثُمَّ أَرْسِلِي بِهَا إِلَيَّ، فَدَعَوْتُ بِقَصْعَتِي فَغَسَلْتُهَا ثُمَّ أَجْفَفْتُهَا فَأَحَرْتُهَا إِلَيْهِ، فَجَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنِصْفِ النَّهَارِ وَهِيَ عَلَيْهِ".

**ترجمه:** ام يونس بنت شداد وائی ام جحدر العامرية تپوس وکړو د عائشی نه په باره د وينې د حيض کښې چې ورسېږی جامې ته، نو هغې ووېل: وم زه د رسول الله ﷺ سره او په مونږ باندې څادر زمونږ وو، او په تحقيق سره اچولی وو مونږ دپاسه د هغې نه جامه، هرکله چې صباح کړو رسول الله ﷺ راوايې خسته هغه جامه وايې عوستله، بيا ووتلو مونځ ئې وکړو د صباح، بيا کيناستلو نو ووېل يو سړي: اې د الله رسوله دا يو ټاکی دی د وينې، نو راونيولو رسول الله ﷺ په هغه ځائې باندې چې دېته نزدې وو، نو هغه ئې راولېږلو ماته چې غوټه شوې وو په لاس د هلک کښې، هغه وفرمائيل: دا وينځه او وچ ئې کړه بيا ئې ماته راولېږه. نو ما راوغوښتله خپله کاسه هغه مې وينځلو بيا مې وچ کړو، پس ومې لېږلو هغه ته، نو

¹: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۷۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۲۵۰) (ضعيف)

راغلو رسول الله ﷺ په نيمايې د ورځ کښې او هغه شرئ (پير څادر) په هغه باندې وه.

**تشريح: قوله:** ﴿ قوله يَا رَسُولَ اللَّهِ هَذِهِ لُمْعَةٌ مِنْ دَمٍ ﴾ د مضمون د حديث خلاصه دا ده چه يو ځل رسول الله ﷺ د صبا مونځ کولو نه پس ناست وو، او حال دا چه د هغوی په څادر باندې د دم حيض څه اثر وو، په حاضرين مجلس کښې يو سړی د رسول الله ﷺ دې طرف ته توجه راواړوله نو په دې باندې رسول الله ﷺ هغه څادر کوز کړو او په کومه حصه چه د وينې اثر وو هغه ئې بيله کړه او د يو هلک په ذريعه ئې کور ته اوليږله او وې فرمائيل چه دا دې وينځی او د اوچيدلو نه پس ئې راوړه، عائشې ﷺ هغه حصه وينځلو سره اوچه کړه او څادر ئې واپس رسول الله ﷺ ته راوليږلو.

## تاويل حديث على مسلک الجمهور:

په دې حديث کښې د اعادة صلوة ذکر نشته چه رسول الله ﷺ دې هغه مونځ دوباره کړې وی، د امام مالک او د امام شافعی د قوله القديم خو دا موافق دې او د جمهور علماء کرامو خلاف دې د هغوی د طرف نه به ددې جواب دا وی چه کيدې شی هغه دم قليل يعنی مقدار معفو وی او د هغې وينځل به صرف د تنظيف دپاره وو، يا به بيا داسې وئيلې شی چه عدم ذکر عدم ته مستلزم نه دې کيدې شی رسول الله ﷺ اعاده کړې وی، والله تعالی اعلم

او د خلع نعلين والا حديث کوم چه وړاندې په باب الصلوة فی النعل کښې راروان دې په هغې کښې هم دا مسئله او اشکال موندلې کيږی خو هلته جمهور دا جواب ورکولې شی چه هلته چه په حديث کښې کوم لفظ د قذر مذکور دې د هغې نه شئ مستقذر يعنی کرکژن څيز مراد دې شئ نجس مراد نه دې.

# بَابُ الْبُصَاقِ يُصِيبُ الثَّوْبَ

### باب: په بيان د لاړو کې چې جامې ته ورسيږی ( نو ددې څه حکم دې؟ )

يعنی که په يو جامه باندې لاړې (بلغم، خراشکې) اولگی نو د هغې د وجې نه د هغه کپړې د پاکولو ضرورت شته يا نه؟ علامه عينی او ابن حزم ﷺ په طهارت د بزاق باندې د علماء کرامو اجماع نقل کړې ده سوا د سلمان فارسی ﷺ او ابراهيم نخعی ﷺ چه د دوی دواړو نه نجاست بزاق منقول دې يعنی لعاب دهن تر څو چه په خوله کښې دی پاک دی او بعد الخروج عن الفم نجس دی، لهذا د جمهورو په نزد د کپړې د پاکولو حاجت نشته او ددې دواړو په نزد شته، دا اختلاف زمونږ په نزد ﴿ باب الرجل يستاک بسواک غيره ﴾ کښې تير شوې دې.

[٣٨٩](١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ عَنْ أَبِي نَضْرَةَ قَالَ بَزَقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ثَوْبِهِ وَحَكَّ بَعْضَهُ بِبَعْضٍ.

[1]: تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ٦١٨، ١٩٤٩٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلاة ٣٣ (٤٠٥)، ٣٩ (٤١٧)، سنن النسائي/الطهارة ١٩٣ (٣٠٩)، سنن ابن ماجه/الصلاة ٦١ (١٠٢٤) (صحيح)

**ترجمه**:د ابو نضرة نه روایت دې هغه وئیلی دي: لاړې تو کړې رسول الله ﷺ په خپله جامه کښې، او ویې سولولو بعضې د هغې د بعضی سره.

**تشریح: قوله:** ﴿ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ – قوله بَزَقَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فِي ثَوْبِهِ الخ ﴾ دا واقعه د حالت صلوة ده لکه چه د ابونعیم په روایت کښې ددې تصریح ده مطلب دا دې چه رسول الله ﷺ ته د توخی وغیره د وجې نه د تهوکلو ضرورت راغلو، په ظاهره به هلته د لاندې تهوکلو موقع نه وه په دې وجه هغوی په خپله کپړه کښې اوکړو، ﴿ وَحَكَّ بَعْضَهُ بِبَعْضٍ ﴾ او بیا ئې دا جامه اومړله چه دا تهوک په کپړه کښې جذب شی په یو بل حدیث کښې رسول الله ﷺ دا طریقه قولا هم ارشاد فرمائیلې ده چه که په مانځه کښې چاته د لاړو د تهوکلو ضرورت راشی نو هغه داسې هم کولې شی دا قسم روایات به په ابواب المساجد کښې راځی.

دا حدیث مرسل دې ځکه چه دلته صحابی مذکور نه دې بلکه دا خبره د رسول الله ﷺ نه ابونضره رحمه الله روایت کوی چه تابعی دې د هغوی نوم په بذل کښې منذر بن مالک بن قطعه لیکلې شوې دې.

[۳۹۰]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِثْلِهِ.

**ترجمه**:انس رضي الله عنه روایت کوی د نبی ﷺ نه په مثل د هغې.

**تشریح: قوله:**﴿ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ – قوله عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– بِمِثْلِهِ ﴾ اول روایت چونکه مرسل وو په دې وجه مصنف رحمه الله ددې روایت مرسله د تقویت دپاره دا روایت مسندة ذکر اوفرمائیلو، دا حدیث د انس رضي الله عنه هم په دې سند سره په بخاری کښې هم مذکور دې.

## حسن اختتام :

دا د کتاب الطهارة آخری حدیث دې ددې راوی سیدنا انس بن مالک رضي الله عنه دې، مشهور صحابی خادم رسول الله ﷺ، که الله پاک زمونږ شمیر هم په خادمان حدیث نبوی کښې اوفرمائی نو د هغه د رحمت نه څه بعیده ده! اللهم امین.

وهذا اخر کتاب الطهارة وبه قد تم الجز الاول من الدر المنضود علی سنن ابی داؤد،

اللهم اجعله خالصا لوجهک الکریم، والحمد لله اولا واخرا

والصلوة والسلام علی نبیه سرمدا ودایما.

۵ /شعبان المعظم ۱۴۱۳ هجری یوم الجمعة المبارکة

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦١٨) (صحیح)

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العالمين والصلاة على سيد المرسلين محمد
واله واصحابه اجمعين اللهم انى احمدك واستعينك

# كتاب الصلاة

## كتاب دی په بيان د مانځه کښې

## باب فرض الصَّلاَةِ

### باب دې په بيان د فرضيت د مانځه کښې

طهارت کوم چه د مانځه په اهم شرطونو کښې دې د هغې د بيان د فارغ کيدو نه پس ددې ځائې نه مصنف مشروط کوم چه مقصود دې هغه بيان فرمائی ددې مقام مناسب ثو بحثونه دی چه د هغې په شروع کښې پيژندل مناسب دی.

### البحث الاول

د صلاة لغوی معنی کړې شوې دې چه ددې اصل معنی د دعا ده، ﴿ قال تعالى وصل عليهم اى ادع لهم ﴾ او په حديث کښې دی ﴿ وان كان صائما فليصل ﴾ يعنی که يو سړې روژه دار وی (او څوک هغه ته دعوت ورکړی) نو هغه له پکار دی چه د داعی کور ته تلو سره دعا کولو نه پس واپس راشی ددې نه پس عبادت مشهوره نوم کيخودلې شو په دې مناسبت سره چه هغه په دعا مشتمل وی (٢)او وئيلې شوې دی چه لفظ د صلاة مشترک دې دعا تعظيم، رحمت او برکت ترمينځه يعنی د صلاة دا ټولې معنی راځی، او بعض وئيلې دی چه ددې اصل معنی د تعظيم ده او عبادت مخصوصه لره ځکه ورته وئيلې شی چه په دې کښې د الله رب العالمين تعظيم دې.

### البحث الثانی

د لفظ صلوة ماخذ اشتقاق، په دې کښې څو اقوال دی،(١) وئيلې شوې دی چه دا مشتق دې د ﴿ صلة ﴾ نه ځکه چه مونځ بنده لره د الله پاک او د هغه په رحمت سره تړی او نزدې کوی په اصل ئې کښې دا لفظ ﴿ وصلة ﴾ وو، اول په دې کښې قلب مکانی شوې يعنی ﴿وصلة ﴾ صلوه کړو، بيا قاعده اعلال يعنی واو متحرک ماقبل مفتوح موندلې کيدو د وجې نه واو په الف سره بدل کړې شو نو صلوة شو، او دا په واو سره په دې وجه ليکلې شی چه ددې د اصل طرف ته اشاره اوشی،(٢) او وئيلې شوې دی چه دا صلا نه اخستلې شوې دې چه د هغې معنی ده ﴿ العظم الذى عليه الايتان ﴾ يعنی د کوناټو نه پورته هډوکې، د مونځ په حالت کښې چونکه تحرک صلوين کيږی په دې وجه دې ته صلوة وئيلې شی،(٣) او وئيلې شوې دی چه دا ماخوذ دې د مصلی نه، د اسونو په ميدان کښې چه کوم اس په دويمه درجه کښې وی هغې ته مصلی وئيلې شی او کوم چه د ټولو نه وړاندې وی هغه ته مجلی وئيلې شی او کوم چه په دريمه درجه کښې وی هغه ته مسلی وئيلې شی، چونکه په ارکان اسلام کښې د شهادتين نه روستو دويمه درجه د مانځه ده په دې وجه دې ته صلاة اووئيلې شو،(٤) څلورم

قول دا دې چه دا اخستلې شوې دې د ﴿صليت العود على النار﴾ نه، دا هغه وخت وئيلې شى چه کله د لرګى کوږ والې د اور په ذريعه برابر کړې شى، د مونځ په ذريعه هم چونکه د انسان باطنى کوږ والې لرې کيږى په دې وجه دې ته صلاة وئيلې شى خو په دې اخرى قول باندې امام نووى رحمه الله دا اعتراض کړې دې چه په صلاة کښې لام کلمه واو دې او په ﴿صليت﴾ کښې ياء ده، فكيف يصح الاشتقاق، د اشتقاق دپاره حروف اصليه کښې اشتراک ضرورى دې، خو علماء کرامو دې اعتراض ته غلط وئيلې دې چه په ټولو حروف اصليه کښې اشتراک صرف په اشتقاق صغير کښې شرط دې، په اشتقاق کبير کښې شرط نه دې، د اشتقاق څو قسمونه دى کوم چه په ابتدائى کتاب مراح الارواح کښې او انتهائى په بيضاوى شريف کښې اوکتلې شى.

## البحث الثالث

ابتداء د مشروعيت صلاة په دې باندې خو د ټولو اتفاق دې چه ددې مشروعيت د هجرت نه مخکښې د معراج په شپه باندې شوې وو پس امام بخارى باب قائم کړې دې "باب كيف فرضت الصلاة فى الاسراء" د ليلة الاسراء په کال او تاريخ دواړو کښې اختلاف دې، اول ئې د کال اختلاف واورئ.

### (د اسرى تاريخ)

امام نووى رحمه الله په شرح د مسلم کښې په دې سلسله کښې درې اقوال ذکر کړې دى.

١: د نبوت نه پنځلس مياشتې پس، ٢: د نبوت نه پنځه کاله پس،

٣: د هجرت نه يو کال مخکښې،

او حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح البارى کښې په دې سلسله کښې د لسو نه زيات اقوال ليکلې دى، د ټولو نه اول هغه د هجرت نه يو کال مخکښې قول ذکر کړې دې او فرمائى چه هم ددې قائل دې ابن سعد وغيره، او هم په دې باندې جزم کړې دې امام نووى او ابن حزم خو تردې فرمائيلې دى چه په دې باندې د علماء کرامو اجماع ده، حافظ فرمائى چه اجماع نقل کول صحيح نه دى، ځکه چه په دې کښې ډير زيات اختلاف دې او د لسو نه زيات اقوال دى، بيا حافظ هغه اقوال ذکر کړې دى چه په هغې کښې يو د هجرت نه درې کاله مخکښې او يو د هجرت نه پنځه کاله مخکښې، لهذا په دې باندې اجماع نقل کول صحيح نه دى خو د اکثرو قول ورته وئيلې کيدې شى پس علامه قسطلانى رحمه الله هم دا د هجرت نه يو کال مخکښې والا قول اکثرو علماء کرامو ته منسوب کړې دې ددې نه علاوه علامه قسطلانى دوه اقوال نور ليکلې دى د هجرت نه يو کال او پنځه مياشتې مخکښې، او دويم د هجرت نه يو کال او درې مياشتې مخکښې. (يعنى يا اولس مياشتې مخکښې او يا پنځلس)

کوم علماء کرام چه فرمائى چه ليلة الاسراء د هجرت نه يو کال مخکښې نه ده بلکه درې يا پنځه کاله مخکښې شوې ده هغوى ددې وجه دا بيانوى چه روايت دې چه سيده خديجه رضي الله عنها د مونځ د فرضيت نه پس د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مونځ کړې دې اود مشهور قول په بنياد د سيده خديجه رضي الله عنها وفات پنځه يا درې کاله مخکښې شوې دې نو دا د هغې مونځ د رسول الله صلى الله عليه وسلم

سره هم هغه وخت صحيح کيدې شي چه کله ليلة الاسراء لره د هجرت نه څو کاله مخکښې اومنلې شي، خو حافظ فرمائي چه په دې کښې هم روايات مختلف دی چه خديجه رضي الله عنها د مرنځ د فرضيت نه پس د رسول الله ﷺ سره مونځ کړې دې يا نه، که اومنلې شي چه کړې ئې دې نو کيدې شي چه د صلاة خمسه د فرضيت نه مخکښې چه کوم دوه مونځونه (چه د هغې ذکر په وړاندې بحث کښې راروان دې) به رسول الله ﷺ کول هم هغه مراد وی.

په مياشت او تاريخ کښې دا اختلاف دې ۲۷ ربيع الاخر ۲۷ رجب او د مياشتې په سلسله کښې شوال او په رمضان المبارک کښې هم وئيلې شوې دې، امام نووی رحمه الله ۲۷ رجب ته راجح وئيلې دی او هم دا مشهور دې د عوامو ترمينځه، ددې نه علاوه په تاريخ کښې نور هم ډير اقوال دی، ۷، ۱۳ او ۱۷، هم دغه شان په ورځ کښې هم اختلاف دې، ليلة الجمعة، ليلة السبت، ليلة يوم الاثنين، ددې دريم قول په بنياد د رسول الله ﷺ د ولادت ورځ، يوم بعثو يوم معراج، يوم بعثت او يوم وفات ټول متفق کيږی. کذا قيل.

## البحث الرابع

آيا د صلوات خمسه د فرضيت نه مخکښې يو مونځ فرض وو؟ وئيلې شوې دی چه او؛ دوه مونځونه وو، صلوة قبل طلوع الشمس او صلوة قبل غروبها يعنی سحر او مازيګر. بيا وئيلې شوې دی چه دا دواړه مونځونه به رسول الله ﷺ فرضا کول او وئيلې شوې دی چه نفلا او يو قول دا دې چه په شروع کښې هيڅ مونځ نه وو سوا د صلاة الليل نه چه د هغې فرضيت په سورة مزمل کښې ذکر شوې دې چه د هغې حکم صرف د يو کال پورې باقی پاتې شو د هغې نه روستو د امت په حق کښې ددې فرضيت بالاتفاق منسوخ شو سوا د عبيده سلمانی نه چه د هغه د تهجد وجوب منقول دې ﴿ ولو قدر حلبة شاة ﴾ البته د رسول الله ﷺ په حق کښې اختلاف دې يو جماعت وائی چه د رسول الله ﷺ په حق کښې هم دا حکم منسوخ شو، بله ډله وايی چه د رسول الله ﷺ په حق کښې منسوخ نه وو، د هر دواړو ډلو استدلال د ﴿ وَمِنَ اللَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهِ نَافِلَةً لَكَ ﴾ نه دې، يوې ډلې ﴿ نافلة ﴾ لره په مشهوره معنی يعنی نفل باندې محمول کړې دې، او دويمې ډلې په لغوی معنی يعنی ﴿فريضة زائدة لک ﴾

## البحث الخامس

د امامت جبرائيل عليه السلام واقعه د ليلة الاسراء په صبا د ماسپخين په وخت پيښه شوې وه او نزول جبرائيل عليه السلام د زوال نه روستو شوې وو د فرضيت صلاة نه پس د ټولو نه اول دا مونځ ادا کړې شوې دې هم په دې وجه دې ته صلاة الاولی وئيلې شی او په يو ضعيف روايت کښې دی چه نزول جبرائيل عليه السلام د صبا په وخت شوې وو چه کله هغه رسول الله ﷺ په خوب بيا مونځلو نو هغه ئې رابيدار نه کړو، واپس لاړو دا روايت صحيح نه دې، غالبا يو راوی نه په ليلة التعريس او ليلة الاسراء کښې اشتباه راغلې ده، هم دغه شان د نسائی د يو روايت نه معلوميږی چه د امامت جبرائيل عليه السلام ابتداء د صلاة فجر نه شوې ده دا هم شاذ او خلاف مشهور دې.

## البحث السادس

د مجموع صلوات خمسه فرضيت ددې امت په خصائصو کښې دې، د ماسخوتن نه علاوه باقي څلور مونځونه په امم سابقه کښې متفرق طور موندلې شوې وو او صلاة العشاء صرف ددې امت سره خاص دې، پس حضرت په بذل کښې د طحاوي روايت من حديث عائشة نقل کړې دې چه د سيدنا ادم عليه السلام توبه چه کله د سحر په وخت قبوله شوه نو هغه دوه رکعته اوکړل په دې باندې د سحر مونځ مشروع شو. او حضرت اسحاق يا اسماعيل عليهما السلام (په اختلاف د دواړو روايتونو) فديه د ماسپخين په وخت راغلې وه چه په دې باندې هغه څلور رکعتونه د شکرانې په طور کړې وو هغه وخت د ماسپخين مونځ شروع شو. او سيدنا عزير عليه السلام د اوږد خوب نه سل کاله پس د مازيګر په وخت رابيدار کړې شو په دې باندې هغه څلور رکعتونه ادا کړل د هغه وخت نه د مازيګر مونځ شروع شو. او د سيدنا داود عليه السلام خطاء د مغرب په وخت معاف شوه نو هغه د څلور رکعتونو کولو په نيت باندې اودريدلو خو د سخت غم او سترې والې د وجې نه په دريم رکعات کيناستلو او څلورم رکعت ئې اونکړې شو د هغه وخت نه درې رکعتونه مشروع شو او د ماسخوتن مونځ د تولو نه مخکښې زمونږ نبي ﷺ او د هغه امت کړې دې.

## البحث السابع

د مونځ فرضيت د کتاب، سنت او اجماع نه ثابت دې ﴿قال الله تعالى : وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ حُنَفَاءَ وَيُقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾ (الاية) هم دغه شان ﴿بُنِيَ الإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ، وَإِقَامِ الصَّلاَةِ، وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَالْحَجِّ، وَصَوْمِ رَمَضَانَ﴾ (متفق عليه) او ددې نه علاوه بيشماره آيتونه او احاديث دى کوم سرې چه د فرضيت صلاة منکر وى د هغه په کفر باندې د علماء کرامو اتفاق دې او څوک چه ئې د فرضيت د قائل کيدو سره سره صرف عملاً پريږدى نو د جمهور علماء چه په هغوى کښې امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله هم دې مسلک دا دې چه هغه فاسق دې او د هغه سزا قتل دې، حداً لا کفراً، او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد د هغه سزا تعزير او هميشه قيد کول دى تردې چه توبه اوکړى، او د يو جماعت رائې دا ده چه د مونځ پريخودنکې کافر دې د امام احمد رحمه الله نه هم يو روايت داسې دې او هم دا رائې ده د عبدالله بن مبارک او اسحاق بن راهويه، بل روايت د امام احمد په شان د جمهورو دې، د جمهورو دليل آيت کريمه ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ﴾ دې.

شوافعو وغيره د تارک الصلاة په قتل باندې استدلال د ﴿امرت ان اقاتل الناس حتى يشهدوا ان لا اله الا الله وان محمدا رسول الله ويقيموا الصلاة ويؤتوا الزكاة﴾ الحديث (متفق عليه) نه کړې دې،

او د احنافو استدلال د ﴿لاَ يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ يَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ إِلاَّ بِإِحْدَى ثَلاَثٍ﴾ (رواه ابوداود) نه دې او د شوافعو د دليل هغوى دا جواب کوى چه تاسو چه کوم حديث پيش کړې دې په هغې کښې د قتال حکم دې او په قتال او قتل کښې فرق دې،

قتال نوم دې د محاربه بين الجانبين، لهذا مطلب دا شو چه که تارکين صلاة سره د ترک صلاة د وجې نه قتال ته خبره اورسيږي نو دديې اجازت شته لکه څنګه چه صديق اکبر رضي الله عنه د مانعين زکاة سره قتال کړي وو، پس د احنافو مسلک هم دا دې چه د تارک فرض سره قتال اوکړې شي چه کله د هغه طرف نه محاربه بيا موندلې شي.

## البحث الثامن

اهميت د صلاة، د مونځ د اهميت دپاره خو اول دا تير شوي بحث هم کافي دې چه د علماء اهل سنت والجماعت کښې د يوې ډلې رائې دا ده چه تارک الصلاة کافر دی او د مونځ نه علاوه د بل يو څيز په ترک کښې هم د هغوی دا رائې نه ده، هم دغه شان په ترمذی شريف کتاب الايمان باب ما جاء في ترک الصلاة د لاندې دی: ﴿عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ الْعُقَيْلِيِّ قَالَ كَانَ أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صلى الله عليه وسلم لاَ يَرَوْنَ شَيْئًا مِنَ الأَعْمَالِ تَرْكُهُ كُفْرٌ غَيْرَ الصَّلاَةِ﴾ او هم دغه شان په ابوداود شريف کتاب الخراج کښې يو حديث راروان دې کوم چه د سيدنا جابر رضي الله عنه نه نقل شوې دې هغه فرمائی چه د ثقيف وفد چه کله د اسلام قبلولو دپاره د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو نو د اسلام د بيعت په وخت هغوی څو شرطونه لګولې وو ﴿أَنْ لاَ يُحْشَرُوا وَلاَ يُعْشَرُوا وَلاَ يُجَبُّوا﴾ اول شرط دا چه دهغوی نه په جهاد کښې د تلو مطالبه اونه کړې شی، دويمه دا چه زکوة او عشر ترې وصول نه کړې شي. دريمه دا چه هغوی به رکوع دپاره نه ښکته کيږی يعنی مونځ به نه کوی.نوپه دې باندې نبی کريم صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو: ﴿لَكُمْ أَنْ لاَ تُحْشَرُوا وَلاَ تُعْشَرُوا﴾ يعنی د جهاد او عشر په باره کښې ستاسو شرط منلې شی خو د دريم شرط په باره کښې ئې اوفرمائيل ﴿وَلاَ خَيْرَ فِي دِينٍ لَيْسَ فِيهِ رُكُوعٌ﴾ چه دا شرط منظور نه دې ځکه چه هغه اسلام به څه وی چه په هغې کښې رکوع نه وی او انسان مونځ اونکړی، هم دغه شان په موطاء امام مالک کښې دی چه په کومه شپه يعنی د سحر په مونځ کښې په عمر رضي الله عنه باندې حمله اوکړې شوه او په هغه باندې بيهوشی راغله نو د رابيداريدو نه پس ورته د مونځ دپاره اووئيلې شو نو عمر رضي الله عنه د هغه ويونکی تائيد اوکړو او وې فرمائيل: ﴿نعم ولا حظ في الاسلام لمن ترک الصلاة﴾ او ضرور (هم په دې حال کښې مونځ کوو) د هغه سړی په اسلام کښې هيڅ حصه نشته کوم چه مونځ نه کوی، پس هغه هم په دې حالت کښې مونځ کړې دې او حال دا چه وينه بهيدله. رضى الله عنه.

[٣٩١]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَمِّهِ أَبِي سُهَيْلِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ سَمِعَ طَلْحَةَ بْنَ عُبَيْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَهْلِ نَجْدٍ ثَائِرَ الرَّأْسِ يُسْمَعُ دَوِيُّ صَوْتِهِ وَلَا يُفْقَهُ مَا يَقُولُ حَتَّى دَنَا، فَإِذَا هُوَ يَسْأَلُ عَنِ الْإِسْلَامِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خَمْسُ صَلَوَاتٍ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ، قَالَ: هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهُنَّ؟ قَالَ: لَا، إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ، قَالَ: وَذَكَرَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صِيَامَ شَهْرِ رَمَضَانَ، قَالَ: هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهُ؟ قَالَ: لَا، إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ، قَالَ: وَذَكَرَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّدَقَةَ، قَالَ:

(): صحيح البخاري/الإيمان ٣٤(٤٦)، والصوم ١ (١٨٩١)، والشهادات ٢٦ (٢٦٧٨)، والحيل ٣ (٦٩٥٦)، صحيح مسلم/الإيمان ٢ (١١)، سنن النسائي/الصلاة ٤ (٤٥٩)، والصوم ١ (٢٠٩٢)، الإيمان ٢٣ (٥٠٣١)، (تحفة الأشراف: ٥٠٠٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/قصر الصلاة ٢٥(٩٤)، مسند احمد (١٦٢/١)، سنن الدارمي/الصلاة ٢٠٨ (١٦٩١) (صحيح)

فَهَلْ عَلَيَّ غَيْرُهَا؟ قَالَ: لَا، إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ، فَأَدْبَرَ الرَّجُلُ وَهُوَ يَقُولُ: وَاللّٰهِ لَا أَزِيدُ عَلَى هٰذَا وَلَا أَنْقُصُ، فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَفْلَحَ إِنْ صَدَقَ".

**ترجمه:** طلحة بن عبيد الله ويلي دي: راغي يو سړی رسول الله ﷺ ته د اهل د نجد نه، ببر سر والا، چې اوريدی شو ګونړ ګونړ د اواز د هغه، او نه پوهيده سړي په هغه څه چې هغه وئيل تردې چې نزدې شو، بيا معلومه شوه چه هغه تپوس کوه د اسلام متعلق، نو وويل رسول الله ﷺ: پنځه مونځونه دي په ورځ او شپه کښې، هغه وويل: ايا شته دی په ما باندې بغير د دېنه؟ وفرمائيل هغه: نه، مګر دا چې ته نفل کوي، او ذکر کړه ورته رسول الله ﷺ روژه د مياشت د رمضان. هغه وويل: ايا شته دی په ما باندې غير د دېنه؟ نه، مګر دا چې ته نفل کوي، هغه وويل: او ذکر کړه ورته رسول الله ﷺ صدقه، هغه وويل: ايا شته دی په ما باندې غير د دېنه؟ هغه ورته وفرمائيل: نه، مګر دا چې ته نفل کوي، روان شو سړی او هغه وئيل: قسم په الله زه به نه زياتوم په دې باندې او نه به کمی کوم، نو وويل رسول الله ﷺ: کامياب شو که رشتيايي ويلی وي.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا عبدالله بن مسلمه.......... يقول جاء رجل... ﴾ د دې حديث راوی طلحه بن عبيد الله رضي الله عنه دې کوم چه مشهور صحابی او د عشره مبشره نه دې په جنګ جمل ۳۶ هجری کښې شهيد شو د مروان په غشی سره.

د دې رجل په باره کښې د اکثرو شارحينو رائې دا ده چه دا د ضمام بن ثعلبه کوم چه د قبيله بنو سعد بن بکر وافد وو لکه چه په صحيحين کښې په يو روايت کښې د هغه د نوم تصريح ده او مونږ سره دلته په ابوداود کښې په ابواب المساجد کښې د (باب المشرک يدخل المسجد) لاندې هم راروان دی په هغې کښې د ضمام بن ثعلبه تصريح ده، په بذل او په منهل دواړو کښې هم دا ليکلي شوې دی خو په اوجز کښې په دې باندې تفصيلی کلام کړې دې او ليکلې شوې دی چه د علامه قرطبی رائې ددې خلاف ده هغه فرمائی چه په کوم روايت کښې د ضمام بن ثعلبه تصريح ده هغه روايت او قصه بله ده، د دواړو روايتونو په سياق او سوالاتو کښې کوم چه راتلونکی سړی کړې وو فرق دې، امام مسلم دا دواړه روايتونه په خپل صحيح کښې يو بل ته نزدې ذکر کړې دی، نو اوس چونکه په يو روايت کښې د رجل د نوم تصريح وه په دې وجه ډيرو شارحينو دا خيال اوکړو چه په دې کښې هم د رجل مصداق هم هغه دې او دواړو قصو لره يو ګڼړلو سره ئې د رجل مصداق ضمام منلی دې حالانکه داسې نه وه، حافظ ابن حجر رحمه الله د قرطبی د رائې تائيد فرمائيلې دې لهذا دا بل څوک سړې دې چه د هغه نوم معلوم نه دې.

**قوله:** ﴿ من اهل نجد ﴾ نجد وئيلې شی اوچتې زمکې ته او دا نوم دې د بلاد عرب د هغه حصې کومه چه د حجاز او د عراق ترمينځه ده ﴿ يسمع دوىّ صوته ﴾ يعنی د هغه په خدمت کښې يو باندې راغلو چه د هغه وينښته ګډوډ وو او د چا د اواز چه ګنګوسی راتلل او په خبره ئې څوک نه پوهيدل چه څه وائی، (دَوِیّ) هغه اواز دې چه کوم اوريدلې شی خو په مفهوم ئې څوک نه پوهيږی د هغه په خبرو باندې څوک پوهيدل ولې نه ددې وجه شارحينو

ليکلې دی چه هغه نږدې راتلو نه مخکښې تپوس شروع کړې وو نو د لرې والی د وجې نه ئې په خبرو باندې څوک نه پوهيدل، او چه کله نږدې راغلو نو معلومه شوه چه څه تپوس کوی دلته د حضرت شيخ د والد صاحب رائې بله ده هغه دا چه کله يو د معمولی شان واله سړې د يو لوئې سړی په خدمت کښې د څه خبرې دپاره نو کومه خبره چه کول وی هغه په ژبې سره په قلاره قلاره ادا کوی او هغه ځان سره يادوی ددې دپاره راځی چه کومه خبره هلته کول غواړی هغه صحيح اوکړې شی، هم دغه شان دا بانډچی هم د رسول اللهﷺ په خدمت کښې راروان وو کومې کومې خبرې چه هغه د رسول اللهﷺ نه تپوسلې هغه ئې ځان سره يادولې، هم دا مراد دې د (دَوِيّ صَوْتِهِ) نه په کوم چه صحابه کرام پوهه نه شو.

**قوله:**﴿ يسال عن الاسلام ﴾ د اسلام نه مراد شرائع د اسلام دی او قرينه په دې باندې د رسول اللهﷺ جواب دې، ځکه چه په جواب کښې حقيقت اسلام يعنی شهادتين مذکور نه دی، يا به دا وئيلې شی چه سوال د حقيقت اسلام نه دې خو د شهادتين ذکر ئې په دې وجه ترک کړو چه سائل په هغې سره دمخکښې نه متصف وو، يادا راوی اختصارا نه وی ذکرکړې. والله اعلم

**قوله:**﴿ خمس صلوات الخ ﴾ په دې حديث کښې وتر نه دې ذکر شوې، شافعيه وغيره ته د استدلال موقع ملاؤ شوه چه وتر واجب نه دی زمونږ د طرف نه دا جواب کيدلې شی چه کيدې شی تردې وخته پورې د وتر وجوب نه وو شوې، يا به دا وئيلې شی چه وتر تابع د ماسخوتن د مانځه دی په دې وجه هغه مستقلا ذکر نه کړې شو او د صلاة عيد په باره کښې به دا وئيلې شی چه دلته فرائض يوميه مذکور دی او صلاة عيد د واجبات سنويه نه دې يعنی هغه کليزې مونځ دې نه روزانه.

## تطوعات په شروع کولو سره واجب کيدل او په دې کښې اختلاف دې

**قوله:**﴿ الا ان تطوع ﴾ دلته يوه مشهوره اختلافی مسئله ده هغه دا چه د نفل شروع کولو نه پس د احنافو او مالکيانو په نزد واجب وی د هغې پوره کول ضروری دی که پوره ئې نه کړی نو قضاء ئې واجب ده، د احنافو په نزد دلته مطلقا او د مالکيانو په نزد په دې صورت کښې چه کله هغه بغير د عذر نه مات کړی او د شافعيه او حنابله په نزد د نفل مونځ حکم کوم چه د شروع کولو نه مخکښې دې هم هغه ئې روستو دې او اتمام ئې واجب نه دې، دا حديث زمونږ دليل دې ځکه چه اصل په استثناء کښې اتصال دې او مستثنی متصل هغه ده کوم چه د ماقبل د جنس نه وی، او دلته په ماقبل کښې د واجبات او فرائضو ذکر دې لهذا معلومه شوه چه نفل د شروع کولو نه پس واجب کيږی، شوافع او حنابله د خپل مسلک په وجه باندې دا استثناء منقطع منی، استثناء منقطع د ماقبل د جنس نه نه وی، لهذا مطلب دا شو چه د صلوات خمسه نه علاوه چه کوم مونځ هم اوکړې شی هغه به واجب نه وی بلکه مستحب به وی، ماقبل کښې د فرض ذکر وو او دلته د مستحب په دې وجه دا استثناء منقطع شوه، زمونږ علماء کرامو وئيلې دی چه اصل په استثناء کښې اتصال دې لهذا هم هغه مراد کيدل پکار دی خو د شوافعو د طرف نه دا وئيلې کيدې شی چه استثناء په اتصال باندې ځنګه محمول کيدې شی او حال دا چه رسول اللهﷺ د صلوات خمسه نه علاوه

باندې د تطوع اطلاق فرمائي په دې وجه هغه فرمائي ﴿ الا ان تطوع ﴾ معلومه شوه چه باقي ټول مونځونه تطوع دي، زمونږ د طرف نه ددې جواب دا ورکړې شوې دې چه استثناء متصل ده او د ﴿ الا ان تطوع ﴾ مطلب دا دې چه ﴿ الا ان تشرع في التطوع ﴾، نو د تطوع نه مراد په حديث کښې شروع في التطوع دې، لهذا دا نه شي وئيلې کيدې چه د صلوات خمسه نه علاوه باقي ټول مونځونه تطوع دي په حديث کښې هغې ته تطوع وئيلې شوې دې، فلا اشکال، د احنافو او د مالکيانو د مسلک تائيد د آيت کريمه ﴿ لا تبطلوا اعمالکم ﴾ نه هم کيږي ځکه چه نفل لره د شروع کولو نه پس که پوره نه کړې شي نو يقينا په هغې کښې ابطال عمل دې چه د هغې نه احتراز ضروري دې، لهذا اتمام واجب شو.
په نفل مونځ کښې اختيار ابتداء او د شروع کولو په اعتبار سره دې چه د هغې د شروع کولو او نه شروع کولو انسان ته اختيار دې، د شروع کولو نه پس يعنی انتهاء اختيار نشته، هم دا اختلاف په صوم تطوع کښې هم دې خو واضحه دې وی چه نفل حج د شروع کولو نه پس بالاتفاق واجب کيږي، دلته شوافع زمونږ سره دی. ﴿ وذکر له رسول الله صلى الله عليه وسلم الصدقة الخ ﴾ راوی ته چونکه د روايت اصل الفاظ ياد نه وو په دې وجه ئې داسې اووې... احتياطا ئې تعبير بدل کړو ﴿ قال : لا الا ان تطوع ﴾ په ظاهر کښې معلوميږي چه کلیزې زکاة کوم چه د مال نه ورکولې شي بس هم هغه واجب دې حال دا چه صدقة الفطر او نفقة العيال هم واجب ده، جواب دا دې چه په دې حديث کښې ذکر د حقوق ماليه اصليه دې يعنی کوم حق چه براه راست بغير د واسطې د بل څيز نه د مال سره متعلق وی، پس هغه صرف زکاة دې او صدقة الفطر د مال د حقوق اصليه نه نه دې بلکه ددې سبب وجوب لکه چه تاسو به په اصول فقه کښې لوستلې وی ﴿ رأس يمونه [1] ويلي عليه ﴾ په دې وجه صرف يو نصاب والا سړی ته صدقة الفطر د خپل ذات نه علاوه د ټول عيال د طرف نه ورکول وی، ځکه چه په رؤس کښې تعدد دې ګينې مال يعنی نصاب خو يو دې، د څو کسانو د طرف نه ئې ورکول ولې واجب دی. على هذا نفقة العيال چه ددې وجوب هم په انسان باندې د عدد رؤوس په توسط سره شوې دې، لهذا دا حقوق او واجبات براه راست يعنی بغير د واسطې د مال سره متعلق نه دی.

**فائده** : په دې حديث کښې د ارکان اسلام د لاندې حج نه دې ذکر کړې شوې په دې کښې څو احتمالات کيدې شی چه تردې وخته پورې حج نه وی فرض شوې يا دا چه فرض شوې خو وی خو د سائل مقصود دا سوال وو چه په ما باندې کوم احکامات فرض دی او هغه سړې به د هغوی نه نه وی چه په چا باندې حج فرض دې په دې وجه رسول الله ﷺ دا بيان او نه فرمائيلو او دا هم وئيلې کيدې شی په طريقه د احتمال عقلی چه کيدې شی د حج فرض کيدل سائل ته د مخکښې نه معلوم وی په دې وجه د هغې د ذکر حاجت رانغلو.

[1] يعنی ذات مکلف

## يو مشهور اشکال او د هغې جواب

﴿ والله لا ازيد على هذا ولا انقص ﴾ دلته يو سوال دې هغه دا چه هغه سړي قسم کولو سره اوونيل چه زه به په دې باندې زيادت نه کوم او نه به کمې کوم. ﴿ لا انقص ﴾ وئيل خو صحيح دی خو ﴿ لا ازيد ﴾ وائی چه زه به په دې فرضو باندې زيادت نه کوم. ګويا په ترک نوافل باندې قسم خوری اوبياهم رسول الله ﷺ دهغه په باره کښې فرمائی ﴿ افلح ان صدق ﴾ نو ددې جواب دا دې چه دا سړې د خپل قوم سفير وو نو مراد د هغه دا دې چه ﴿لا ازيد فی الابلاغ ﴾ چه زه به د رسول الله ﷺ په خبره رسولو کښې نه کمې کوم او نه زيادت. په عمل کښې د کمی او زيادت نفی مراد نه ده، يا د زيادت نفی من حيث الاعتقاد والفرضيت ده. يعنی په پنځو مونځونو باندې به د فرض کيدو په حيثيت سره زيادت نه کوم. مثلا د پنځو مونځونو په ځائې باندې شپږ فرض اوګنړم يا د څلورو رکعتو په ځائې پنځه اوکړم داسې به نه کوم، دا خبرې شارحينو کړې دی، او زه په جواب کښې وائم چه د نقصان او زيادت تعلق د شئ محدود معين سره وی او محدود او معين صرف فرائض دی. تطوعات خو محدود نه دی د هغې تعداد خو متعين نه دې په هغې کښې د کمی او زيادت نه کولو څه مطلب. حاصل دا چه ددې نفی تعلق صرف د فرائضو سره دې، د تطوعات سره ددې تعلق نشته، لهذا د نوافلو د نه کولو د اعرابی په کلام کښې بالکل ذکر نشته. فلا اشکال اصلا.

(**تطبيق بين الروايتين**): ﴿ افلح ان صدق ﴾ په دې روايت کښې رسول الله ﷺ د هغه فلاح د هغه د صدق سره مقيد کړې ده او په يو بل روايت کښې دی ﴿ من سره ان ينظر الى رجل من اهل الجنة فلينظر الى هذا ﴾ يعنی رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه که څوک جنتی انسان لره ليدل غواړی نو هغه ته دې اوګوری، دلته رسول الله ﷺ دا حکم د هغه د صدق سره نه دې معلق کړې ددې څه وجه ده؟ ددې مختلف جوابات ورکړې شوې دی. ١: د هغه په موجودګئ کښې رسول الله ﷺ مصلحة او تعليقا اوفرمائيل ددې دپاره چه په هغه کښې تکبر پيدا نه شی او بيا ئې روستو د هغه د مجلس نه د تلو نه پس بغير د تعليق نه او بالجزم د هغه د جنتی کيدو زيرې ورکړو، او دا هم وئيلې شوې دی چه په شروع کښې رسول الله ﷺ ته د هغه د نيت د صداقت علم نه وو په دې وجه ئې دا خبره مقيد کړه او روستو ورته د هغه د صدق نيت خبر اوشو نو بيا ئې بغير د تعليق نه بيان اوکړو. يو جواب دا هم ورکړې شوې دې چه يوځائې کښې د جنتی کيدو ذکر دې او يوځائې کښې د فلاح موندلو. جنتی کيدل زياته خاص خبره نه ده ځکه چه هر مسلمان جنتی دې او فلاح ددې نه اوچته درجه ده په دې وجه ئې هغه د صدق سره معلق کړه ځکه چه فلاح د اوچتې درجې کاميابئ ته وئيلې شی چه په هغې کښې هر قسم امن او وعافيت وی.

[٣٩٢](١)حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ الْمَدَنِيُّ، عَنْ أَبِي سُهَيْلٍ نَافِعِ بْنِ مَالِكِ بْنِ أَبِي عَامِرٍ، بِإِسْنَادِهِ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: أَفْلَحَ وَأَبِيهِ إِنْ صَدَقَ، دَخَلَ الْجَنَّةَ وَأَبِيهِ إِنْ صَدَقَ

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٥٠٠٩) (صحيح)

**ترجمه**:نافع بن مالک دا حديث په همدې معنی په خپل اسناد سره ذکر کړی دی، هغه وفرمائيل: کامياب شو زما د ې قسم وی د هغه په پلار که رشتيايي ويلی وی نو جنت ته داخل شو، او زما دې قسم وی د هغه په پلار که رشتيايي ويلی وي

**تشريح**: **قوله**:﴿ افلح وابيه ان صدق ﴾ دا د باب دويم حديث دې په اولنی حديث کښې د ابو سهيل نه روايت کونکې مالک وو او په دې کښې اسماعيل بن جعفر دې، په دې کښې د ﴿ وابيه ﴾ زيادت دې کوم چه په اولنی روايت کښې نشته

(**اشکال**): په دې کښې دا دی چه رسول الله ﷺ د هغه په پلار قسم اوکړو حال دا چه په پلار انو باندې د قسم کولو نه حديث کښې منع راغلې ده "لا تحلفوا بابائکم"

(**اول جواب**) جواب دا دې چه ممکنه ده دا واقعه د نهی نه مخکښې وی، او دا هم وئيلې شوې دی چه دلته مضاف محذوف دې يعنی ﴿ ورب ابيه ﴾

(**دويم جواب**) او دا هم وئيلې شوې دی چه ممکنه ده چه کراهت صرف د امت په حق کښې وی د شارع عليه السلام د پاره نه وی،

(**دريم جواب**) او دا هم وئيلې شوې دی چه دا لفظ ﴿ وابيه ﴾ نه دې بلکه ﴿ والله ﴾ وو خو په اصل کښې په ليکلو کښې غلطی اوشوه که هم ددې لفظ دواړه څوکې پورته کړې شی او نقطې حذف کړې شی نو ﴿ والله ﴾ به ترې جوړ شی.

## بَابٌ فِي الْمَوَاقِيتِ

### باب دې په بيان د وقتونو کې

### د مونځونو د وختونو بيان

مواقيت د ميقات جمع ده لکه د ميزان جمع موازين، د ميقات معنی ده معين وخت کوم چه د يو کار د پاره مقرر کړې شی او د هغې اطلاق په مکان معين باندې هم کيږی کوم چه د څه کار د پاره تجويز کړې شی هم په دې وجه وئيلې شی چه د ميقات دوه قسمونه دی، ميقات زمانی، ميقات مکانی، په کتاب الحج کښې د احرام په بيان کښې چه د کوم مواقيت ذکر راځی هغه ميقات مکانی دی يعنی هغه مخصوص ځايونه کوم چه د احرام تړلو د پاره معين کړې شوې دی،اوپه کتاب الصلاة کښې د مواقيت نه ميقات زمانی مراد دې، هسې خود مونځ د پاره ميقات مکانی هم دی خوهغې نه په مواقيت سره تعبير نه شی کولې بلکه مساجد سره، پس منصف د مواقيت د بيان نه چه فارغ شی نو بيا به ابواب المساجد بيانوی يعنی دميقات زمانی نه فارغ کيدوسره به ميقات مکانی بيانوی.

مصنف د کتاب الصلاة په شروع کښې د اعرابی حديث ذکر کړو چه په هغې کښې د صلوات خمسه فرضيت مذکور دې، نو ګويا اولا مصنف د مونځ فرضيت ثابت کړو د هغې نه روستو اوس د مونځ وختونه بيانول غواړی ځکه چه د مونځ اوقات د مونځ سبب وجوب دې، د ماسپنخين د مانځه وخت د ماسپخين د مونځ د وجوب سبب دې او د مازيګر د مونځ وخت د صلاة عصر د وجوب سبب دې او هم دغه شان چه په کوم سړی باندې د کوم

مونځ وخت راشي هغه مونځ په هغه باندې په دې وجه واجب نه دې لکه چه وئيلې شوې دي چه په بعض ملکونو کښې د ماسخوتن مونځ وخت نه شي موندلې هلته د غروب او طلوع ترمينځه دومره فاصله نشته چه د ماسخوتن وخت راشي په دې وجه د هغه ځائې د خلقو په حق کښې به د ماسخوتن مونځ فرض نه وي، د مسبب دپاره د سبب تحقق ضروري دې، غرض دا چه د مونځونو وختونه د هغوی دپاره اسباب دي هم دا خبره مصنف دلته په شروع کښې بيان فرمائيلې ده.

**فائده** : امام بخاری رحمه الله او امام نسائی رحمه الله د کتاب الصلاة په شروع کښې د حديث اعرابی په ځائې حديث الاسراء يعنی حديث المعراج ذکر فرمائيلې دې، ځکه چه د مونځ فرضيت په معراج کښې شوې دې او په حديث د معراج کښې د مونځ د فرضيت هم تصريح ده، د امام ابوداود عادت شريفه په دې سنن کښې مختصر مختصر احاديث راوړې دي اوږده احاديث چه په هغې کښې واقعات او قصې ذکر شوې دی هغه په خپل سنن کښې نه ذکر کوی بس خالص او مضبوط احاديث احکام اخلی.

په دې باب کښې مصنف مطلق د اوقات صلاة روايات ذکر فرمائيلې دی چه د هغې تعلق د ټولو مونځونو سره دې او ددې نه روستو بيا وړاندې تلو سره د هر مونځ د وخت دپاره جدا جدا بابونه هم قائم کړې دی.

بيا پوهه شئ چه مصنف په دې باب کښې هغه احاديث ذکر کړې دی اولا حديث امامت جبرائيل عليه السلام د هغې نه روستو يو بل حديث کوم سوال چه د سائل په جواب کښې دې، هغه دا چه يو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او د مونځ وختونه ئې د هغه نه اوتپوسل په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ته د دوه ورځو پورې ما سره په مدينه منوره کښې ايسار شه، او بيا رسول الله ﷺ هر يو مونځ د ورځې په اول وخت کښې او په دويمه ورځ هر يو مونځ د هغې په اخر وخت کښې اوکړ ددې دپاره چه د وخت اول او اخر معلوم شي، لکه چه د جبرائيل عليه السلام په امامت کښې هم دغه شان اوشو چه سيدنا جبرائيل عليه السلام هغه ته د ليلة الاسراء په صبا باندې هر يومونځ په خپل اول وخت کښې او په دويمه ورځ باندې هر يو مونځ لره په اخر وخت کښې ښودلې وو، زما عادت دې چه د ټولو مونځونو وختونه سره د علماء کرامو د اختلاف نه ددې باب په شروع کښې بيانوم ددې دپاره چه په راتلونکو احاديثو کښې بصيرت حاصل شي.

## د مامور به دوه قسمونه

ځان پوهه کړئ چه د مامور به اولا دوه قسمونه دی لکه چه تاسو په اصول فقه کښې لوستلې دی، يو هغه چرته چه وخت ددې مامور به دپاره معيار وي، او يو هغه چرته چه وخت ظرف وي، د وخت د معيار کيدو مطلب دا دې چه ټول وخت د مامور به په ادا کولو کښې خرچ کول ضروري دی لکه د روژې وخت، د روژې چه کوم وخت معين دې د هغې په پوره وخت کښې موندلې کيدل ضروري دی، او د وخت ظرف ته د کيدو مطلب دا دې چه هغه وخت پوره د مامور به په ادا کولو کښې خرچ کول ضروري نه دی بلکه د مامور به د ادا

کولو نه پس وخت بېچ شي لکه اوقات صلاة، مثلا د ماسپخين تول وخت د ماسپخين په مونځ کښې خرچ کول ضروري نه دي.
د هر يو مونځ دوه وختونه دي يو اولنې او بل اخر، يعنې د وخت ابتداء او د وخت انتهاء لهذا تاسو د مونځونو د اوقاتو ابتداء او انتهاء او په هغې کښې د علماء کرامو اختلاف واورئ.

**د صلوات خمسه د وختونو تفصيل سره د علماء کرامو د اختلاف نه**

د ماسپخين د وخت ابتداء په اتفاق د فقهاء کرامو د زوال نه کيږي، البته د بعض صحابه کرامو نه په دې کښې اختلاف منقول دې او د هغوی په نزد د زوال نه مخکښې شروع کيږي البته په جمعه کښې د امام احمد او اسحاق بن راهويه اختلاف دې ددې دواړو په نزد د جمعې مونځ قبل الزوال جائز دې او د ماسپخين په ابتدائی وخت کښې د ائمه کرامو اختلاف دې، د جمهور علماء او صاحبين په نزد د يو مثل پورې دې، هم دا يو روايت د امام صاحب نه هم دې او د امام صاحب نه ظاهر الرواية دا دې چه د ماسپخين اخر وخت د مثلين پورې دې، امام مالک او يو طائفه په نزد د يو مثل نه پس د څلورو رکعاتو په اندازه وخت مشترک دې په دې کښې ماسپخين هم کولی شي ادا او مازيګر هم، بعض شوافع او داود ظاهري د يو مثل نه پس د فاصلې قائل دی يعنې د يو مثل نه پس لږ شان وخت داسې دې کوم چه نه د ماسپخين وخت دې او نه د مازيګر، بلکه د مازيګر د وخت ابتداء د يو مثل نه پس لږې شان وقفې نه کيږي خو جمهور علماء کرام نه د اشتراک قائل دی نه فصل، او د مازيګر په اول وخت کښې هم هغه اختلاف دې کوم چه د ماسپخين په اخری وخت کښې دې يعنې جمهور علماء او صاحبين په نزد ددې ابتداء د يو مثل نه کيږي او د امام صاحب په نزد د مثلين نه روستو، او اخری وخت مازيګر عند الائمة الاربعة والجمهور تر غروب پورې، او ابو سعيدی اصطخری په نزد الی مثلين، د مثلين نه پس د هغوی په نزد وخت د قضاء دې، او د بعض په نزد د مازيګر اخری وخت د نمر د زيړی پورې دې، او د ماښام د وخت شروع بالاجماع د غروب شفق نه کيږي، په انتهاء کښې اختلاف دې د احنافو او احنابله په نزد الی غروب الشفق دې. او هم دا يو روايت د امام مالک نه هم دې، او بل روايت ددې دواړو نه دا دې چه "ليس لها الا وقت واحد بقدر الطهارة وثلاث رکعات او خمس رکعات" او د ماسخوتن د مونځ ابتداء بالاجماع د غروب شفق نه وی، په انتهاء کښې اختلاف دی د احنافو او حنابله په نزد تر د فجر د طلوع پورې او د امام شافعي رحمه الله او مالک نه مختلف روايتونه دی، الی ثلث الليل، الی نصف الليل، خو اصح قول ددې دواړو دا دې چه الی ثلث الليل وخت اختيار او استحباب دې او ددې نه روستو د طلوع فجر پورې د جواز وخت او د ابو سعيد اصطخری من الشافعية په نزد الی نصف الليل، او د سحر د مونځ ابتداء بالاتفاق د فجر ثانی يعنې د سحر راختلو د طلوع نه ده او په انتهاء وخت کښې اختلاف دې، د احنافو په نزد الی طلوع الشمس، او د جمهورو په نزد الی الاسفار د اختيار وخت دې او الی طلوع الشمس د جواز وخت او د ابو سعيد اصطخری (من الشافعية) په نزد الی تبين الاسفار دې، يعنې چه هر کله ښه رڼا اولګی، په دې باندې د هغوی په نزد د فجر وخت ختم شي، دا

پورته ذکر شوي اختلاف علماء في الاوقات، حضرت شيخ په اوجز کښې او حضرت سهارنپوري په بذل کښې او خپله ما په الفيض السمائي کښې هم دغه شان ليکلي دي... په دې کښې زيات اهم او مشهور اختلاف په اخر وخت او اول وخت د مازيګر کښې دې يعنی مثل واحد او د مثلين اختلاف، او دويم اهم اختلاف په اخر وخت د مغرب کښې دې، د شوافع او مالکيانو په يو قول کښې ﴿ ليس لها الا وقت واحد ﴾... ددې ټولو اختلافاتو دلائل ان شاء الله د راروان احاديثو د لاندې راځي.

[۳۹۳]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ فُلَانِ بْنِ أَبِي رَبِيعَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: هُوَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْحَارِثِ بْنِ عَيَّاشِ بْنِ أَبِي رَبِيعَةَ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَمَّنِي جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَام عِنْدَ الْبَيْتِ مَرَّتَيْنِ، فَصَلَّى بِيَ الظُّهْرَ حِينَ زَالَتِ الشَّمْسُ وَكَانَتْ قَدْرَ الشِّرَاكِ، وَصَلَّى بِيَ الْعَصْرَ حِينَ كَانَ ظِلُّهُ مِثْلَهُ، وَصَلَّى بِي يَعْنِي الْمَغْرِبَ حِينَ أَفْطَرَ الصَّائِمُ، وَصَلَّى بِيَ الْعِشَاءَ حِينَ غَابَ الشَّفَقُ، وَصَلَّى بِيَ الْفَجْرَ حِينَ حَرُمَ الطَّعَامُ وَالشَّرَابُ عَلَى الصَّائِمِ، فَلَمَّا كَانَ الْغَدُ صَلَّى بِيَ الظُّهْرَ حِينَ كَانَ ظِلُّهُ مِثْلَهُ، وَصَلَّى بِي الْعَصْرَ حِينَ كَانَ ظِلُّهُ مِثْلَيْهِ، وَصَلَّى بِيَ الْمَغْرِبَ حِينَ أَفْطَرَ الصَّائِمُ، وَصَلَّى بِيَ الْعِشَاءَ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ، وَصَلَّى بِيَ الْفَجْرَ فَأَسْفَرَ، ثُمَّ الْتَفَتَ إِلَيَّ، فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ، هَذَا وَقْتُ الْأَنْبِيَاءِ مِنْ قَبْلِكَ، وَالْوَقْتُ مَا بَيْنَ هَذَيْنِ الْوَقْتَيْنِ".

**ترجمه**: د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلی دی چې رسول الله ﷺ ويلی دي: امامت وکړو ماته جبريل عليه السلام د بيت الله په خوا کښې دوه ځل، مونځ ئې وکړو ماته د ماسپخين کله چې نمر زوال وکړو او وو په اندازه د تسمې، او مونځ ئې وکړو ماته د مازيګر کله چې شو سورې د هغه په مثل د هغه، او مونځ ئې راکړو ماته يعنې د ماښام کله چې روژه ماتوی روژه دار، او مونځ ئې وکړو ماته د ماسخوتن کله چې شفق پټ شو، او مونځ ئې وکړو ماته د صباح کله چې حرام شو طعام او څکاک په روژه دار، کله چې بله ورځ شوه (صبالله) مونځ ئې وکړو ماته د ماسپخين کله چې شو سورې د هغه په مثل د هغه، او مونځ ئې وکړو ماته د مازيګر کله چې شو سورې د هغه دوه هغومره، او مونځ ئې وکړو ماته د ماښام کله چې روژه ماتوی روژه دار، او مونځ ئې وکړو ماته د ماسخوتن تر دريمې حصې د شپې پورې، او مونځ ئې وکړو ماته د صباح نو ښه ئې رڼا کړه، بيا ئې وکتل ماته او ويې وئيل: اې محمد! دا وخت د انبياو دی مخکې ستانه، او وخت په مابين ددې دوارو وقتونو کښې دی.

## د حديث امامت جبرائيل عليه السلام شرح

**قوله**: ﴿ عن ابن عباس قال قال رسول الله صلي الله عليه وسلم امنی جبريل ﴾ دا د امامت جبرائيل عليه السلام والا حديث دې چه د هغې ذکر مونږ سره پورته راغلې دې دا حديث په صحيحين کښې هم دې خو په هغې کښې د وخت تفصيل نه دی ذکر شوې بلکه صرف دا سې دی، ﴿ فصلی ثم صلی ثم صلی ثم صلی خمس صلوات ﴾ په خلاف د ابوداود وغيره سنن کتابونو چه په دې کښې د وختونو تفصيل هم موجود دې، دا د امامت جبرائيل عليه السلام قصه په مکه مکرمه کښې راپيښه شوه يا د معراج د شپې نه پس په راتلونکې ورځ کښې،

() سنن الترمذي/الصلاة ۱ (۱۴۹)، (تحفة الأشراف: ۶۵۱۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۳۳۳، ۳۵۴) (حسن صحيح)

په دې کښې د مونځ ابتداء د ماسپخين نه اوکړې شوه هم په دې وجه باندې ماسپخين ته الصلاة الاولى وئيلې شى، ددې واقعې نه د مونځ اهميت ښکاره کيږى چه د مونځونو اوقات او د ادا کولو طريقه عملى طور بيانولو دپاره الله پاک ددې مقصد دپاره جبرائيل عليه السلام د اسمان نه راوليږلو، پس جبرائيل عليه السلام په مسجد حرام کښې د کعبې د دروازې مخې ته رسول الله ﷺ او نورو خلقوته مونځ ورکړو او چونکه د مونځونو په وختونو کښې گنجائش او وسعت دې په دې وجه دا د امامت عمل دوه ورځې اوکړې شو ددې دپاره چه هر يو مونځ په اوله ورځ اول وخت کښې او په دويمه ورځ په اخر وخت کښې کولو سره د مونځ اول وخت او اخر وخت اوخودلې شى.

**اشکال**: دلته يو مشهور اشکال دې هغه دا چه د صلوات خمسه فرضيت د بنى ادم په حق کښې دې د ملائکو په حق کښې نه دې، لهذا په دې امامت کښې حضرت جبرائيل عليه السلام متنفل او رسول الله ﷺ او صحابه کرام مفترض شو، صلاة المفترض خلف المتنفل د شوافعو او حنابله په نزد جائز دې، د احنافو او مالکيانو په نزد جائز نه دې او هم دا يو روايت د امام احمد رحمه الله نه هم دې، ددې دوه جوابونه دى يو دا چه د جبرائيل عليه السلام امامت حقيقة نه وو امام په اصل کښې رسول الله ﷺ وو او جبرائيل عليه السلام مخامخ د معلم په شان موجود وو چه په اشارو ره ئې هغه پوهه کولو، بل جواب ئې دا دې چه اګر که د صلوات خمسه ملائکه مکلف نه دى خو هغه وخت چونکه جبرائيل عليه السلام ددې په تعليم مامور من الله تعالى وو په دې وجه فى الوقت دا مونځونه د هغه په حق کښې هم فرض شوې وو. او يو جواب دا هم ورکړې شوې دې چه چونکه لا تر اوسه پورې د مونځ د تفصيلاتو پوره علم نه وو راغلې په دې وجه باندې هغه د رسول الله ﷺ په حق کښې هم فرض نه وو. او په دې جواب سره يو بل سوال هم حل کيږى چه د صلوات خمسه فرضيت خو د شپې نه شوې وو، نو بيا رسول الله ﷺ د سحر مونځ ولې ادا نه کړو.

**قوله**: ﴿ فصلى بى الظهر حين زالت الشمس وكانت قدر الشراک ﴾ يعنى په اوله ورځ ئې د ماسپخين مونځ ورکړو د نمر د زائل کيدو نه فورا پس. ﴿وكانت قدر الشراک﴾ [1] مطلب دا دې چه ظل اصلى د هر يو څيز کوم چه په نصف النهار کښې وى چه کله په هغې کښې شرقى طرف ته اضافه کيدل شروع شى نو بيا د ماسپخين د وخت ابتداء وى. اګر که هغه اضافه د شراک په اندازه وى. شراک (د پيزار تسمه) نه مراد مقدار قليل دې

ځان پوهه کړه چه د نصف النهار نه مخکښې د هر يو څيز سورې د مغرب طرف ته وى او عين د نصف نهار په وخت د قدمونو برابر وى او د نمر د اسمان د مينځ نه د لرې کيدو په وخت کوم ته چه زوال وئيلې شى په ظل اصلى کښې د مشرق په طرف اضافه شروع کيږى هم په دې ظل اصلى کښې اضافې سره د ماسپخين د وخت ابتداء کيږى اګر که هغه اضافه

[1] (المراد به نفس الزيادة علي الظل الاصلي من غير تقييد بقدر الشراك وهذا اذا كان الظل الاصلي موجودا اذ ذاك هناك اي بمكة، ولو فرض انه لم يكن الظل الاصلي بمكة فحينئذ معني الحديث ظهور الظل بعد ان لم يكن فظهور الظل هو علامة الزوال وعلي التقدير الاول الزيادة في الظل الاصلي هو علامة الزوال، افاده في الكوكب الدري)

په هر ځومره قلیل مقدار کښې وی، دا دې هم واضحه وی چه په بعض ملکونو کښې (کالحجاز علی قولٍ) د نصف النهار په وخت سورې کوم ته چه ظل اصلی وئیلې شی هغه نه شی موندلې، په داسې ملکونو کښې د ماسپخین د وخت ابتداء د نصف النهار په وخت د نصف النهار نه پس ظهور الظل الی جانب الشرق سره کیږی، او چرته چه ظل اصلی موندلې شی هلته د زوال او د ماسپخین د وخت تحقق په ظل اصلی کښې د اضافې نه معلومیږی ﴿وصلی بی العصر حین کان ظله مثله﴾ یعنی په اوله ورځ د مازیگر مونځ په یو مثل باندې اوکړو دا د صاحبین او جمهورو دلیل دې اخر وخت ظهر او اول وخت عصر باره کښې د امام صاحب نه هم دا یو روایت دې، کما تقدم، حضرت گنگوهی رحمه الله په تقریر ترمذی (الکوکب الدری) کښې هم دې قول ته من حیث الدلیل ترجیح ورکړې ده، او د امام صاحب دلیل په باب فی وقت صلاة الظهر کښې راروان دې. حین غاب الشفق، د ائمه ثلاثه او صاحبین په نزد د شفق نه احمر مراد دې، او د امام صاحب په نزد شفق ابیض چه د هغې تحقق د احمر نه پس وی په دې کښې مشهور اختلاف دې ﴿فلما کان الغد صلی بی الظهر حین کان ظله مثله﴾ یعنی د دویمې ورځې د ماسپخین مونځ په یو مثل باندې اوکړو، ددې نه مالکیانو په اشتراک باندې استدلال کړې دې چه د یو مثل نه پس د څلورو رکعتونو په اندازه وخت مشترک دې لکه چه د اوقاتو په بیان کښې تیر شو ځکه چه هم په دې حدیث کښې ددې نه مخکښې مذکور دې چه اوله ورځ د مازیگر مونځ په یو مثل باندې ورکړو او دلته دا وائی چه په دویمه ورځ باندې ئې د ماسپخین مونځ ئې په یو مثل باندې ورکړو، اوس ظاهره ده چه ددې نه د وخت اشتراک فهم ته راځی د جمهورو د طرف نه ددې جواب دا دې چه اولنې ځائې مراد دې چه د مازیگر مونځ ئې په یو مثل باندې کول شروع کړو او دلته مراد دا دې چه په دویمه ورځ باندې په یو مثل باندې د ماسپخین کول شروع کړو او دلته مراد دا دې چه په دویمه ورځ باندې په یو مثل باندې د ماسپخین مونځ کولو نه پس فارغه شو، یوځائې کښې شروع کول مراد دی او بل ځائې کښې فراغ فلا اشتراک. د جمهورو دلیل په عدم اشتراک کښې حدیث د مسلم دې کوم چه په دې کتاب کښې هم وړاندې راروان دې، وقت الظهرما لم یحضر العصر معلومه شوه چه د مازیگر وخت راتلو باندې د ماسپخین وخت باقی نه پاتې کیږی.

**قوله:** "وصلی بي المغرب حین افطر الصائم" دا د شوافعو او مالکیانو د یو قول دلیل دې چه د ماښام دپاره بس یو وخت دې هم هغه ابتداء او هم هغه انتهاء یا پنځه رکعتونو په اندازه په دې وجه چه په حدیث کښې دی چه هغه د ماشام مونځ دواړه ورځې په یو وخت کښې ادا اوفرمائیلو.

## د ماښام په وخت کښې د شوافعو د مذهب تحقیق او تفصیل

امام نووی رحمه الله فرمائی چه د شوافعو په نزد مشهور قول هم دا ده ﴿ان المغرب لیس لها الا وقت واحد﴾ هغه فرمائی خو د محققین شافعیه په نزد بل قول راجح دې چه د ماشام وخت د شفق د غروب کیدو پورې دې، لحدیث عبدالله بن عمرو بن العاص (عن مسلم وابی داود) وقت صلاة المغرب مالم یسقط فورالشفق، اوحدیث دامامت جبرائیل علیه السلام هغوی درې جوابونه ورکړی دی.

۱: هغه حدیث محمول دې په وخت د اختیار او استحباب باندې.
۲: حدیث د امامت جبرائیل علیه السلام مقدم دې، د مکې مکرمې واقعه ده او دا نور احادیث چه د هغې نه د ماشام په وخت کښې امتداد معلومیږی دا روستو دی یعنی د مدینې او عمل په مؤخر باندې کیږی نه په مقدم باندې.
۳: د وخت د امتداد والا روایات سندا اصح دی د حدیث امامت جبرائیل علیه السلام نه.
**قوله:** ﴿ فقال یا محمد ﴾ سیدنا جبرائیل علیه السلام د رسول الله ﷺ نوم واخستلو کوم چه د ﴿ لَا تَجْعَلُوا دُعَاءَ الرَّسُولِ بَيْنَكُمْ كَدُعَاءِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا ﴾ خلاف دې جواب دا دې چه ممکنه ده ملائک ددې حکم مخاطب نه وی، یا به داسې وی چه ددې آیت کریمه نزول به ددې واقعې نه روستو شوې وی او یو جواب دا هم ورکړې شوې دې چه د محمد ﷺ نه علم مراد نه دې بلکه معنی وصفی مراد ده لکنه خلاف الظاهر.
**قوله:**﴿ هذا وقت الانبیاء من قبلک ﴾ د "هذا" اشاره د عشاء نه علاوه د باقی مونځونو طرف ته ده ځکه چه د ماسخوتن مونځ ددې امت سره خاص دې او باقی څلور مونځونه په تیرو انبیاء کرامو کښې متفرق طور موندلې شوې دی نه یوځائې.
پس د صلاة الفجر شروع د ادم علیه السلام نه شوې ده چه کله د سحر په وخت باندې د هغه توبه قبوله شوه نو هغه دوه رکعته د شکرانې په طور ادا کړل او سیدنا اسماعیل علیه السلام یا اسحاق علیه السلام علی اختلاف القولین فدیه کومه چه د جنت نه راوړلې شوې وه د ماسپخین په وخت باندې ورکړې شوه د هغې په شکریه کښې هغه څلور رکعتونه ادا کړل هم ددې نه د ماسپخین مونځ مشروع شو او سیدنا عزیر علیه السلام د اوږد خوب نه سل کاله پس د مازیګر په وخت بیدار کړې شو هغه وخت هغه څلور رکعتونه اوکړل هم ددې نه د ماسپخین مونځ مشروع شوه او د سیدنا داود علیه السلام معافی د ماښام په وخت قبوله شوې وه پس هغه د څلورو رکعتونو دپاره اودریدو خو د غم او خفګان په وجه باندې ئې څلورم رکعت اونکړې شو، په دې باندې د ماښام درې رکعتونه مشروع شو، او د ماسخوتن مونځ د ټولو نه مخکښې زمونږ نبی محمد ﷺ اوکړو، دا د یو روایت مضمون دې کوم چه حضرت په بذل کښې د امام طحاوی رحمه الله په حوالې سره نقل فرمائیلې دې.
**قوله:**والوقت ما بین هذین الوقتین "چونکه د هر یو مونځ دوه وختونه دی یو اول او بل اخر، ددې دوه وختونو کیدل ددې دوه ورځو د امامت د عمل نه ثابت شو، پس د بعض وخت ثبوت د عمل نه او د بعض د قول نه شوې دې.

[۳۹۴](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمُرَادِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ اللَّيْثِيِّ، أَنَّ ابْنَ شِهَابٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ كَانَ قَاعِدًا عَلَى الْمِنْبَرِ فَأَخَّرَ الْعَصْرَ شَيْئًا، فَقَالَ لَهُ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ: أَمَا إِنَّ جِبْرِيلَ عليه السلام قَدْ أَخْبَرَ مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَقْتِ الصَّلَاةِ، فَقَالَ لَهُ عُمَرُ: اعْلَمْ مَا تَقُولُ، فَقَالَ عُرْوَةُ، سَمِعْتُ بَشِيرَ بْنَ أَبِي

(۱): م /المساجد ۳۱ (۶۱۰)، سنن النسائي/ المواقيت ۱ (۴۹۵)، سنن ابن ماجه/الصلاة ۱ (۶۶۸)، (تحفة الأشراف: ۹۹۷۷)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/ المواقيت ۱ (۵۲۱)، وبدء الخلق ۶ (۳۲۲۱)، والمغازي ۱۲ (۴۰۰۷)، موطا امام مالك/وقوت الصلاة ۱(۱)، مسند احمد (۱۲۰/۴)، سنن الدارمي /الصلاة ۳ (۱۲۲۳) (حسن)

مَسْعُودٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيَّ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "نَزَلَ جِبْرِيلُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَنِي بِوَقْتِ الصَّلَاةِ، فَصَلَّيْتُ مَعَهُ ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهُ، يَحْسُبُ بِأَصَابِعِهِ خَمْسَ صَلَوَاتٍ، فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى الظُّهْرَ حِينَ تَزُولُ الشَّمْسُ وَرُبَّمَا أَخَّرَهَا حِينَ يَشْتَدُّ الْحَرُّ، وَرَأَيْتُهُ يُصَلِّي الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ بَيْضَاءُ قَبْلَ أَنْ تَدْخُلَهَا الصُّفْرَةُ، فَيَنْصَرِفُ الرَّجُلُ مِنَ الصَّلَاةِ فَيَأْتِي ذَا الْحُلَيْفَةِ قَبْلَ غُرُوبِ الشَّمْسِ وَيُصَلِّي الْمَغْرِبَ حِينَ تَسْقُطُ الشَّمْسُ، وَيُصَلِّي الْعِشَاءَ حِينَ يَسْوَدُّ الْأُفُقُ، وَرُبَّمَا أَخَّرَهَا حَتَّى يَجْتَمِعَ النَّاسُ، وَصَلَّى الصُّبْحَ مَرَّةً بِغَلَسٍ ثُمَّ صَلَّى مَرَّةً أُخْرَى فَأَسْفَرَ بِهَا، ثُمَّ كَانَتْ صَلَاتُهُ بَعْدَ ذَلِكَ التَّغْلِيسَ حَتَّى مَاتَ، وَلَمْ يَعُدْ إِلَى أَنْ يُسْفِرَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عَنِ الزُّهْرِيِّ مَعْمَرٌ، وَمَالِكٌ، وَابْنُ عُيَيْنَةَ، وَشُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، وَاللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، وَغَيْرُهُمْ، لَمْ يَذْكُرُوا الْوَقْتَ الَّذِي صَلَّى فِيهِ وَلَمْ يُفَسِّرُوهُ، وَكَذَلِكَ أَيْضًا رَوَاهُ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، وَحَبِيبُ بْنُ أَبِي مَرْزُوقٍ، عَنْ عُرْوَةَ، نَحْوَ رِوَايَةِ مَعْمَرٍ وَأَصْحَابِهِ، إِلَّا أَنَّ حَبِيبًا لَمْ يَذْكُرْ بَشِيرًا، وَرَوَى وَهْبُ بْنُ كَيْسَانَ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقْتَ الْمَغْرِبِ، قَالَ: ثُمَّ جَاءَهُ لِلْمَغْرِبِ حِينَ غَابَتِ الشَّمْسُ يَعْنِي مِنَ الْغَدِ وَقْتًا وَاحِدًا، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رُوِيَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: ثُمَّ صَلَّى بِيَ الْمَغْرِبَ يَعْنِي مِنَ الْغَدِ وَقْتًا وَاحِدًا، وَكَذَلِكَ رُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ مِنْ حَدِيثِ حَسَّانَ بْنِ عَطِيَّةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه**: ابن شهاب خبر ورکړی دی هغه ته، عمر بن عبد العزیز ناست وو په منبر باندې نو وروسته ئې کړو مازیګر څه، نو هغه ته عروة بن الزبیر وویل: آیا تاته معلومه نه ده چه جبریل علیه السلام خودلي دی محمد ﷺ ته وخت د مانځه، نو عمر بن عبد العزیز وویل: ته چه دا څه وائي سوچ پرې اوکړه. عروة وویل ما اوریدلی دی د بشیر بن ابی مسعود نه هغه وئیل ما اوریدلی دی د ابو مسعوْد الانصاری نه هغه وئیل: ما اوریدلی دی د رسول الله ﷺ نه هغه وئیل: راغې جبریل علیه السلام نو زه ئې خبر کړم په وختونو د مانځه باندې نو ما مونځ وکړو د هغه سره، بیا ما مونځ وکړو د هغه سره، بیا ما مونځ وکړو د هغه سره، بیا ما مونځ وکړو د هغه سره، بیا ما مونځ وکړو د هغه سره، شمارل ئې په خپلو ګوتو باندې پنځه مونځونه، نو ما ولیدلو رسول الله ﷺ چې مونځ ئې وکړو د ماسپخین کله چې زوال وکړو نمر، او کله به ئې وروسته کړو کله چې به ګرمي سخته شوه، او ما لیدلو چې مونځ ئې کولو د مازیګر او نمر اوچت وو صفا مخکې د داخلیدو د زېړوالی نه، نو انصراف به کولو سړی د مانځه نه تللو به ذو الحلیفه ته مخکې د ډوبیدو د نمر نه، او مونځ به ئې کولو د ماښام کله چې به ډوب شو نمر، او مونځ به ئې کولو د ماسخوتن کله چې به توره شوې کنارې، او کله به ئې وروسته کړو تردې چې راجمع شي خلق، او مونځ ئې اوکړو یو ځل په په تیاره کښې، بیا ئې مونځ وکړو بل ځل نو رڼرایې کړه په هغې، بیا وو مونځ د هغه وروسته د دغې نه په تیاره کښې دې تردې چې وفات شو، او واپس نه شو چې رڼرا کړې وئیلی دی ابوداؤد: روایت کړی دی ددې حدیث د زهری نه معمر او او مالک او ابن عیینة او شعیب بن ابی حمزة او لیث بن سعد، او غیر د دوی نه هم روایت کړې دې لیکن دوی تولو (په خپل روایت کښې) ددغه وخت ذکرنه دی کړې، دهغه وخت چې مونځ ئې کړی دی په هغې کښې او نه هغوی دهغې تفسیر کړې دې. او همدارنګه روایت کړی دی هشام بن عروة او حبیب بن ابی مرزوق د عروة نه پشان د روایت د معمر او د ملګرو د هغه مګر حبیب نه دی ذکر کړی بشیر، او

روايت کړی دی وهب بن کيسان د جابر نه او هغه د نبی ﷺ نه هغه وفرمائيل: چه جبرئيل عليه السلام په دويمه ورځ د ماښام په وخت د نمر ډوبيدو نه پس راغي يعنی په دواړه ورځ په يو وخت راغي، ابوداؤد وائی چه ابوهريره هم دغسي د نبی عليه السلام نه نقل کړی دی چه نبی ﷺ وفرمائيل: په دويمه ورځ بيا مونځ وکړو ماته جبرائيل عليه السلام د ماښام، (يعنی د صبا ورځي نه په يو وخت کښي)، او همدارنګه روايت شوي دي د عبد الله بن عمرو بن العاص د حديث د حسان بن عطية نه او هغه د عمرو بن شعيب نه او هغه د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه نه او هغه د نبی ﷺ نه نقل کوی.

## مضمون د حديث

**قوله:** ﴿ حدثنا محمد بن سلمة المرادی.... ان عمر بن عبدالعزيز كان قاعدا على المنبر فاخر العصر شيئا ﴾ مضمون د حديث دا دي چه يو ځل حضرت عمر بن عبد العزيز په منبر باندي ناست وو، ظاهره خبره ده چه په منبر باندي کيناستل د خلقو خطاب يا يا بل څه خاص کار د وجي نه وی هم په دي وجه باندي يوه ورځ اتفاقا د هغه نه د مازيګر په مونځ کښي تاخير اوشو، دا روايت د حديث په نورو کتابونو صحيحين وغيره کښي هم موجود دي خو په هغي کښي په منبر باندي د ناستي تصريح موجود نه ده، د ابوداؤد دي روايت نه د تاخير د وجي طرف ته اشاره ملاويږی، ګيني شارحينو د خپل خيال مطابق وجوه د تاخير مختلف ليکلي دی، مثلا دا چه هغه د جواز تاخير قائل وو لکه چه د امام نووی رحمه الله په شرح مسلم کښي دی، باقي دا خبره متعين ده چه دا تاخير زيات نه وو معمولی شان وو لکه چه په روايت کښي د لفظ ﴿ شيئا ﴾ نه معلوميږی، هم دغه شان په بعض رواياتو کښي د ﴿ يوما ﴾ لفظ دي لکه چه په بخاری کښي دی چه په هغي کښي اشاره ده دي طرف ته چه د هغه عادت د تاخير نه وو بلکه يوه ورځ د څه وجي نه داسي شوي وو، اګر چه د هغه د خاندان خلق يعنی بنو اميه د تاخير صلاة عادت وو[1] لکه چه د شروح حديث وغيره نه معلوميږی تردي چه د حجاج او د هغه امير وليد بن عبد الملک په باره کښي منقول دی چه هغوی خو به مونځونه هم قضاء کول (كما فی الفيض السمائی)

## (په اعلم کښي دري احتمالات):

**قوله:**﴿ فقال له : عروة بن الزبير الخ ﴾ حضرت عروه بن زبير رحمه الله مشهور تابعی او د عائشي رضي الله عنها خورئي وو هغه د عمر بن عبد العزيز رحمه الله په دي تاخير باندي نکير اوفرمائيلو او وي فرمائيل چه تاسو ته معلومه نه ده چه سيدنا جبرائيل عليه السلام د رسول الله ﷺ امامت کولو سره هغه ته د مونځونو وختونه ډير په اهتمام سره تعليم فرمائيلي وو، د امامت ذکر اګر چه د ابوداود په دي روايت کښي نشته خو په مسلم شريف او موطاء امام مالک کښي ذکر دي.

[1] ) واضحه دي وی چه عمر بن عبد العزيز رحمه الله د اموی خاندان داسي اوچت او بختور شخصيت وو کوم چه د اخلاق حميده او اعمال حسنه په وجه باندي په پوره خاندان کښي ممتاز وو د هغوی زهد او تقوی او بزرګی مشهوره ده د قرن اول مجدد دي، د ابوداود په يو روايت کښي کوم چه به وړاندي راشي سيدنا انس رضي الله عنه فرمائی چه ما د چا مونځ هم د رسول الله ﷺ د مونځ سره زيات مشابه نه دي ليدلي ددي ځوان د مونځ نه.

**قوله:** ﴿ فقال له عمر : اعلم ما تقول ﴾ په دې کښې دوه احتماله دي، اول د ﴿ اعلم ﴾ امر حاضر د اعلم نه او دويم د ﴿ اعلم ﴾ صيغه امر د اعلام نه، دريم احتمال دا دې چه ﴿ اعلم ﴾ صيغه د واحد متکلم، خو دا احتمال غير ظاهر دې، ظاهره هم دا ده چه دا د امر صيغه ده د علم نه يا د اعلام نه که علم وی نو مطلب به دا وی چه ښه په سوچ سره وايه چه څه وائې، ددې وجه دا ده چه عمر بن عبدالعزيز رحمه الله ته په اصل کښې د امامت جبرائيل والا حديث په ظاهره کښې د مخکښې نه علم نه وو بلکه د هغه په ذهن کښې د جبرائيل عليه السلام د امام جوړيدو په ظاهره کښې اشکال وو چه مفضول د افضل امام جوړ شي نو دا د رسول الله ﷺ د شان خلاف ده په دې وجه هغه حضرت عروه رحمه الله ته اوفرمائيل چه ښه د سوچ نه پس خبره کوه څه وائې، او که دا د اعلام نه ده نو د اعلام معنی ده د نشاندهی او مراد ددې نه د هغوی دا ده چه ددې خبرې تاسو سند بيان کړئ، پس بيا عروه ددې سند بيان کړو لکه چه په متن کښې مذکور دی ﴿ خمس صلوات ﴾ دا په ترکيب کښې مفعول دې د ﴿ صليت ﴾ يا د ﴿يحسب﴾ دپاره، يعنی شمار ئې کولو رسول الله ﷺ په خپلو ګوتو باندې پنځو مونځونو لره.

**قوله:** ﴿ فرايت رسول الله صلى الله عليه وسلم الخ ﴾ په ماقبل کښې مجملا د پنځو مونځونو ذکر وو بغير د اوقاتو د تعيين نه چه کوم مونځ ئې کوم وخت کښې اوکړو اوس ددې ځائې نه صحابی د وختونو تفصيل بيانوی، مونږ په شروع کښې بيان کړې وه چه امامت جبرائيل والا حديث په صحيحين کښې هم دې خو هلته د وختونو تفصيل نه دې ذکر شوې، د وختونو تفصيل د سنن په روايت کښې دې لکه چه دلته په ابوداود کښې مذکور دی کوم چه راوی ﴿ فرايت ﴾ سره بيانوی. ﴿ يصلى العصر والشمس مرتفعة بيضاء الخ ﴾ په دې به نور کلام ان شاء الله په باب وقت العصر کښې راشی. ﴿ ثم كانت صلاته بعد ذلك التغليس ﴾ په دې باندې به هم کلام ان شاء الله په باب فی وقت الصبح کښې راشی، تغليس اولی دې چه د هغې ائمه ثلاثه قائل دی يا رڼرائی کول کوم چه د احنافو په نزد ده.

**قوله:** ﴿ قال ابوداود : روى هذا الحديث عن الزهرى الخ ﴾ پورته په سند کښې د ابن شهاب شاګرد او د هغوی نه روايت کولو والا اسامه بن زيد دې د هغوی په روايت کښې د وختونو تفصيل موندلې شی، دلته مصنف رحمه الله فرمائی چه د اسامه نه علاوه د زهری نور شاګردان معمر او مالک او سفيان بن عيينه وغيره چه کله ئې دا د زهری نه نقل کړو نو هغه حضراتو په خپل روايت کښې د وختونو تفصيل نه دې ذکر شوې، ګويا اکثر حضرات نه دی ذکر کړی بس صرف اسامه کړې دی، لهذا په دې حديث کښې د وختونو ذکر ثبوت سندا ضعيف شو په ظاهره هم په دې وجه باندې دا حديث امام بخاری او مسلم په صحيحين کښې نه دې اخستلې.

## د قول ابوداود تشريح

**قوله:** ﴿ قال ابوداود : وروى وهب بن كيسان ﴾ د ابوداود رحمه الله په دې قول باندې د پوهيدو دپاره اولا په غور نه واورئ، امام ابوداود رحمه الله په دې باب کښې دوه احاديث ذکر کړې دی، يو حديث جبرائيل عليه السلام کوم چه اوس ذکر کړې شو او دويم د سائل د سوال والا کوم چه اوس

په ﴿حدثنا﴾ سره شروع کیږی چه په هغې کښې دا دی چه يو صحابی دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شو او هغه د رسول الله ﷺ نه د مونځونو وختونه اوتپوسل نو رسول الله ﷺ هغه ته د بيان په ځائې هغه ځان سره د دوه ورځو پورې په مدينه کښې د اوسيدو حکم اوکړو چه دلته ايساريدو سره اوګوره چه زه کوم مونځ کوم وخت کوم، پس رسول الله ﷺ په اوله ورځ باندې هر يو مونځ په اول وخت کښې او په دويمه ورځ باندې ئې هر مونځ په اخرى وخت کښې ادا کړو يعنى هم دا صورت کوم چه د جبرائيل علیه السلام په امامت کښې شوې وو خو فرق په دې دواړو روايتونو کښې دا دې چه د امامت جبرائيل علیه السلام په حديث کښې په ټولو طرقو کښې دی چه د ماښام مونځ دواړه ورځې په يو وخت کښې اوکړې شو يعنى د غروب شمس نه فورا پس، او د سائل د سوال والا حديث کښې روايات مختلف دی په اکثر کښې د وخت تعدد مذکور دې چه په اوله ورځ باندې هغه د ماښام مونځ د غروب نه فورا پس اوکړو او په دويمه ورځ په اخر وخت کښې او بعض طرق کښې د وخت اتحاد مذکور دې يعنى دواړه ورځې په يو وخت کښې اوکړو، امام بيهقى فرمائى چه دا په ذهن کښې ساتل پکار دی چه دا دواړه احاديث جدا جدا دی يو حديث د امامت جبرائيل علیه السلام او دويم د سائل د سوال والا دا دواړه يو ګڼړلو سره په اضطراب او احتمال باندې محمول نه کړې شی.

**قوله:** ﴿وروى وهب بن كيسان عن جابر﴾ دې سره مصنف هم دا فرمائى چه دا حديث امامت جبرائيل علیه السلام څنګه چه د ابو مسعود انصارى رضی الله عنه نه روايت شوې دې او په دې ټولو کښې د مغرب په وخت کښې اتحاد مذکور دې.

**تنبيه:** د مصنف رحمه الله د کلام د سياق نه په ظاهره معلوميږی چه د عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه حديث هم د امامت جبرائيل علیه السلام په سلسله کښې دې خو د بيهقى د روايت نه معلوميږی کوم چه حضرت په بذل کښې ذکر کړې دې چه د هغوی حديث د سوال سائل والا حديث دی نه د امامت جبرائيل علیه السلام والا، فتامل.

[٣٩٥]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، حَدَّثَنَا بَدْرُ بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي مُوسَى، عَنْ أَبِي مُوسَى، "أَنَّ سَائِلًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ شَيْئًا حَتَّى أَمَرَ بِلَالًا، فَأَقَامَ الْفَجْرَ حِينَ انْشَقَّ الْفَجْرُ فَصَلَّى حِينَ كَانَ الرَّجُلُ لَا يَعْرِفُ وَجْهَ صَاحِبِهِ، أَوْ أَنَّ الرَّجُلَ لَا يَعْرِفُ مَنْ إِلَى جَنْبِهِ، ثُمَّ أَمَرَ بِلَالًا فَأَقَامَ الظُّهْرَ حِينَ زَالَتِ الشَّمْسُ، حَتَّى قَالَ الْقَائِلُ: انْتَصَفَ النَّهَارُ وَهُوَ أَعْلَمُ، ثُمَّ أَمَرَ بِلَالًا فَأَقَامَ الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ بَيْضَاءُ مُرْتَفِعَةٌ، وَأَمَرَ بِلَالًا فَأَقَامَ الْمَغْرِبَ حِينَ غَابَتِ الشَّمْسُ، وَأَمَرَ بِلَالًا فَأَقَامَ الْعِشَاءَ حِينَ غَابَ الشَّفَقُ، فَلَمَّا كَانَ مِنَ الْغَدِ صَلَّى الْفَجْرَ وَانْصَرَفَ، فَقُلْنَا: أَطَلَعَتِ الشَّمْسُ؟ فَأَقَامَ الظُّهْرَ فِي وَقْتِ الْعَصْرِ الَّذِي كَانَ قَبْلَهُ، وَصَلَّى الْعَصْرَ وَقَدِ اصْفَرَّتِ الشَّمْسُ، أَوْ قَالَ أَمْسَى، وَصَلَّى الْمَغْرِبَ قَبْلَ أَنْ يَغِيبَ الشَّفَقُ، وَصَلَّى الْعِشَاءَ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ، ثُمَّ قَالَ: أَيْنَ السَّائِلُ عَنْ وَقْتِ الصَّلَاةِ؟ الْوَقْتُ فِيمَا بَيْنَ هَذَيْنِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى سُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فِي الْمَغْرِبِ بِنَحْوِ هَذَا، قَالَ: ثُمَّ صَلَّى الْعِشَاءَ، قَالَ بَعْضُهُمْ: إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: إِلَى شَطْرِهِ، وَكَذَلِكَ رَوَى ابْنُ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

[1]: صحيح مسلم/المساجد ٣١ (٦١٣)، سنن النسائي/المواقيت ١٥ (٥٢٢)، (تحفة الأشراف: ٩١٣٧)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ١ (١٥٢)، سنن ابن ماجه/الصلاة ١ (٦٦٧)، مسند احمد (٥/٢٤٩) (صحيح)

**ترجمه**:د ابو موسی نه روايت دې، يو سائل تپوس وکړو د نبی ﷺ نه هغه ته ئې هيڅ جواب ورنه کړو تردې چې امرېې وکړو بلال ته نو اقامت ئې وکړو د سحر مونځ لپاره کله چې صبا وشليدو، مونځ ئې وکړو په هغه وخت کښې چې نه به پېژندلو سړی مخ د ملګری خپل، او يا سړی نه پيژندلو هغه څوک چې د ده اړخ ته وو، بيا ئې امر وکړو بلال ته نو اقامت ئې وکړو د ماسپخين لپاره کله چې زوال وکړو نمر، تردې چې وئيل به يو ويونکې: ورځ نيمه شوه او هغه پوهيده، بيا ئې امر وکړو بلال ته اقامت ئې وکړو د مازيګر لپاره او نمر سپين اوچت وو، او امرېې وکړو بلال ته اقامت ئې وکړو د ماښام لپاره کله چې ډوب شو نمر، او امرېې وکړو بلال ته اقامت ئې وکړو د ماسخوتن لپاره کله چې ډوب شو شفق، کله چې صبا ورځ شوه مونځ ئې وکړو د سحر او لاړلو، نو مونږ ووېل ايا نمر ختلی دی، بيا ئې اقامت وکړو د ماسپخين لپاره په وخت د دمازيګر هغې کښې چې وو مخکې د دېنه، او مونځ ئې وکړو د مازيګر او يقيناً نمر زيړ شوی وو، او يايې ووېل: چې بېګاه شو، او مونځ ئې وکړو دماښام مخکې د ډوبيدو د نمر نه، او مونځ ئې وکړو د ماسخوتن تر دريمې حصې د شپې پورې، بيا ئې ووېل: چيرته دی سائل د وخت د مونځونو نه، وخت په مابين ددې دواړو کښې دی. وئيلی دی ابوداود: روايت کړی دی سليمان بن موسی د عطاء نه او هغه د جابر نه او هغه د نبی ﷺ نه په ماښام کښې په پشان د دې، هغه وئيلی دي: بيا ئې مونځ وکړو د ماسخوتن. وئيلی دی بعضو د دوی نه: تر دريمې حصې د شپې پورې، او وئيلی دی بعضو: تر نيمې حصې د شپې پورې، او همدارنګه روايت کړی دی ابن بريدة د خپل پلار نه او هغه نبی ﷺ نه.

## شرح السند

**قوله**:حدثنا مسدد... ان سائلا سال النبی صلی الله عليه وسلم... دا د باب دويم حديث دې کوم چه د سائل د سوال سره متعلق دې چه د هغې ذکر مونږ سره پورته راغلې دې.

## شرح حديث

**قوله**:﴿ حتی قال : القائل انتصف النهار وهو اعلم ﴾ مطلب دا دې چه اوله ورځ رسول الله ﷺ د ماسپخين مونځ د وال نه فورا پس بالکل په اول وخت کښې ادا کړې وو په داسې وخت کښې او بعض خلقو سره ددې شبهه هم پيدا شوه چه معلومه نه ده د نصف النهار او زوال وخت شو يا نه، ﴿ وهو اعلم ﴾ کښې دوه احتمالات دی يو دا چه ددې نه مراد رسول الله ﷺ دې او مطلب دا دې چه بعض خلقو ته خو بيشک تردد وو په زوال کښې چه شوې دې يا نه خو رسول الله ﷺ ته ښه معلومه وه، چه زوال اوشو، بل احتمال په دې کښې دا دې چه ضمير وی د قائل طرف ته راجع وی نو په دې صورت کښې به ئې مطلب دا وی چه بعض ويونکو به وئيل د تعجب په طور چه د ماسپخين وخت شوې دې يا نه خو هغه ويونکی ته معلومه وه چه د مونځ وخت شوې دې، خو د هغه دا وينا چه وخت شوې هم دې يا نه د اظهار تعجيل دپاره وو چه اوګورئ څومره زر ئې کوی، هم دغه شان دې واضحه وی چه مسئله دا ده چه ترڅو پورې انسان ته د مونځ د وخت کيدو يقين نه وی شوې نو د هغه وخته پورې مونځ شروع کول جائز نه دی، او دلته بعض خلقو ته ګويا يو قسم شک وو، خواصل امام

کوم چه ذمه دار وو یعنی رسول اللهﷺ ته د وخت راتلو یقین وو، لهذا هیڅ اشکال نشته مقتدیان د امام تابع وی (فاقام الظهر فی وقت العصر الذی کان قبله) یعنی په دویمه ورځ باندې رسول اللهﷺ د ماسپخین مونځ هغه وخت وکړو چه په کوم وخت کښې ئې د مازیګر مونځ کړې وو دا قسم الفاظ مخکښې هم راغلې دی، او دا چه ددې نه مالکیانو په اشتراک وخت باندې استدلال کړې دې او ددې جواب هم هلته تیر شوې دې چه یوځائې کښې شروع کول مراد دی او یوځائې کښې فراغت.

## د مصنف رحمه الله د کلام تشریح

**قوله:**﴿ قال ابوداود : روی سلیمان بن موسی عن عطاء عن جابر الخ ﴾ پورته چه د ابو موسی اشعری رضی الله عنه کوم روایت تیر شوې دې په هغې کښې د ماښام په وخت کښې اختلاف ذکر شوې وو، یعنی دا چه په اوله ورځ باندې رسول اللهﷺ هغه لره اول وخت او په دویمه ورځ ئې په اخر وخت کښې اوکړو، مصنف فرمائی چه څنګه په دې روایت کښې د وخت تعدد مذکور وو هم دغه شان د جابر رضی الله عنه هغه روایت چه د هغې راوی عطاء بن ابی رباح دې په دې کښې هم داسې ده یعنی تعدد دې د نحو هذا هم دا مطلب دې.

**تنبیه** : دسیدنا جابر رضی الله عنه روایت تعلیقا د مصنف په کلام کښې ددې نه تقریبا اته لس کرښې مخکښې هم تیرې شوې دی په دې کښې د جابر رضی الله عنه نه روایت کونکې وهب بن کیسان وو هغه روایت د روایت عطاء عن جابر خلاف دې ځکه چه په دې کښې د اختلاف په ځائې د وخت اتحاد ذکر شوې دې نو حاصل دا شو چه د جابر رضی الله عنه نه روایت کونکی دوه دی یو عطاء او دویم وهب بن کیسان، عطاء د هغوی سره د وخت اختلاف ذکر کړې دې او وهب اتحاد وقت، خو د جابر رضی الله عنه تیر روایت د امامت جبرائیل علیه السلام په قصه کښې وو او د جابر رضی الله عنه دا روایت د سائل د سوال والا روایت سره متعلق دې لکه چه د بیهقی په روایت کښې ددې تصریح ده کوم چه حضرت په بذل کښې ذکر کړې دې دا مقام لږ نازک او تحقیق طلب وو کوم چه الحمد لله اوشو ﴿ وکذلک روی ابن بریدة الخ ﴾ یعنی اختلاف فی وقت العصر.

> [۳۹۶]([1]) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، سَمِعَ أَبَا أَيُّوبَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "وَقْتُ الظُّهْرِ مَا لَمْ تَحْضُرِ الْعَصْرُ، وَوَقْتُ الْعَصْرِ مَا لَمْ تَصْفَرَّ الشَّمْسُ، وَوَقْتُ الْمَغْرِبِ مَا لَمْ يَسْقُطْ فَوْرُ الشَّفَقِ، وَوَقْتُ الْعِشَاءِ إِلَى نِصْفِ اللَّيْلِ، وَوَقْتُ صَلَاةِ الْفَجْرِ مَا لَمْ تَطْلُعِ الشَّمْسُ".

**ترجمه:** عبد الله بن عمرو د نبیﷺ نه روایت کوی بیشکه هغه وئیلی دي وخت د ماسپخین تر هغې پورې دی چې مازیګر نه وی حاضر شوی. او وخت د مازیګر ترکومه چې نمر نه وي زیړ شوی، او وخت د ماښام ترکومه چې سوروالی د شفق نه وی ساقط شوی، او وخت د ماسخوتن تر نیمې شپې پورې دی، او وخت د مانځه د صبا تر کومه چې نمر نه وی ختلی.

[1]): صحیح مسلم/المساجد ۳۱ (۶۱۲)، سنن النسائي/المواقیت ۱۴ (۵۲۳)، (تحفة الأشراف: ۸۹۴۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۱۰، ۲۱۳، ۲۲۳) (صحیح)

**تشريح: قوله**:حدثنا عبيد الله بن معاذ....وقت الظهر ما لم تحضر العصر... معلومه شوه چه د ماسپخين او مازيګر په وخت په څه جزء کښې اشراک نشته چه د هغې مالکيان قائل دی او نه په مينځ کښې فصل دې چه د هغې بعض شوافع قائل دی، فهذا دليل الجمهور "ووقت المغرب ما لم يسقط فور الشفق" او د مغرب وخت هغه وخته پورې باقی وی چه ترڅو د شفق چمک باقی وی، د شفق په مصداق کښې اختلاف مخکښې تير شوې دې ﴿ ووقت العشاء الى نصف الليل ﴾ د دې نه مراد د اختيار او استحباب وخت دې او د شوافعو او مالکيانو په روايت کښې د ماسخوتن وخت نصف ليل پورې دې، کما تقدم، او د ابو سعيد اصطخرى مذهب هم دا دې.

## بَاب فِي وَقْتِ صَلَاةِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم وَكَيْفَ كَانَ يُصَلِّيهَا

**باب دې په بيان د مونځونو د وقت د نبي صلى الله عليه وسلم کې او هغه به څنګه مونځ کولو**

د مونځ په وخت چونکه يوه ابتداء ده او بله انتهاء، په دې وجه مقصود دا بيانول دی چه نبی کريم ﷺ به د وخت په اجزاؤ (حصو) کښې په کوم جزء (حصه) کښې مونځ کولو، دهغوی معمول بيانول مقصود دی.

[۳۹۷]()حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو وَهُوَ ابْنُ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: سَأَلْنَا جَابِرًا عَنْ وَقْتِ صَلَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "كَانَ يُصَلِّي الظُّهْرَ بِالْهَاجِرَةِ، وَالْعَصْرَ وَالشَّمْسُ حَيَّةٌ، وَالْمَغْرِبَ إِذَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ، وَالْعِشَاءَ إِذَا كَثُرَ النَّاسُ عَجَّلَ وَإِذَا قَلُّوا أَخَّرَ، وَالصُّبْحَ بِغَلَسٍ".

**ترجمه**:د محمد بن عمرو نه روايت دې چې هغه ځوی د حسن بن علی بن ابی طالب دی، هغه وئيلی دي: مونږ تپوس وکړو د جابر نه د وخت د مانځه د نبی ﷺ هغه ووئيل: وو هغه چې مونځ ئې کولو د ماسپخين په غرمه، او د مازيګر مونځ به ئې کولو او نمر به تازه وو، او د ماښام مونځ به ئې کولو کله چې به نمر ډوب شو، او د ماسخوتن مونځ به ئې کولو کله چې به خلک زيات وو تلوار به ئې کولو، او چې کله به کم وو نو تاخير به ئې کولو، او د سحر مونځ به ئې کولو په تياره کښې.

**تشريح: قوله**: "حدثنا مسلم بن ابراهيم....... كان يصلى الظهر بالهاجرة" رسول الله ﷺ به د ماسپخين مونځ په غرمه يعنى اول وخت کښې کولو دا خو به يا محمول کولې شی په زمانه د شتاء باندې يا په بيان د جواز باندې چه کله به رسول الله ﷺ داسې هم کول او يا هغه منسوخ اومنلې شی، وجه ددې توجيهاتو دا ده ددې دپاره چه دا حديث د حديث الابراد خلاف نه شی، هسې د شوافعو په نزد د ماسپخين مونځ په اول وخت کښې کول اولی دی ددې تفصيل به ان شاء الله په باب وقت الظهر کښې راشی. والعصر والشمس حية... رسول الله ﷺ به د مازيګر مونځ په داسې وخت کښې کولو چه د نمر رنړاګانې يعنى ګرمی به تيزه وه، او يا د حيات شمس نه مراد صفاء رنګ دې، ﴿ والصبح بغلس ﴾ غلس وئيلې شی د اخرې

(١): صحيح البخاري/المواقيت ١٨ (٥٦٠)، ٢١ (٥٦٥)، صحيح مسلم/المساجد ٤٠ (٦٤٦)، سنن النسائي/المواقيت ١٧ (٥٢٨)، (تحفة الأشراف: ٢٦٤٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٩/٣)، سنن الدارمي/الصلاة ٢ (١٢٢٢) (صحيح)

شپې تيرې ته چه په هغې کښې د سحر د رڼا ګډون وی ددې مستقل بحث اختلاف وغيره به په باب وقت الصبح کښې راشي.

[۳۹۸]() حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي الْمِنْهَالِ، عَنْ أَبِي بَرْزَةَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الظُّهْرَ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ، وَيُصَلِّي الْعَصْرَ وَإِنَّ أَحَدَنَا لَيَذْهَبُ إِلَى أَقْصَى الْمَدِينَةِ وَيَرْجِعُ وَالشَّمْسُ حَيَّةٌ، وَنَسِيتُ الْمَغْرِبَ، وَكَانَ لَا يُبَالِي تَأْخِيرَ الْعِشَاءِ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ، قَالَ: ثُمَّ قَالَ: إِلَى شَطْرِ اللَّيْلِ، قَالَ: وَكَانَ يَكْرَهُ النَّوْمَ قَبْلَهَا، وَالْحَدِيثَ بَعْدَهَا، وَكَانَ يُصَلِّي الصُّبْحَ وَمَا يَعْرِفُ أَحَدُنَا جَلِيسَهُ الَّذِي كَانَ يَعْرِفُهُ، وَكَانَ يَقْرَأُ فِيهَا مِنَ السِّتِّينَ إِلَى الْمِائَةِ".

**ترجمه**:د ابو برزة نه نه روايت دې هغه وايي: وو رسول الله ﷺ چې مونځ ئې کولو د ماسپخين کله چې به نمر زوال وکړو، او مونځ ئې کولو د مازيګر او بيشکه يو زمونږ نه به تلو هغه لرې خوا د مدينې ته، او بېرته به واپس شو او نمر به تازه وو، (صفا او تيز) او ماښام رانه هېر شو، او وو چې پروا به ئې نه کوله په تاخير د ماسخوتن باندې تر دريمې حصې د شپې پورې. هغه وويل: بيا ئې وفرمائيل: تر نيمې حصې د شپې پورې، هغه وفرمائيل: او وو چې بدېې ګڼړلو خوب مخکې د ماسخوتن نه او خبرې وروسته د هغې نه، او وو چې مونځ ئې کولو د صبا او نه به پيژندلو يو زمونږ نه خپل هغه ملګرى چې ده به پيژندلو، او وو چې لوستل به ئې په هغې کښې د شپيتو آيتونو نه تر سلو پورې.

## شرح حديث

**تشريح: قوله**:حدثنا حفص بن عمر.... عن ابى برزة... دا ابو برزه اسلمى ﷺ دې چه نوم ئې نضله بن عبيد دې.

**قوله**:﴿ ويصلى العصر وان احدنا ﴾ يعنى رسول الله ﷺ به د مازيګر مونځ په داسې وخت کښې کولو چه سړی به د رسول الله ﷺ سره مونځ کولو نه پس خپل کور ته کوم چه د مدينې په لرې طرف کښې يعنى د ابادئ په اخر کښې هلته لاړو او بيا واپس کيدو سره دوباره د مسجد طرف ته راتلې په داسې حال کښې چه د نمر ګرمى او تيزى باقى وى، د ابوداود په دې حديث کښې تلل او راتلل دواړه ذکر شوې دى چه انسان خپل کور ته تلو سره واپس هم راشي او بيا هم په رڼا کښې تيزى باقى وى دا روايت د بخارى شريف د روايت خلاف دې څکه چه په هغې کښې صرف تلل ذکر دى د واپسئ ذکر نشته، مونږ سره چه دلته په امامت جبرائيل عليه السلام کښې کوم روايت تير شوې دې په هغې کښې هم صرف تلل ذکردى دواپسئ ذکر نشته چه دهغې الفاظ دادى: "فينصرف الرجل من الصلاة فياتى ذا الحليفة قبل غروب الشمس" لهذا د ابوداود په دې روايت کښې به تاويل کولې شى هغه دا چه ﴿ ويرجع ﴾ تفسير دې د ﴿ يذهب ﴾ چه د تلو نه مراد کور طرف ته واپسى ده تلل او راتلل دواړه مراد نه دى، يا

[1]): صحيح البخاري/المواقيت ١١ (٥٤١)، ١٣ (٥٤٧)، ٢٣ (٥٦٨)، ٣٨ (٥٩٨)، صحيح مسلم/المساجد ٤٠ (٦٤٧)، سنن الترمذي/الصلاة ١١ (١٦٨)، سنن النسائي/المواقيت ١ (٤٩٦)، ١٦ (٥٢٦)، ٢٠ (٥٣١)، الافتتاح ٤٢ (٩٤٩)، سنن ابن ماجه/الصلاة ٣ (٦٧٤)، ١٢ (٧٠١)، (تحفة الأشراف: ١١٦٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤٢٠، ٤٢١، ٤٢٣، ٤٢٤، ٤٢٥)، سنن الدارمي/الصلاة ٦٦ (١٣٣٨)، ويأتي في الأدب ٤٨٩٤ (صحيح)

به يرجع حال اومنلي شي. اى يذهب راجعا الى المدينة.

## نوم قبل العشاء او د حديث بعد العشاء تفصيل

**قوله:** ﴿ وكان يكره النوم قبلها ﴾ امام ترمذي فرمائي چه د اکثر اهل علم په نزد نوم قبل العشاء مکروه دي او د بعض په نزد په دې کښې رخصت دې او بعض علماء کرامو صرف په رمضان کښې اجازت ورکړې دې، ابن سيد الناس فرمائي چه بعض حضرات په دې کښې متشدد دی لکه عمر، ابن عمر، ابن عباس او هم دا اختيار کړې دې امام مالک، او بعض په دې کښې گنجائش پريخودلې دې لکه سيدنا علي رضي الله عنه او سيدنا ابوموسى اشعري رضي الله عنه او هم دا مذهب دې د کوفيانو، او امام طحاوي وغيره بعض علماء کرامو د جواز نوم دپاره شرط لګولې دې چه که د بيدارولو دپاره څوک متعين کړى نو بيا جائز دې، امام نووي رحمه الله د امام مالک رحمه الله او شوافعو دواړو مسلک د کراهت ليکلې دې. **والحديث بعدها** يعنى د ماسخوتن نه روستو خبرې کول به رسول الله صلى الله عليه وسلم مکروه ګڼړلې، امام نووي رحمه الله د علماء کرامو د خبرو کولو بعد العشاء په کراهت باندې اتفاق نقل کړې دې مګر دا چه په امر خير کښې وى، د امام سعيد بن المسيب نه نقل دى ﴿ لان انام عن العشاء احب الى من اللغو بعدها ﴾ چه زه د ماسخوتن د مونځ کولو نه بغير اوده شم د هغې نه زه دا غوره ګڼړم چه د ماسخوتن د مونځ نه روستو فضول خبرې اوکړم، سيدنا عمر رضي الله عنه به په سمر بعد العشاء باندې خلق وهل او فرمائيل به ئې : اسمرا أول الليل ونوما اخره... چه د شپې په شروع کښې خبرې کوئ نو ددې نتيجه په دا شى چه د شپې په اخر کښې به اوده پاتې شئ او تهجد به درنه فوت شي.

خو واضحه دې وى چه علماء کرامو دا کراهت مقيد کړې دې د بيکاره او فضول خبرو پورې، مفيده خبره چه په هغې کښې څه ديني مصلحت وى يا علمي مذاکره وغيره وى هغه په دې کښې داخله نه ده، امام ترمذي په سمر بعد العشاء کښې د علماء کرامو اختلاف نقل کړې دې او دا ئې هم فرمائيلې دى چه د اکثر احاديثو نه رخصت معلوميږي، او هغه ددې سلسلې يو حديث مرفوع هم نقل کړې دې ﴿ لا سمرا الا لمصل او مسافر ﴾ يعنى کوم سړې د نفلونو کولو دپاره ويخ وى هغه له که خوب ورشى نو د خپل ملګرى سره خبرې کولې شي هم دغه شان مسافر د سفر په حالت کښې د قطع مسافت د سهولت دپاره خبره کولې شي، هم دغه شان په يو روايت کښې مصلى او مسافر سره د عروس هم اضافه ده چه د خپلې ناوې سره د هغه د زړه د خوشحالولو دپاره د سمر بعد العشاء اجازت دې هم دغه شان د رسول الله صلى الله عليه وسلم او صديق اکبر دواړو سمر بعد العشاء رواياتو کښې موجود دې، امام بخاري رحمه الله هم باب السمر فى العلم... ترجمه قائم کړې ده، غرض دا چه د منع روايات به غير مفيد او غير ضروري خبرې سره مقيد کول وى.

**قوله:** ﴿ وكان يصلي الصبح وما يعرف احدنا-جليسه الخ ﴾ دلته نسخې مختلف دى په بعض نسخو کښې ﴿ وما يعرف ﴾ دې د حرف نفى سره او په بعض کښې ﴿ ويعرف ﴾ دې او هم هغه

نسخه زياته صحيح ده چه په هغې کښې حرف نفی نشته ځکه چه هغه د بخاری او مسلم د روايت سره موافق ده، بهرحال مطلب دا دې چه رسول اللهﷺ به د سحر مونځ په داسې وخت کښې کولو چه انسان خپلې خواته سړې اوپيژنی، او د ما نافيه کيدو په صورت کښې ظاهره ده چه په دې کښې به د معرفت نفی وی چه او نه پيژنی، نسخه صحيحه مسلک احناف ته زياته نزدې ده کوم چه په سحر کښې د اسفار قائل دی، او البته د زنانو په باره کښې راغی ﴿ما يعرفن من الغلس﴾ چه په هغې باندې به کلام مونږ سره ان شاء الله وړاندې راشی، او که دلته نسخه ﴿ما يعرف﴾ هم صحيح اومنلې شی نو په دواړو نسخو کښې به د تطبيق شکل دا وی چه عدم معرفت به د مونځ شروع کولو په وخت باندې محمول کولې شی او د معرفت روايت به د مونځ نه په فارغ کيدو باندې.

## بَابٌ فِي وَقْتِ صَلَاةِ الظُّهْرِ

### باب دې په بيان د وقت د ماسپخين کې

### د ماسپخين د مونځ وخت

د يخنۍ په زمانه کښې د ماسپخين په مونځ کښې تعجيل بالاتفاق اولی او افضل دې او په ګرمۍ کښې د جمهور علماء ثلاث چه په هغوی کښې احناف هم دی په نزد تاخير اولی دې، امام شافعی په دې کښې د جمهورو سره نه دې د هغه په نزد په ګرمۍ کښې استحباب تاخير د څو شرطونو سره مقيد دې. ۱: اول دا چه شدت حرارت وی. ۲: حرارة البلد، ۳: د جماعت مونځ وی د منفرد دپاره نه. ۴: د لرې نه راتلل يعنی مسجد په فاصله باندې وی د هغې دپاره اوږد مزل کول پکار وی مسجد نزدې نه وی د هغه په نزد په دې څلورو شرطونو کښې يو هم مفقود وی نو بيا تاخير اولی نه ده.

### د امام ترمذی په مسلک شافعی باندې نقد

امام ترمذی مسلکا شافعی دی په هيڅ مسئله کښې ئې د هغوی خلاف خبره نه ده کړې خو دلته امام شافعیرحمه الله د هغوی په شرطونو باندې هغوی په جامع ترمذی کښې اعتراض کړې دې چه دا شرطونه خلاف حديث دی.

[۳۹۹]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ عَبَّادٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْحَارِثِ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "كُنْتُ أُصَلِّي الظُّهْرَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَآخُذُ قَبْضَةً مِنَ الْحَصَى لِتَبْرُدَ فِي كَفِّي أَضَعُهَا لِجَبْهَتِي أَسْجُدُ عَلَيْهَا لِشِدَّةِ الْحَرِّ".

**ترجمه**: د جابر بن عبد الله نه روايت دې هغه وئيلی دي وم زه چې مونځ د ماسپخين مې کولو د رسول اللهﷺ سره نو مابه راخستلو يو موټی د کاڼرو دې لپاره چې يخ شی زما په ورغوی کښې مابه کيخودل د خپل تندې لپاره چې سجده وکړم په هغې د وجې د شدت د ګرمۍ نه.

[۱]: وقد تفرد به أبو داود: (تحفة الأشراف: ۲۲۵۲)، وقد أخرجه: سنن النسائي/التطبيق ۳۳ (۱۰۸۰)، مسند احمد (۳/۳۲۷) (حسن)

**تشریح: قوله:** حدثنا احمد بن حنبل.... کنت اصلي الظهر... فاخذ قبضة من الحصی الخ... سیدنا جابر رضی الله عنه فرمائی چه کله په ما د رسول الله ﷺ سره ماسپخین مونځ کولو نو په موتی کښې به مې کانړی پټول ددې دپاره چه هغه یخ وی او بیا چه به کله سجدې ته تلم نو په هغه باندې به سجده کولو دپاره هغې لره د سجدې په ځائې باندې کیخودلو د زمکې د ګرمئ نه د بچ کیدو دپاره، امام خطابی رحمه الله فرمائی چه ددې حدیث نه څو مسئلې معلومې شوې یو دا چه ﴿ اخذ قبضة من الحصی ﴾ عمل قلیل دې کوم چه مفسد صلاة نه دې، دا معلومه شوه چه مصلی دپاره په ثوب ملبوس باندې سجده کول جائز نه دی څکه چه که جائز وه نو بیا ددې تکلف یعنی تبرید حصی ضرورت نه وې، ځان پوهه کړه چه په ثوب متصل باندې سجده کول د شافعیه په نزد ناجائز او مفسد صلاة دې د احنافو په نزد جائز دې زیات نه زیات مکروه دې، نو خطابی رحمه الله ددې حدیث نه خپل مسلک ثابتول غواړی، زمونږ د طرف نه جواب دا دې چه د روایاتو نه سجود علی ثوب المصلی ثابت دې، خو شوافع د هغه روایاتو تاویل دا کوی چه ددې ثوب نه ثوب متصل او ملبوس مراد نه دې بلکه ثوب منفصل مراد دې، مونږ وایو چه دا خلاف ظاهر دې، صحابه کرامو سره دومره کپړې چرته وې د اغوستلو دپاره جدا د خورولو دپاره جدا ، ﴿او لکلکم ثوبان ﴾ حدیث یاد کړئ.

[۴۰۰] (¹) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَبِيدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ، عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ سَعْدِ بْنِ طَارِقٍ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ مُدْرِكٍ، عَنِ الْأَسْوَدِ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مَسْعُودٍ، قَالَ: "كَانَتْ قَدْرُ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّيْفِ ثَلَاثَةَ أَقْدَامٍ إِلَى خَمْسَةِ أَقْدَامٍ، وَفِي الشِّتَاءِ خَمْسَةَ أَقْدَامٍ إِلَى سَبْعَةِ أَقْدَامٍ".

**ترجمه:** عبد الله بن مسعود ویلی دي: وه اندازه د مونځ د رسول الله ﷺ په اوړی کښې د درې قدمونو نه واخله تر پنځه قدمونو پورې، او په ژمي کښې د پنځه قدمونو نه واخله تر اوه قدمونو پورې.

## شرح حدیث

**قوله:** حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، ..........وَفِي الشِّتَاءِ خَمْسَةَ أَقْدَامٍ إِلَى سَبْعَةِ أَقْدَامٍ".

مقصود په دې حدیث سره د ماسپخین د مونځ وخت بیانول دی، په اوله زمانه کښې ددې زمانې ګهړئ او ګینټې خو نه وې د وختونو حساب او د هغې معرفت او تعیین په طلوع او غروب او سوری او نمر سره کولې شو،، پس په دې حدیث کښې دې صحابی هم د ماسپخین د مونځ وخت لره د سوری په مقدار سره خودلی کړې دې او هغه دا چه رسول الله ﷺ اوائل صیف (د ګرمئ شروع) کښې د ماسپخین مونځ هغه وخت ادا کولو چه کله به سورې د درې قدمو په اندازه وو او د ګرمئ په سختئ کښې به ئې په تاخیر سره کولو یعنی کله چه به سورې د پنځو قدمونو په اندازه وو، دا خبره ښکاره ده چه څومره تاخیر کیږی نو هومره به سورې اوږدیږی.

بیا ځان پوهه کړئ چه د ظل دوه قسمونه دی، ظل اصلی او ظل زائد، عین د نصف النهار

(¹): سنن النسائي/المواقیت ٥ (٥٠٤)، (تحفة الأشراف: ٩١٨٦) (صحیح)

په وخت باندې چه کوم سورې وی هغې ته ظل اصلی وئیلې شی او د زوال شمس نه روستو چه کوم سورې زیاتیدل شروع شی هغې ته ظل زائد وئیلې شی، په اصل کښې د تعجیل او تاخیر مدار هم په دې ظل زائد باندې دې د هغې زائد کیدل په تاخیر باندې دلالت کوی او کم کیدل په تعجیل باندې، خو په دې روایت کښې چه کوم ظل ذکر شوې دې هغه مطلقا دې په هغې کښې زائد یاد اصلی قید نشته، بلکه مجموعی ظل مراد دې.

لهذا دا به کتلې شی چه په دې حدیث کښې چه د سوری کوم مقدار مذکور دې په دې کښې ظل اصلی څومره دې او ظل زائد څومره، بیا به د تعجیل او تاخیر صحیح معلومات اوشی، لهذا وړاندې واورئ.

## د امام خطابی او د سبکی د رائې اختلاف

په دې کښې د علماء کرام اختلاف دې، د امام خطابی رائې دا ده چه په حجاز مقدس کښې د ګرمئ زمانه کښې ظل اصلی درې قدمو ته نزدې وی لهذا معلومه شوه چه په اول صیف کښې به رسول اللهﷺ مونځ په اول وخت کښې کولو، او بیا روستو به ئې د سختې ګرمئ په زمانه کښې ددوه قدمه تاخیر فرمائیلو سره کل په پنځو قدمونو باندې کولو لاجل الابراد.
او ددې بالمقابل تقی الدین سبکی فرمائی لکه چه شارح ابن رسلان د هغه نه نقل کړې دی چه په حجاز کښې د ګرمئ په زمانه کښې د نصف النهار په وخت باندې ظل اصلی مطلقا نه وی، لهذا د هغه ددې قول په وجه باندې د رسول اللهﷺ د درې قدمونو په اندازه سوری باندې مونځ کول دا د تاخیر او ابراد دپاره وو او بیا چه به کله ظل اصلی د دوه قدمونو په اندازه شو نو هغه وخت به ئې د پنځو قدمونو په اندازه د ماسپخین مونځ کولو، یعنی ظل زائد به هغه وخت هم درې قدمه وو حاصل دا چه د سبکی په نزد رسول اللهﷺ د ماسپخین مونځ مطلقا په اول صیف واخر صیف کښې په درې قدمه سوری باندې کړې دې او درې قدمه سورې تقریبا نصف مثل وی (ځکه چه مشهوره ده چه د انسان قد د هغه د اووه قدمونو په اندازه وی) لهذا ددې مطلب دا شو چه په ګرمئ کښې به رسول اللهﷺ د ماسپخین تقریبا نیم وخت تیرولو سره مونځ کولو (ځکه چه مشهور ده چه د انسان قد د هغه د اووه قدمونو برابر وی) لهذا مطلب دا شو چه که په ګرمئ کښې به رسول اللهﷺ د ګرمئ تقریبا نیم وخت تیریدو نه پس مونځ کولو (ځکه چه د جمهورو په نزد د ماسپخین وخت په یو مثل باندې راتلو سره ختمیږی) او د خطابی د رائې تقاضه کومه چه مونږ پورته بیان کړې ده دا ده چه د ګرمئ په شروع زمانه کښې به هغه د ماسپخین مونځ په اول وخت کښې کولو بغیر د ابراد نه او بیا به ئې وړاندې تلو سره د ګرمئ په سخته زمانه کښې صرف د دوه قدمونو د سوری په مقدار تاخیر کولو، ددې شارحینو دا اختلاف په دې خبره باندې مبنی دې..... چه په هغوی کښې د یو په نزد په حجاز کښې د ګرمئ په موسم کښې ظل اصلی د نصف النهار په وخت درې قدمه ته نزدې وی او د دویم شارح په نزد بالکل نه وی وهذا غاية التحقيق والتوضيح، لهذا المقام والله ولی المرام وبيده حسن الختام. دا چه څه بیان کړې شو د حدیث د جزء اول سره متعلق دی یعنی د ماسپخین مونځ د ګرمئ په زمانه کښې، او د

حديث جزء ثاني کوم چه د شتاء سره متعلق دي او په هغې کښې د شارحينو هيڅ اختلاف نشته، په حجاز مقدس کښې په اول شتاء کښې ظل اصلي په پنځه قدمونو او بيا وړاندې تلو سره اووه قدمه کيږي، په دې وجه د رسول الله ﷺ ماسپخين د يخنئ په زمانه کښې مطلقا په اول وخت کښې شو او مسئله هم دا ده چه د يخنئ په زمانه کښې ماسپخين بالاتفاق په اول وخت کښې کول اولى دي.

[٤٠١](١)حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، أَخْبَرَنِي أَبُو الْحَسَنِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو الْحَسَنِ هُوَ مُهَاجِرٌ، قَالَ: سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ وَهْبٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا ذَرٍّ، يَقُولُ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَرَادَ الْمُؤَذِّنُ أَنْ يُؤَذِّنَ الظُّهْرَ، فَقَالَ: أَبْرِدْ، ثُمَّ أَرَادَ أَنْ يُؤَذِّنَ، فَقَالَ: أَبْرِدْ، مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا حَتَّى رَأَيْنَا فَيْءَ التُّلُولِ، ثُمَّ قَالَ: "إِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ، فَإِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ فَأَبْرِدُوا بِالصَّلَاةِ".

**ترجمه**: ابو ذر ﷺ ويلي دي: وو مونږ د رسول الله ﷺ سره ؤو، نو اراده وکړه مؤذن چې اذان وکړي د ماسپخين، نو ويې وئيل يخ والى وکړه، بيا ئي اراده وکړه چې اذان وکړي نو ويې يخ والى وکړه، دوه ځل او يا درې ځل، تر دې چې مونږ وليدلو سورى د غونډو (وړو غرونو)، بيا ئي ووېل: بيشکه شدت ګرمئ د بړاس د جهنم نه دى، کله چې ګرمي سخته شي نو يخ والى کوئ په مانځه.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ فاراد المؤذن ان يؤذن الظهر فقال : ابرد الخ﴾ دا د سفر واقعه ده سيدنا بلال ﷺ د ماسپخين دپاره د اذان اراده اوکړه نو رسول الله ﷺ د ابراد حکم اوکړو چه اوس ايسار شه د ګرمئ تيزي کميدو ته پريږده، دلته دا سوال دې چه بلال خو د اذان اراده کړې وه نو رسول الله ﷺ ورته د ابراد حکم اوفرمائيلو چه اوس ايسار شه د ګرمئ تيزي کميدو ته پريږده، دلته دا سوال دې چه بلال خو د اذان اراده کړې وه او ابراد يعنى د شدت حرارت نه بچ کيدل د مونځ په اعتبار سره دې نه د اذان، بيا د اذان نه منع ولې اوکړې شوه په دې باندې حافظ ليکي چه اصل کښې د علماء کرامو په دې کښې اختلاف دې چه اذان د وخت دپاره وى يا د مونځ دپاره، او ددې حديث نه تائيد کيږي د هغه چا چه وائي چه د مونځ دپاره دې، کرماني وائي چه نه اذان خو د وخت دپاره وى خو چونکه په هغه زمانه کښې د حضرات صحابه کرامو عادت دا وو چه د اذان د اوريدو نه پس به ئې جماعت ته حاضريدو کښې وخت نه لګولو په دې وجه په اذان کښې رسول الله ﷺ د ابراد حکم ورکړو ﴿ مرتين او ثلاثا ﴾ سيدنا بلال ﷺ لږ ساعت پس دوباره د اذان ورکولو اراده اوفرمائيله بيا هغه هم دا اوفرمائيل، بيا وړاندې د راوى شک دې چه په دريم ځل باندې هم هغه باندې د ابراد فرمائيلو موقع راغله يا نه.

**قوله**: ﴿ حتى راينا فئ التلول ﴾ تلول جمع د تل ده ددې اطلاق په ډيرکئ باندې کيږي نو مطلب دا شو چه بيا سيدنا بلال ﷺ دومره تاخير اوکړو چه مونږ خلقو ته د ډيرکو سورى په نظر راغلل، ډيرکئ منبطح او منبسط څيز وى يعنى خور او اوږد، او د داسې څيز سورې په

(١): صحيح البخاري/المواقيت ٩ (٥٣٥)، صحيح مسلم/المساجد ٣٢ (٦١٦)، سنن الترمذي/الصلاة ٦ (١٥٨)، (تحفة الأشراف: ١١٩١٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/١٥٥، ١٦٢، ١٧٦) (صحيح)

زمکه باندې زر نه پريوځی لکه چه مشاهده ده بلکه ډير روستو وی او د بخاری په يو روايت کښې خو راځی ﴿ حتی ساوی الظل التلول ﴾ چه د ډيرکو سورې خپله د ډيرکو برابر شو، ددې نه خو ډير زيات تاخير معلوميږی، کوم چه به يقينا مثلين نه اورسيږی لکه چه د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دې او د جمهورو په نزد خو په يو مثل باندې د ماسپخين وخت ختميږی، لهذا دا روايت د ماسپخين په وخت کښې د امام صاحب دليل شو.

## د شوافعو د طرف نه د حديث الباب توجيهات

هم په دې وجه حضرات شوافع ددې په تاويل کښې فکر مند دی خصوصا د روايت بخاری په لفظ کښې، پس حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د مساوات مطلب دا نه دې چه د ډيرکو سورې په مقدار کښې د هغې برابر شو يعنی مساوات فی المقدار مراد نه دې بلکه مساوات فی التحقق والظهور مراد دې يعنی څنګه چه ډيرکئ موجود وې هم دغه شان د هغې سورې هم موندلې کيدو او بل تاويل حافظ دا کړې دې چه دا دې په جمع بين الصلاتين باندې محمول کړې شی ځکه چه دا د سفر واقعه ده، لهذا د رسول الله ﷺ قصد ماسپخين لره په مازيګر کښې کول وو، انتهی کلام الحافظ. اوګورئ حافظ صاحب څه فرمائی! هم په دې وجه خو مونږ وئيلې وو چه دا د امام صاحب دليل دې ګڼنې ددې تاويل څه حاجت وو.

## د ماسپخين وخت الی مثلين په باره کښې د امام ابوحنيفه دلائل

امام صاحب سره نور هم بعض دلائل دی مثلا هم دا حديث الابراد ځکه چه ابراد د يو مثل نه روستو حاصليږی خصوصا په عربو کښې (كما فی تقرير شيخ الهند) او هم دغه شان هغه مشهور حديث کوم چه د مشکاة په اخر کښې باب ثواب هذه الامة د لاندې مذکور دې چه ددې امت مثال د قلت عمل او کثرت اجر په باره کښې د يهود او نصاری په مقابله کښې داسې دې لکه چه يو سړې د کار کولو دپاره مزدور طلب کړی بعض مزدوران کار کوی د سحر نه تر ماسپخين پورې او بعض د ماسپخين نه تر مازيګر پورې او د دواړو دپاره اجرت يو يو دينار تجويز کړی او بعض مزدوران د مازيګر نه تر ماښام پورې راوبلی او د هغوی دپاره اجرت دوه دوه ديناره تجويز کړی نو په دې سره هغه دواړه ډلې د مالک نه خفه شوې چه دا څه خبره ده چه زمونږ د دواړو عمل زيات او اجرت کم او د دريمې ډلې عمل کم او اجرت زائد، ددې نه روستو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د اولو دواړو ډلو مثال يهود او نصاری دی او د دريمې ډلې مثال امت محمديه دې، ددې حديث نه استدلال په دې طريقه دې چه د عمل کمې او د اجرت زيادت هل کيدې شی چه کله د مازيګر وخت د مثلين نه اومنلې شی او که د يو مثل نه اومنلې شی نو بيا نه دې، ددې جواب بعض د جمهورو د طرف نه دا ورکړې دې چه د مازيګر د وخت شروع که د يو مثل نه اومنلې شی نو بيا هم د مازيګر وخت د ماسپخين نه کم دې.

اګر چه معمولی شان فرق وی جواب دا دې چه دا هيڅ نه دی، دا حديث د امثالو د قبيلې نه دې مثالونه ډير واضح او ښکاره وی داسې باريک فرق په هغې کښې نه چليږی. ﴿فان شدة

الحر من فيح جهنم ﴾ د ګرمۍ شدت حرارت د جهنم د وسعت او د هغې د انتشار د وجې نه دې دا حديث بعض علماء کرامو په مجاز تشبيه باندې محمول کړې دې يعنى په دې ځان پوهه کړئ چه د ګرمۍ په موسم کښې چه کوم د ګرمۍ شدت وی هغه د جهنم د حرارت په شان دې خو ظاهره دا ده چه دا کلام په خپل حقيقت باندې محمول دې، كما قال الحافظ وغيره من الشراح، ځکه چه په يو روايت کښې تصريح ده : اشتكت النار الى ربها فاذن لها بنفسين... د دې نه معلومه شوه چه جهنم چه کله بهر ساه اخلى نو دا ګرمى د هغې نه پيدا کيږی، او ګويا چه کله دننه ساه اخلى نو په دنيا کښې د حرارت په ځائې يخنى پيدا کيږی يا دې دا اووئيلې شى چه د جهنم يوه طبقه زمهرير هم ده چه په هغې کښې سخته يخنى ده، د هغه طبې د ساه په وجه باندې په دنيا کښې يخنى کيږی، هكذا قالوا.

## يو اشکال او د هغې جواب

خو دلته يو سوال دا دې چه که د ګرمۍ د موسم ګرمى د جهنم د اثر نه ده نو په يو وخت کښې ټول عالم ته محيط کيدل پکار دی دا څه دی چه په يوه زمانه کښې په يو اقليم کښې ګرمى ده او په څه کښې يخنى، جواب دا دې چه هر يو څيز اول خپل مرکز ته رسيږی، بيا د هغه ځائې نه بل ځائې ته رسيږی نو په دنيا کښې د حرارت مرکز نمر دې لهذا د جهنم حرارت چه کله د دنيا طرف ته راځى نو هغه نمر خپل ځان ته راکاږی او نمر چونکه په زمانه واحد کښې بعض مکاناتو ته نزدې او د بعض نه لرې وی نو ددې نمر د قرب او بعد د وجې نه داسې وی چه چرته ګرمى وی او چرته نه وی. ﴿ اذا اشتد الحر فابردوا عن الصلاة ﴾ کوم خلق چه مطلقًا د ابراد قائل نه دې هغوی د حديث الابراد دا تاويل کوی چه برد النهار وئيلې شى اول النهار ته، لهذا د ابردوا معنى دا شوه چه برد الوقت يعنى په اول وخت کښې مونځ کوئ، خو چونکه په حديث کښې ﴿ اذا اشتد الحر ﴾ موجود دې بيا دا تاويل څنګه کيدې شى او هم دغه شان د بلال رضي الله عنه قصه کومه چه پورته تيره شوې ده د هغې نه صفا معلوميږی چه د ابراد نه مراد تاخير دې.

[۴۰۲]() حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ الْهَمْدَانِيُّ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ الثَّقَفِيُّ، أَنَّ اللَّيْثَ حَدَّثَهُمْ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ، فَأَبْرِدُوا عَنِ الصَّلَاةِ"، قَالَ ابْنُ مَوْهَبٍ: بِالصَّلَاةِ فَإِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ.

**ترجمه**: د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې، بيشکه رسول الله صلى الله عليه وسلم ويلى دي: کله چې سخته شى ګرمي نو يخوالى کوئ د مانځه نه. وئيلى دى ابن موهب: په مانځه سره، ځکه شدت د ګرمۍ دا د جهنم براس دى.

[1]): صحيح البخاري/المواقيت ٩ (٥٣٦)، صحيح مسلم/المساجد ٣٢ (٦١٥)، سنن الترمذي/الصلاة ٥ (١٥٧)، سنن النسائي/المواقيت ٤ (٥٠١)، سنن ابن ماجه/الصلاة ٤ (٦٧٨)، (تحفة الأشراف: ١٣٢٢٦، ١٥٢٣٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/وقوت الصلاة ٧ (٢٩،٢٨)، مسند احمد (٢٢٩/٢، ٢٣٨، ٢٥٦، ٢٦٦، ٣٤٨، ٣٧٧، ٣٩٣، ٤٠٠، ٤١١)، سنن الدارمي/الصلاة ١٤ (١٢٤٣)، الرقاق ١١٩ (٢٨٨٧) (صحيح)

[۴۰۳]([1])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ "أَنَّ بِلَالًا كَانَ يُؤَذِّنُ الظُّهْرَ إِذَا دَحَضَتِ الشَّمْسُ".

**ترجمه**:د جابر بن سمرة نه روايت دي بيشكه بلال به اذان كولو د ماسپخين لپاره كله چې به نمر واوړيدو

**تشريح: قوله**:﴿ أَنَّ بِلَالًا كَانَ يُؤَذِّنُ الظُّهْرَ إِذَا دَحَضَتِ الشَّمْسُ ﴾ د ﴿ دحض ﴾ معنى زلق او خوئيدلو ده مراد دلته د نمر د اسمان د مينځ نه منتقل كيدل او زائل كيدل دى، مطلب دا شو چه هغه به د زوال نه روستو فورا اذان كولو او د مسلم په روايت كښې دى ﴿ كان النبى صلى الله عليه وسلم يصلى الظهر اذا دحضت الشمس ﴾ امام نووى رحمه الله فرمائى چه ددې نه معلومه شوه چه د ماسپخين په مونځ كښې تقديم او تعجيل مستحب دې، وبه قال الشافعى والجمهور... زه وايم چه په دې مسئله كښې د جمهورو او امام شافعى رحمه الله اختلاف دې نو بيا ئې د جمهور طرف ته نسبت څنګه اوكړو ځكه چه جمهور په يخنئ كښې د تعجيل او په ګرمئ كښې د تاخير قائل دى او د امام شافعى رحمه الله په نزد په ګرمئ كښې هم تعجيل دې الا بشرائط، لهذا د جمهورو د طرف نه به توجيه دا وى، يا خو به دا وئيلې شى چه دوام مراد نه دې بلكه احيانا لبيان الجواز يا داسې اووئيلې شى چه ممكنه ده چه دا د امر بالابراد نه مخكښې واقعه وى، يا په زمن شتاء باندې محمول كړې شى، او علامه عينى ددې جواب دا وركړې دې چه كوم سرې ماسپخين د ابراد سره كوى په هغې باندې هم دا خبره صادق كيږى چه هغه د زوال شمس نه روستو مونځ اوكړو، د عينى مراد دا دې چه دا دې په على الفور باندې محمول نه كړې شى بلكه بعد الفصل د چه د حديث الابراد خلاف نه شى

## بَابٌ فِي وَقْتِ صَلَاةِ الْعَصْرِ

### باب دې په بيان د مانځه د مازيګر كښې

### د مازيګر د مانځه وخت

د جمهور علماء او ائمه ثلاثه په نزد په عصر كښې تعجيل اولى دې او د احنافو په نزد تاخير (قاله ابن العربى فى شرح الترمذى)

[۴۰۴]([2])حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّهُ أَخْبَرَهُ "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ بَيْضَاءُ مُرْتَفِعَةٌ حَيَّةٌ، وَيَذْهَبُ الذَّاهِبُ إِلَى الْعَوَالِي وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ".

**ترجمه**:د انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې، بيشكه هغه ورته خبر وركړى دى، چه رسول الله

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۱۴۹)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المساجد ۳۳ (۶۱۸)، سنن ابن ماجه/الصلاة ۳ (۶۷۳)، مسند احمد (۵/۱۰۶) (حسن صحيح)

[2]: صحيح مسلم/المساجد ۳۴ (۶۲۱)، سنن النسائي/المواقيت ۷ (۵۰۸)، سنن ابن ماجه/الصلاة ۵ (۶۸۲)، (تحفة الأشراف: ۱۵۲۲)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المواقيت ۱۳ (۵۵۰)، والاعتصام ۱۶ (۷۳۲۹)، موطا امام مالك/وقوت الصلاة ۱(۱۱)، مسند احمد (۳/۲۲۳)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۵ (۱۲۴۴) (صحيح)

ﷺ به مونځ کولو د مازيګر او نمر به سپين وو اوچت او تازه وو. او تللو به تلونکې بانډو ته او نمر به اوچت وو.

**د جمهورو د حديث نه په تعجيل عصر باندې استدلال او د احنافو د طرف نه جواب**

**قوله:﴿ حدثنا قتيبة بن سعيد.... ويذهب الذاهب الى العوالي والشمس مرتفعة ﴾** يعنې په عوالي مدينه کښې اوسيدونکې صحابه کرامو به چه د رسول اللهﷺ د مازيګر مونځ اوکړو او کورونو ته به واپس شو نو هلته د رسيدو نه پس به هم نمر اوچت ولاړ وو او ددې نه په وړاندې روايت کښې راځي چه امام زهري رحمه الله فرمائي چه عوالي د مدينې نه په دوه يا درې ميله فاصله باندې واقع دې، په ظاهره کښې ئې مطلب دا دې چه بعض عوالي د مدينې نه دوه يا درې ميله فاصله باندې دی او بعض په څلور ميله فاصله باندې، لکه چه په بخاري کښې په يو روايت کښې ددې تصريح ده او حافظ د بعض رواياتو په وجه باندې ليکي چه ابعد العوالي په شپږ ميله فاصله باندې دی خو ددې روايت په ثبوت کښې د حافظ تردد دې ځکه چه د بخاري د روايت خلاف دی، او په مدونه کښې خو د امام مالک نه روايت دې چه ابعد العوالي د درې ميلو په فاصله باندې دی، او د بعض رواياتو نه دا هم معلوميږي چه زيات نه زياته فاصله اته ميله ده. (کما فی البذل) اوس د بخاري روايت که مخې ته کيخودلې شي نو د څلورو ميلو نه زياته فاصله نشته نو مطلب دا شو چه رسول اللهﷺ سره به د مازيګر مونځ کونکې خپل کور ته په څلور ميله فاصله کښې اورسيدل او بيا به هم د نمر ګرمي، اوچت والې باقي وو ددې نه دا حضرات يعنې جمهور په تعجيل د عصر باندې استدلال کوي او دا د مازيګر وخت د يو مثل نه شروع کيږي، زمونږ د طرف نه ددې جواب په لامع کښې د حضرت ګنګوهي رحمه الله د طرف نه نقل کړې شوې دې چه ددې حديث نه وخت په تعيين باندې استدلال صحيح نه دې ځکه چه خلق په خپل چال او رفتار کښې مختلف وی، بعض سريع السير او بعض بطئ السير هم دغه شان د عوالي مقدار هم د بعد په اعتبار سره مختلف دې، بعض عوالي په دوه ميلو باندې دی او بعض په درې او بعض څلور نو په دې صورت کښې څه استدلال کيدې شي، حضرت شيخ په حاشيه د لامع کښې فرمائي چه زما والد صاحب به فرمائيل چه هغه د خپلې طالب علمۍ په زمانه کښې چه کله هغه په نظام الدين کښې وو نو روزانه دوه وخته مونځ کولو نه پس به د هغه ځائې نه مدرسه حسين بخش دهلي ته تلو راتلو او هلته به ئې پيدل تګ راتګ وو هغه فرمائي چه زه به د نظام الدين نه مدرسه حسين بخش ته په نيمه يا پاؤ کم ګهنټه کښې رارسيدم حال دا چه ددې دواړو ځايونو ترمينځه فاصله تقريبا درې نيم ميله ده معلومه شوه چه سريع السير انسان چه د عوالي فاصله تقريبا په ګهنټه کښې برابر کړه نو که د مازيګر مونځ د دوه مثلو نه پس اوکړې شي او بيا په دې باندې مزيد نيمه ګهنټه تيره شي نو په ظاهره ارتفاع شمس بيا موندلې شي هم دا خبره په حديث کښې مذکور ده، کم از کم دومره خو وئيلې کيدې شي چه دې حديث مفيد تعجيل کيدل متيقن نه دی هم دا خبره امام ابوبکر جصاص رازي هم احکام القران کښې ليکلې دې پس حضرت شيخ په اوجز صفحه ۱۵ کښې ليکي وقال الرزای

في الاحكام لايمكن الوقوف منه على مقدار معلوم من الوقت لانه على المسافة والسرعة في المشي.

[٤٠٥]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: وَالْعَوَالِي عَلَى مِيلَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةٍ، قَالَ: وَأَحْسَبُهُ قَالَ: أَوْ أَرْبَعَةٍ.

**ترجمه**: زهري ويلي دي: عوالي په اندازه د دوه يا درې ميلونو باندې، هغه وئيلى دي ددې حديث راوى معمر وائي زه ګمان کوم چه اوئې وئيل أَوْ أَرْبَعَةٍ (يا څلور).

[٤٠٦]()حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ خَيْثَمَةَ، قَالَ: حَيَاتُهَا أَنْ تَجِدَ حَرَّهَا.

**ترجمه**: د خيثمة نه روايت دې هغه وئيلى دي: د ژوند د هغې نه مطلب دا دې چې ته بيا مومې ګرمي د هغې.

[٤٠٧]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، قَالَ: قَرَأْتُ عَلَى مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ عُرْوَةُ: وَلَقَدْ حَدَّثَتْنِي عَائِشَةُ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ فِي حُجْرَتِهَا قَبْلَ أَنْ تَظْهَرَ".

**ترجمه**: حديث بيان کړې دې عائشې بيشکه رسول الله ﷺ وو چې مونځ ئې کولو د مازيګر او نمر به د هغې په حجره کښې (په زمکه) وو، مخکښې د اوړيدو نه (په ديوالونو باندې).

## د حديث شرح او طريق استدلال

**قوله**: ﴿ كان يصلى العصر والشمس في حجرتها قبل ان تظهر ﴾ سيده عائشه رضي الله عنها فرمائي چه رسول الله ﷺ به د مازيګر مونځ کولو په داسې وخت کښې چه رڼړا به د هغوى د حجرې په انګڼړ کښې موجود وه مخکښې ددې نه چه رڼړا ديوالونو ته اوخيژى، ﴿ تظهر ﴾ د ظهور نه دې چه د هغې معنى دلته صعود او علو ده، کما في قوله تعالى ﴿ ومعارج عليها يظهرون ﴾ دا حديث متفق عليه دې.... او په ظاهره کښې په تعجيل عصر باندې دلالت کوى او دا چه د مازيګر وخت د يو مثل نه شروع کيږى څکه څو رڼړا په حجره کښې دننه وه ګينې د تاخير په صورت کښې کولو سره به رڼړا په کمره کښې دننه څنګه وه، امام طحاوى رحمه الله په دې باندې فرمائي چه ددې حديث نه په تعجيل باندې استدلال صحيح نه دې څکه چه د حجرې ديوالونه واړه او چت لاندې وو او د کوم کور ديوالونه واړه واړه او ښکته وى په هغې کښې څو د نمر رڼړا تر ماښامه پورې وى، او! د ديوالونو د اوچتيدو په صورت کښې د رڼړا د کور په انګڼړ کښې کيدل يقينا تعجيل لره مقتضى دې او دلته د اسې نه وه، الحاصل دا چه ددې حديث نه په تعجيل باندې استدلال د ديوالونو په اوچت والې باندې موقوف دې او داسې ده نه، او هم دا خبره صاحب بدائع هم فرمائيلې ده کما في الاوجز. په دې باندې جمهورو وئيلې دى چه صرف د ديوالونو ښکته کيدل د تاخير دپاره کافى نه دى چه ترڅو پورې ددې

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٣٧٨) (صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٦١٨) (صحيح)
[3]: صحيح البخاري/المواقيت ١ (٥٢٢)، ١٣ (٥٤٤)، والخمس ٤ (٣١٠٣)، صحيح مسلم/المساجد ٣١ (٦١٢)، (تحفة الأشراف: ١٦٥٩٦)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ٦ (١٠٩)، سنن النسائي/المواقيت ٧ (٥٠٦)، سنن ابن ماجه/الصلاة ٥ (٦٨٣)، موطا امام مالك /وقوت الصلاة ١ (٢) (صحيح)

سره بل ځيز بيا نه موندلې شي يعنې اتساع صحن (د انګنړ فراخه کيدل) او هغه دلته مفقود دي لکه چه ديوالونه لوړ نه وو هم دغه شان د حجرې انګنړ وسيع هم نه وو، فحينئذ لا دلالة فيه على التاخير.

ځان پوهه کړئ چه حضرت شيخ په اوجز کښې ليکلی چه دا ټول قيل او قال خو په هغه صورت کښې دې چه په حديث کښې د رڼړا نه مراد هغه رڼړا واخستلې شي کومه چه د چهتونو دپاسه راروانه وي او که ددې نه مراد هغه رڼړا واخستلې شي، کومه چه د حجره شريفه د دروازې نه داخليږي ځکه چه باب حجره غربي وه (۱) نو بيا ددې ټول بحث حاجت پاتې نه شو او په دې صورت کښې د حديث دلالت په ځائې د تعجيل په تاخير باندې اظهر وي.

[۴۰۸](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ أَبِي الْوَزِيرِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَزِيدَ الْيَمَامِيُّ، حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ شَيْبَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ عَلِيِّ بْنِ شَيْبَانَ، قَالَ: "قَدِمْنَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ، فَكَانَ يُؤَخِّرُ الْعَصْرَ مَا دَامَتِ الشَّمْسُ بَيْضَاءَ نَقِيَّةً".

**ترجمه**: د علي بن شيبان نه روايت هغه وئيلي دي، مونږ راغلو رسول الله ﷺ ته مدينې ته نو هغه وو چې وروسته کولو به ئې مازيګر ترهغې پورې چې نمر به سپين وو صفا.

**تشريح: قوله**: ﴿عن على بن شيبان..... فكان يؤخر العصر ما دامت الشمس بيضاء نقية﴾ د على بن شيبان دا حديث د تاخير عصر په باره کښې صريح دې د احنافو سره نور هم دلائل دی کوم چه په کتب فقهيه او شروح حديث کښې ذکر شوې دی، حضرت هم په بذل کښې دې ځائې ليکلې دی حضرت شيخ په خپلو تصنيفاتو کښې ليکلې دی او په درس کښې به ئې هم فرمائيل چه د احنافو اول نظر په قران کريم باندې وی او د اختلاف روايات په وخت هغه روايت لره اخلی، کوم چه اوفق بالقران وی او د تاخير عصر روايات اوفق بالقران دی ﴿وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا﴾ حضرت به فرمائيل چه ددې آيت کريمه مقتضى فی الفجر والعصر دې لکه چه د احنافو مسلک دې، امام محمد رحمه الله په موطاء کښې فرمائی چه د بعض ائمه کرامو نه منقول دی ﴿ انما سمى العصر عصرا لانها تعصر وتؤخر﴾ صاحب منهل د حديث الباب جواب د جمهورو د طرف نه په التعليق الممجد (حاشيه موطاء محمد) نه دا نقل کړې دې چه دا حديث ضعيف دې ځکه چه ددې راوی يزيد بن عبد الرحمن دی کوم چه مجهول دی.

---

(۱) واضحه دې وی چه داهل مدينه قبله دجنوب په طرف ده او د عائشې رضى الله عنها حجره مشرقى طرف ته او مسجد نبوی په مغرب طرف کښې دې، په دغه طرف د حجرې دروازه ده، نوکله چه د حجرې دروازه کهلاؤ وی نود مسجد دطرفه به په حجره شريفه کښې نمر داخليږي.

(۲): تفرد به أبوداود (تحفة الأشراف: ۱۰۰۱۹) (ضعيف)

# بَابٌ فِي الصَّلوةِ الْوُسْطى
## باب د صلاة وسطى بيان

[٤٠٩]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، وَيَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ عَبِيدَةَ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ: "حَبَسُونَا عَنْ صَلَاةِ الْوُسْطَى صَلَاةِ الْعَصْرِ، مَلَأَ اللَّهُ بُيُوتَهُمْ وَقُبُورَهُمْ نَارًا".

**ترجمه:** د علی رضی الله عنه نه روایت دي، چه رسول الله ﷺ وویل په ورځ د خندق: دي کافرانو منع کړل مونږ لره د مانځه درمیانه نه چي د مازیګر مونځ دی، الله دې ډک کړي د دوی کورونه او قبرونه د اور نه.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا عثمان بن ابى شيبة الخ ﴾ د بذل المجهود په نسخه کښي دې ځائې کښې باب نشته بلکه په دې کښې دا حدیث د باب سابق د لاندې دې، ﴿ عن عبيدة عن على ﴾ دا عبیده بفتح العين دې ددې نه مراد عبیده سلمانی دې، سلمان د یوې قبیلې نوم دې دا د سیدنا علی رضی الله عنه او سیدنا ابن مسعود رضی الله عنه د مشهور اصحابو نه دی.

﴿ قال يوم الخندق : حبسونا عن صلاة الوسطى صلاة العصر ﴾ غزوه خندق په ذی قعده ۵ هجری کښې پیښه شوې وه او د امام بخاری رائې دا ده چه په شوال ۴ هجری کښې، چونکه په دې غزوه کښې د مدینې نه ګیر چاپیره خندق کنستلې شوې وو ځکه دې ته غزوه خندق وئیلې شی او غزوه احزاب هم دې ته وئیلې شی، ځکه چه د مشرکانو ډیر قبائل چه په هغې کښې د مدینې یهود هم شامل شوې وو په مدینه باندې راختلې وو، د مشرکانو تعداد لس زره او د مسلمانانو تعداد درې زره لیلکلې شوې دې ددې باوجود مسلمانانو ته الحمد لله هیڅ نقصان او نه رسیدو، انتهائی تیزه هوا راغله چه هغې د خوراک کټوئ او په نغرو کښې چه کوم اور بلیدو هغه ټول منتشر کړل او ددې نه علاوه نور خیزونه هم اوموندلې شو چه هغې نه مشرکین پریشانه کیدو سره او تختیدل ، په دې حدیث کښې رسول الله ﷺ فرمائی چه مشرکانو مونږ د صلاة وسطى يعنى صلاة عصر کولو نه منع کړو، (تردې چه هغه قضاء شو).

﴿ ملاء الله بيوتهم وقبورهم نارا ﴾ الله پاک دې د هغوی کورونه د اور نه ډک کړی، اول د احیاء په اعتبار سره او دویم د اموات په اعتبار سره،

### (د صلوة وسطى مصداق)

د دې حدیث نه معلومیږی چه د صلاة وسطى مصداق صلاة عصر دې، مسئله مختلف فیه ده په دې کښې تقریبا شل اقوال دی په بذل کښې د علامه عینی رحمه الله په حوالې سره مذکور دی خو زیات معروف په هغې کښې درې دی کوم چه امام ترمذی رحمه الله ذکر کړې دې. ۱: ددې مصداق صلاة العصر دې هم دا د احنافو او حنابله مشهور قول دې هم دې ته امام نووی رحمه الله

[1]: صحيح البخاري/الجهاد ٩٨ (٢٩٣١)، والمغازي ٢٩ (٤١١١)، وتفسير البقرة (٤٥٣٣)، والدعوات ٥٨ (٦٣٩٦)، صحيح مسلم/المساجد ٣٥ (٦٢٦)، ٣٦ (٦٢٧)، سنن الترمذي/تفسير البقرة ٤٢ (٢٩٨٤)، سنن النسائي/الصلاة ١٤ (٤٧٤)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٣٢)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الصلاة ٦ (٦٨٤)، مسند احمد (٨١/١، ٨٢، ١١٣، ١٢٢، ١٢٦، ١٣٥، ١٣٧، ١٤٤، ١٤٦، ١٥٠، ١٥١، ١٥٢، ١٥٣، ١٥٤)، سنن الدارمي/الصلاة ٢٨ (١٢٨٦) (صحيح)

او حافظ ابن حجرﷺ راجح وئيلې دې، امام ترمذيﷺ فرمائي وهو قول اكثر العلماء، په ترمذي کښې د سيدنا سمره بن جندب او سيدنا عبدالله بن مسعود رضى الله عنهما دواړو نه مرفوعا هم دا نقل دی. ۲: ددې مصداق صلاة الفجر دې هم ددې قائل دې ابن عباس او ابن عمر او هم دا منقول دی د امام شافعي او امام مالک نه.

۳: ددې مصداق صلاة ظهر دې دا د زيد بن ثابت او عائشې رضی الله عنها نه منقول دی، ورواية عن الامام الاعظم، د علماء کرامو په دې کښې هم اختلاف دې چه وسطى وسط په سکون د سين سره په معنى د درميان نه ماخوذ دې يا وسط په فتحې د سين سره په معنى د فضيلت.

## په غزوه خندق کښې د فوت شوې مونځونو تعداد

د ابوداود ددې حديث نه معلوميږی چه په غزوه خندق کښې د رسول اللهﷺ يو مونځ يعنى د مازيګر مونځ فوت شو د صحيحين د روايت نه هم دا ثابت دې خو ترمذي او نسائي وغيره د سنن په روايت کښې دواړه قسم دی په بعض کښې صرف د مازيګر د فوت کيدو ذکر دې او په بعض کښې د څلورو مونځونو ماسپخين، مازيګر، ماښام، ماسخوتن، دا ټول مونځونه د ماسخوتن په وخت کښې اوکړې شو د ماسخوتن مونځ هم ځکه چه د معمول نه موخر شوې وو په دې وجه راوی دې ته هم قضاء اووې، دا په ظاهره کښې تعارض دې د يو او څلورو ددې تطبيق په دوه طريقو سره کړې شوې دې، بعض ترجيح طرف ته مائل شوې دی لکه ابن العربى، هغه د صحيحين روايت ته ترجيح ورکولو سره وئيلې دی چه د رسول اللهﷺ صرف د مازيګر مونځ قضاء شوې وو، او د سنن رواياتو ته هغوی ضعيف او منقطع وئيلې دی او بعض جمع بين الروايتين اختيار کړې دې او هم دا رائې د حضرت ګنګوهي په کوکب کښې ده چه دواړه روايتونه صحيح دی چه يوه ورځ داسې اوشوه چه صرف يو مونځ فوت شو او يوه ورځ څلور مونځونه ځکه چه په غزوه خندق کښې مقابله د ډيرو ورځو پورې شوې وه بعض څليرشت ورځې ليکلې دی.

**(سوال)** يو سوال دلته دا دې چه رسول اللهﷺ په دې موقع باندې صلاة الخوف ولې اونکړو چه د مونځونو قضاء کيدو ته خبره نه وې رسيدلې.

ددې دوه جوابونه ورکړې شوې دی:

**(اول جواب)** اول دا چه تردې وخته پورې صلاة الخوف نه وو مشروع شوې ځکه چه د صلاة الخوف مشروعيت په يوم عسفان کښې شوې دې (كما هو مصرح فى رواية ابى داود او غزوه عسفان د خندق نه روستو ده،

**(دويم جواب)** او بل جواب دا دې چه د صلاة الخوف د کولو قدرت ئې هم اونشو د دشمن د غلبې د وجې نه چه کفار د هر طرف نه تاؤ شوې وو.

[٤١٠]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنِ الْقَعْقَاعِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِي يُونُسَ مَوْلَى عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّهُ قَالَ: "أَمَرَتْنِي عَائِشَةُ أَنْ أَكْتُبَ لَهَا مُصْحَفًا، وَقَالَتْ: إِذَا بَلَغْتَ هَذِهِ الْآيَةَ فَآذِنِّي حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى سورة البقرة آية ٢٣٨، فَلَمَّا بَلَغْتُهَا آذَنْتُهَا، فَأَمْلَتْ عَلَيَّ: حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى وَصَلَاةِ الْعَصْرِ وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ. ثُمَّ قَالَتْ عَائِشَةُ: سَمِعْتُهَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه**:د ابو یونس نه چې د عائشې رضی الله عنها مولی دی روایت دې، هغه وئیلی دي: امر وکړو ماته عائشې چې زه ولیکم د هغې لپاره مصحف او وېې وئیل کله چې ورسېږې دې ایت ته نو ماته خبر راکړه (حافظوا علی الصلوات و الصلاة الوسطی) کله چې زه ورسیدم هغې ته نو خبر مې کړه، نو وېې لوسته په ما (حافظوا علی الصلوات و الصلاة الوسطی و صلاة العصر و قوموا لله قانتین) حفاظت کوئ د مونځونو او د مونځ درمیانه او د مازیګر مونځ، او ودرېږئ الله ته عاجزی کونکي، بیا وویل هغې: ما هم داسې اوریدلې دی د رسول الله ﷺ نه

**تشریح**: **قوله**:( حدثنا القعنبی.... فاملت علی حافظوا علی الصلوات والصلاة الوسطی وصلاة العصر) ( املت ) په تشدید د لام سره هم کیدې شي د املال نه او سکون د لام سره هم کیدې شي، د املاء نه مضمون د حدیث دا دې چه ابو یونس کوم چه د عائشې رضی الله عنها غلام وو هغه وائي چه ماته عائشې رضی الله عنها حکم اوکړو چه ما د هغه دپاره یو مصحف شریف نقل کړو او دا ئې اوفرمائیل چه کله په لیکلو لیکلو په دې آیت باندې راورسیږې : ( حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى ) نو ماته خبر اوکړه نو عائشې رضی الله عنها اوفرمائیل چه داسې اولیکه څنګه چه پورته په روایت کښې تیر شو چه په هغې کښې د صلاة وسطی نه پس د صلاة العصر اضافه ده، او هغوی دا هم اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه دا آیت داسې واوریدلو، د عائشې رضی الله عنها په دې قرأت کښې دوه احتمالات دی یو دا چه دا عطف د مغایرت دپاره وی بل احتمال دا دې چه د تفسیر دپاره وی، د عائشې رضی الله عنها مسلک مخکښې تیر شو چه د هغوی په نزد د صلاة وسطی مصداق ظهر دې ددې تقاضه خو هم دا ده چه دا عطف د مغایرت دپاره اومنلې شی، دلته دویمه خبره ده چه عائشې رضی الله عنها چه کومه اضافه اوکړه چه دا هغې د قرأت په طور کړې دې نو دا به بالاتفاق قرأت شاذه وی، ممکنه ده په شروع کښې دا قرأت وی چه د هغې د نسخ علم عائشې رضی الله عنها ته اونشو، او دا هم ممکنه ده چه هغه دا اضافه په طور د تفسیر کړې وی او هغې دا لفظ د تفسیر په طور بیان اوفرمائیلو. بعض صحابه الفاظ تفسیریه په مصحف کښې د لیکلو د جواز قائل وو کیدی شی دا هم په دې کښې وی

[٤١١]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ أَبِي حَكِيمٍ، قَالَ: سَمِعْتُ الزِّبْرِقَانَ يُحَدِّثُ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الظُّهْرَ بِالْهَاجِرَةِ، وَلَمْ يَكُنْ يُصَلِّي صَلَاةً أَشَدَّ عَلَى أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهَا، فَنَزَلَتْ:

[1]: صحيح مسلم/المساجد ٣٦ (٦٢٩)، سنن الترمذي/تفسير البقرة (٢٩٨٢)، سنن النسائي/الصلاة ١٤ (٧٣.)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٠٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/صلاة الجماعة ٧ (٢٥)، مسند احمد (٧٣/٦) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٧٣١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٣/٥)، موطا امام مالك/صلاة الجماعة ٧ (٢٧موقوفا) (صحيح)

حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى سورة البقرة آية ۲۳۸، وَقَالَ: إِنَّ قَبْلَهَا صَلَاتَيْنِ وَبَعْدَهَا صَلَاتَيْنِ".

**ترجمه**: د زيد بن ثابت نه روايت دې هغه وئيلي دي: وو رسول الله ﷺ چې مونځ ئې کولو د ماسپخين په ګرمئ کښې، او نه وو چې مونځ ئې کولو داسې مونځ چې سخت وو په ملګرو د رسول الله ﷺ باندې د دېنه، نو نازل شو (حافظوا على الصلوات.....) حفاظت کوئ د ټولو مونځونو او د مونځ درميانه. او هغه ووېل: د دېنه مخکښې دوه مونځونه دي (ماسخوتن او سحر) او وروسته ترېنه دوه مونځونه دی مازيګر او ماښام.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ حدثنا محمد بن المثنى.... عن زيد بن ثابت الخ ﴾ سيدنا زيد بن ثابت رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ به ماسپخين د غرمې په وخت او سختې ګرمئ په وخت کښې کولو، هم په دې وجه يومونځ هم ددې نه زيات سخت نه وو، په دې مونځ به هغوی ډېر مشقت اوچتولو په دې باندې دا آيت کريمه ﴿ حافظوا على الصلوات ﴾ نازل شو، د زيد بن ثابت ددې حديث نه معلومه شوه چه د صلاة وسطى مصداق ماسپخين دې.

﴿وقال : ان قبلها صلاتين وبعدها صلاتين ﴾ د حديث دا ټکړه موقوف هم کيدې شي او مرفوع هم، يعنی د﴿ قال ﴾ ضمير کيدې شي چه د رسول الله ﷺ طرف راجع وی، کيدې شی چه د صحابی طرف ته راجع وی، د ظهر د صلاة وسطى کيدو وجه تسميه بيانوی هغه دا چه دا درميانه مونځ دې دوه ددې نه مخکښې دی او دوه ترې روستو، خوپه دې باندې اشکال دې چه دا خبره خو په هر مونځ باندې صادق راځی چه کوم مونځ هم واخلئ نو دوه مونځونه به دهغې نه مخکښې وی او دوه به دهغې نه پس وی، ځکه چه ټول پنځه مونځونه دی، جواب دا دې چه د هغه مراد دا دې چه بعض مونځونه د شپې دی او بعض نهاری دی د ماسپخين په مونځ باندې دا خبره صادقه راځی چه ددې نه مخکښې يو مونځ ليلى دې او يو نهاری او هم دغه شان يو دهغې نه روستو ليلى دې او يو نهاری دا خبره په بل مونځ باندې صادق نه راځی.

## بَابُ مَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ الصَّلَاةِ فَقَدْ أَدْرَكَهَا

**باب: چا چه د مونځ يو رکعت بيا موندلو نو هغه ګڼويا پوره مونځ بيا موندلو**

د بذل المجهود په نسخه کښې دلته دا باب نشته بلکه په هغې کښې دا ټول احاديث د باب سابق يعنی د باب فی وخت صلاة العصر د لاندې راوړلې شوې دی.

[۴۱۲] (۱) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الرَّبِيعِ، حَدَّثَنِي ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَدْرَكَ مِنَ الْعَصْرِ رَكْعَةً قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ فَقَدْ أَدْرَكَ، وَمَنْ أَدْرَكَ مِنَ الْفَجْرِ رَكْعَةً قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَقَدْ أَدْرَكَ".

**ترجمه**: ابو هريره رضي الله عنه ووېل: چې رسول الله ﷺ فرمائيلی دي: چا چې د مازيګر نه يو رکعت

---

[1] ): صحيح مسلم/المساجد ۳۰ (۶۰۸)، سنن النسائي/المواقيت ۱۰ (۵۱۵)، ۲۸ (۵۵۱)، (تحفة الأشراف: ۱۳۵۷۶)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المواقيت ۲۸ (۵۷۹)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۵ (۱۸۶)، سنن النسائي/۱۱ (۵۱۶، ۵۱۷)، سنن ابن ماجه/الصلاة ۱۱ (۱۱۲۲)، موطا امام مالك/وقوت الصلاة ۱ (۵)، مسند احمد (۲/۲۵۴، ۲۶۰، ۲۸۲، ۳۴۸، ۳۹۹، ۴۶۲، ۴۷۴)، سنن الدارمي/الصلاة ۲۲ (۱۲۵۸) (صحيح)

هم بيامونډلو مخکښ د ډوبيدو د نمر نه نو بيشکه هغه بيامونډلو دمازيګر مونځ، او چا چې بيامونډلو د سحر نه يو رکعت مخکښ د ختلو د نمر نه نو هغه د سحر مونځ بيامونډلو.

## د احاديثو تشريح او د احنافو د مسلک تحقيق

**قوله:**﴿ حدثنا الحسن بن ربيع... من ادرک من العصر رکعة قبل ان تغرب الشمس الخ ﴾ دا حديث متفق عليه دې بلکه په ټولو صحاح سته کښې شته ددې حديث په ظاهره کښې مقتضى دا ده چه که د مازيګر په مونځ کښې نمر پريوځي او هم دغه شان د سحر د مونځ دوران کښې نمر راوخيژي نو دواړه مونځونه صحيح کيدل پکار دي، پس د جمهور او ائمه ثلاثه مذهب هم دا دې، احناف د مازيګر په مانځه کښې خو ددې قائل دي چه هغه به خو صحيح شي خو د سحر د مونځ په باره کښې وائي چه هغه به صحيح نه وي په دې وجه جمهور په احنافو باندې د عمل ببعض الحديث الزام لګوي چه تاسو په بعض حديث باندې عمل کوئ او بعض ترک کوئ، احناف ددې جواب دا کوي چه دا الزام په مونږ باندې هغه وخت صحيح کيدې شي چه هر کله د حديث مفهوم زمونږ په نزد هم هغه وي کوم چه ستاسو په نزد دې، زمونږ په نزد د حديث هغه مفهوم نه دې "واذ ليس فليس" د جمهورو په نزد خو د ادراک نه مراد ادراک من حيث الفعل دې يعنى مونځ کول مراد دي، او مونږ وايو چه د ادراک نه مراد ادراک من حيث الوقت والوجوب دې يعنى چا چه د يو رکعت په اندازه د مازيګر يا سحر وخت بيا مونډلو هغه وجوب صلاة بيا مونډلو د هغه په ذمه باندې دا دواړه مونځونه واجب شو . چه کله صبى په داسې وخت کښې بالغ شي يا کافر په داسې وخت کښې اسلام قبول کړي يا حائض په داسې وخت کښې د حيض نه فارغ کيدو سره طاهره شي چه د يو رکعت په اندازه وخت باقي وي نو په دې ټولو باندې به مونځ واجب وي په خپل خپل وخت کښې دې هغه ادا کړي، د احنافو د طرف نه دا توجيه مشهوره ده کومه چه امام طحاوي رحمه الله اختيار کړې ده (۱)

**(اعتراض):** که څوک د احنافو نه تپوس اوکړي چه اخر تاسو دا معنى ولې اخلئ حديث لره د هغې په متبادر معنى باندې ولې نه محمول کوئ.

**(جواب):** ددې يو جواب خو دا دې چه دا حديث په خپل متبادر او ظاهري معنى باندې د چا په نزد هم محمول نه دې ځکه چه د حديث د ظاهر تقاضه دا ده چه کوم سړي د سحر يا مازيګر د مونځ يو رکعت اوکړو او په مينځ کښې نمر راوختلو يا غروب شو نو بس هغه مونځ بيا مونډلو وړاندې ئې د باقي رکعتونو کولو ضرورت نشته، لهذا حديث بالاجماع مؤول شو په دې وجه مونږ د حديث هغه معنى واخستله کومه چه پورته ذکر شوه چه دا حديث د حديث النهي عن الصلاة عند الطلوع خلاف نه شي او که مونږ هم هغه معنى واخلو

---

(۱) او په کوم روايت کښې چه فقد ادرک الصلاة په ځائي فليتم صلاته وارد دې لکه چه د بخاري په يو روايت کښې دي يعنى داسې سړي لره پکار دي چه هغه خپل مونځ پوره کړي نو دا روايت د احنافو د توجيه خلاف دې ددې جواب دا دې چه ددې نه مراد ﴿ فليؤدها على وجه التمام ﴾ يعنى روستو دې خپل مونځ پوره ادا کړي او که هم دا مراد وي چه هم هغه وخت دې پوره کړي نو بيا به مونږ دا وايو چه دا حديث د احاديث منع عن الصلاة عند الطلوع خلاف دې په محرم او مبيح کښې چه کله تعارض راشي نو محرم ته ترجيح وي.

کومه چه تاسو اخستلې ده نو په دې صورت کښې به واقعی عمل ببعض الحديث وی، پس ددې جواب زمونږ د طرف نه اهل اصولو دا ورکړې دې چه قاعده دا ده چه د آيات قرانيه د تعارض په وخت حديث طرف ته او د احاديثو د تعارض په وخت قياس طرف ته رجوع کولې شی اوس چونکه دا حديث، د حديث النهی عن الصلاة خلاف دې نو په دې وجه به مونږ قياس طرف ته رجوع کوو او د قياس تقاضه دا ده چه د مازيګر مونځ خو دې صحيح شی او د سحر دې صحيح نه شی نو مونږ په قياس عمل اوکړو، او قياس دا دې چه د مونځ سبب د وخت وجوب دې خو وخت پوره نه دې بلکه جزء متصل بالتحريمه، او بله داچه د قاعدې خبره ده چه څنګه سبب وی هم هغه شان دې مسبب وی، که سبب کامل دې نو مسبب به هم علی وجه الکمال ادا کول ضروری وی، اوکه سبب ناقص وی نو مسبب به هم ناقص واجب وی، اوس مونږ ګورو چه د مازيګر د مونځ څه وخت خو کامل دې او څه ناقص، اخر وخت يعنی وخت اصفرار ناقص دې نو کوم سړې چه مازيګر لره د هغې په اخری وخت کښې شروع کړی ظاهره ده چه دلته سبب وجوب ناقص بيا موندلې شو لهذا په هغه سړی باندې مامور به ناقص واجب شو نو په داسې صورت کښې به په اداء ناقص سره بری الذمه شی ددې په مقابله کښې د فجر وخت کامل دې هلته چه کوم سړی د سحر مونځ په اخر وخت کښې شروع کړو نو کوم وخت چه متصل بالتحريمه دې هغه کامل دې لهذا مامور به د هغه په ذمه کامل واجب شو او ګويا هغه په خپل ځان باندې د ادا کامل التزام اوکړو حال دا چه په مينځ کښې د طلوع شمس د وجې نه په مامور به کښې نقصان پيدا شو، لهذا دا سړې به ددې اداء ناقص په ذريعه بری الذمه نه وی.

## د احنافو په توجيه باندې خپله د هغوی د قاعدې د مخالفت اشکال

دلته دا اشکال پيدا کيږی چه د احنافو په اصولو کښې دا خبره ده چه نهی فساد منهی عنه لره مستلزم نه ده، النهی عن الافعال الشرعية يقتضی تقريرها، لهذا صلاة عند الطلوع چه په کوم باندې نهی راغلې ده هغه ستاسو په نزد فاسد کيدل نه دی پکار، خو په پورته ذکر شوی تقرير او تعبير کښې دا شبه نه عائد کيږی ځکه چه مونږ دې مونځ ته فاسد نه وايو بلکه ناقص يا فاسد من حيث الفرض لا مطلقا، پس امام صاحب فرمائی چه د هغه فرض مونځ نه ادا کيږی نفل مونځ کيدې شی او هم دا رائې د امام ابو يوسف رحمه الله ده، البته د امام محمد رحمه الله په نزد مونځ فاسد کيږی کما فی معارف السنن عن البدائع ومبسوط السرخسی، هم دغه شان په ايام منهيه کښې روژه اګر چه زمونږ ددې اصول پيش نظر صحيح کيږی خو که د مطلق نذر روژه په ايام منهيه کښې نيسی نو د هغې نه به نه بری کيږی، او که د ايام منهيه سره ئې نذر متعلق وی نو په دې صورت کښې به ئې نذر پوره شی غرض ادا د مامور به د التزام مطابق مکلف کيدل پکار دی.

په پورته ذکر شوی جواب باندې جمهورو دا وئيلې دی چه په حديث الباب او حديث النهی عن الصلاة کښې تعارض دې داسې نه ده، حديث النهی عن الصلاة په نوافل باندې محمول دې او دا حديث په ادراک فرض باندې، فلا تعارض بين الحديثين، د ددې جواب حضرت

سهارنپوری په بذل کښې د علامه عینی نه دا نقل کړې دي چه د ليلة التعریس واقعه چه په هغې کښې د رسول الله ﷺ فرض مونځ قضاء شوي وو په دې موقع باندې رسول الله ﷺ فرض مونځ هم په مکروه وخت کښې نه دې کړې بلکه د هغه ځائې نه تیریدو باندې ئې د ارتفاع شمس نه روستو ئې کړې وو، په روایت کښې راځي ﴿حتى اذا تعالت الشمس الخ﴾ او په یو روایت کښې دی ﴿حتى استقلت الشمس﴾ معلومه شوه چه فرض مونځ هم په اوقات منهیه کښې کول ممنوع دی، جمهور وائی چه د هغه ځائې نه منتقل کیدو سره وړاندې د مونځ کولو وجه دا نه ده کومه چه تاسو بیان کړه بلکه ددې علت هغه دې د کوم تصریح چه په حدیث مرفوع کښې ده ﴿ان هذا واد حضر فيه الشيطان﴾ جواب دا دې چه په دواړو علتونو کښې تضاد څه دې د یو فعل متعدد مصالح کیدې شی د یو ذکر دنبی ﷺ په کلام کښې دې او د یو ذکر د صحابی په کلام کښې.

دا ټول تقریر حضرت سهارنپوری په بذل المجهود کښې د علامه عینی د کلام نه نقل کړې دې او په دې باندې حضرت هیڅ اشکال نه دې ظاهر کړې البته حضرت ګنګوهی په الکوکب الدری کښې د احنافو توجیهات نه دی قبول کړی خو د هغې په حاشیه کښې حضرت شیخ د فقهاء احنافو خبرې ته خپل میلان ظاهر فرمائیلې دې، اصل کښې زمونږ فقهاء کرامو تقبل الله مساعیهم د نظر، عقل او قیاس په مدد سره ددې احادیث مختلفه ترمینځه توجیه او تطبیق فرمائیلو سره د عمل بالحدیث محتاط شکل راویستلې دې نه دا چه د قیاس په مقابله کښې ئې یو حدیث ترک کړې دی زمونږ په مسلک کښې د احتیاط کیدل د مذهب جمهور په نسبت ظاهر دې، دلته یوه خبره پاتې شوه چه په حدیث کښې دی چه ﴿من ادرک رکعة﴾ نو که چاته د یو رکعت نه کم ملاؤ شی نو د هغه څه حکم دې، نو دا مسئله مختلف فیه ده احناف فرمائی چه ددې نه مراد بعض صلاة دې د پوره رکعت قید نشته، پس که د تکبیر تحریمه په اندازه وخت بیا مومی نو هم معتبر دې په ذمه به ئې واجب شی، د امام شافعی رحمه الله په دې کښې دوه اقوال دې یو دا چه ما دون الرکعة معتبر نه دې او هم ددې قائل دې امام مالک، او د امام شافعی رحمه الله اصح قول د احنافو په شان دې، ګویا دا قید د مالکیانو په نزد احترازی دې او د او د احنافو او شوافعو په نزد د مثال په طور.

[۴۱۳]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّهُ قَالَ: دَخَلْنَا عَلَى أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ بَعْدَ الظُّهْرِ فَقَامَ يُصَلِّي الْعَصْرَ، فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ صَلَاتِهِ ذَكَرْنَا تَعْجِيلَ الصَّلَاةِ أَوْ ذَكَرَهَا، فَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "تِلْكَ صَلَاةُ الْمُنَافِقِينَ، تِلْكَ صَلَاةُ الْمُنَافِقِينَ، تِلْكَ صَلَاةُ الْمُنَافِقِينَ، يَجْلِسُ أَحَدُهُمْ حَتَّى إِذَا اصْفَرَّتِ الشَّمْسُ فَكَانَتْ بَيْنَ قَرْنَيْ شَيْطَانٍ، أَوْ عَلَى قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ، قَامَ فَنَقَرَ أَرْبَعًا لَا يَذْكُرُ اللَّهَ فِيهَا إِلَّا قَلِيلًا".

**ترجمه**: د علاء بن عبد الرحمن نه روایت دې بیشکه هغه وویل مونږ داخل شو په انس بن مالک باندې وروسته د ماسپخین نه، نو پاځیدلو مونځ ئې کولو د مازیګر، هر کله چې فارغ شو د مانځه نه، ما ذکر وکړو د تلوار د مونځ او یا هغه پخپله ذکر وکړو، هغه وویل:

[1]): صحيح مسلم/المساجد ٣٤ (٦٢٢)، سنن الترمذي/الصلاة ٦ (١٦٠)، سنن النسائي/المواقيت ٨ (٥١٢)، (تحفة الأشراف: ١١٢٢)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/القرآن ١٠(٤٦)، مسند احمد (١٠٢/٣، ١٠٣، ١٤٩، ١٨٥، ٢٤٧) (صحيح)

ما اوریدلی دی د رسول الله ﷺ نه هغه وئیل: دا د منافقانو مونځ دی، دا د منافقانو مونځ دی، دا د منافقانو مونځ دی، کیني یو کس په تاسو کښې تردې چې زېړ شی نمر نو شی په مینځ د ښکرو د شیطان کښې، او یا په ښکرو د شیطان باندې نو پاځي ووهی څلور ټونګې نه یادوی په کښې الله مګر لږ.

## د حدیث شرح

**قوله:** حدثنا القعنبي دخلنا على انس بن مالک... علاء بن عبدالرحمن فرمائی چه مونږ د سیدنا انس بن مالک ﷺ په خدمت کښې د هغه کور ته لاړو، دا د بصرې واقعه ده چرته چه انس ﷺ مقیم وو، دا حدیث په مسلم کښې هم دې اوپه هغې دا هم دی﴿ وداره بجنب المسجد﴾ چه د هغه کور مسجد ته نزدې وو ﴿ بعد الظهر فقام یصلي العصر الخ ﴾ یعنی مونږ د ماسپخین مونځ کولو سره د هغوی په خدمت کښې حاضر شو نو زمونږ د رسیدو نه لږ ساعت پس هغه د مازیګر د مونځ کولو دپاره اودریدلو، د مسلم په یو روایت کښې دی چه مونږ د ماسپخین مونځ په مسجد کښې د عمر بن عبدالعزیز ﷺ سره کولو نه پس د سیدنا انس ﷺ په خدمت کښې حاضر شو هغه زمونږ نه تپوس اوکړو چه ایا تاسو د مازیګر مونځ کړې دې مونږ عرض اوکړو چه مونږ اوس د ماسپخین مونځ اوکړو یعنی مازیګر مو لا نه دې کړې نو هغه اوفرمائیل راځئ چه د مازیګر مونځ اوکړو پس مونږ د هغه سره د مازیګر مونځ اوکړو.

**قوله:**﴿ فلما فرغ من صلاته ذكرنا تعجيل الصلاة او ذكرها ﴾ یعنی د مونځ د فارغ کیدو نه پس مونږ د هغه نه تپوس اوکړو یا بغیر د تپوس نه راته هغه بیان اوکړو «راوی ته په دې کښې شک دې» د مازیګر مونځ دومره زر د کولو په باره کښې ﴿ سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم الخ ﴾ یعنی رسول الله ﷺ فرمائیلې دی چه دا چه د مازیګر مونځ ناوخته کولې شی دا د منافقانو مونځ دې، منافقانو خلقو دا مونځ دومره روستو کړې وی قصداً ئې ناوخته کوی «ځکه چه د منافقت په وجه باندې د ثواب عقیده خو نشته» تردې چه چه کله نمر زیړې شی او مکروه وخت شروع شی نو بیا ئې کوی.

## په حدیث کښې دوه بحثونه

د دې حدیث نه دوه خبرې معلومې شوې یو د عمر بن عبدالعزیز د ماسپخین مونځ لره ناوخته کول او دویم د انس ﷺ د مسجد په ځائې په خپل کور کښې د مازیګر مونځ ادا کول، شارحینو لیکلې دی چه په شروع کښې عمر بن عبدالعزیز ﷺ به هم ناوخته مونځ کولو لکه چه د هغه زمانې امراء چه د بنو امیه نه وو عادت دا وو خو بیا روستو عمر بن عبدالعزیز ﷺ ته چه کله سنت طریقه معلومه شوه نو تقدیم ئې شروع کړو، هم دغه شان ئې لیکلې دی چه دا واقعه د هغوی د دور خلافت نه ده بلکه ددې وخت دا دې چه کله هغه د ولید د طرف نه د مدینې منورې نائب امیر او ګورنر وو او دا په دې وجه چه انس ﷺ د هغه د خلافت زمانه نه ده موندلې بلکه سیدنا انس ﷺ د هغه د خلافت نه اته لس کاله مخکښې فوت شوې وو او د خلافت په زمانه کښې خو د هغه حال انابت الی الله او عبادت کښې

اهتمام او مشغوله کيدل مشهور او معروف دی او دويمه خبره يعنی د انس رضي الله عنه په کور کښې مونځ کول ددې وجه په ظاهره کښې دا ده چه رسول الله ﷺ بعض صحابه کرامو ته... ارشاد اوفرمائيله چه که ستاسو د زمانې امراء په مونځ کښې تاخير کول شروع کړل او مستحب وخت تيريدلو سره کوی نو تاسو داسې کوئ چه خپل مونځ ځانله په مستحب وخت کښې اوکړئ او روستو که درته په مسجد کښې د مونځ کولو موقع راشی نو هغه هم اوکړئ، بل مونځ به نفل شی لکه چه دا قسم روايات وړاندې مستقل باب ﴿ اذا اخر الامام الصلاة عن الوقت ﴾ د لاندې راروان دې.

د دې حديث مناسبت د ترجمة الباب سره بذل المجهود والا نسخې (باب وقت صلاة العصر) سره بالکل ظاهر دې او د دويمې نسخې په اعتبار سره هيڅ مناسبت نشته لهذا د بذل والا نسخه ښه ده.

## شرح حديث

**قوله:** ﴿ فكانت بين قرني شيطان ﴾ تردې چه کله نمر د شيطان د دوه ښکرو ترمينځه دوه ښکرونه يعنی د هغه د سر دواړو جانبينو ترمينځه وی، دا جمله يا خو په خپل حقيقت باندې محمول ده چه شيطان غروب شمس ته نزدې د نمر وړاندې اودريږی ځکه چه هغه وخت د نمر عبادت کونکی د نمر عبادت کوی نو په داسې کولو سره شيطان خپلو کښرانو ته وائی چه اوګورئ زما عبادت شروع دې او دويم قول دا دې چه ددې نه معنی مجازی مراد ده، د شيطان نمر ته د نزدې رسيدو نه مراد عروج او ترقی ده او د شيطان عروج او ترقی په دې وخت کښې دا په دې وجه ده چه ډير خلق په دې وخت کښې د شيطان د مرضئ مطابق غير الله يعنی د نمر عبادت کوی.

**قوله:** ﴿ قام فنقر اربعا ﴾ يعنی منافق انسان غروب شمس ته نزدې د مونځ نيت تړلو سره اودريږی او زر زر څلور ټونګې په زمکه باندې اووهی ددې نه مراد د هغه څلور سجدې دی په هر رکعت کښې دوه سجدې، خو چونکه د هغه سجدې ډير په سرعت او تندئ سره وی نو په دې وجه دوه سجدې يوځائې کيدو سره د يوې سجدې برابر نه دی هم په دې وجه ئې څلورو اووې.

[ ٤١٤ ](¹) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الَّذِي تَفُوتُهُ صَلَاةُ الْعَصْرِ، فَكَأَنَّمَا وُتِرَ أَهْلَهُ وَمَالَهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وقَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ: أُتِرَ، وَاخْتُلِفَ عَلَى أَيُّوبَ فِيهِ، وقَالَ الزُّهْرِيُّ: عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: وُتِرَ.

**ترجمه:** د ابن عمر نه روايت دې، چه رسول الله ﷺ وېلی دي: هغه کس چې دمازيګر مونځ ترېنه فوت شو ګويا هلاک شو اهل او مال د ده. وئيلی دی ابوداود: او وئيلی دی عبيد الله بن عمر (أُوتِرَ) هلاک ئې کړو. او اختلاف شوی دی په ايوب کښې ، او زهری د سالم نه او

(¹): صحيح البخاري/المواقيت ١٤ (٥٥٢)، صحيح مسلم/المساجد ٣٥ (٦٢٦)، سنن النسائي/الصلاة ١٧ (٤٧٩)، (تحفة الأشراف: ٨٣٤٥)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ١٦ (١٧٥)، سنن ابن ماجه/الصلاة ٦ (٦٨٥)، موطا امام مالك/وقوت الصلاة ٥ (٢١)، مسند احمد (٨/٢، ١٣، ٢٧، ٤٨، ٦٤، ٧٥، ٧٦، ١٠٢، ١٣٤، ١٤٥، ١٤٧)، سنن الدارمي/الصلاة ٢٧ (١٢٦٧) (صحيح)

هغه د خپل پلار نه او هغه د نبی ﷺ نه، وتر نقل فرمائیلی دي: (وتر).

**تشریح: قوله:**﴿ حدثنا عبدالله بن مسلمه.... الذی تفوته صلاة العصر فكانما وتر اهله وماله... ﴾ ﴿اهله وماله ﴾ په رفع او نصب دواړو سره لوستلې شوې دې، رفع د نائب فاعل کیدو په بناء او نصب مفعول ثانی کیدو باندې او په دې صورت کښې به نائب فاعل د وتر ضمیر مستتر وی کوم چه راجع دې الذی طرف ته یعنی د مازیګر مونځ فوت کیدل داسې نقصان او خساره ګڼړل پکار دی لکه د مال او اولاد هلاکیدل.

**قوله:**﴿ قال ابوداود : وقال عبید الله بن عمر: أتِرَ﴾ عبیدالله د نافع شاګرد دې په پورته سند کښې د هغه شاګرد مالک راغلې وو نو مطلب دا شو چه د نافع نه مالک د روایت لفظ ﴿وتر﴾ او عبیدالله ترې ﴿ اوتر ﴾ نقل کړې دې ﴿ واختلف علی ایوب فیه ﴾ ایوب هم د نافع شاګرد دې او د اختلاف علی ایوب مطلب دا دې چه د ایوب اصحاب او د ایوب د شاګردانو نه په روایت کولو کښې مختلف دی بعض د هغوی نه ﴿ وتر ﴾ او بعض ترې ﴿اوتر﴾ نقل کړې دې په اصل کښې دا لفظ ﴿ وتر ﴾ دې خو واو کله په همزه سره بدل کړې شی لکه په وجوه کښې اجوه او ﴿ وقتت ﴾ کښې ﴿ اقتت ﴾، ﴿ وذلک ان تر ی ما علی الارض الخ ﴾ په حدیث کښې د صلاة عصر د فوت کیدو مطلب بیانوی او د امام اوزاعی رائې دا ده چه ددې نه مراد د مستحب وخت فوت کیدل دی چه هغه تیرولو سره په مکروه وخت کښې اوکړې شی، ددې په تفسیر کښې دوه قوله نور دی، د مطلق وخت فوت کیدل او مونځ لره قضاء کول یا د جماعت فوت کیدل.

[۴۱۵]([1])حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، قَالَ: قَالَ أَبُو عَمْرٍو يَعْنِي الْأَوْزَاعِيَّ: وَذَلِكَ أَنْ تَرَى مَا عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الشَّمْسِ صَفْرَاءَ.

**ترجمه:** وئیلی دی ابو عمر یعنی اوزاعي: چه د مازیګر د فوت کیدو مطلب دادې چه په زمکه باندې کوم نمر دې هغه تاته زیړ په نظر راشی.

# بَابٌ فِي وَقْتِ الْمَغْرِبِ

## باب دې په بیان د وقت د ماښام کښې

[۴۱۶]([2])حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ شَبِيبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كُنَّا نُصَلِّي الْمَغْرِبَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ نَرْمِي، فَيَرَى أَحَدُنَا مَوْضِعَ نَبْلِهِ".

**ترجمه:** د انس بن مالک نه روایت دې هغه وئیلی دي: وو مونږ چې مونځ به مو کولو د ماښام د نبی ﷺ سره، بیا به مونږ وېشتل کول نو لیدلو به کس زمونږ نه ځائې د غشی خپل.

### شرح حدیث

**قوله:**﴿ حدثنا داود بن شبیب... کنا نصلی المغرب... فیری احدنا موضع نبله ﴾ یعنی مونږ به د

---

[1]: تفرد به ابو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۹۶۵) (ضعیف)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۷۴) وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۷۰) (صحیح)

هغه سره د ماښام مونځ په داسې وخت کښې کولو مونځ کولو سره چه کله کور طرف ته واپس شو نو په لاره کښې د مشق په طور باندې نخښه ترلو دپاره غشي ورولو دپاره راتلل نو هغه وخته پورې دومره رڼا باقي وه چه غشې چرته پريوتلې دې هغه کتلو سره اوچت کړې، په مغرب کښې بالاتفاق تعجيل اولى دې.

[٤١٧] (١) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ عِيسَى، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الْمَغْرِبَ سَاعَةَ تَغْرُبُ الشَّمْسُ إِذَا غَابَ حَاجِبُهَا".

**ترجمه**: د سلمة بن الاكوع نه روايت دې هغه وئيلى دي: وو نبي ﷺ چې مونځ ئي كولو د ماښام په کوم ساعت کښې چې به ډوب شو نمر، کله چې به ډوب طرف د هغې.

**تشريح: قوله**: ﴿ اذا غاب حاجبها ﴾ رسول الله ﷺ د ماښام مونځ دهغې وخت کښې کولو چه کله د نمر پورته سر او غاړه (کومه چه د کتونکو طرف ته وی) د نظرونو نه غائب شوه، حاصل دا چه کله د نمر سترګه پوره غائبه شي نو بيا به رسول الله ﷺ مونځ کولو يعنى د كامل غروب نه پس دا نه ده چه د نمر د غروب په وخت به ئي كولو.

[٤١٨] (٢) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ مَرْثَدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: لَمَّا قَدِمَ عَلَيْنَا أَبُو أَيُّوبَ غَازِيًا وَعُقْبَةُ بْنُ عَامِرٍ يَوْمَئِذٍ عَلَى مِصْرَ فَأَخَّرَ الْمَغْرِبَ، فَقَامَ إِلَيْهِ أَبُو أَيُّوبَ، فَقَالَ لَهُ: مَا هَذِهِ الصَّلَاةُ يَا عُقْبَةُ؟ قَالَ: أَمَا سَمِعْتَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَا تَزَالُ أُمَّتِي بِخَيْرٍ، أَوْ قَالَ: عَلَى الْفِطْرَةِ مَا لَمْ يُؤَخِّرُوا الْمَغْرِبَ إِلَى أَنْ تَشْتَبِكَ النُّجُومُ".

**ترجمه**: د مرثد بن عبد الله نه روايت دې هغه وئيلى دي: هر كله چې راغي مونږ ته ابو ايوب غازى او عقبة بن عامر په دغه وخت د مصر حاكم وو، نو وروسته ئي كړو مونځ دماښام، نو ورپاخيدلو ابو ايوب، نو وې وئيل هغه ته دا كوم مونځ دى اى عقبة؟ هغه وويل مونږ مشغوله شوى وو، هغه وويل: ما اوريدلى دى د رسول الله ﷺ نه، هغه به وئيل: هميشه به وى زما امت په خير باندې، او يايې وويل: په فطرت، تر كومه چې ئې نه وى وروسته كړى ماښام تردې چې ګنړ شى ستورې.

**تشريح: قوله**: ﴿ حدثنا عبيدالله بن عمر ﴾... مضمون حديث دا دې چه مرثد بن عبد الله المصرى فرمائي چه كله ابو ايوب انصارى په مصر كښې غازيانه او فاتحانه داخل شو، او دا د هغه وخت خبره ده چه كله د مصر امير او ګورنر سيدنا امير معاويه رضي الله عنه د طرف نه عقبه بن عامر رضي الله عنه وو، يوه ورځ داسې اوشو چه امير د ماښام مونځ ناوخته اوكړو نو ابو ايوب انصارى رضي الله عنه په ولاړه باندې د تاخير اشكال اوكړو هغه د څه مشغولتيا عذر پيش كړو نو په دې باندې ابو ايوب انصارى رضي الله عنه دا حديث واورولو چه رسول الله ﷺ به فرمائيل چه زما امت به په خير باندې قائم پاتې وى چه ترڅو پورې د ماښام په مونځ كښې تاخير نه كوى.

الى ان تشتبک النجوم.... تردې چه كله د پړقيدونكو ستورو هجوم شى.

(١): صحيح البخاري/المواقيت ١٨ (٥٦١)، صحيح مسلم/المساجد ٣٨ (٦٣٦)، سنن الترمذي/الصلاة ٨ (١٦٤)، سنن ابن ماجه/الصلاة ٧ (٦٨٨)، (تحفة الأشراف: ٤٥٣٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥٤/٤)، دي/الصلاة ١٦ (١٢٤٥) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٤٨٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٧/٤) (حسن صحيح)

**د ماښام په مستحب وخت کښې د اهل سنت او اهل تشيع اختلاف سره د دلائلو نه**

د ماښام په مانځه کښې بالاتفاق تعجيل مستحب دې البته بعض تابعين د تاخير قائل وو لکه عطاء، طاؤس، وهب بن منبه او شيعه ګان خو دا وائی چه د ماښام وخت نه داخليږی چه ترڅو پورې اشتباک نجوم نه وی، پورته ذکر شوې حديث د هغوی د ترديد دپاره کافی دی ددې بعض تابعين استدلال د ابو بسره غفاری ﷺ د حديث نه دې چه د هغې په اخر کښې دی ﴿ولا صلاة بعد العصر حتى يطلع الشاهد والشاهد النجم﴾ دا روايت په نسائی شريف کښې دی تردې چه امام نسائی په دې باندې تاخير المغرب باب تړلې دې، علامه عينی ﷺ به وئيل چه امام طحاوی ﷺ ددې جواب دا ورکړې دې چه دا حديث د هغه احاديث شهيره کثيره متواتره خلاف دې چه په هغې کښې راغلې دی چه رسول الله ﷺ به د ماښام مونځ د نمر پريوتلو نه پس کولو او د بنده په ذهن کښې ددې حديث جواب دا دې چه ﴿حتى يطلع الشاهد﴾ کښې طلوع شاهد نه مراد دخول ليل دې ځکه چه شپه محل نجوم دې او د دخول ليل تحقق شرعاً غروب سره کيږی پس طلوع نجم کنايه شوه د غروب شمس نه، والله تعالى اعلم بالصواب.

## بَاب فِي وَقْتِ الْعِشَاءِ الْآخِرَةِ

### باب دې په بيان د ماسخوتن کې

### د ماسخوتن د صفت اخره راوړلو وجه:

د ماسخوتن صفت اخره لکه چه د ترجمة الباب په دواړو احاديثو کښې دی د راوړلو وجه دا ده چه بعض اعراب به ماسخوتن ته عتمه او ماښام ته عشاء وئيلو چه په هغې باندې احاديثو کښې نهی هم راغلې ده لکه چه په بخاری شريف کښې دی او امام بخاری د دواړو په سلسله کښې قائم کړې دی چه مغرب ته عشاء او عشاء ته عتمه او نه وئيلې شی نو چونکه په مغرب باندې د عشاء اطلاق به بعض خلقو کولو په دې وجه عشاء ته عشاء اخره وئيلو ضرورت راغلو ددې دپاره چه هغه د مغرب نه ممتاز شی.

د اصمعی رائې دا ده چه عشاء ته عشاء اخره وئيل مکروه دی ځکه چه دا مشعر دې دې خبرې لره چه مغرب عشاء اول دې حالانکه په حديث کښې مغرب ته د عشاء وئيلو ممانعت راغلې دې خو په حديث کښې د عشاء صفت اخره راوړلې شوې دې يا خو د اعراب د اطلاق په اعتبار سره، يا داسې اووئيلې شی چه ممانعت ددې نه دې چه هميشه عشاء ته عتمه او مغرب ته عشاء وئيلې شی، ځانې په ځانې ورکولو کښې هيڅ باک نشته (غلبه اعراب نه نه يکار) هم په لحاظ سره د عشاء صفت اخره راوړلې شوې دې.

[۴۱۹]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، قَالَ: أَنَا أَعْلَمُ النَّاسِ بِوَقْتِ هَذِهِ الصَّلَاةِ صَلَاةِ الْعِشَاءِ الْآخِرَةِ، "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيهَا لِسُقُوطِ الْقَمَرِ لِثَالِثَةٍ".

[1]: سنن الترمذي/الصلاة ۹ (۱٦٥)، سنن النسائي/المواقيت ۱۸ (۵۲۹)، (تحفة الأشراف: ۱۱٦۱٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/۲۷۰، ۲۷٤)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۸ (۱۲٤۷) (صحيح)

**ترجمه:** د نعمان بن بشير ﷺ نه روايت دې هغه وئيلی دي: زه پوهه د خلقو نه يم په وخت ددې مونځ باندې، مونځ د ماسخوتن وروستنې، وو رسول الله ﷺ چې کوه به ئې دې لره په وخت د پرېوتو د سپوږمۍ د دريمې شپې کښې.

**تشريح: قوله:** حدثنا مسدد.... انا اعلم الناس بوقت هذه الصلاة... ابن رسلان په دې باندې ليکی : وفيه ثناء الرجل علی نفسه لمصلحة قبول رواية وانتشار العلم به... يعني که يو سړې د روايت حديث په وخت باندې په خپل حق کښې څه تعريفی کلمه په دې مصلحت سره اوائی ددې دپاره چه سامعين د هغه روايت لره په توجه سره واوری او قبول کړی نو ددې اجازت دې ځکه چه په دې خپل صفت کښې خپل څه ذاتی مصلحت او نفسانی غرض نه دې د خلقو فائدې ته کتلې شی، په بدل کښې ئې د ملا علی قاری نه نقل کړې دی چه ممکنه د هغه دا وينا د اکابر صحابه کرامو د وفات نه پس وی کوم چه د راوی حديث نعمان بن بشير ﷺ نه په علم کښې زيات وو په دې باندې حضرت ليکی او دا هم ممکنه ده چه دا اووئيلې شی چه هغوی دا خبره په دې لحاظ سره فرمائيلې وی چه د ماسخوتن وخت لره د خاص علامت سره د هغوی په نزد بل چاته پته نشته.

## شرح حديث

**قوله:** ﴿ يصليها لسقوط القمر لثالثة ﴾ د سقوط نه مراد غائب کيدل او د ثالثة نه مراد ليله ثالثه دې يعنی رسول اللهﷺ به د ماسخوتن مونځ هميشه په داسې وخت کښې کولو په کوم وخت چه د مياشتې په دريم تاريخ باندې سپوږمۍ د نظر نه غائب کيږی په دې باندې شيخ ابن حجر مکی شافعی شارح مشکاة ليکی چه په دريم تاريخ باندې سپوږمۍ عام طور د شفق احمر سره غائبيږی نو معلومه شوه چه د رسول اللهﷺ معمول د ماسخوتن مونځ لره په اول وخت کښې د کولو وو لکه چه دا مذهب د امام شافعی دې.

### د وقت مذکور فی الحديث تعين کښې د ابن حجر مکی او ملا علی قاری اختلاف

خو ملا علی قاری حنفی فرمائی چه د شيخ ابن حجر دا خبره خلاف تحقيق ده ځکه چه سپوږمۍ پرېوتل د شفق سره سره په دويمه شپه باندې وی نه په دريمه شپه کښې او دا امر شاهد دې چه څوک غواړی هغه دې تجربه اوکړی، د ملا علی قاریﷺ د کلام حاصل دا شو چه رسول اللهﷺ د ماسخوتن مونځ د غروب شفق نه پس نه کولو بلکه د هغې نه به ئې کافی روستو کولو، د غروب شفق په وخت خو سپوږمۍ په دوئمه شپه کښې غائبيږی نه په دريمه شپه کښې، او دا يقينی خبره ده چه په دريمه شپه کښې ددې نه کافی وخت پس غائب کيږی، او زمونږ حضرت شيخ جمع بين القولين داسې فرمائيلې ده چه دا ممکن ده دا اختلاف د هغوی دواړو د رائې اختلاف په رؤيت باندې مبنی شو د يو کم ديرش د رؤيت کيدو په صورت کښې داسې وې څنګه چه ابن حجر فرمائی او د ديرش په رؤيت کښې هغه وی څنګه چه ملا علی قاری وائی، ماته د حضرت دا خبره ډيره خوښه شوه ګينې دا اشکال به وې چه دا حضرات شارحين حديث په امر مشاهد کښې هم مختلف کيږی.

[ ٤٢٠ ]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ الْحَكَمِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: مَكَثْنَا ذَاتَ لَيْلَةٍ نَنْتَظِرُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِصَلَاةِ الْعِشَاءِ، فَخَرَجَ إِلَيْنَا حِينَ ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ أَوْ بَعْدَهُ، فَلَا نَدْرِي أَشَيْءٌ شَغَلَهُ أَمْ غَيْرُ ذَلِكَ، فَقَالَ حِينَ خَرَجَ: "أَتَنْتَظِرُونَ هَذِهِ الصَّلَاةَ؟ لَوْلَا أَنْ تَثْقُلَ عَلَى أُمَّتِي لَصَلَّيْتُ بِهِمْ هَذِهِ السَّاعَةَ، ثُمَّ أَمَرَ الْمُؤَذِّنَ فَأَقَامَ الصَّلَاةَ".

**ترجمه**: د عبد الله بن عمر ﷛ نه روایت دي، هغه وئیلي دي: مونږ په خپل ځائې باندې وو یوه شپه چې انتظار مو کولو د رسول الله ﷺ د ماسخوتن د مانځه لپاره نو راووتلو مونږ ته په هغه وخت کښې چې دریمه حصه دشپې تلې وه او د هغې نه وروسته، مونږ نه پوهیدلو چې کوم شی مشغوله کړی دی او یا غیر د دېنه بل څه وو، نو هغه وویل کله چې راووتلو: ایا تاسو انتظار کوئ ددې مونځ، که چرې نه درنیده زما په امت نو ما به مونځ کولو دوی ته په هم دې وخت کښې، بیا ئې امر وکړو مؤذن ته نو اقامت د ما نځه ئې وکړو.

[ ٤٢١ ]()حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ الْحِمْصِيُّ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا حَرِيزٌ، عَنْ رَاشِدِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ حُمَيْدٍ السَّكُونِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ، يَقُولُ: ارْتَقَبْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاةِ الْعَتَمَةِ فَأَخَّرَ حَتَّى ظَنَّ الظَّانُّ أَنَّهُ لَيْسَ بِخَارِجٍ، وَالْقَائِلُ مِنَّا يَقُولُ: صَلَّى، فَإِنَّا لَكَذَلِكَ، حَتَّى خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا لَهُ كَمَا قَالُوا، فَقَالَ لَهُمْ: "أَعْتِمُوا بِهَذِهِ الصَّلَاةِ، فَإِنَّكُمْ قَدْ فُضِّلْتُمْ بِهَا عَلَى سَائِرِ الْأُمَمِ، وَلَمْ تُصَلِّهَا أُمَّةٌ قَبْلَكُمْ".

**ترجمه**: د عاصم بن حمید السکونی نه روایت دې بیشکه هغه اوریدلی دی د معاذ بن جبل نه چې هغه وئیل: مونږ انتظار وکړو د نبی ﷺ په مونځ د ماسخوتن کښې تردې چې گمان وکړو گمان کونکی چې هغه نه دی راوتونکی، او یو ویونکې مونږ نه وئیل چه. مونځ ئې کړې دې، مونږ هم دغسې وو چې نبی ﷺ راووتلو، پس دوی وویل هغه ته لکه څنګه چې دوی وئیل. نو هغه وویل دوی ته: وروسته والی کوئ په دې مونځ، بیشکه تاسو ته فضیلت درکړې شوی دی په ټولو امتونو باندې، او نه دی کړی دا مونځ هیڅ امت مخکې ستاسو نه.

## مضمون حدیث

**قوله**:﴿ حدثنا عمرو بن عثمان الخ ﴾ د حدیث مضمون دا دې چه سیدنا معاذ ﷛ فرمائی چه مونږ خلق په مسجد کښې کیناستلو، د ماسخوتن د مونځ دپاره مو د رسول الله ﷺ انتظار کولو په رسول الله ﷺ باندې ناوخته شو، د بعض حاضرینو دا خیال وو چه کیدې شی رسول الله ﷺ به تشریف نه راوړی، چا به وئیل چه کیدې شی رسول الله ﷺ مونځ کړې وی الغرض مونږ په دې تردد کښې وو، لږ ساعت پس رسول الله ﷺ تشریف راوړلو صحابه کرامو د هغه نه ددې تاخیر تپوس اوکړو او خپل خیالات ئې ورته ظاهر کړل، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دا مونځ تاسو ناوخته کوئ ځکه چه دا مونځ صرف ستاسو خصوصیت دې بل یو امت ته هم دا فریضه نه ورکړې شوې، مطلب دا چه دا مونځ صرف ستاسو دپاره د الله پاک ورکړه ده د هغې په اهتمام کښې چه څومره مشقت برداشت کړې

---

١): ● تخریج:صحیح مسلم/المساجد ٣٩ (٦٣٩)، سنن النسائي/المواقیت ٢٠ (٥٣٨)، (تحفة الأشراف: ٧٦٤٩)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/مواقیت الصلاة ٢٤ (٥٧١)، مسند احمد (٢/٢٨، ٩٥، ١٢٦) (صحیح)

٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٣١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢٣٧) (صحیح)

شي هغه کول پکار دي، او هم په دې اهتمام کښې دا هم داخل ده چه هغه په افضل وخت کښې اوکړې شي ددې نه معلوميږي چه په ماسخوتن کښې تاخير افضل دې.

[۴۲۲]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: صَلَّيْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْعَتَمَةِ، فَلَمْ يَخْرُجْ حَتَّى مَضَى نَحْوٌ مِنْ شَطْرِ اللَّيْلِ، فَقَالَ: خُذُوا مَقَاعِدَكُمْ، فَأَخَذْنَا مَقَاعِدَنَا، فَقَالَ: "إِنَّ النَّاسَ قَدْ صَلَّوْا وَأَخَذُوا مَضَاجِعَهُمْ، وَإِنَّكُمْ لَنْ تَزَالُوا فِي صَلَاةٍ مَا انْتَظَرْتُمُ الصَّلَاةَ، وَلَوْلَا ضَعْفُ الضَّعِيفِ وَسَقَمُ السَّقِيمِ لَأَخَّرْتُ هَذِهِ الصَّلَاةَ إِلَى شَطْرِ اللَّيْلِ".

**ترجمه**: د ابو سعيد الخدرى ﷛ نه روايت دې، هغه وئيلى دي: مونږ د مونځ اراده اوکړه د رسول الله ﷺ سره مونځ د ماسخوتن نو راونه وتلو تردې چې تيره شوه څه حصه دشپې، هغه وفرمائيل: کينئ په خپلو ځايونو، نو مونږ کيناستلو په خپلو ځايونو، هغه ووئيل: بيشکه خلکو مونځ کړې دى، او نيولى ئې دې ځايونه د پريوتلو، او تاسو هميشه په مانځه کښې ئې تر کومه چې تاسو انتظار کوئ د مانځه، او که چېرته نه وى کمزورتيا د کمزورى او مرض د مريض مابه وروسته کړې وى دا مونځ تر نيمې حصې د شپې پورې.

## شرح حديث

**قوله:**﴿ حدثنا مسدد..... فقال : ان الناس قد صلوا واخذوا مضاجعهم ﴾ صحابه کرام چونکه د مونځ په انتظار کښې د ډير حده پورې ناست وو څکه رسول الله ﷺ د هغوى د فعل تحسين او د انتظار کونکو همت افزائى فرمائى چه اوګورئ د الله پاک په تاسو باندې انعام دې هم د هغه په توفيق سره تاسو دلته ناست انتظار کوئ ګينې نورو خلقو خو خپل مونځونه کړې دى او اوده شوې دى، د هغه خلقو نه څوک مراد دى يا خو معذور قسم خلق يا زنانه او ماشومان، يا دواړه، يا ممکنه ده چه د نورو مسجدونو والا خلق مراد وى چه هغوى خپل خپل مونځونه کولو نه فارغ شو، هغوى په اول وخت کښې جماعت اوکړو څکه چه مدينه منوره کښې د مسجد نبوى نه علاوه به نور مسجدونه هم وى څکه د هغه ځائې والا مراد کيدې شى، والله تعالى اعلم.

## تاخير عشاء او د هغې په تقديم کښې د اختلاف علماء حاصل

د احاديث الباب نه د تاخير عشاء فضيلت معلوميږى لکه چه د احنافومسلک دې او د شوافعو قول مشهور افضليت تعجيل دې د هغه حضراتو وينا دا ده چه د رسول الله ﷺ غالب حال او معمول اکثرى تعجيل عشاء وو او تاخير رسول الله ﷺ احيانا کړې دې د څه عذر او مصلحت د وجې نه، او مونږ دا وايو چه د رسول الله ﷺ احاديث قوليه او ارشادات د تاخير عشاء په فضيلت کښې واضح او صريح دى... او که دا خبره اومنلې شى چه د رسول الله ﷺ معمول د تعجيل وو نو بيا ددې وجه د مقتديانو د حال رعايت دې چه هغه د خير زمانه وه خلق به په اول وخت کښې جمع کيدل په دې وجه به په تاخير کښې هغوى ته مشقت وو.

---

(): سنن النسائي/المواقيت ۲۰ (۵۳۹)، سنن ابن ماجه/الصلاة ۸ (۶۹۳)، (تحفة الأشراف: ۴۳۱۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۳) (صحيح)

## بَابٌ فِي وَقْتِ الصُّبْحِ
### باب دې په بيان د وقت د صبا کښې

د جمهور علماء او ائمه ثلاث په نزد د سحر په مانځه کښې تعجيل او هغې لره په غلس کښې کول اولى دى، امام ابوحنيفه رحمه الله او د هغوى اصحاب او سفيان ثورى په نزد تاخير او رڼرا کښې کول اولى دى، د امام طحاوى رائې دا ده چه اواخر غلس کښې د مونځ ابتداء کيدو سره په رڼرا کښې انتهاء کيدل پکار دى چه په دواړه قسم روايتونو باندې عمل اوشى او هم دا اختيار کړې وى حافظ ابن قيم رحمه الله.

مصنف په دې باب کښې دوه احاديث راوړې دى، اول حديث په ظاهره د جمهورو موافقت کښې دې او نور د احنافو.

[۴۲۳]([1]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّهَا قَالَتْ: "إِنْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُصَلِّي الصُّبْحَ، فَيَنْصَرِفُ النِّسَاءُ مُتَلَفِّعَاتٍ بِمُرُوطِهِنَّ مَا يُعْرَفْنَ مِنَ الْغَلَسِ".

**ترجمه**: ام المومنين سيده عائشه رضي الله عنها فرمائى چه رسول الله ﷺ به د سحر مونځ کولو نو زنانه به په خپلو څادرونو کښې پټې وې نو د تيرې په وجه به پيژندلې کيدل.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا القعنبي... فينصرف النساء متلفعات بمروطهن ﴾ دا لفظ په دوه قسمه باندې روايت دې ﴿ متلففات،د تلفف ﴾ نه او ﴿ متلفعات،د تلفع ﴾ نه چه کوم ماخوذ دې، د لفاع نه مروط، د مرط جمع ده د څادر په معنى کښې.

يعنى رسول الله ﷺ به د سحر مونځ په داسې وخت کښې کولو چه کله به زنانه د مونځ نه فارغې شوې يا د خپلو کورونو طرف ته واپس کيدلې (د انصراف دا دواړه تفسيرونه کولې شى) په دې حال کښې به هغوى په څادرونو کښې پټې وې د تيرې د وجې نه به نه پيژندلې کيږى، تلفف او تلفع لره اکثر شارحينو يوه معنى ليکلې ده او بعض شارحينو د موطاء په دواړو کښې فرق ليکلې دې هغه دا چه تلفع بغير د سر د پټولو نه نه کيږى تلفف په سر پټولو او ښکاره کولو دواړو سره کيدې شى.

### د حديث په شرح کښې د شارحينو د رائې اختلاف

د شارحينو په دې کښې اختلاف دې چه ﴿ ما يعرفن ﴾ کښې د عدم معرفة نه څه مراد دې.([2])

---

[1]): صحيح البخاري/ الصلاة ۱۳ (۳۷۲)، المواقيت ۲۷ (۵۷۸)، والأذان ۱۶۳ (۸۶۷)، ۱۶۵ (۸۷۲)، صحيح مسلم/المساجد ۴۰ (۶۴۵)، سنن الترمذي/الصلاة ۲ (۱۵۳)، سنن ابن ماجه/الصلاة ۲ (۶۶۹)، سنن النسائي/المواقيت ۲۴ (۵۴۷)، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۳۱)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/وقوت الصلاة ۱(۴)، مسند احمد (۳۳/۶، ۳۶، ۱۷۹، ۲۴۸، ۲۵۹)، سنن الدارمي/الصلاة ۲۰ (۱۲۵۲) (صحيح)

[2]) قلت وقد تقدم ويصلي الصبح ويعرف احدنا جليسه واما عدم معرفة الرجال النساء كما في هذا الحديث فلاجل بعدهن عن الرجال في المسجد ولا مدخل للتلفف في عدم المعرفة بل هو بيان الواقع والا فالتلفف مانع عن المعرفة مطلقا ولو كان الوقت وقت الاسفار كما لا يخفي، فالسبب لعدم المعرفة هو وجود شيء من الظلمة مع بعدهن عن الرجال، واما الرجال فكان يعرف بعضهم بعضا فلا يتوهم التعارض بين الحديثين، هذا ما عندي، والله تعالي اعلم)

د اکثر حضراتو رائې دا ده چه د معرفة اعيان نفي مقصود ده يعنې دا نه معلوميږي چه دا کومه زنانه ده مثلا زينب يا خديجه، او د امام نووي رحمه الله رائې دا ده چه ددې نه مراد دا دې چه نه معلوميږي چه کوم تصوير او جثه ده د چا ده د سړي ده يا د زنانه ده، ګويا نفي د معرفة جنس په اعتبار سره ده،حافظ وغيره شارحينو ددې ترديد کړې دې ځکه چه د معرفت تعلق د اعيان سره وي او که مراد هغه وې کوم چه نووي فرمائيلې دې نو په روايت کښې به د معرفت په ځائې لفظ د علم اختيارولې شي يعنې ﴿ما يعلمن﴾ (٢)امام نووي رحمه الله د خپل قول وجه دا بيان کړې ده چه د معرفت اعيان تحقق خو په ورځ کښې هم مشکل دې. د زنانو په څادرو کښې د ملفوف او مستور کيدو د وجې نه نو بيا په دې کښې غلس لره څه دخل شو خو ددې جواب نور حضرات دا ورکوي چه دا خبره نه چه معرفت عين به په ورځ کښې هم نه وي ځکه چه د زنانه د چال يو خاص هيئت وي چه په هغې سره هغه پيژندلې شي اګر چه په څادر کښې پټه وي، او د علامه باجي رائې لکه چه حافظ په فتح الباري کښې ليکلې دې چه د ﴿ما يعرفن من الغلس﴾ تقاضه دا ده چه هغه زنانه سافرات الوجوه وي (ښکاره مخ) نه متنقبات ځکه چه د نقاب والا زنانه خو د ورځې هم نه شي پيژندلې. نو بيا په دې کښې غلس لره څه دخل شو، حافظ فرمائي چه دا هم هغه د امام نووي والا خبره شوه

## د جمهور د حديث نه په تعجيل فجر باندې استدلال او د احنافو د طرف نه د هغې جواب

د دې حديث نه جمهورو په تعجيل فجر باندې استدلال کوي، زمونږ : طرف نه دا جواب کړې شوې دې چه د غلس نه د مسجد غلس مراد دې يعنې د مسجد په دننه حصه کښې به تياره وه ځکه چه د مسجد چهت ښکته وو په اصل کښې هغه د يو دالان په شکل وو، لکه چه د مسجد د چهت په باره کښې په رواياتو کښې راځي چه ﴿انما هو عريش﴾ او د انصراف نساء نه مراد انصراف الى البيت نه دې (د کورونو طرف ته تلل) بلکه د مونځ نه فارغ کيدل مراد دي، غرض دا چه په دې حديث کښې چه څه بيان شوې دي هغه د مسجد د داخل سره متعلق دي، د مسجد د انګنړ او د مسجد نه بهر حال نه شي بيانولې

## په دوه احاديثو کښې تعارض

ځکه چه د صحيحين په روايت کښې راځي او په ابوداود کښې هم تير شوې دي ﴿وما يعرف احدنا جليسه﴾ چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به د سحر مونځ په داسې وخت کښې ادا کولو چه انسان خپل خواته سړې اوپيژني، خواته انسان هله پيژندلې شي چه کله په اسفار کښې اوکړې شي، اوس پاتې شوه دا خبره چه په دې حديث کښې خو : معرفت نفي ده "ما يعرفن من الغلس" پس ددې جواب دا دې چه په مسجد کښې زنانه د سړو سره ځنګ. کيناستلې هغوی خو به د سړو نه په فاصله باندې وې نو هلته نه پيژندل د لرې والي د وجې نه وو په خلاف د

(١) ځکه چه د معرفت استعمال په جزئيات او د علم په کليات کښې کيږي

سړی چه سړی به یو بل لره د نزدې کیدو د وجې نه نه پیژندلو . زما په نزد د علامه باجی رائې زیاته صحیح ده اګر چه حافظ هغه رد کړې ده چه هغه زنانه به سافرات الوجوه وې، او مخکښې د موطاء د بعض شارحینو نه نقل شو چه د تلف د مفهوم دپاره د سر پټول ضروري نه دي او که ضروري هم وي لکه چه په مجمع البحار کښې دی ﴿ متلفعات ای مغطیات الرؤس والاجساد ﴾ نو صرف د سر پټول ددې په مفهوم کښې داخل ده نه د مخ پټول، د کلام خلاصه دا شوه چه سړو به سړی پیژندل خو سړو به زنانه په دې وجه نه پیژندلې چه هغه ئې جلیس نه وو بلکه په فاصله باندې وو، او رڼړا هم بنه طریقې سره نه وه راغلې چه انسان خپل جلیس لره اوپیژني، هذا ما ظهر لي في وجه الجمع بين الحديثين والله الموفق.

## د احنافو دلیل او د شوافعو د طرف نه د دې تاویل

[۴۲۴]()حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ قَتَادَةَ بْنِ النُّعْمَانِ، عَنْ مَحْمُودِ بْنِ لَبِيدٍ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَصْبِحُوا بِالصُّبْحِ، فَإِنَّهُ أَعْظَمُ لِأُجُورِكُمْ، أَوْ أَعْظَمُ لِلْأَجْرِ".

**ترجمه**: د رافع بن خدیج نه روایت دې هغه وئیلي دي، وئیلي دي رسول الله ﷺ: تاسو په رڼړا کښې وکړئ د صبا مونځ ځکه هغه ډېر اوچتونکې دی ستاسو اجرونو لره، او ډېر اوچتونکې دی د اجر.

**تشریح: قوله**:﴿ حدثنا اسحاق بن اسماعيل... اصبحوا بالصبح فانه اعظم لاجوركم ﴾ دا د رافع بن خدیج روایت دې کوم چه په مختلف الفاظو سره روایت دې، د نسائي په روایت کښې دی ﴿ اسفروا بالفجر ﴾ او په ترمذی کښې ﴿ اسفروا بالفجر فانه اعظم للاجر ﴾ او د نسائي په یو حدیث کښې دی ﴿ ما اسفرتم بالصبح فانه اعظم للاجر ﴾ په یو روایت کښې دی ﴿ اسفروا بالصبح فكلما اسفرتم فهو اعظم للاجر ﴾ هم دغه شان د احنافو په دلائلو کښې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه متفق علیه حدیث ﴿ ما رايت النبي صلى الله عليه وسلم صلى صلاة لغير ميقاتها الا صلاتين ﴾ او ددې په اخر کښې دی ﴿ وصلى الفجر قبل ميقاتها ﴾ په مزدلفه کښې د سحر په مانځه کښې تغلیس بالاجماع مستحب دې، سیدنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دې ته صلاة قبل الوقت وائي چه د هغې نه صفا معلومیږي چه د حج د زمانې نه علاوه د رسول الله ﷺ معمول د تغلیس نه وو، او که تسلیم هم کړې شي چه د رسول الله ﷺ عمل تغلیس باندې نو بیا روایات قولیه په اسفار باندې دال دي او په قول او فعل کښې د تعارض په وخت قول ته ترجیح وي او ددې نه غوره توجیه دا ده چه کومه اختیار کړې ده امام طحاوي او حافظ ابن القیم رحمهما الله، هغه دا چه د غلس روایات په ابتداء صلاة باندې محمول دي او د اسفار روایات په اختتام صلاة باندې محمول دي لکه چه د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو شان دا وو د سحر په مونځ کښې قراءة طویله ډېر په اطمینان سره، خو شوافع وغیره د اسفار او

[1] ): سنن الترمذي/الصلاة ٣ (١٥٤)، سنن النسائي/المواقيت ٢٦ (٥٥٠)، سنن ابن ماجه/الصلاة ٢ (٦٧٢)، تحفة الأشراف (٣٥٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٦٠/٣، ١٤٠/٤)، سنن الدارمي/الصلاة ٢١ (١٢٥٣) (حسن صحيح)

اصباح د روايت يو جواب دا ورکوی چه ممکنه ده بعض صحابه کرام د اول وخت د فضيلت حاصلولو دپاره په شوق کښې د صبا راختلو نه مخکښې کوی، څکه چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ اصبحوا بالصبح ﴾ چه دومره تندی مه کوئ پريږدئ چه صبا شی، دا تاويل د هغوی مشهور دې او زمونږ د طرف نه په دې باندې اشکال هم مشهور دې هغه دا چه قبل الوقت خو مونځ صحيح نه دې په دې کښې نه اجر قليل دې او نه کثير او په دې حديث کښې قلت اجر او کثرت اجر لره بيانولې شی، هم دغه شان جمهورو هم يو تاويل کړې دې چه د اسفار روايات په ليالی مقمره (چه په کومو شپو کښې سپوږمۍ رڼړا کوی) باندې محمول دې يعنی چه په کومو تاريخونو کښې سپوږمۍ د سحره پورې روښانه وی چه په دې تاريخونو کښې د احتياط ضرورت دې په ښه طريقې سره پريږدئ چه صبا شی داسې نه چه د رڼړا په اشتباه کښې د وخت نه مخکښې مونځ اوکړې شی.

## بَابٌ فِي الْمُحَافَظَةِ عَلَى وَقْتِ الصَّلَوَاتِ

### باب دې په بيان د خيال ساتلو کې په وقت د مونځونو

### د صلوات خمسه د وختونو تفصيل عند الائمة الاربعة

په صلوات خمسه کښې د هر يو دپاره جدا جدا باب قائمولو نه پس مصنف رحمه الله داسې جامع باب قائم کړې دې چه د هغې تعلق د ټولو مونځونو سره دې محافظت يعنی نګرانی، يا خو د مونځ سنن او مستحبات او خشوع او خضوع په اعتبار سره مراد دې يا اوقات مستحبه په اعتبار سره چه ټولو مونځونو لره د هغې په اوقات مستحبه کښې د کولو اهتمام کول پکار دی، مناسب معلوميږی چه د صلاة خمسه اوقات مستحبه سره د اختلاف ائمه بيان کړې شی.

څان پوهه کړئ چه ائمه اربعه په مغرب کښې ددې د تعجيل په استحباب باندې متفق دی او په دې کښې د ائمه کرامو هيڅ اختلاف نشته البته په نورو مونځونو کښې اختلاف دې، په سحر او مازيګر کښې جمهور علماء او ائمه ثلاثه د تعجيل قائل دی، او امام ابوحنيفه رحمه الله د دواړو د تاخير، او په صلاة ظهر کښې د يخنئ په زمانه کښې د هغې په تعجيل باندې او په زمانه د ګرمئ تاخير باندې د ائمه اربعه اتفاق دې سوا د امام شافعی نه چه د هغه په نزد د ماسپخين تاخير مقيد دې د څلورو شرطونو سره چه د هغې ذکر مخکښې شوې دې، پاتې شو صلاة عشاء نو د هغې په باره کښې اقوال مختلف دی کوم چه مونږ په باب صلاة العشاء کښې ذکر کړې دی او هم دغه شان ﴿ لولا ان اشق علی امتی لامرتهم بالسواک وبتاخير العشاء ﴾ د حديث د لاندې هم، حاصل دا چه د احنافو په دې کښې دوه اقوال دی ۱: يو دا چه مطلقا تاخير اولی دې، ۲: د يخنئ په زمانه کښې شپې اوږدې وی په هغې کښې تاخير او د ګرمئ په زمانه کښې تعجيل، د امام شافعی رحمه الله يو قول د تاخير عشاء د استحباب دې او مشهور قول د هغوی د اولوية تعجيل دې، د امام مالک هم په دې کښې دواړه اقوال دی... او يو قول د مالکيانو دې چه ددې مدار د خلقو په اجتماع باندې دې که خلق وختی جمع شی نو تعجيل اولی دې ګينې تاخير، او ابن رسلان د امام احمد رحمه الله نه نقل

کړې دي چه هغه اوفرمائیل : اول الاوقات اعجب الی الا فی اثنین صلاة العشاء وصلاة الظهر ﴾ د دې نه معلومه شوه چه د امام احمد په نزد هم په عشاء او ظهر کښې تاخیر اولی دې او په باقی کښې تعجیل، هم دغه شان امام ترمذی رحمه الله د امام احمد رحمه الله مسلک د تاخیر عشاء لیکلې دې.

## د جمعې په مستحب وخت کښې د علماء کرامو اختلاف

اوس پاتې شوه مسئله د صلاة جمعه نو په دې سلسله کښې امام بخاری رحمه الله باب قائم کړې دې ﴿اذا اشتد الحر یوم الجمعة ﴾ په دې باندې د بخاری شارحین لیکی چه د امام بخاری رحمه الله میلان د جمعې په باره کښې د ماسپخین پشان په ابراد کښې مشروعیت طرف ته دې چه څنګه د ګرمئ په زمانه کښې د ماسپخین تاخیر اولی دې هم دغه شان د جمعې هم، حضرت شیخ په حاشیه د لامع کښې د جمهور ائمه ثلاثه شوافع، مالکیانو او حنابله مسلک د هغوی د کتابونو نه عدم ابراد نقل کړې دې څکه چه د جمعې په باره کښې په احادیثو کښې د تبکیر حکم راغلې دې او ددې دپاره به خلق په اول وخت کښې راجمع کیدل اوس که په دې کښې تاخیر اوکړې شی نو خلقو ته به ګرانه شی لهذا جمعه به په ماسپخین باندې نه شی قیاس کولې، او د احنافو مذهب په در مختار کښې خو دا لیکلې دې چه جمعه د ماسپخین په شان ده د اصل وخت او مستحب دواړو په اعتبار سره په ګرمئ او یخنئ دواړو کښې، څکه چه جمعه د ماسپخین بدل او د هغې نائب دې، خو د علامه شامی تحقیق ددې خلاف دې چه په جمعه کښې مطلقا تقدیم اولی دې. کما هو مسلک الجمهور.

[۴۲۵](¹)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ الْوَاسِطِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ يَعْنِي ابْنَ هَارُونَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُطَرِّفٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الصُّنَابِحِيِّ، قَالَ: زَعَمَ أَبُو مُحَمَّدٍ أَنَّ الْوِتْرَ وَاجِبٌ، فَقَالَ عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ: كَذَبَ أَبُو مُحَمَّدٍ، أَشْهَدُ أَنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "خَمْسُ صَلَوَاتٍ افْتَرَضَهُنَّ اللَّهُ تَعَالَى، مَنْ أَحْسَنَ وُضُوءَهُنَّ وَصَلَّاهُنَّ لِوَقْتِهِنَّ وَأَتَمَّ رُكُوعَهُنَّ وَخُشُوعَهُنَّ كَانَ لَهُ عَلَى اللَّهِ عَهْدٌ أَنْ يَغْفِرَ لَهُ، وَمَنْ لَمْ يَفْعَلْ فَلَيْسَ لَهُ عَلَى اللَّهِ عَهْدٌ، إِنْ شَاءَ غَفَرَ لَهُ وَإِنْ شَاءَ عَذَّبَهُ".

**ترجمه**: د عبد الله بن الصنابحی نه روایت دې هغه وئیلی دي: چې ګمان کړی دی ابو محمد چې وتر واجب دي، نو وویل عبادة بن الصامت: چه دابو محمد خیال غلط دې، زه ګواهي کوم چې ما اوریدلی دی د رسول الله ﷺ نه چې هغه وئیل: پنځه مونځونه دی چې فرض کړی دی الله تعالی، چاچې ښه وکړو اودس د هغې او ويې کړل په خپل وخت کښې او پوره ئې کړه رکوع او خشوع د هغې، وی ده لره په الله باندې ذمه واری چې بخښنه وکړې ده ته، او چا چې ونه کړه نو نشته دده لپاره په الله باندې ذمه واري، که چرې خوښه ئې شوه بخښنه به ورته وکړی او که چېرې خوښه ئې شوه نو عذاب به ورته ورکړي.

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۱۰۱)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الصلاة ٦ (٤٦٢)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۹٤ (۱٤۰۱)، مسند احمد (۳۱۷/۵) (صحیح)

## تحقيق صنابحي

**قوله:** حدثنا محمد بن حرب..... عند عبدالله بن الصنابحي.... دلته په بعض نسخو کښې په بذل کښې هم عن عبدالله بن الصنابحي دې، د عبدالله او الصنابحي ترمينځه لفظ بن دا بالکل غلط دې او په صحيح نسخو کښې عن عبدالله الصنابحي دې.
ځان پوهه کړئ چه د عبدالله الصنابحي په باره کښې د حضرات محدثينو دوه جماعتونه دی يو جماعت چه په هغې کښې امام بخاري دده استاد علي بن مديني دې او د هغه رائې دا ده چه صحيح ابو عبدالله الصنابحي دې کوم چه کنيت دې د عبدالرحمن بن عسيله او هغه تابعي دې کوم چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې موجود وو، د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د حاضرئ په ارادې سره د خپل وطن نه روان شو خو لا په لاره کښې وو چه رسول الله ﷺ وفات شو، او عبدالله صنابحي لکه چه دلته په متن کښې دی د امام بخاري رحمه الله وغيره په نزد د راوي وهم دې د هغه په نزد ددې نوم صحابي وجود نشته او ددې حضراتو ګمان دې چه دا وهم امام مالک رحمه الله ته لګيدلې دې هغوی اولا په موطاء کښې د هغه نوم داسې ذکر کړې دې او بيا هم دغه شان غلط رانقل شو، او دويم جماعت چه په هغوی کښې ابن السکن، امام ترمذی او حافظ ابن حجر وغيره حضرات دی هغوی وائي چه عبدالله الصنابحي صحيح دې او دا صحابي دې (په يو قول) او ابو عبدالله الصنابحي راوي جدا دې کوم چه تابعي دې چه د هغه نوم عبدالرحمن بن عسيله دې امام ترمذی رحمه الله دا خپله رائې د جامع ترمذی بالکل په شروع کښې په اوله صفحه باندې بيان کړې ده، حضرت په بذل کښې د تهذيب التهذيب نه نقل کړې دی چه امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه ما ددې راوي په باره کښې د امام بخاري رحمه الله نه تپوس اوکړو نو هغه اوفرمائيل چه ﴿وهم فيه مالک والصحيح ابو عبدالله﴾ د دې نه معلومه شوه چه په دې مسئله کښې امام ترمذی د امام بخاري د رائې سره اتفاق نه لری، وله نظائر... امام ترمذی په جامع ترمذی کښې د يو دريم صنابحي هم اعتراف کړې دې خو هغه في الواقع صنابحي نه دې بلکه د هغه نوم صنابح بن الاعر احمسي دې هغه ته صنابحي وئيل غلط دی، نو د ترمذی شريف هم دا مقام حل شو، فالحمد لله.

## د وجوب وتر دليل

**قوله:** ﴿زعم ابو محمد ان الوتر واجب﴾ ابو محمد يو صحابي دې چه د هغه د نوم په تعيين کښې اختلاف دې په بذل کښې د هغه څو نومونه ذکر کړی دی، قيل مسعود بن اوس وقيل قيس بن عامر وقيل سعد بن اوس، د حديث مضمون دا دې چه يو ځل ابو محمد رضي الله عنه صحابي اوفرمائيل ﴿الوتر واجب﴾ نو په دې باندې سيدنا عبادة بن الصامت رضي الله عنه اوفرمائيل ﴿کذب ابو محمد﴾ چه ابو محمد غلط وائی ځکه چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دی چه پينځه مونځونه کوم چه الله پاک فرض کړې دی څوک چه د هغې دپاره اودس کوی او دا مونځونه په خپل وخت کښې په کامل طريقې سره کوی نو د الله پاک د داسې سړی سره عهد يعنی کلکه وعده ده چه د هغه مغفرت به کوی او څوک چه داسې اونکړی نو د هغه دپاره به هيڅ

وعده نه غواړي، مغفرت به ئې اوفرمائي او که اوغواړي نو عذاب به ورکړي دا خو تاسو ته معلومه ده چه په وجوب وتر کښې اختلاف دې، امام صاحب دې ته واجب او جمهور او صاحبين ورته سنت وائي، د ابو محمد قول د امام صاحب موافق دې، او سيدنا عباده ﷺ چه د وجوب نفي کړې ده نو هغه د څه صريح حديث په وجه نه بلکه په خپل اجتهاد سره ځکه چه هغه د رسول الله ﷺ نه اوريدلي وو چه مونځونه پنځه فرض دی نو هغه ددې نه د وتر په نه واجب کيدو باندې استدلال کوی، دا استدلال صحيح چرته شو په واجب او فرض کښې خو د زمکې او اسمان فرق دې، فرض مونځونه د امام صاحب په نزد هم پنځه دی او ددې باوجود هغه وتر واجب منی، حضرت شيخ د بذل په حاشيه باندې ليکلې دی چه محمد بن نصر (مشهور محدث) په خپل کتاب قيام الليل کښې يوه واقعه نقل کړې ده چه يو سړی د امام صاحب خدمت کښې حاضر شو او د هغه نه ئې تپوس اوکړو چه فرض مونځونه څومره دی نو هغه جواب ورکړو چه پنځه دی، سائل ترې تپوس اوکړو چه وتر څه حکم لری؟ هغه ورته اوفرمائيل چه ﴿ هي فريضة ﴾ هغه بيا سوال اوکړو چه فرض مونځونه څومره دی؟ امام صاحب ورته هم هغه جواب ورکړو چه پنځه دی، هغه بيا سوال اوکړو چه وتر څه حکم لری؟ نو هغه ورته اوفرمايېل ﴿ فريضة ﴾ هغه حيران شو او په دريم ځل ئې تپوس اوکړو چه فرض مونځونه څو دی؟ امام صاحب هم هغه جواب ورکړو هغه سړې په دې غصه شو او واپس لاړو ﴿ انت لا تحسن الحساب ﴾ چه تاسو ته خو د دوه او دوه څلورو حساب هم نه درځی، د امام صاحب مراد په فريضة سره واجب وو، په فرض او واجب کښې فرق ظاهر دې کوم باندې چه سائل پوهه نه شو هم په دې وجه ئې بار بار تپوس کولو هم دا خبره سيدنا عباده ﷺ ته پيښه شوې وه چه هغه هم د فرض او واجب ترمينځه فرق اونکړو، او ابو محمد ﷺ چه دا خبره کړې وه چه ﴿ الوتر واجب ﴾ نو دا قول د صحابی غير مدرک بالرائې مسئله کښې د کيدو د وجې نه په حکم کښې مرفوع دې او د سيدنا عباده ﷺ خبره د هغه په اجتهاد بناء وه، فالحمد لله على صحة مذهب ابى حنيفة.

**(د (كذب ابو محمد) په الفاظو باندې اشكال)**

دلته دا اشکال راځی چه عبادة ﴿ كذب ابو محمد ﴾ څنګه اووې دا کذب خو په عام خبرو کښې هم حرام دې پاتې لا دا چه په دين کښې اوويلې شی! نو اشکال دا دې چه يو صحابی د بل صحابی په باره کښې دومره سخته خبره څنګه اوکړه؟

**(جواب)** جواب دا دې چه کذب په دوه قسمه دې يو عمدا او يو بغير عمد، اصل کذب خو هغه دې کوم چه عمدا وی او هغه دلته مراد نه دې کذب بغير عمد چه د هغې مشهور تعبير خطاء دې دلته هغه مراد دې او د عربو په محاوره کښې داسې ډير کيږی چه کذب د خطاء په معنی کښې استعمالوی. يقال كذب سمعى وكذب بصرى، يعنی زما نه په کتلو او اوريدلو کښې غلطی اوشوه. قال الله تعالى (ما كذب الفؤاد ما رأى)

[٤٢٦]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْخُزَاعِيُّ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ غَنَّامٍ، عَنْ بَعْضِ أُمَّهَاتِهِ، عَنْ أُمِّ فَرْوَةَ، قَالَتْ: سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الْأَعْمَالِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "الصَّلَاةُ فِي أَوَّلِ وَقْتِهَا"، قَالَ الْخُزَاعِيُّ فِي حَدِيثِهِ: عَنْ عَمَّةٍ لَهُ يُقَالُ لَهَا: أُمُّ فَرْوَةَ، قَدْ بَايَعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، سُئِلَ.

**ترجمه:** د ام فروة نه روايت دې هغې ويلي دي: تپوس وشو د رسول الله ﷺ نه کوم په اعمالو کښې افضل دی؟ هغه ووېل: مونځ کول په اولنې وخت کښې، وئيلې دي خزاعی په خپل حديث کښې: د خپلې عمې (ترور) نه چې وئيل کيده هغې ته ام فروة يقيناً هغې بيعت کړې وو د رسول الله ﷺ سره، بيشکه پيغمبر ﷺ نه تپوس شوی وو. (يعنی د (سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) په ځائې (أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، سُئِلَ) دي

**تشريح: قوله:** ﴿ عن القاسم بن غنام عن بعض امهاته عن ام فروة ﴾ دا بعض امهات مجهوله ده هيڅ پته ئې نه لګی چه څوک ده او دا ام فروه د قاسم عمه (ترور) ده، وئيلې شوې دی چه دا ام فروه انصاريه ده او وئيلې شوې دی چه دا بنت ابی قحافه ده د ابوبکر صديق خور.

**قوله:** ﴿ قال الخزاعي في حديثه عن عمة يقال لها ام فروة ﴾ الخ... د مصنف دوه استاذان دی، محمد بن عبدالله او عبدالله بن مسلمه، مصنف ددې دواړو سندونو اختلاف بيانوی، پورته چه کوم د سند الفاظ راغلي دی هغه د عبدالله بن مسلمه دې او دا الفاظ د دويم استاذ دی.

## په سند حديث کښې اختلاف

ددې کلام په شرح کښې دوه احتمالات دی.

۱: په سند کښې صرف د لفظ عمه اضافه بيانول دی چه د خزاعی په سند کښې د ام فروه صفت عمه کيدل ذکر کړې شوې دی هم دغه شان يو بل صفت هم ﴿ قد بايعت النبي صلى الله عليه وسلم ﴾ د ام فروه دا دوه صفتونه عبدالله بن مسلمه نه دی ذکر کړی،

۲: احتمال ثانی دا دې چه د خزاعی په روايت کښې د قاسم بن غنام نه پس ﴿ عن بعض امهاته ﴾ مذکور نه دې بلکه قاسم براه راست د ام فروه نه روايت کوی په دواړو سندونو کښې د واسطې د ذکر او د واسطې د عدم ذکر فرق دې،

ددې حديث دريم سند بل دې کوم چه په مسند احمد کښې دې هغه داسې دې ﴿ عن القاسم بن غنام عن جدته الدنيا عن ام فروة ﴾ يعنی د قاسم او ام فروه ترمينځه واسطه په ځائې د ﴿عن بعض امهاته ﴾... ﴿ عن جدته الدنيا ﴾ اوس درې سندونه داسې شو.

۱: ﴿ عن القاسم بن غنام عن بعض امهاته عن ام فروه،

۲: عن القاسم بن غنام عن ام فروه،

۳: عن القاسم بن غنام عن جدته الدنيا عن ام فروة ﴾

---

[1]: سنن الترمذي/الصلاة ١٣(١٧٠)، (تحفة الأشراف: ١٨٣٤١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٧٥/٦، ٣٧٤، ٤٤٠) (صحيح)

## د وقت اول فضيلت او په هغې باندې کلام

**قوله:** ﴿ اى الاعمال افضل قال الصلاة فى اول وقتها ﴾ د رسول اللهﷺ نه د افضل اعمال په باره کښې تپوس اوشو چه کوم يو دې نو رسول اللهﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه فرض مونځ لره په اول وخت کښې ادا کول، ددې حديث نه جمهور خصوصا شوافعو په خپل مسلک باندې استدلال کړې دې چه تقريبا ټولو مونځونو لره په اول وخت کښې کول اولى دى د مونځونو په مستحب وختونو کښې اختلاف مخکښې تير شو، د احنافو د طرف نه ددې جواب دا دې چه د اول وخت نه مراد د جواز اول وخت نه دې بلکه د استحباب اول وخت دې يعنى د کوم مونځ چه کوم وخت مستحب دې هغه مونځ هم هغه وخت کول او يا دا اووئيلې شى چه دا عام مخصوص عنه البعض دې لهذا د کومو مونځونو په تاخير کښې چه ترغيب راغلې دې هغه ددې نه مستثنى دى هم دغه شان شوافعو د ابن عمر حديث کوم چه امام ترمذى په باب ما جاء فى الوقت الاول من الفضل کښې ذکر کړې دې نه استدلال کړې دې ﴿ الوقت الاول من الصلاة رضوان الله والوقت الاخر عفو الله ﴾ د دې حديث نه معلوميږى چه په مونځ کښې تاخير سراسر تقصير دې خو دا حديث بالاتفاق ضعيف دې ددې په سند کښې يو راوى دې يعقوب بن الوليد د چا چه امام احمد او نورو حفاظ حديث تکذيب کړې دې، امام بيهقى رحمه الله فرمائى چه دا حديث د ټولو طرق په اعتبار سره ضعيف دې.

## د افضل الاعمال مصداق او په هغې کښې د علماء کرامو اختلاف

په حديث الباب کښې فرمائيلې شوې دى چه مونځ په خپل اول مستحب وخت کښې کول افضل عمل دې پس د علماء کرامو په دې باندې اتفاق دې چه فرض مونځونه د هغې په وختونو کښې ادا کول په ټولو اعمالو کښې افضل دى، بيا ددې نه روستو د جمهورو رائې دا ده چه په علم دين کښې اشتغال افضل دې، د اشتغال بالنوافل نه. [1]خو په دې کښې اختلاف دې چه اشتغال بالعلم او جهاد کښې کوم يو افضل دې د جمهورو رائې دا ده چه په علم کښې مشغول کيدل افضل دى د جهاد نه او امام احمد رحمه الله فرمائى چه جهاد افضل دې خو اختلاف په نفل جهاد کښې دې او فرض جهاد بالاتفاق د اشتغال علم نه افضل دې، په افضل الاعمال کښې اختلاف او په هغې باندې بحث حضرت شيخ په لامع الدرارى جلد ثانى او د کتاب الجهاد په شروع کښې ليکلې دې هم دغه شان په هغې کښې ليکلې شوې دى چه هغه احاديث کوم چه په فضيلت د علم کښې راغلې دې اکثر دى د هغې نه کوم چه راغلې دى د جهاد په فضيلت کښې.

هم دغه شان دې واضحه وى چه چونکه په بعض احاديثو کښې ايمان ته افضل الاعمال وئيلې شوې دې په دې وجه علماء کرامو ليکلې دى چه په دې احاديثو کښې د اعمال نه مراد اعمال بدنيه دى، په اعمال قلبيه کښې د ټولو نه افضل ايمان او اعمال بدنيه کښې صلاة دې.

[1] البته دامام شافعى رحمه الله په نزد اشتغال بالنوافل افضل دې.

[۴۲۷]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عُمَارَةَ بْنِ رُؤَيْبَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَأَلَهُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْبَصْرَةِ، فَقَالَ أَخْبِرْنِي مَا سَمِعْتَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا يَلِجُ النَّارَ رَجُلٌ صَلَّى قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ، قَالَ: أَنْتَ سَمِعْتَهُ مِنْهُ؟ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، قَالَ: نَعَمْ، كُلَّ ذَلِكَ، يَقُولُ: سَمِعَتْهُ أُذُنَايَ وَوَعَاهُ قَلْبِي، فَقَالَ الرَّجُلُ: وَأَنَا سَمِعْتُهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ ذَلِكَ".

**ترجمه:** حدیث بیان کړې دې ابو بکر بن عُمارة بن رؤیبة د خپل پلار نه، هغه وئیلی دي: تپوس وکړو د هغه نه یو سړي د بصرې والو نه هغه وویل: خبر راکړه ماته په هغه څه چې تا اوریدلی د رسول الله ﷺ نه، هغه وویل: ما اوریدلی دی د رسول الله ﷺ نه چې هغه وئیل نه به داخلیږي اور ته هغه سړی چې مونځ وکړي مخکې د ختلو د نمر نه او مخکې د پریوتلو د نمر نه، هغه وویل: ایا تا دا خبره د نبي ﷺ نه آوریدلي ده؟ درې خل ئې دا جمله اووئیله)، هغه وویل: آو، هرځل به ئي وئیل: اوریدل کړي دي زما غوږونو او ساتلی دی هغې لره زما زړه، نو وویل: او ما اوریدلی دی د نبي ﷺ نه چې وئیل ئې دغه

[۴۲۸]()حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ أَبِي حَرْبِ بْنِ أَبِي الْأَسْوَدِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ فَضَالَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: عَلَّمَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَكَانَ فِيمَا عَلَّمَنِي "وَحَافِظْ عَلَى الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ، قَالَ: قُلْتُ: إِنَّ هَذِهِ سَاعَاتٌ لِي فِيهَا أَشْغَالٌ، فَمُرْنِي بِأَمْرٍ جَامِعٍ إِذَا أَنَا فَعَلْتُهُ أَجْزَأَ عَنِّي، فَقَالَ: حَافِظْ عَلَى الْعَصْرَيْنِ، وَمَا كَانَتْ مِنْ لُغَتِنَا، فَقُلْتُ: وَمَا الْعَصْرَانِ؟ فَقَالَ: صَلَاةٌ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَصَلَاةٌ قَبْلَ غُرُوبِهَا".

**ترجمه:** عبد الله بن فضالة د خپل پلار نه روایت کوي هغه وئیلي دي: ښودنه کړې ده ماته رسول الله ﷺ، پس وو په هغې کښې چې ماته ئې ښودنه کړې ده او حفاظت کوه د پنځو مونځونو. هغه وايي ما وویل: دې وختونو کښې زما په دې کښې کارونه دي ماته امر وکړه په یو جامع کار باندې کله چې زه هغه وکړم پوره کیږي زمانه، هغه وفرمائیل: حافظت د دوه عصرونو. دا زمونږ په لغت کښې نه وو، نو وویل: عَصْرَيْنِ څه شې دي؟ نبي ﷺ اوفرمائیل (دا دوه مونځونه دي) ي، مونځ کول مخکې د ختلو د نمر نه او بل مونځ کول مخکې د ډوبیدو د نمر نه.

**تشریح: قوله:﴿ حدثنا عمرو بن عون.... وحافظ على الصلوات الخمس قال : قلت: ان هذه ساعات لي فيها اشغال الخ ﴾** د حدیث مضمون دا دې چه فضاله لیثي ﷺ فرمائي چه کله زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې (په ظاهره په اسلام باندې د بیعت کولو دپاره) حاضر شوم نو ماته ئې د احکام دین تعلیم راکړو، او هم دغه شان ئې راته د صلوات خمسه د حفاظت حکم اوفرمائیلو یعنی ټولو مونځونو لره د هغې په وخت کښې کول. هغه په دې باندې عرض اوکړو چه یا رسول الله ﷺ دا چه د مونځونو کوم وختونه دي زما نه فارغ نه دي بلکه په دې کښې زه ډیر زیات کارونه کوم، لهذا ماته یو داسې عمل اوښایئ کوم چه زما دپاره کافي

[1]: صحیح مسلم/المساجد ۳۷ (۶۳۴)، سنن النسائي/الصلاة ۱۳ (۴۷۲)، ۲۱ (۴۸۸)، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۷۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۳۶/۴، ۲۶۱) (صحیح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۴۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۴۴/۴) (صحیح)

شي په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ حافظ على العصرين ﴾ هغه وائي چه زه د عصرين په معنى نه پوهيدم په دې وجه ما تپوس اوکړو چه د عصرين نه څه مراد دې نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د سحر مونځ او د مازيګر مونځ يعنى ته ددې دواړو مونځونو اهتمام کوه.

## په حديث باندې اشکال او د هغې تاويل

په دې حديث باندې قوى اشکال دې ځکه چه ددې نه په ظاهره کښې معلوميږى چه د هغه سړى دپاره صرف دوه مونځونه کول کافى دى، ددې علماء کرامو په دوه قسمه تاويل کړې دې، بيهقى فرمائى چه رسول الله ﷺ هغه صحابى ته فرمائيلې وو چه صلوات خمسه لره د هغې د اوقات مستحبه رعايت کولو سره کوه، هغه چه کله عذر پيش کړو چه زما دا اوقات خالى نه دى نو روستو ورته رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ښه کم از کم دوه مونځونو لره په خاص وخت کښې کوئ باقى مونځونو لره چه کله وخت ملاؤ شى وې کړه او دا مطلب نه دې چه صرف دوه مونځونه کول کافى دى، او دويم تاويل ددې حديث دا دې کوم چه علامه سيوطى رحمه الله اختيار کړې دې چه دا د رسول الله ﷺ د خصوصياتو نه ده دا خبره چه هغه د کوم امتى په حق کښې غواړى د هغه په فرائضو کښې تخفيف کولې شى، هم په دې وجه امام سيوطى رحمه الله دا حديث په خپل مشهور تاليف الخصائص الکبرى کښې راوړې دې هغه په دې سلسله کښې د مسند احمد صريح روايت ذکر کړې دې چه په هغې کښې دا دى چه يو سړى د رسول الله ﷺ په لاس باندې اسلام قبول کړو، په دې شرط باندې چه د دوه مونځونو نه علاوه به نور مونځونه نه کوى، نبى ﷺ د هغه دا شرط قبول کړو. والله تعالى اعلم

باقى دا ظاهره ده چه ددې حديث نه د سحر او مازيګر د مونځ ډير اهميت معلوميږى، هم دغه شان د بخارى په يو روايت کښې دى ﴿ من صلى البردين دخل الجنة ﴾ د بردين نه مراد هم دا دوه مونځونه دى.

[۴۲۹] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَلِيٍّ الْحَنَفِيُّ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْمَجِيدِ، حَدَّثَنَا عِمْرَانُ الْقَطَّانُ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، وَأَبَانُ، كِلَاهُمَا عَنْ خُلَيْدٍ الْعَصَرِيِّ، عَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خَمْسٌ مَنْ جَاءَ بِهِنَّ مَعَ إِيمَانٍ دَخَلَ الْجَنَّةَ: مَنْ حَافَظَ عَلَى الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ عَلَى وُضُوئِهِنَّ وَرُكُوعِهِنَّ وَسُجُودِهِنَّ وَمَوَاقِيتِهِنَّ، وَصَامَ رَمَضَانَ، وَحَجَّ الْبَيْتَ إِنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا، وَأَعْطَى الزَّكَاةَ طَيِّبَةً بِهَا نَفْسُهُ، وَأَدَّى الْأَمَانَةَ"، قَالُوا: يَا أَبَا الدَّرْدَاءِ، وَمَا أَدَاءُ الْأَمَانَةِ؟ قَالَ: الْغُسْلُ مِنَ الْجَنَابَةِ.

**ترجمه:** د ابو الدرداء رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلى دى، وئيلى دى رسول الله ﷺ پنځه شيان دې چا چې راتلل وکړل په هغې باندې د ايمان او يقين سره داخل به شى جنت ته، چا چې حفاظت وکړو د پنځو مونځونو په اودس د دوى او په رکوع د دوى او په سجدې ددې او په وقتونو د دې، او روژه ئې ونيوله د رمضان، او حج ئې وکړو د بيت الله که چيرى طاقت ئې وى هغې ته د لارې، او زکات ئې ورکړو چې خوشحاله وو په هغې باندې د هغه

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٩٣٠) (حسن)

نفس، او ادا ئې کړو امانت. خلقو تپوس اوکړو: اې ابو الدرداء! څه شي دی ادا کول د امانت، هغه ووئيل: غسل کول د جنابت نه

[۴۳۰]([1])حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ الْمِصْرِيُّ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، عَنْ ضُبَارَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي سُلَيْكٍ الْأَلْهَانِيِّ، أَخْبَرَنِي ابْنُ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: قَالَ سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ: إِنَّ أَبَا قَتَادَةَ بْنَ رِبْعِيٍّ أَخْبَرَهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: إِنِّي فَرَضْتُ عَلَى أُمَّتِكَ خَمْسَ صَلَوَاتٍ وَعَهِدْتُ عِنْدِي عَهْدًا أَنَّهُ مَنْ جَاءَ يُحَافِظُ عَلَيْهِنَّ لِوَقْتِهِنَّ أَدْخَلْتُهُ الْجَنَّةَ وَمَنْ لَمْ يُحَافِظْ عَلَيْهِنَّ فَلَا عَهْدَ لَهُ عِنْدِي".

**ترجمه:** سعيد بن المسيب وئيلی دی، چې ابو قتادة بن ربعي خبر راکړی دی، هغه وايي، وئيلي دي رسول الله ﷺ، وئيلي دي الله تعالى: بيشکه ما فرض کړي دی ستا په امت باندې پنځه مونځونه او ما وعده کړې ده د ځان سره يوه وعده بيشکه څوک چې راغي ماته چې حفاظت ئې کوه په دې باندې د وخت ددې زه به هغه جنت ته داخلوم، او چا چې حفاظت ونه کړو د هغې نو هغه کس لره وعده نشته زما سره.

## بَابُ إِذَا أَخَّرَ الْإِمَامُ الصَّلَاةَ عَنِ الْوَقْتِ

**باب دی کله چې وروسته کړي امام مونځ د وقت نه (نو څه کول پکار دي؟)**

### د ترجمة الباب تشريح :

يعنی که امام مونځ لره د مستحب وخت د تيريدو نه پس په تاخير سره کوي نو خلقو لره څه کلو پکار دی، په حديث کښې دا بيان کړې شوي دی چه په داسې صورت کښې انسان له پکار دی چه خپل مونځ جدا او مستحب وخت کښې اوکړی او د هغې نه روستو که په مسجد باندې ورتير شی نو د امام د مخالفت نه د بچ کيدو دپاره دې په مسجد کښې هم په جماعت سره مونځ اوکړی، دا دويم مونځ به نفل شی غرض دا چه په امام باندې دې نکير او د هغه مخالفت دې نه کوی، اصل کښې مونځ ورکول منصب دې د امام المسلمين يا د هغه چا چه هغه ئې متعين کړی، هم دغه شان په اسلامی ملکونو کښې د مسجدونو انتظام د حکومت د طرف نه وی نو د هم دغه شان صورت دپاره په حديث کښې دا حکم فرمائيلې شوې دې، او په ائمه کرامو باندې د اعتراض نه منع کړې شوې ده ددې دپاره چه ملکی نظام صحيح قائم پاتې شی او فتنه جوړه نه شی او که صورت حال دا وی چه د مسجدونو انتظام د امام مقرر کول وغيره اهل محله په خپل اختيار سره کوی لکه چه نن صبا زمونږ په زمانه کښې کيږی نو بيا ظاهره ده چه د هغه دپاره دا حکم نه دې

[۴۳۱]([2])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَبِي عِمْرَانَ يَعْنِي الْجَوْنِيَّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الصَّامِتِ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَبَا ذَرٍّ، كَيْفَ أَنْتَ إِذَا كَانَتْ عَلَيْكَ أُمَرَاءُ يُمِيتُونَ الصَّلَاةَ؟ أَوْ قَالَ: يُؤَخِّرُونَ الصَّلَاةَ. قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَمَا تَأْمُرُنِي؟ قَالَ: صَلِّ الصَّلَاةَ لِوَقْتِهَا، فَإِنْ أَدْرَكْتَهَا مَعَهُمْ فَصَلِّهَا، فَإِنَّهَا لَكَ نَافِلَةٌ".

[1]: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٩٤ (١٤٠٣)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٨٢) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/المساجد ٤١ (٦٤٨)، سنن الترمذي/الصلاة ١٥ (١٧٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٥٠ (١٢٥٦)، (تحفة الأشراف: ١١٩٥٠)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الإمامة ٢ (٧٨٠)، ٥٥ (٨٦٠)، مسند احمد (٥/١٦٨، ١٦٩)، سنن الدارمي/الصلاة ٢٥ (١٢٦٤) (صحيح)

**ترجمه:** ابو ذر ﷛ وئيلي دي، چې ويلي دې ماته رسول الله ﷺ: اې ابو ذر! ستا به څنګه حال کله وي کله چې په تا باندې داسې حاکمان مسلط شي چې وژني به مونځ لره؟ او يا هغه وفرمائيل: وروسته کوي به مونځ؟ نو ما وويل: اې د الله رسوله! په څه شي باندې حکم کوې ماته، هغه وفرمائيل: مونځ کوه په خپل وخت که تا بياموندلو د هغوی سره نو هغه هم کوه بيشکه هغه ستا لپاره نفل دی.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا مسدد... يا اباذر كيف انت اذا كانت عليك امراء يميتون الصلاة الخ ﴾ رسول الله ﷺ ابوذر ﷛ ته هم هغه خبره ارشاد فرمائي کومه چه پورته په ترجمة الباب کښې ذکر ده چه که په تاسو باندې داسې اميران مسلط او مقرر شي، نو تاسو به په دې صورت کښې څه کوئ.

## شرح حديث

**قوله:**﴿ يميتون الصلاة ﴾ په ظاهره کښې ئې معنی د قضاء کولو ده خو امام نووی ﷫ ليکی چه ددې نه مراد قضاء کولو نه دی بلکه په غير مستحب وخت کښې کول مراد دی، هغه دا هم فرمائيلې دی چه د امراء نه د مونځ قضاء کول منقول نه دی خو حافظ ابن حجر او علامه عينی فرمائی چه د اماتة الصلاة ظاهری معنی مونځ قضاء کول دی او د بنو اميه د اميرانو نه د مونځ قضاء کول بلکه ترک کول ثابت دی لکه حجاج بن يوسف او د هغه امير وليد بن عبدالملک به مونځ قضاء کولو. (كذا في الفيض السمائي)

**قوله:**﴿ قلت يا رسول الله فما تامرني ﴾ سيدنا ابوذر ﷛ عرض اوکړو چه زه به په داسې وخت کښې څه کوم، رسول الله ﷺ دې باره کښې هغه ته هدايت اوفرمائيلو خو واضحه دې وی چه ابوذر غفاری ﷛ داسې زمانې ته نه دې پاتې شوې هغه د سيدنا عثمان ﷛ په دور خلافت ۳۲هـ کښې وفات شوې دې، ددې قسم اميرانو دور پورې هغه ژوندې نه دې پاتې شوې ددې نه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ ته دا معلومه وه چه په راتلونکې زمانه کښې به دا قسم اميران پيدا کيږی خو د صحيح وخت تعيين د هغه په علم کښې نه وو، هم دغه شان په احاديث الفتن کښې ډير څيزونه داسې ذکر شوې دی چه په هغې کښې رسول الله ﷺ پيشن ګوئی کړې ده، خو د صحيح وخت تعيين رسول الله ﷺ هم نه دې کړې څکه چه د غيبو علم رسول الله ﷺ ته نه وو، د کومو څيزونو علم چه الله پاک هغه تهورکړې وو هغه د رسول الله ﷺ په علم کښې راغلل او د کومو څيزونو خبر چه نه وو ورکړې شوې د هغې نه بې خبره پاتې شو.

**قوله:**﴿ فانها لک نافلة ﴾ يعنی دا دويم مونځ کوم چه تا په جماعت سره کړې دې دا به ستا دپاره نفل وی، دلته څو بحثونه اومسائل دی چه په هغې باندې څان پوهه کول ضروری دی.

## د حديث متعلق مسائل فقهية

### البحث الاول:

د اعادة الصلاة روايات څنګه چه مصنف دلته بيان کړی دی ددې په شان روايات وړاندې په ابواب الامامة والجماعة کښې هم راروان دی، دا تکرار ولې دې؟ جواب دا دې چه د اعاده

صلاة نوعيت په دوارو ځايونو کښې مختلف دې وراندې چه د اعادې کوم روايات راروان دی د هغې نوعيت دا دې چه يو سړی په دې خيال باندې چه په مسجد کښې مونځ شوې دې په خپل کور او خپل منزل کښې منفردا مونځ اوکړو، خو روستو چه کله مسجد ته لاړو نو معلومه شوه چه لا مونځ نه دې شوې، لهذا په دې دواړه قسم رواياتو او ابواب کښې تکرار نشته.

## البحث الثاني :

اعاده به د ټولو مونځونو کولې شی يا د بعض نو دا مسئله مختلف فيه ده، د امام شافعي رحمه الله او احمد رحمه الله په نزد به د ټولو مونځونو اعاده کولې شی البته امام احمد رحمه الله فرمائی چه د ماښام په مونځ کښې دې د يو رکعت اضافه اوکړې شی او د امام مالک رحمه الله په نزد د ماښام نه علاوه د باقی څلورو وارو مونځونو اعاده کولې شی او د احنافو په نزد اصولا اعاده صرف د دوه مونځونو ده ماسپخين او ماسخوتن ځکه چه دا دويم مونځ به نفل وی او نفل مونځ د سحر او مازيګر نه پس مکروه دې او د ماښام د مونځ اعاده په دې وجه نشته چه نفل مونځ ثلاثی نه وی بلکه ثنائی وی يا رباعی وی، د يو رکعت اضافه چه اوکړې شی نو د امام مخالفت لازميږی، لهذا د هغوی په نزد صرف د دوه مونځونو اعاده پاتې شوه.

## البحث الثالث :

په دې دوارو مونځونو کښې به کوم يو مونځ فرض وی او کوم نفل، د ائمه ثلاث چه په هغوی کښې احناف هم دی اولنې مونځ فرض او دويم به نفل وی. وعند المالكية احداهما لا على التعيين والتعيين، مفوض الى الله.

هم دغه شان رائې د بعض شوافعو ده چه کوم يو مونځ زيات غوره او کامل وی هغه فرض دې او دويم نفل ﴿ الفرض اكملهما ﴾ او د امام اوزاعی رائې د جمهور د مسلک برعکس ده، اول مونځ نفل دې او دويم فرض، او د شعبی مسلک عجيبه دې چه دواړه به فرض شمارلې شی.

په دې مسئله کښې د جمهور دليل حديث الباب دې ﴿ فانها لک نافلة ﴾ هم دغه شان ددې نه په وراندې روايت کښې راځی ﴿ واجعل صلاتک معهم سبحة ﴾ چه په جماعت سره چه دې کوم مونځ کړې دې هغه نفل اومنه او د امام اوزاعی دليل په ابواب الجماعة کښې چه کوم روايت راروان دې هلته يو روايت دې ﴿ تكن لک نافلة وهذه مكتوبة ﴾ په دې روايت کښې روستو مونځ ته فرض وئيلې شی، امام نووی رحمه الله او بيهقی رحمه الله ددې جواب دا کړې دې ﴿ هذه رواية شاذة مخالفة للثقات ﴾ او يا به دا وئيلې شی چه ﴿ هذه ﴾ اشاره په ځائې د اقرب د ابعد يعنی صلاة اول طرف ته ده.

## حديث الباب په ظاهره کښې د احنافو خلاف دې

د دې نه پس په دې باندې ځان پوهه کړه چه په احاديث الباب کښې مطلقا د اعاده صلاة حکم دې او د احنافو په نزد صرف د دوه مونځونو اعاده کيدې شی کما سبق... لهذا دا روايت د احنافو خلاف دې، جواب ۱: دا کيدې شی چه دا روايات په نهی عن الصلاة فی الاوقات المکروهة نه مخکښې وی، جواب ۲: د نفلو ممانعت په هغه اوقاتو کښې هله دې

چه هر کله مونځ کول په خپل اختیار سره وی او دلته چه کوم دویم مونځ نفل کوی شی هغه مصلحة او ضرورة دي والضرورات تبیح المحضورات. (قاله علی القاری رحمه الله) الحمد لله متعلقه مباحث پوره شو.

[۴۳۲]()حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِبْرَاهِيمَ دُحَيْمٌ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنِي حَسَّانُ يَعْنِي ابْنَ عَطِيَّةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَابِطٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ الْأَوْدِيِّ، قَالَ: قَدِمَ عَلَيْنَا مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ الْيَمَنَ رَسُولُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْنَا، قَالَ: فَسَمِعْتُ تَكْبِيرَهُ مَعَ الْفَجْرِ رَجُلٌ أَجَشُّ الصَّوْتِ، قَالَ: فَأُلْقِيَتْ عَلَيْهِ مَحَبَّتِي، فَمَا فَارَقْتُهُ حَتَّى دَفَنْتُهُ بِالشَّامِ مَيِّتًا، ثُمَّ نَظَرْتُ إِلَى أَفْقَهِ النَّاسِ بَعْدَهُ، فَأَتَيْتُ ابْنَ مَسْعُودٍ فَلَزِمْتُهُ حَتَّى مَاتَ، فَقَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَيْفَ بِكُمْ إِذَا أَتَتْ عَلَيْكُمْ أُمَرَاءُ يُصَلُّونَ الصَّلَاةَ لِغَيْرِ مِيقَاتِهَا؟" قُلْتُ: فَمَا تَأْمُرُنِي إِنْ أَدْرَكَنِي ذَلِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: "صَلِّ الصَّلَاةَ لِمِيقَاتِهَا، وَاجْعَلْ صَلَاتَكَ مَعَهُمْ سُبْحَةً".

**ترجمه:** عمرو بن میمون الاَودی ﷺ وائی، چې راغي مونږ ته معاذ بن جبل چې دا قاصد د رسول الله ﷺ وو، هغه وائی: ما واوریده تکبیر دهغه په مونځ د سحر کښې، دا يو سړی وو سخت اواز والا، هغه وايي: ما وغورځولو په هغه باندې خپل محبت زه ترېنه جدا نه شوم ترڅو چې مې هغه دفن کړو په شام کښې، بیا ما وکتل ډېر د خلقو ته وروسته د هغه نو زه راغلم ابن مسعود ته د هغه سره وم ترڅو چې مړ شو، نو ماته وویل رسول الله ﷺ: ستاسو به څنګه حال وی کله چې راشی په تاسو باندې داسې حاکمان چې مونځ به کوی بغیر د خپلو وختونو نه. ما وویل: ماته څه حکم کوئ که زه هغوی بیاموندلم ای د الله رسوله! هغه وفرمائیل: مونځ کوه په خپل وخت کښې او وګڼره خپل مونځ د هغوی سره نفلي.

## مضمون حدیث

**قوله:** حدثنا عبدالرحمن بن ابراهیم... قدم علینا معاذ بن جبل الخ... مضمون حدیث دا دې چه عمرو بن میمون فرمائی چه معاذ بن جبل ﷺ زمونږ خواته یمن ته تشریف راوړلو، د رسول الله ﷺ محبوب سیدنا معاذ ﷺ چه کله د سحر په وخت باندې یمن ته داخلیدو نو لوړ په اوچت اواز باندې الله اکبر وئیلو سره داخل شو د هغه دا اواز ما په خپلو غوږونو باندې واوریدو، د سیدنا معاذ ﷺ آواز ډېر تیز وو، هم په دې خپل اواز سره هغه الله اکبر اووې، ددې تکبیر په اواز اوریدلو سره په ما باندې داسې اثر اوشو چه زما په زړه کښې د هغه محبت واقع شو او زه په هغه باندې مئین شوم او همیشه د هغه په صحبت کښې پاتې شوم او د هغه نه کله هم جدا نه شوم ترڅو چې هغه ما په خپلو لاسونو سره په ملک شام کښې دفن کړو، بیا ما سوچ اوکړو چه دې څو لاړو اوس د یو بل فقیه صحابی صحبت اختیارول پکار دی چه باقی ژوند د هغه سره تیر کړې شی نو ما د صحبت دپاره د عبدالله بن مسعود ﷺ انتخاب اوکړو او زه هغه سره اوم ترڅو چې هغه هم وفات شو. رضی الله تعالی عنه.

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۴۸۷)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المساجد ۵ (۵۳۴)، سنن النسائي/الإمامة ۲ (۷۸۰)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۵۰ (۱۲۵۵)، مسند احمد (۱/۳۷۹، ۴۵۵، ۴۵۹) (حسن صحيح)

[۴۳۳]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ قُدَامَةَ بْنِ أَعْيَنَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ أَبِي الْمُثَنَّى، عَنِ ابْنِ أُخْتِ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ الْمَعْنَى، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ أَبِي الْمُثَنَّى الْحِمْصِيِّ، عَنْ أَبِي أُبَيٍّ ابْنِ امْرَأَةِ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّهَا سَتَكُونُ عَلَيْكُمْ بَعْدِي أُمَرَاءُ تَشْغَلُهُمْ أَشْيَاءُ عَنِ الصَّلَاةِ لِوَقْتِهَا حَتَّى يَذْهَبَ وَقْتُهَا، فَصَلُّوا الصَّلَاةَ لِوَقْتِهَا، فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أُصَلِّي مَعَهُمْ؟ قَالَ: نَعَمْ، إِنْ شِئْتَ، وَقَالَ سُفْيَانُ: إِنْ أَدْرَكْتُهَا مَعَهُمْ أُصَلِّي مَعَهُمْ؟ قَالَ: نَعَمْ، إِنْ شِئْتَ".

**ترجمه:** د عبادة بن الصامت ﷺ نه روايت دې هغه وئيلى دى، چې وئيلى دى رسول الله ﷺ شان دادى چې وې به په تاسو باندې اميران زمانه وروسته، مشغوله کوى به دوى لره څه شيان د مانځه نه په خپل وخت کښې تردې چې وخت ئې لاړ شي، نو تاسو مونځ کوئ په خپل وخت کښې. پس ووئيل يو سړي: اې د الله رسوله! ايا زه مونځ کوم د هغوى سره؟ هغه وفرمائيل: آو، که چرې ستا خوښه وي. او وئيلى دى سفيان: که چرې ما هغه ومونده لو د هغوى سره ايا زه وکړم د هغوى سره؟ هغه ووئيل: آو که چرې ستا خوښه وي.

۳: ﴿ حدثنا محمد بن قدامة.... عن ابن اخت عبادة... ﴾ دا غلط دې صحيح هغه دې کوم چه وړاندې راروان دې. عن ابن امراة عبادة.

[۴۳۴]()حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو هَاشِمٍ يَعْنِي الزَّعْفَرَانِيَّ، حَدَّثَنِي صَالِحُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ وَقَّاصٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَكُونُ عَلَيْكُمْ أُمَرَاءُ مِنْ بَعْدِي يُؤَخِّرُونَ الصَّلَاةَ، فَهِيَ لَكُمْ وَهِيَ عَلَيْهِمْ فَصَلُّوا مَعَهُمْ مَا صَلَّوْا الْقِبْلَةَ".

**ترجمه:** د قبيصة بن وقاص نه روايت دې هغه وئيلى دى چې وئيلى دى رسول الله ﷺ وې به په تاسو باندې حاکمان زمانه وروسته چې وروسته کوى به مونځ، دغه به ستاسو لپاره (خير اوبرکت) وى، او دغه به په هغوى باندې وبال وي، مونځ کوئ د دوى سره تر څو چې دوى مونځ کوى قبلې ته.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا ابو الوليد الطيالسي.... فهي لكم ﴾ يعنى کوم اميران چه په تاخير سره مونځ کوى نو ستا پکښې هيڅ نقصان نشته بلکه ستا دپاره خو د هغوى سره کول غوره دى (ځکه چه زمونږ د طرف نه تاته هدايت هم دا دې) وهي عليهم او دا د تاخير والا مونځ د هغوى په حق کښې نقصانى دې، ځکه چه د هغوى دا تاخير په خپل اختيار او غفلت سره دې.

**قوله:** ﴿ فصلوا معهم ما صلوا القبلة ﴾ يعنى تاسو د هغه تابعدارى کوئ د هغوى سره مونځ کوئ د هغوى خلاف د بغاوت جهنډې مه پورته کوئ ترڅو پورې چه دا اميران د مسلمانانو د قبلې طرف ته مونځ کوى يعنى ترڅو پورې چه په هغوى کښې د اسلام علامات بيا موندلې شى او د دائره اسلام نه خارج نه شى.

[1]: سنن ابن ماجه/الصلاة ۱۵۱ (۱۲۵۷)، (تحفة الأشراف: ۵۰۹۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۱۵/۵، ۳۲۹) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۷۰) (صحيح)

# بَابٌ فِي مَنْ نَامَ عَنِ الصَّلَاةِ، أَوْ نَسِيَهَا

**باب دې په بيان د هغه چا کې چې اوده شي د مونځ وخت کښې او يا ترې نه هېر شي (نو څه به کوي)**

يعنى د مونځ په وخت کښې اوده پاتې شي يا مونځ ترې په خپل وخت کښې کول هير شي. نو په دې صورت کښې څه حکم دې په نسيان يا نوم سره مونځ ساقط کيږي يا نه؟

## د واقعة ليلة التعريس په تعدد کښې د علماء کرامو اختلاف

په دې باب کښې مصنف رحمه الله د ليلة التعريس واقعه د متعدد صحابه کرامو په رواياتو او مختلف طرق سره په تفصيل سره ذکر فرمائيلې ده، د حضرات محدثين ترمينځه په دې کښې اختلاف دې چه دا واقعه صرف يو ځل پيښه شوې ده يا ډير کرته، اصيلى يو محدث دې د هغه رائې دا ده چه په دې کښې تعدد نشته صرف يو ځل پيښه شوې ده په داسې حال کښې چه رسول الله ﷺ د غزوه حنين نه واپس کيدو، او اکثر محدثين چه په هغوى کښې قاضى عياض، حافظ ابن حجر او علامه سيوطى رحمهم الله وغيره د تعدد قائل دى، د ابن العربى رائې دا ده چه دا واقعه درې کرته پيښه شوې ده، ظاهرا د احاديثو نه هم تعدد فهم کيږي ځکه چه د بعض رواياتو نه معلوميږي چه دا واقعه د غزوه خيبر په سفر کښې راپيښه شوې وه او په بعض کښې د حديبيه ذکر دې او په بعض طريق کښې د تبوک او په بعض کښې د حنين، او دا ټول روايات په هم دې کتاب سنن ابى داود کښې راروان دى، هم دغه شان په بعض رواياتو کښې دى چه اول بيداريدونکې ابوبکر صديق رضي الله عنه وو او په بعض کښې رسول الله ﷺ وو او په بعض کښې دى چه ذو مخبر صحابى وو، لهذا په واقعه کښې د تعدد تسليم کولو نه بغير جمع بين الروايات ګرانه ده.

[٤٣٥] ([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حِينَ قَفَلَ مِنْ غَزْوَةِ خَيْبَرَ فَسَارَ لَيْلَةً حَتَّى إِذَا أَدْرَكَنَا الْكَرَى عَرَّسَ، وَقَالَ لِبِلَالٍ: اكْلَأْ لَنَا اللَّيْلَ، قَالَ: فَغَلَبَتْ بِلَالًا عَيْنَاهُ وَهُوَ مُسْتَنِدٌ إِلَى رَاحِلَتِهِ، فَلَمْ يَسْتَيْقِظِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا بِلَالٌ وَلَا أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِهِ حَتَّى إِذَا ضَرَبَتْهُمُ الشَّمْسُ، فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَّلَهُمُ اسْتِيقَاظًا، فَفَزِعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا بِلَالُ، فَقَالَ: أَخَذَ بِنَفْسِي الَّذِي أَخَذَ بِنَفْسِكَ، بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَاقْتَادُوا رَوَاحِلَهُمْ شَيْئًا، ثُمَّ تَوَضَّأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَمَرَ بِلَالًا فَأَقَامَ لَهُمُ الصَّلَاةَ وَصَلَّى بِهِمُ الصُّبْحَ، فَلَمَّا قَضَى الصَّلَاةَ، قَالَ: مَنْ نَسِيَ صَلَاةً فَلْيُصَلِّهَا إِذَا ذَكَرَهَا، فَإِنَّ اللَّهَ تَعَالَى، قَالَ: أَقِمِ الصَّلَاةَ لِلذِّكْرَى"، قَالَ يُونُسُ: وَكَانَ ابْنُ شِهَابٍ يَقْرَؤُهَا كَذَلِكَ، قَالَ أَحْمَدُ: قَالَ عَنْبَسَةُ يَعْنِي عَنْ يُونُسَ، فِي هَذَا الْحَدِيثِ: لِذِكْرِي، قَالَ أَحْمَدُ: الْكَرَى النُّعَاسُ.

**ترجمه:** د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې، بيشکه رسول الله ﷺ کله چې واپس شو د غزا د خيبر نه نو مزل ئې وکړو د شپې تردې چې راګير کړلو مونږ لره خوب نو هلته ئې پړاو واچولو، او ويې وئيل بلال ته: څوکيدارې کوه زمونږ، هغه وايي: غالبې شوې په بلال باندې سترګې د هغه، او هغه تکيه لګوله خپلې اوښې ته، رابيدار نه شو نبى ﷺ او نه

[1] ): صحيح مسلم/المساجد ٥٥ (٦٨٠)، سنن ابن ماجه/الصلاة ١٠ (٦٩٧)، (تحفة الأشراف: ١٣٣٢٦)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/التفسير ٢٠ (٣١٦٣)، سنن النسائي/المواقيت ٥٣ (٦١٩، ٦٢٠)، موطا امام مالك/وقوت الصلاة ٦ (٢٥ مرسلا) (صحيح)

بلال او نه يو كس د ملګرو د ه غه تردې چې ولګيدو په دوى باندې نمر، نو وو رسول الله ﷺ اولني كس د دوى نه چې رابيدارئ كېښې، نو ويريدو رسول الله ﷺ هغه وويل: اې بلال! نو هغه وويل: اخستي وو زما نفس هغه څه چې ستا نفس ئې اخستى وو زما پلار او مور دې د تانه قربان شي اى د الله رسوله! نو هغوى لرې كړلې خپلې سورلئ لګ شان، بيا اودس وكړو نبى ﷺ او امر ئې وكړو بلال ته د اقامت او دسحر مونځ ئې وكړو د وى ته، هر كله ئې چې مونځ پوره كړو، هغه وويل: د چانه چې مونځ هېر شي نو هغه دې وكړى كله چې ورته ياد شي، بيشكه الله تعالى ويلى دي: (اقم الصلاة لذكري) قائم كړه مونځ په وخت د ياداشت زما كېښې. وئيلى دى يونس: او وو ابن شهاب چې كولو به ئې همدغه رنګه (لِلذِّكرَى). وئيلى دى احمد: وئيلى دى عنبسة يعنى د يونس په دې حديث كېښې (لِذِكرِي) وئيلى دى احمد: كرى نعاس خوب ته وائى

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا احمد بن صالح... حتى اذا ادركنا الكرى ﴾ او ﴿ادركنا﴾ د جمع متكلم صيغه ده ده بلكه د واحد مذكر صيغه ده او نا ضمير منصوب متصل دې لكه ﴿ حدثنا واخبرنا ﴾ او ﴿الكرى ﴾ په تركيب كېښې فاعل دې د ﴿ كرى ﴾ تفسير وړاندې خپله په كتاب كېښې ﴿ نعاس﴾ راروان دې يعنى كله چه مونږ ته خوب راتلو ﴿عرس ﴾ تعريس وئيلې شى د مسافر په تلو تلو كېښې د شپې په اخرى حصه كېښې د ارام دپاره نزول كول يعنى په يو منزل باندې پړاؤ اچول، چه د مونځ د وخت نه مخكښې لږ ساعت ارام اوكړى او بيا په نشاط سره مونځ ادا كړې شى هم ددې نوم تعريس دې ﴿ وقال لبلال: اكلا لنا الليل ﴾ د رسول الله ﷺ معمول وو چه كله به هغه په سفر كېښې يو ځائې كېښې تعريس كولو نو د سفر په ملګرو كېښې به ئې يو ويخ پاتې كيدو باندې مامور كړو ددې دپاره چه هغه ويخ پاتې كيدو سره د پوره قافلې حفاظت او نګرانى اوكړى او په صبا كيدو باندې د مونځ دپاره نور خلق بيدار كړى، وړاندې دلته په روايت كېښې دى چه سيدنا بلال ﷺ چونكه د بيدار اوسيدو ذمه دارى اخستلې وه نو هغه داسې اوكړل چه خپله سورلى ئې كينوله او په هغې باندې تكيه لګولو سره د مشرق طرف ته خپل رخ كولو سره كيناستلو ددې دپاره چه د صبا رڼرا كومه چه د مشرق په طرف كېښې ښكاره كيږى هغه د سترګو په وړاندې وى، خو داسې اوشو چه اتفاقى هغه هم اوده شو تردې چه صبا راختلو سره د مونځ وخت ختم شو او نمر راوختلو او په دې روايت كېښې دا دى چه د ټولو نه اول رسول الله ﷺ بيدار شو او رسول الله ﷺ بلال ﷺ ته اواز كولو سره اوفرمائيل بلال! صرف دومره ئې اوفرمائيل. مطلب ظاهر وو چه دا تا څه اوكړل، په دې باندې هغه عرض اوكړو چه يا رسول الله! زما مور او پلار دې په تا باندې قربان وى زه هم هغه ذات اوده كړم چا چه تاسو اوده كړى وئ، او د بخارى په روايت كېښې دا هم دى چه رسول الله ﷺ په صريح الفاظو باندې د بلال ﷺ عذر قبول كړو ﴿ ان الله قبض ارواحكم حيث شاء وردها عليكم حين شاء ﴾ په دې باندې بنده ته د محمود او اياز قصه راياديږى د ګران قيمت والا جوهر د ماتولو كوم چه اياز د بادشاه سلامت په حكم باندې فورا مات كړې وو او بيا هغوى تپوس اوكړو چه دا تا څه كړې دى نو په دې باندې د آداب شاهى مناسب فورى

عرض اوکړو چه زما نه قصور اوشو معافي غواړم، دا واقعه خلق اګر چه د ایاز په مناقبو کښې شمار کوی خو د بلال رضی الله عنه په طرز عمل کښې چه کوم صداقت او صفائی ده هغه په دې کښې چرته ده کما لا یخفی، هم دا هغه واقعه ده کومه چه د لیلة التعریس په نوم باندې مشهوره ده چه په هغې کښې د رسول الله ﷺ او پوره قافلې نه د سحر مونځ قضاء شوې وو.

﴿ وامر بلالا فاقام لهم الصلاة ﴾ په دې موقع باندې رسول الله ﷺ د سحر مونځ په جماعت سره ادا اوفرمائیلو د اذان او اقامت په باره کښې روایات مختلف دی په بعض کښې د دواړو ذکر دې لکه چه وړاندې به په روایت کښې راشی او په بعض کښې صرف اقامت لکه چه په دې حدیث کښې بله مسئله هم مختلف فیه ده.

## د قضاء مونځ په جماعت او اذان او اقامت کښې اختلاف

د احنافو او حنابله په نزد د قضاء شوې مونځونو دپاره اذان او اقامت دواړه مشروع دی او د امام شافعی رحمه الله قول قدیم هم دا دې او هم دا د هغه د اصحابو په نزد راجح ده او د هغوی قول جدید دا دې چه د فائته دپاره صرف اقامت دې، اذان نشته، او هم دا مذهب دې د امام مالک، هم دغه شان ددې واقعې نه معلومه شوه چه قضاء مونځ دپاره جماعت مسنون دې لکه چه د جمهورو او ائمه اربعه مذهب دې په دې کښې د لیث بن سعد اختلاف دې، هغوی ددې قائل نه دی، امام بخاری د قضاء مونځ دپاره د جماعت مستقل باب تړلې دې او په هغې کښې ئې هم دا حدیث ذکر فرمائیلې دې. ﴿ من نسی صلاة فلیصلها اذا ذکرها فان الله تعالی قال: اقم الصلاة للذکری ﴾ یعنی د کوم سړی نه چه مونځ هیر شو نو هغه له پکار دی چه کوم وخت ورته مونځ رایاد شی هم هغه وخت دې هغه اوکړی ځکه چه الله پاک فرمائیلې دی چه مونځ قائم کړئ د هغې د رایادیدو په وخت.

دلته دوه قرائتونه دی یو ﴿ لذکری ﴾ په یاء متکلم سره او دویم ﴿ للذکری ﴾، ذکری په اصل کښې مصدر دې او الف لام په دې کښې د مضاف الیه په عوض کښې دې او لام په معنی د وخت دې، لهذا د ﴿ للذکری ﴾ معنی ﴿ وقت ذکر الصلاة ﴾ شوه چه کوم وخت مونځ رایاد شی، دلته په روایت کښې هم دا دویم قرات منقول دې، او هم په دې سره تقریب [1] هم تام کیدې شی، اولنې قرآت دلته نه منطبق کیږی لکه چه ظاهر دې.

## د حدیث متعلق مسائل فقهیه او اختلاف د علماء کرامو

په دې حدیث کښې څو مسئلې دی چه په هغې کښې بعض اوس تیرې شوې او بعض باقی دی. ۱: قضاء الصلاة فی الاوقات المنهیة... د ائمه ثلاثه په نزد جائز دې او د احنافو په نزد په دې کښې تفصیل دې چه دا اوقات منهیه په دوه قسمه دی یو هغه چه په هغې کښې مطلقا مونځ کول جائز نه دی نه قضاء او نه نفل هغه درې دی، طلوع، غروب، د استواء وخت او دوه وختونه داسې دی چه په هغې کښې نوافل منع او قضاء مونځ جائز دې، یعنی پس د مازیګر او پس د سحر نه. ۲: دویمه مسئله ترتیب بین الوقتیة والفائتة دې پس د ائمه ثلاثه

---

[1] د دلیل په دعوی باندې انطباق.

په نزد دا ترتیب واجب دې چه اول دې قضاء مونځ اوکړې شی د هغې نه روستو وقتیه، د امام شافعی او اهل ظواهر په دې کښې اختلاف دې د هغوی په نزد دا ترتیب واجب نه دې خو د جمهورو په نزد دا ترتیب په کثرت فوائت سره ساقط کیږی او د کثرت په مصداق کښې اختلاف دې، د بعض علماء کرامو په نزد حد قلت د څلورو مونځونو پورې دې که پنځه شی نو هغه کثیر دی او د احنافو مسلک دا دې چه پنځو پورې قلیل دی ددې نه زیات کثیر دی، دغه شان په دې کښې هم اختلاف دې چه د وخت په تنګ والی سره ترتیب ساقط کیږی یا نه، د اکثرو په نزد ساقط کیږی او د مالکیانو په نزد نه البته د نسیان په وجه باندې د ټولو په نزد ساقط کیږی، جمهور علماء کوم چه د ترتیب د وجوب قائل دی هغه په دلیل کښې پیش کوی چه رسول الله ﷺ په غزوه خندق کښې څلور مونځونه فوت شوې دی نو رسول الله ﷺ هغه په ترتیب سره ادا فرمائیلې وو، هم دغه شان په یوه بله موقع باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ صلوا کما رایتمونی اصلی ﴾ ۳: دلته یوه مسئله بله ده هغه دا چه حدیث الباب خو دا دې ﴿ من نسی صلاة ﴾ خو که څوک قصدا مونځ لره په خپل وخت کښې اونکړی نو په دې صورت کښې هم قضاء واجب ده یا نه، جمهور علماء اربعه وائی چه په دې صورت کښې قضاء په طریق اولی واجب ده، هرکله چه نسیان (هیره) سره مونځ نه ساقطیږی چه دا په اکثرو مسائلو کښې شرعی عذر ګرځولې شوې دې نو بیا عمداً د ترک په صورت کښې خو هیڅ عذر هم نشته په دې کښې به قضاء ولې واجب نه وی او دا وجوب به په طریقه د دلالت النص وی نه په طریقه د قیاس، د اهل ظواهر په دې کښې اختلاف دې او د شیخ ابن تیمیه میلان هم دې طرف ته دې هغه فرمائی چه په حدیث کښې د نسیان قید دې لهذا د عمدا ترک په صورت کښې به قضاء واجب نه وی ګویا عمدا ترک کول داسې سخت جرم دې چه د هغې تلافی ممکن نه ده، په منهل کښې لیکی چه بعض صحابه کرام هم ددې قائل وو لکه عمر، عبدالله بن عمر، سعد بن ابی وقاص، ابن مسعود، سلمان فارسی رضی الله عنهم.

[۴۳۶] (۱)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، فِي هَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَحَوَّلُوا عَنْ مَكَانِكُمُ الَّذِي أَصَابَتْكُمْ فِيهِ الْغَفْلَةُ، قَالَ: فَأَمَرَ بِلَالًا، فَأَذَّنَ وَأَقَامَ وَصَلَّى، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ مَالِكٌ، وَسُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ مَعْمَرٍ، وَابْنِ إِسْحَاقَ، لم يذكر أحد منهم الأذان في حديث الزهري هذا ولم يسنده منهم أحد، إلا الأوزاعي، وأبان العطار، عَنْ مَعْمَرٍ.

**ترجمه:** د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې په دې حدیث کښې هغه وئیلی دي: ویلی دي رسول الله ﷺ: تاسو لګ واوړئ د خپل ځائې هغې نه چې رسیدلې وو تاسو ته په هغې کښې غفلت. هغه وایې: چې امریې وکړو بلال ته اذان ئې وکړو او اقامت ئې وکړو او مونځ ئې وکړو. وئیلی دی ابوداود: روایت کړی دی مالک بن عیینة او اوزاعی او عبد الرزاق د معمر نه او د ابن اسحاق نه، نه دی ذکر کړی هېڅ کس د دوی نه اذان په حدیث د زهری کښې چې دا دې، او مسند روایت نه دې کړې د دوی نه هېچا مګر اوزاعی او ابان العطار د معمر نه.

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳۳۰۲) (صحيح)

تشریح: قوله: ﴿ حدثنا موسی بن اسماعیل.... تحولوا عن مکانکم الذی اصابتکم فیه الغفلة ﴾ یعنی رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه ددې میدان نه اوځئ چه په کوم کښې تاسو ته غفلت رسیدلې دې او د مسلم شریف په یو روایت کښې دی ﴿ فان هذا منزل حضرنا فیه الشیطان ﴾ چه دې منزل کښې مونږ ته شیطان راغلو.

## د دې میدان نه د تحویل او انتقال سبب

جمهور علماء کرام دا وائی چه ددې وادئ نه د منتقل کیدو وجه دا وه کومه چه په دې حدیث کښې مذکور ده او هغه وجه نه وه کومه چه احناف بیانوی چه د طلوع شمس په وخت باندې قضاء مونځ کول جائز نه دی په دې وجه رسول اللهﷺ وړاندې لاړو، خو مونږ دا وایو چه د یو فعل مختلف مصلحتونه کیدې شی ددې سلسلې د روایاتو الفاظو ته کتل پکار دی، پس په بعض روایاتو کښې دی ﴿ فلما ارتفعت الشمس وابیضت قام فصلی ﴾ (رواه البخاری) او په یو روایت کښې دی (کما فی البیهقی) "فامر بلالا فاذن وصلی رکعتین ثم انتظر حتی استعلت الشمس ثم امره فاقام فصلی بهم ﴾ اوس تاسو په دې الفاظو باندې غور اوکړئ چه کومه خبره مونږ کوو هغه ده یا نه، دا مضمون مونږ د﴿ من ادرک رکعة من الفجر فقد ادرک الصبح ﴾ د حدیث د لاندې بیان کړې دې ﴿ قال فامر بلالا فاذن واقام ﴾ په دې روایت کښې اذان او اقامت دواړه مذکور دی لکه چه د احنافو او حنابله مذهب دې او ددې نه په مخکښې روایت کښې صرف د اقامت ذکر وو.

## شرح السند

﴿ قال ابوداود رواه مالک الخ ﴾ مصنف هم ددې اذان او اقامت اختلاف بیانوی چه د زهری اکثرو شاګردانو په دې روایت کښې د زهری نه صرف اقامت ذکر کړې دې، لکه مالک، سفیان بن عیینه، اوزاعی، معمر، ابن اسحاق، لهذا راجح په دې روایت کښې د اذان عدم ذکر دې.

واضحه دې وی چه پورته کوم د زهری روایت تیر شوی دی چه په هغې کښې اذان او اقامت دواړه ذکر شوې دی په هغې کښې د ذهری نه روایت کونکې معمر دې او د معمر نوم مصنف د هغه خلقو سره هم ذکر کړې دې چه د هغوی په روایت کښې د اذان ذکر نشته ددې جواب دا دې چه د معمر روایتونه دوه دی یو کښې د هغه شاګرد ابان دې او په دویم کښې عبدالرزاق، د ابان روایت کوم چه د معمر نه دې په هغې کښې ذکر د اذان شته او د عبدالرزاق په روایت کښې د اذان ذکر نشته هم په دې وجه مصنفؒ فرمائی عبد الرزاق عن معمر، ښه څان پوهه کړه.

﴿ ولم یسنده منهم احد الخ ﴾ د دې ځائې نه بل اختلاف بیانوی هغه دا چه بعض راویان دا حدیث مرسلا بغیر د ابوهریرهؓ د ذکر نه او بعض مسندا د ابوهریرهؓ د ذکر سره بیانوی او په مسندا روایت کونکو کښې یو معمر دې چه د هغه روایت پورته په متن کښې تیر شو، دویم اوزاعی دې.

## په مستدل حنفيه باندې د مصنف نقد او د هغې جواب

اصل کښې د مصنف مقصد دا دې چه دا حديث چه په هغې کښې د اقامت سره اذان مذکور دې دا ضعيف او مضطرب دې پس اول نې وئيلې دی چه د زهری اکثر شاګردانو اذان نه دې ذکر کړې او دويم اختلاف دا بيانوی چه دا حديث بعض مرسلا او بعض مسندا ذکر کړې دې، لهذا دا حديث مضطرب شو ددې جواب اصولا زمونږ د طرف نه دا دې چه د حديث رفع د ارسال په مقابله کښې په منزله د زيادت دې او قاعده دا ده چه زيات د ثقه معتبر دې او دا حديث مسندا نقل کونکی چه کوم راويان دی هغه ثقه دی. (قاله الزرقاني) والله تعالى اعلم.

[٤٣٧] (١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَبَاحٍ الْأَنْصَارِيِّ، حَدَّثَنَا أَبُو قَتَادَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي سَفَرٍ لَهُ، فَمَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمِلْتُ مَعَهُ، فَقَالَ: انْظُرْ، فَقُلْتُ: هَذَا رَاكِبٌ، هَذَانِ رَاكِبَانِ، هَؤُلَاءِ ثَلَاثَةٌ، حَتَّى صِرْنَا سَبْعَةً، فَقَالَ: احْفَظُوا عَلَيْنَا صَلَاتَنَا يَعْنِي صَلَاةَ الْفَجْرِ، فَضُرِبَ عَلَى آذَانِهِمْ فَمَا أَيْقَظَهُمْ إِلَّا حَرُّ الشَّمْسِ، فَقَامُوا فَسَارُوا هُنَيَّةً ثُمَّ نَزَلُوا فَتَوَضَّئُوا وَأَذَّنَ بِلَالٌ فَصَلَّوْا رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ ثُمَّ صَلَّوْا الْفَجْرَ وَرَكِبُوا، فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ: قَدْ فَرَّطْنَا فِي صَلَاتِنَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّهُ لَا تَفْرِيطَ فِي النَّوْمِ، إِنَّمَا التَّفْرِيطُ فِي الْيَقَظَةِ، فَإِذَا سَهَا أَحَدُكُمْ عَنْ صَلَاةٍ، فَلْيُصَلِّهَا حِينَ يَذْكُرُهَا وَمِنَ الْغَدِ لِلْوَقْتِ".

**ترجمه:** د ابو قتادة نه روايت دې، بيشکه نبي ﷺ وو په يو سفر کښې، نو هغه ميلان وکړو ماهم ورسره ميلان وکړو، هغه وفرمائيل: اوګوره (دا څوک دې) ما ووئيل: دا يو سور دی، دا دوه سواره دې، دغه درې دې، تردې چې مونږ اوه شو، هغه وفرمائيل: خيال وساتئ مونږ زمونږ. يعنی د سحر مونځ، نو وتپول شو دوی په غوږونو، دوی رابيدار نه کړل مګر ګرمئ د نمر، نو پاڅيدل او روان شول لګ شانته، بيا ئې پړاو وښولو اودسونه ئې وکړل او اذان وکړو بلال مونځ وکړو دوی دوه رکعاته د صبا، بيا مونځ وکړو دوی د صبا، نو ووېل بعضو د دوی نه بعضو نورو ته: مونږ کمی وکړو په خپل مونځ کښې، نو ووېل نبي ﷺ: بيشکه تفريط په خوب کښې نشته، بيشکه تفريط په ويخوالی کښې دی، کله چې سهوه شي يو کس ستاسو نه د مانځه نه نو هغه دې وکړی کله چې ورته ياد شی او صبا ورځ په خپل وخت کښې.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا موسى بن اسماعيل ﴾ تاسو ته به کيدې شي چه ياد وی د کتاب په اوله حصه کښې چه به کله دا قسم سند راتلو نو مونږ بيان کړې وو چه موسى بن اسماعيل چه کله د حماد نه روايت کوی نو اکثر او بيشتر ددې نه حماد بن سلمه مراد وی، موسى بن اسماعيل د حماد بن زيد نه قليل الرواية دې دلته د حماد نه حماد بن زيد مراد دې لکه چه په بعض نسخو کښې ددې تصريح هم ده هسې فی نفسه دا روايت حماد بن سلمه او زيد دواړه مراد دی، کما فی البذل. ﴿ فمال رسول الله صلى الله عليه وسلم وملت معه ﴾ د دې د شرح اګر چه دلته حاجت نشته څکه چه دا قسم لفظ د ﴿ باب المسح على الخفين ﴾ په روايت کښې

---

(١): سنن ابن ماجه/الصلاة ١٠ (٦٩٨)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٨٩)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المساجد ٥٥ (٦٨١)، سنن الترمذي/الصلاة ١٦ (١٧٧)، سنن النسائي/المواقيت ٥٣ (٦١٨)، مسند احمد (٥/٣٠٥) (صحيح)

راغلې دې، چه د هغې الفاظ دا وو ﴿عدل رسول الله صلى الله عليه وسلم وعدلت معه﴾ د دې وضاحت مونږ هلته کړې دې.

## شرح حديث

چه د هغې حاصل دا دې چه په اوله زمانه کښې په اوښانو باندې د ناستو مسافرو چه کومې قافلې وې هغوی به په قطار کښې روانې وې که يو سړی ته به په هغوی کښې د استنجاء وغيره ضرورت راپيښ شو نو هغه به د خپل ضرورت د پوره کولو دپاره د قطار او لائن نه بهر راوتلو، نور قافلې والا به هم هغه شان روان وو بيا به هغه سړې د خپل ضرورت نه چه فارغ شو نو يا خو به کوشش کولو سره وړاندې تلو سره په هم هغه قافله کښې شامل شو يا که څه ملګرې شاته راروان وو نو د هغوی انتظار کولو سره به هم هغوی سره يوځائې شو، پس وړاندې په روايت کښې دی ﴿قال: انظر فقلت: هذا راكب هذان راكبان الخ﴾ يعنی رسول الله ﷺ ابو قتاده رضي الله عنه ته اوفرمائيل چه اوګورئ د شاته نه څه ملګرې راروان دی يا نه نو هغوی ورته په غور سره اوکتل، نو هغوی لره د لرې نه په راتلو سره ليدو باندې يو سور په نظر راغلو هغه اووې يا رسول الله ﷺ يو ملګرې راروان دې بيا يو بل په نظر راغلو نو وې وئيل چه اوس راتلونکی دوه شو دغه شان په کيدو کيدو باندې ټول اووه کسان شو، په بذل کښې ددې کلام تشريح داسې کړې ده خو ابن رسلان بل شان کړې ده.[1]

الغرض رسول الله ﷺ هم هغه ځائې کښې د پړاؤ اچولو اراده اوکړه او وې فرمائيل چه د مونځ خيال ساتئ هسې نه اوده پاتې شو ﴿فضرب على اذانهم الخ﴾ دا لفظ کنايه ده د خوب نه يعنی هغوی ټول د مانځه په وخت کښې اوده پاتې شو لفظی ترجمه خو ئې دا ده چه د هغوی په غوږونو باندې پرده واچولې شوه چه هغې سره هغوی غوږونو آوازونه نه اوريدل او دا کيفيت د انسان په خوب کښې وی چه د د چا اواز نه اوری هم دغه شان په قران کريم کښې هم دی ﴿فضربنا على اذانهم فى الكهف سنين عددا﴾، ﴿فصلوا ركعتي الفجر﴾ د دې نه معلومه شوه چه د سحر د سنتو قضاء شته، پس د امام محمد او شوافعو وغيره په نزد قضاء مطلقا ده او د شيخين (ابوحنيفه او ابويوسف) په نزد د سحر د سنتو قضاء مستقلا نه ده بلکه تبعا للفرض ده، په منهل کښې دی چه د امام مالک په نزد خو قضاء نشته خو د علماء مالکيه په نزد قضاء شته.

**قوله:** ﴿انه لا تفريط في النوم انما التفريط فى اليقظة﴾ د مونځ د قضاء کيدو په بنياد صحابه کرامو افسوس کولو او خپل مينځ کښې ئې اووې چه مونږ نه د مونځ په باره کښې ډير تقصير او کوتاهی اوشوه، په هغې باندې رسول الله ﷺ ددې حضراتو د تسلئ دپاره ارشاد اوفرمائيلو.

[1] شارح ابن رسلان ددې کلام شرح دمسلم د تفصيلی روايت په لحاظ سره داسې نه ده کړې بلکه هغوی ددې معنی داسې بيان کړې ده چه حضور پاک (ص) چونکه په سورلئ باندې سور روان وو، نو هغوی (ص) ته خوب راغې چه ددې په وجه هغوی په سورلئ باندې په ناسته يو طرف ته کوږ شو، لکه چه غورځيږي او دهغوی (ص) خادم ابو قتاده چه دهغوی (ص) سره وو هغه اوفرمائيل چه ما هغوی په خپله څنګل بند کړو چه په دې سره هغوی (ص) په سورلئ باندې نيغ شو.

چه د خوب په حالت کښې تفريط نشته، تفريط د بيدارئ په حالت کښې وي چه سره د انسان د بيداريدو مونځ قضاء کړي او! البته د اسباب نوم په اعتبار سره تفريط في النوم کيدې شي مثلا يو سړې د مونځ وخت ته نزدې سملاستو سره ارادةً اوده شي او د يو بيدارونکي هم بندوبست نه کوي په دې صورت کښې يقينا د هغه د طرف نه تفريط بيا موندلې شو هم دغه شان يو سړی ته خپل عادت معلوم دې چه بغير د بل د بيدارولو نه هغه د مونځ په وخت نه شي پاسيدې نو هغه له پکار دی چه د خپل بيداريدو انتظام اوکړي ګينې دا به د هغه د طرف نه تفريط وي، ښه څان پوهه کړئ.

## د حديث تشريح او تاويل

﴿ ومن الغد للوقت ﴾ د دې جملې دوه مطلبونه کيدې شي يو هغه کوم چه من حيث الاصول صحيح دې او دويم هغه کوم چه غلط دې صحيح مطلب دا دې چه که يوه ورځ انسان نه په مونځ کښې هيره اوشي يا اوده شي نو چه کوم وخت ورته راياد شي هغه دې فورا اوکړي خو داسې دې نه وي چه صبا د بيا دپاره هم داسې مونځ قضاء کړي بلکه په وړاندې ورځ به هغه مونځ لره په وخت باندې کوی، ګويا مطلب دا دې چه هره ورځ مونځ قضاء کول نه دی پکار که يوه ورځ اتفاقي قضاء شو نو هيڅ خبره نه ده، او بل مطلب کوم چه غلط دې هغه دا دې چه نن کوم مونځ د قضاء کيدو د وجې نه بې وخته کړې شوې دې په صبا له دا هم په دغه وخت کښې اوکړي، ددې مطلب تائيد د وړاندې روايت نه کيږي چه د هغې الفاظ داسې دی ﴿ فليقض معها مثلها ﴾ خو دا روايت ثانيه وهم دې ددې په سند کښې يو راوی دې خالد بن سمير د هغه نه دا وهم صادر شوې دې هم په دې وجه باندې امام بخاری باب ترلې دې باب من نسی صلاة فليصل اذا ذکر ولا يعيد الا تلک الصلاة... امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب کښې تصريح فرمائيلې ده چه د مونځ اعاده به نه شي کولې، د بخاری شارحين ليکی چه د امام بخاری رحمه الله غرض د ابوداود ددې روايت د رد طرف ته اشاره ده چه په هغې کښې د اعاده صلاة امر دې بلکه د نسائی په يو حديث کښې د عمران بن حصين په روايت دا دی چه بعض صحابه کرامو د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو : الا نقضيها لوقتها من الغد. چه ايا دا مونځ صبا له دوباره په دې وخت کښې اونکړو، د بخاری شارحين ليکی چه د امام بخاری غرض د ابوداود دې روايت طرف ته اشاره ده چه په هغې کښې د مونځ د اعادې امر دې بلکه د نسائی په يو حديث کښې د عمران بن حصين په روايت باندې دا دی چه بعض صحابه کرامو د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو ﴿ الا نقضيها لوقتها من الغد ﴾ چه ايا دا مونځ دوباره صبا هم په دې وخت کښې اونکړو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ﴿ لا، ينهاکم الله عن الربا وياخذ منکم ﴾ نه! الله پاک دې د سود نه خو بندګان منع کوی او ستاسو نه دې سود اخلی، هم دغه شان د ابوداود په روايت کښې وړاندې راځی ﴿ فليصلها اذا ذکرها لا کفارة لها الا ذلک ﴾ د دې ټولو نه دا خبره معلومه شوه چه اول مطلب ئې صحيح دې، امام خطابی رحمه الله ددې جملې نه پريشانه کيدو سره دا

فرمائيلې وو چه کيدې شي د اعادې حکم د استحباب په طور وي خو دا هم صحيح نه ده اول خو په دې وجه چه نور روايات ددې خلاف دې، دويم په دې وجه چه په اهل علم کښې څوک هم د اعادې د استحباب قائل نه دی.

[۴۳۸] ()حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ نَصْرٍ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا الْأَسْوَدُ بْنُ شَيْبَانَ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ سُمَيْرٍ، قَالَ: قَدِمَ عَلَيْنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَبَاحٍ الْأَنْصَارِيُّ مِنَ الْمَدِينَةِ وَكَانَتِ الْأَنْصَارُ تُفَقِّهُهُ، فَحَدَّثَنَا، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو قَتَادَةَ الْأَنْصَارِيُّ فَارِسُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَيْشَ الْأُمَرَاءِ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: فَلَمْ تُوقِظْنَا إِلَّا الشَّمْسُ طَالِعَةً، فَقُمْنَا وَهِلِينَ لِصَلَاتِنَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: رُوَيْدًا رُوَيْدًا، حَتَّى إِذَا تَعَالَتِ الشَّمْسُ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ كَانَ مِنْكُمْ يَرْكَعُ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ فَلْيَرْكَعْهُمَا، فَقَامَ مَنْ كَانَ يَرْكَعُهُمَا وَمَنْ لَمْ يَكُنْ يَرْكَعُهُمَا فَرَكَعَهُمَا، ثُمَّ أَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُنَادَى بِالصَّلَاةِ فَنُودِيَ بِهَا، فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى بِنَا، فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ: أَلَا إِنَّا نَحْمَدُ اللَّهَ أَنَّا لَمْ نَكُنْ فِي شَيْءٍ مِنْ أُمُورِ الدُّنْيَا يَشْغَلُنَا عَنْ صَلَاتِنَا، وَلَكِنَّ أَرْوَاحَنَا كَانَتْ بِيَدِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، فَأَرْسَلَهَا أَنَّى شَاءَ، فَمَنْ أَدْرَكَ مِنْكُمْ صَلَاةَ الْغَدَاةِ مِنْ غَدٍ صَالِحًا فَلْيَقْضِ مَعَهَا مِثْلَهَا.

**ترجمه:** د خالد بن سمير نه روايت دې هغه وئيلي دي: راغې مونږ ته عبدالله بن رباح الانصاري د مديني نه چې نسبت د هغه په ئې کولو فقيه ته، نو هغه حديث بيان کړو مونږ ته وېې وئيل: حديث بيان کړې دې ماته ابو قتادة الانصاري شهسوار د رسول الله ﷺ، هغه وايي: ولېږلو رسول الله ﷺ لښکر د مسلمانانو (بيا ئې دغه قصه بيان کړه) هغه وايي: مونږ راويخ نه کړو مګر نمر چې ختلي وو، مونږ پاڅيدلو ويريدونکي د وجې د مانځه زمونږ نه، نو وويل نبي ﷺ: صبر وکړئ صبر وکړئ. تردې چې نمر اوچت شو رسول الله ﷺ وويل: څوک چې د تاسو نه دوه رکعاته د صبا کوې نو ودې کړي. نو پاڅيدل هغه څوک چې هغه ئې کول او هغه څوک چې نه وو چې دايې کړي وي نو ويې کړل، بيا امر وکړو رسول الله ﷺ چې اذان وکړې شي نو اذان وشو د هغې دپاره، نو پاڅيدلو رسول الله ﷺ مونځ ئې راکړو مونږ ته، هرکله چې فارغ شو ويې وئيل: خبر شئ يقيناً مونږ د الله شکر ادا کوو چې مونږ نه وو په څه شي کښې د کارونو د دنيا نه چې مونږ ئې مشغوله کړې وو د مونځ زمونږ نه، زمونږ روحونه خو د الله په لاس کښې ؤو راويې لېږل کله ئې چې خوښه شوه، چا چې وموندو ستاسو نه مونځ د صبا په خپل وخت کښې نو هغه دې قضائي مونځ راوړی د هغې سره پشان د هغې.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا علي بن نصر... بعث رسول الله صلى الله عليه وسلم جيش الامراء بهذه القصة ﴾ اى حدث الراوى بهذه القصة... چه راوی دا پورته ذکر شوې قصه بيان کړه.

## د جيش الامراء مصداق

ځان پوهه کړئ چه د جيش الامراء اطلاق په غزوه موته باندې کيږي کوم چه يو مشهور جنګ دې، په اصل کښې دا يوه سريه وه چه په هغې کښې رسول الله ﷺ شريک نه وو، رسول الله ﷺ ددې سريه امير زيد بن حارثه رضي الله عنه مقرر کړو ﴿ ان اصيب زيد فجعفر وان أصيب

[1]: تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ۱۲۰۸۹) (شاذ)

جعفر وان اصيب جعفر فعبدالله بن رواحة ﴾ که زيد بن حارثه شهيد شو نو بيا به امير جعفر بن ابى طالب وى او که هغه هم شهيد شي نو بيا به امير عبدالله بن رواحه رضوان الله عليهم اجمعين وى، پس هم دغه شان اوشو چه پرله پسې دا درې واړه حضرات شهيدان شو او روستو په مشورې سره صحابه کرامو خالد بن الوليد لره امير جوړ کړو، الغرض جيش الامراء د غزوه موته نوم دې چه په هغې کښې رسول الله ﷺ بالاتفاق نه وو شريک شوې او دلته چه په حديث کښې کومه واقعه بيانيږي هغه د ليلة التعريس واقعه ده چه په هغې کښې رسول الله ﷺ شريک وو نو اوس د بعض شارحينو رائې دا ده چه دا لفظ دلته د راوى وهم دې او بعض ددې توجيه دا کړې ده چه ددې نه مراد غزوه خيبر دې او غزوه خيبر ته جيش الامراء په دې وجه وئيلې شوې دې چه په غزوه خيبر کښې يوه ورځ داسې اوشو چه رسول الله ﷺ د څه عذر د وجې نه په قتال کښې شريک نه شو نو په اوله ورځ د رسول الله ﷺ نيابت ابوبکر صديق ﷛ کړې وو او جهنډه هم د هغه په لاس کښې وه او د هغه نه روستو عمر ﷛ او بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه صبا له به زه دا جهنډه هغه سړی ته ورکوم کوم چه د الله او رسول ﷺ سره محبت کوی او الله او رسول ﷺ د هغه سره محبت کوی، پس رسول الله ﷺ په بله ورځ جهنډه سيدنا على ﷛ ته ورکړه، حاصل دا دې چه په دې مناسبت سره غزوه خيبر ته هم جيش الامراء وئيلې شي.

﴿ من كان منكم يركع ركعتي الفجر فليركعهما ﴾ چه څوک په تاسو کښې د سحر سنت په سفر کښې کوی نو هغه ته پکار دی چه د سحر سنت اوکړی، د رسول الله ﷺ په دې ارشاد باندې ټول خلق د سنت کولو دپاره اودريدل چا چه به کول هغوی هم او چا چه به نه کول هغوی هم.

[۴۳۹](١) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، فِي هَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: فَقَالَ: إِنَّ اللَّهَ قَبَضَ أَرْوَاحَكُمْ حَيْثُ شَاءَ، وَرَدَّهَا حَيْثُ شَاءَ، قُمْ فَأَذِّنْ بِالصَّلَاةِ. فَقَامُوا فَتَطَهَّرُوا حَتَّى إِذَا ارْتَفَعَتِ الشَّمْسُ، قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى بِالنَّاسِ.

**ترجمه:** د ابو قتادة نه روايت دې په دې حديث کښې هغه وئيلى دى، هغه وفرمائيل: بيشکه الله قبض کړی دی روحونه ستاسو څنګه ئې چې خوښه وه او راوئې لېږل څنګه ئې چې خوښه وه، پاڅېږه اذان وکړه د مانځه دپاره. نو ټول پاڅيدل اودسونه ئې وکړل، تردې چې نمر راوچت شو پاڅيدلو نبى ﷺ مونځ ئې ورکړو خلکو ته.

[۴۴۰](٢) حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْثَرٌ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ، قَالَ: فَتَوَضَّأَ حِينَ ارْتَفَعَتِ الشَّمْسُ فَصَلَّى بِهِمْ.

**ترجمه:** عبد الله بن ابى قتادة د خپل پلار نه روايت کوي، هغه د نبى ﷺ نه په معنى د هغې سره، هغه وئيلى دي: اودس ئې وکړو کله چې اوچت شو نمر نو مونځ ئې ورکړو دوی ته.

(١): صحيح البخاري/مواقيت الصلاة ۳۵ (۵۹۵)، سنن النسائي/الإمامة ۴۷ (۸۴۷)، (تحفة الأشراف: ۱۲۰۹۶) (صحيح)
(٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۲۰۹۶) (صحيح)

[٤٤١]([1])حَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ وَهُوَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ الْمُغِيرَةِ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَبَاحٍ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ فِي النَّوْمِ تَفْرِيطٌ، إِنَّمَا التَّفْرِيطُ فِي الْيَقَظَةِ أَنْ تُؤَخِّرَ صَلَاةً حَتَّى يَدْخُلَ وَقْتُ أُخْرَى".

**ترجمه**: د ابو قتادة نه روايت دي هغه وايي، ويلي دي رسول الله ﷺ: نشته په خوب کښې کمی بيشکه کمی په ويخوالی کښې دی چې ته وروسته کړې مونځ تردې چې د بل مونځ وخت داخل شي.

[٤٤٢]([2])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ نَسِيَ صَلَاةً فَلْيُصَلِّهَا إِذَا ذَكَرَهَا، لَا كَفَّارَةَ لَهَا إِلَّا ذَلِكَ".

**ترجمه**: د انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دي، بيشکه نبي ﷺ ويلي دي: چا چې هېر کړو مونځ نو ودې کړي هغه کله چې ورته ياد شي، نشته کفاره هغې لره مګر هم دغه.

[٤٤٣]([3])حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ يُونُسَ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي مَسِيرٍ لَهُ فَنَامُوا عَنْ صَلَاةِ الْفَجْرِ، فَاسْتَيْقَظُوا بِحَرِّ الشَّمْسِ، فَارْتَفَعُوا قَلِيلًا حَتَّى اسْتَقَلَّتِ الشَّمْسُ، ثُمَّ أَمَرَ مُؤَذِّنًا فَأَذَّنَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْفَجْرِ، ثُمَّ أَقَامَ ثُمَّ صَلَّى الْفَجْرَ".

**ترجمه**: د عمران بن حصين رضي الله عنه نه روايت دي، چه رسول الله ﷺ په سفر کښې وو په لاره د تلو د هغه کښې نو ده شول د مونځ د صبا نه، نو راپاڅيدل په ګرمئ د نمر باندې، ددې نه پس هغوی لږ لږې لاړل تردې چې نمر ښه پورته شو، بيا ئې امر وکړو مؤذن ته اذان ئې ورکړو نو مونځ ئې وکړو دوه رکعاته مخکې د صبا نه، بيا ئې اقامت وکړو، بيا ئې مونځ د سحر ورکړو.

[٤٤٤]([4])حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، وَهَذَا لَفْظُ عَبَّاسٍ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ يَزِيدَ حَدَّثَهُمْ، عَنْ حَيْوَةَ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ عَيَّاشِ بْنِ عَبَّاسٍ يَعْنِي الْقِتْبَانِيَّ، أَنَّ كُلَيْبَ بْنَ صُبْحٍ حَدَّثَهُمْ، أَنَّ الزِّبْرِقَانَ حَدَّثَهُ، عَنْ عَمِّهِ عَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ الضَّمْرِيِّ، قَالَ: "كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ فَنَامَ عَنِ الصُّبْحِ، حَتَّى طَلَعَتِ الشَّمْسُ فَاسْتَيْقَظَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: تَنَحَّوْا عَنْ هَذَا الْمَكَانِ، قَالَ: ثُمَّ أَمَرَ بِلَالًا فَأَذَّنَ ثُمَّ تَوَضَّئُوا وَصَلَّوْا رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ، ثُمَّ أَمَرَ بِلَالًا فَأَقَامَ الصَّلَاةَ فَصَلَّى بِهِمْ صَلَاةَ الصُّبْحِ".

**ترجمه**: د عمرو بن امية الضمير نه روايت دي هغه وئيلي دي: وو مونږ د رسول الله ﷺ سره په بعضو سفرونو د هغه کښې وُو نو هغه اوده شو په سحر تردې چې نمر راوختلو، نو رابيدار شو رسول الله ﷺ ويې وئيل: روان شئ ددې ځائې نه. بيا ئې امر وکړو بلال ته اذان

---

[1]): سنن الترمذي/الصلاة ١٦ (١٧٧)، سنن النسائي/المواقيت ٥٣(٦١٨)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٨٥) (صحيح)

[2]): صحيح مسلم/المساجد ٥٥ (٦٨٤)، سنن الترمذي/الصلاة ١٧ (١٧٨)، سنن النسائي/المواقيت ٥١ (٦١٤)، سنن ابن ماجه/الصلاة ١٠ (٦٩٦)، (تحفة الأشراف: ١٤٣٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المواقيت ٣٧ (٥٩٧)، مسند احمد (١٠٠/٣، ٢٤٣، ٢٦٦، ٢٦٩، ٢٨٢)، سنن الدارمي/الصلاة ٢٦ (١٢٦٥) (صحيح)

[3]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٨١٥)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/التيمم ٦ (٣٤٤)، صحيح مسلم/المساجد ٥٥ (٦٨٢) (كلاهما من غير طريق الحسن)، مسند احمد (٤٣١/٤، ٤٤١، ٤٤٤) (صحيح)

[4]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٧٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩١/٤، ١٣٩) (صحيح)

ئې وکړو، بیا اودس وکړو خلقو او مونځ ئې وکړو دوه رکعاته د سحر (سنت) بیا ئې امر وکړو بلال ته نو اقامت ئې وکړو د مانځه لپاره نو مونځ ئې ورکړو دوی ته د سحر.

[۴۴۵]()حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْحَسَنِ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا حَرِيزٌ. ح وحَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ أَبِي الْوَزِيرِ، حَدَّثَنَا مُبَشِّرٌ يَعْنِي الْحَلَبِيَّ، حَدَّثَنَا حَرِيزٌ يَعْنِي ابْنَ عُثْمَانَ، حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ ذِي مِخْبَرٍ الْحَبَشِيِّ وَكَانَ يَخْدُمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: فَتَوَضَّأَ يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وُضُوءًا لَمْ يَلْثَ مِنْهُ التُّرَابُ، ثُمَّ أَمَرَ بِلَالًا فَأَذَّنَ، ثُمَّ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ غَيْرَ عَجِلٍ، ثُمَّ قَالَ لِبِلَالٍ: أَقِمِ الصَّلَاةَ. ثُمَّ صَلَّى الْفَرْضَ وَهُوَ غَيْرُ عَجِلٍ، قَالَ: عَنْ حَجَّاجٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ صُلَيْحٍ، حَدَّثَنِي ذُو مِخْبَرٍ رَجُلٌ مِنَ الْحَبَشَةِ، وقَالَ عُبَيْدٌ: يَزِيدُ بْنُ صَالِحٍ.

**ترجمه:** د ذی مخبر الحبشی نه روایت دې، او وو چې د نبی ﷺ خدمت ئې کولو، په دې روایت کښې، هغه وایې: اودس وکړو یعنی نبی ﷺ چې خلط شوې نه وې د هغې سره خاوره، بیا ئې امر وکړو بلال ته نو اذان ئې وکړو، بیا پاڅیدلو نبی ﷺ نو ویې کړل دوه رکعاته بغیر د توندئ نه، بیا ئې وویل بلال ته: اقامت وکړه د مونځ دپاره، بیا ئې وکړل فرض او هغه په تلوار نه وو. وئیلی دی هغه د حجاج نه او هغه د یزید بن صُلیح نه، چه حدیث بیان کړې دې ماته ذو مخبر چې یو سړی دی د حبشې، او وئیلی دی عبید: چه یزید بن صالح دې.

**تشریح: قوله:** ﴿ حدثنا ابراهیم بن الحسن... فتوضاء یعنی النبی صلی الله علیه وسلم وضوءً لم یلث منه التراب ﴾ یعنی رسول الله ﷺ داسې مختصر اودس اوفرمائیلو چه په هغې کښې اوبه ډیرې کمې استعمال کړې شوې په داسې طریقه چه په کوم ځائې باندې کیناستلو سره ئې اودس کړې وو د هغه ځائې خاوره هم په بنه طریقه لونده نه شوه، دا ماخوذ دې د ﴿ لثی یلثی ﴾ په مثل د ﴿ خشی یخشی ﴾ نه چه د هغې معنی لوندیدل دی، دا لفظ داسې هم لوستلې شوې دې، د ﴿ لم یلت ﴾ د ثاء په ځائې تاء سره چه د هغې معنی ده ﴿ لم یختلط ﴾ دا ماخوذ دې د ﴿لت السویق بالماء ﴾ نه یعنی ستوان په اوبو کښې ګډول په دې صورت به ترجمه دا وی، داسې اودس چه په هغې سره خاورې د اوبو سره ګډې نه شوې یعنی هغه ځائې خټه نه شو، وړاندې په روایت کښې د اذان او اقامت دواړو ذکر دې، دغه شان دا چه رسول الله ﷺ د سحرسنت ډیر په اطمینان سره اوکړل. غیر عجل.

(یزید بن صالح) ددې حدیث په سند کښې یو راوی راغلې دې یزید بن صالح، په دې نوم کښې اختلاف دې بعض ورته ابن صالح وائی او بعض یزید بن صلح او بعض یزید صلیح او بعض یزید بن صبیح او بعض یزید بن صبح، په بذل کښې لیکلې دی چه امام بخاری رحمه الله فرمائی چه صحیح په دې کښې ابن صلیح دې، هم دغه شان لیکلې دی چه دا راوی مجهول دې.

(): تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ۳۵۴۸)، وقد أخرجه: (۹۰/۴) (صحیح)

[۴۴۶] (¹) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنْ حَرِيزٍ يَعْنِي ابْنَ عُثْمَانَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ ذِي مِخْبَرٍ ابْنِ أَخِي النَّجَاشِيِّ، فِي هَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: فَأَذَّنَ وَهُوَ غَيْرُ مُحْتَجِلٍ.

**ترجمه**: د ذی مخبر نه روايت دې چې دا د نجاشي وراره وو، په دې خبر کښې، هغه وئيلي دي: اذان ئې وکړو او هغه په تلوار باندې نه وو.

[۴۴۷] (²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ جَامِعِ بْنِ شَدَّادٍ، سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ أَبِي عَلْقَمَةَ، سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مَسْعُودٍ، قَالَ: أَقْبَلْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَمَنَ الْحُدَيْبِيَةِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ يَكْلَؤُنَا"، فَقَالَ بِلَالٌ: أَنَا، فَنَامُوا حَتَّى طَلَعَتِ الشَّمْسُ، فَاسْتَيْقَظَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: افْعَلُوا كَمَا كُنْتُمْ تَفْعَلُونَ، قَالَ: فَفَعَلْنَا، قَالَ: فَكَذَلِكَ فَافْعَلُوا لِمَنْ نَامَ أَوْ نَسِيَ".

**ترجمه**: د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلي دي: مونږ راغلو رسول الله ﷺ سره په زمانه د حديبيه کښې، نو وويل رسول الله ﷺ: څوک به څوکيداري اوکړي زمونږ. وويل بلال: زه، اوده شول دوی تردې چې نمر راوختلو رابيدار شو نبي ﷺ، هغه وويل وکړئ لکه څرنګه چې به تاسو کول. هغه وايي يعنی (د معمول مطابق خپل مونځ اوکړی) نو مونږ وکړل، هغه وفرمائيل: پس همداسې کوئ د هغه چا لپاره چې (په تاسو کښې څوک) اوده شی او يا ترېنه هېر شی.

**تشريح: قوله**: ﴿ حدثنا محمد بن المثنى... من يكلونا فقال بلال : انا ﴾ دا مخکښې هم ذکر شوې دی چه رسول الله ﷺ په ليلة التعريس کښې فرمائيلې وو چه څوک به زمونږ نګرانی کوی نو په دې باندې سيدنا بلال رضي الله عنه اوفرمائيل ﴿ انا ﴾ د بعض مشائخو نه مونږ په دې کښې د عبرت يوه خبره اوريدلې ده هغه دا چه بلال رضي الله عنه په دې موقع باندې ﴿ انا ﴾ وئيلو سره ذمه داری قبوله کړه او ﴿ ان شاء الله ﴾ وغيره ئې هم او نه وئيل، پس بيا هم هغه شان اوشوه چه څه کيدل وو، هم دغه شان واقعه په بخاری کښې د سيدنا سليمان عليه السلام نه هم نقل ده چه هغه يو ځل اوفرمائيل چه نن شپه به زه خپلو ټولو بيبيانو سره صحبت کوم او بيا به ددې صحبت نه د هرې يوې نه يو يو مجاهد پيدا کيږي، په دې موقع باندې هم هغه نه ان شاء الله هير شو سره د فرښتې د توجه پيدا کولو، په روايت کښې راځی چه ددې شپې د صحبت نه يو ماشوم هم پيدا نه شو صرف د يوې نه پيدا شو هغه هم ناقص وو، د حضرت ګنګوهی په تقرير کښې دی چه هغه يو ماشوم هم کيدې شی چه په دې وجه باندې پيدا شوې وی چه د ان شاء الله وئيلو اراده به ئې کړې وی ګينې دا به هم نه وې، والله تعالى اعلم.

دا باب الحمد لله پوره شو کوم چه کافی اوږد وو چه په هغې کښې مصنف د ډيرو صحابه کرامو نه ډير روايات په ليلة التعريس کښې ذکر فرمائيلې وو غالبا د مصنف رجحان په ليلة التعريس کښې د تعدد طرف ته دې، هم دغه شان د مصنف ددې واقعې سره اهتمام او اعتناء معلوميږی ګينې د مصنف عادت د تکثير درواياتو نه دې.

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۵۴۸) (شاذ)

²): سنن النسائي /المواقيت ۵۴ (۶۲۵)، (تحفة الأشراف: ۹۳۷۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۳۸۶، ۳۹۱، ۴۶۴) (صحيح)

## واقعة ليلة التعريس او تعليم فعلي

دلته يو څيز قابل تنبيه دي کوم چه زمونږ حضرت شيخ هم په اهتمام سره بيان فرمائيلې دي هغه دا چه د رسول الله ﷺ بعثت د تعليم قولي او تعليم فعلي يعنى عمل مشق (نمونه پيش کولو) دوارو دپاره وو، دا د مونځ د قضاء کيدو واقعه تکويني طور سره په دې وجه راپيښه شوه چه د قضاء مونځ کولو طريقه هم د رسول الله ﷺ په ذريعه عملي طور په مشاهده کښې راشي، پس ددې نه معلومه شوه چه د اداء په شان د قضاء مونځ دپاره هم جماعت مشروع دې هم دغه شان د سحر د سنتو قضاء.... او د قضاء مونځ دپاره د اذان او اقامت مسئله وغيره، رسول الله ﷺ خپله فرمائي ﴿ انی لا انسی ولکن انسی لاسن ﴾ (موطا) چه زه هيروم نه بلکه زما نه هيرولې شي ددې دپاره چه امت ته د نسيان د احکاماتو علم اوشي، پس سهو فی الصلاة رسول الله ﷺ ته څو کرته پيښه شوې ده، هم دغه شان دا واقعه د ليلة التعريس هم د اکثرو په نزد دوه درې کرته پيښه شوې ده ګينې د رسول الله ﷺ شان خو ډير اعلى او ارفع دې، د هغه د غلامانو د غلامانو حال دا منقول دې چه په هغوى کښې بعض د څلويښتو کالو پورې د ماسخوتن په اودس د سحر مونځ ادا کړې دې لکه چه د امام صاحب متعلق مشهوره ده او د بعض حضراتو په باره کښې د پنځوس کالو پورې د ماسخوتن په اودس باندې د سحر مونځ کړې دې په دې تعليم فعلي کښې چه کوم کارونه د منصب نبوت خلاف نه وو هغه خپله رسول الله ﷺ ته راپيښ شو مثلا مونځ قضاء کيدل، په مونځ کښې سهو راپيښيدل او د کور په حالاتو کښې د ازواج مطهراتو سره د بعض ناخوښه امورو پيښيدل لکه ترک کلام او هم دغه شان د طلاق واقع کيدل وغيره وغيره او کوم امور چه د منصب نبوت خلاف وو د رسول الله ﷺ نه د هغې صادر کيدل د نبوت د شان خلاف وه نو په داسې امورو کښې د تعليم د تکميل دپاره الله پاک د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو انتخاب اوفرمائيلو، صحابه کرامو په خوشحالئ باندې خپل ځان ددې خدمت دپاره پيش کړو، اګر که په دې کښې صورة د هغوى ذلت ولې نه وى، پس د بعض صحابه کرامو سره د زنا او حد زنا وغيره واقعات راپيښ شو او په دې طريقه باندې ددې مسائلو تکميل اوشو دا حضرات په دې واقعاتو کښې هم کامياب دی.

اجد الملامة فی هواک لذيذة     حبا لذکرک فليلمنی اللوم[1]

## بَابٌ فِي بِنَاءِ الْمَسَاجِدِ

### باب دې په بيان د جوړولو د جماتونو کې

په بعض نسخو کښې ددې په ځائې "تفريع ابواب المساجد" د تفريع لفظ مصنف اکثر استعمالوى د تفريع معنى ده تجزيه او تفصيل کوم چه د فرع نه مشتق دې په معنى د څانګې، د ابواب المواقيت نه روستو اوس ددې ځائې نه منصف ابواب المساجد شروع کوى، د ابواب د ماقبل سره مناسبت ظاهر دې هغه دا چه اوس پورې بيان کيدو د مونځ د

[1] شاعر خپل معشوق ته خطاب کولو سره وائي چه ما خلق ستا په محبت باندې ملامته کوي ماته په دې ملامته کښې خوند ملاويږى ځکه چه ملامته کونکي په وخت د ملامتې د محبوب نوم بار بار اخلي.

وختونو ددې ځائې نه د مونځ ځايونه بيانوي د مسجد لغوی معنی موضع السجود دی او په عرف كښې د هغه ځائې نوم دې كوم چه د عبادت دپاره مخصوص وي.

[۴۴۸]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ بْنِ سُفْيَانَ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ أَبِي فَزَارَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ الْأَصَمِّ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا أُمِرْتُ بِتَشْيِيدِ الْمَسَاجِدِ"، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: لَتُزَخْرِفُنَّهَا كَمَا زَخْرَفَتِ الْيَهُودُ، وَالنَّصَارَى.

**ترجمه:** د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې، هغه وايې، وئيلی دی رسول الله ﷺ: ماته حکم نه دی شوی داوچتولو د جماتونو باندې. وئيلی دی ابن عباس: تاسو به ئې ښائسته کوئ لکه څنګه چې ئې ښائسته کوی يهود او نصاری.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا محمد بن الصباح.... عن يزيد بن الاصم ﴾ دا د ام المومنين سيده ميمونه رضي الله عنها خورئې دې، دې روايت کوی د ابن عباس رضي الله عنهما نه، اتفاق ته ګوره چه هغه هم د ميمونې رضي الله عنها خورئې دې ميمونه ددې دواړو (د مور د طرف نه) ترور ده ﴿ ما امرت بتشييد المساجد ﴾ د تشيد دوه معنی دی رفع البناء وتطويله يعنی د کور ابادی اوچتول او دويمه معنی ددې تجصيص البناء ده، شيد په معنی د جص (چونه) نه اخستلې شوې دې يعنی ابادی په چونې سره پخول، د الله پاک قول ﴿ وقصر مشيد ﴾ په تفسير کښې هم دا دوه قولونه دی، ابن رسلان فرمائی چه مشهور په دې حديث کښې اوله معنی ده کما قال النووی وغيره، رسول الله ﷺ فرمائی چه ماته د الله پاک د طرف نه ددې خبرې حکم نه دې کړې شوې چه زه د مسجد ابادی او چته جوړه کړم څکه چه دا اسراف دې خو واضحه دې وی چه عدم امر عدم جواز لره مستلزم نه دې، لهذا په نيک نيتئ سره مثلا د مسجد د تعظيم په نيت سره که اوچت کړې شی نو يقينا جائز به وی، قال ابن عباس لتزخرفنها کما زخرفت اليهود والنصاری... د دې جملې قائل ابن عباس رضي الله عنهما دې په دې وجه دا جمله موقوف شوه خو دا داسې موقوف ده چه حکما مرفوع ده څکه چه دا مضمون د اخبار الغيب د قبيل نه دې کوم چه منصب دې د صاحب رسالت، زخرفه ماخوذ دې د زخرف نه،د زخرف اصل معنی د ذَهَبْ ده لهذا د زخرفه معنی شوه د سرو زرو اوبه ورکول، روستو ددې لفظ استعمال مطلق د تزيين په معنی کښې شروع شو يعنی څنګه چه يهودو او نصاری خپلې عبادت خانې ډولی کړې وې هم دغه شان به دا امت هم خپل مسجدونه ډولی کوی، علماء کرامو ليکلې دی چه اول من زخرف المساجد وليد بن عبدالملک بن مروان. خو د هغه زمانې صحابه کرامو په دې باندې سکوت کړې دې لاجل خوف الفتنة. -

## د تزيين مساجد حکم

شراح حديث حافظ ابن حجر رحمه الله وغيره ليکلې دی چه د جمهورو په نزد تزيين المساجد بدعت او مکروه دې او د احنافو په نزد په دې کښې رخصت دې هغوی دې ته جائز وئيلې دی چه هر کله تعظما للمسجد وی نه د فخر او مباهاة په طور، د احنافو مسلک په در

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٥٥٤)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المساجد والجماعات ٢ (٧٤٠) (صحيح)

مختار کښې دا ليکلې دي چه په تنقيش مساجد کښې هيڅ باک نشته، سوا د مسجد د محراب نه چه د هغې تنقيش مکروه دې، ځکه چه ددې د مخامخ کيدو د وجې نه د مونځ په خشوع کښې فرق راځي، هم دغه شان هغه وړاندې ليکي اگر که نفس تنقيش جائز دې خو تکلف بدقائق النقوش مکروه دې خصوصا په جدار قبله کښې چونکه يو قول دا دې چه د مسجد په چهت کښې جائز دې علامه شامي ليکي چه تنقيش د احنافو په نزد صرف جائز او د لاباس به په درجه کښې دې نه پرې ثواب شته او نه مستحب دې په دې وجه تصدق بالمال اولى دې د مسجد په تزيين کښې د مال خرچ کولو نه، هم دغه شان جواز هم په هغه صورت کښې دې چه کله انسان خپل ذاتي مال خرچ کړي د وقف مال نه داسې کول حرام دي، البته احکام مسجد بالجص (پوخ جوړول) بيشکه جائز دي، ابن المنير چه مشهور شارح حديث دې د هغه رائې هم د جواز تنقيش ده هغه فرمائي چونکه د خلقو عادت چه کله د خپلو کورونو د ډولي کولو وي نو مناسب ده چه مسجدونه هم ډولي اوساتلې شي هغې لره د بې حرمتئ نه د بچ کولو دپاره، پس سيدنا عثمان رضي الله عنه د خپل خلافت په زمانه کښې مسجد نبوي د نوي سر نه تعمير کړې وو لکه چه وړاندې به په کتاب کښې راشي او په صحيحين کښې هم موجود دي هغه دغه عمارت د چونې په ذريعه پوخ جوړ کړې وو او د رسول الله ﷺ او شيخين په زمانه کښې د هغې ابادي د کچه ښختو او د کجهورو د پاڼرو وه، صحابه کرامو چه کله د هغه په دې تغيراتو باندې اعتراض اوکړو نو هغه ورته په جواب کښې مرفوع حديث پيش کړو: من بنى لله مسجدا بنى الله له مثله بيتا في الجنة ﴾ خو عثمان رضي الله عنه چه کومه اضافه کړې وه نو هغه د احکام بناء د قبيل نه وه تزيين پکښې مقصود بالذات نه وو، شارحينو ليکلې دي چه هغه نقشين کاڼرې چه د هغې ستنې جوړې کړې شوې وې هغه هغوی ته هم هغه شان جوړې شوې د بعض ولاياتو نه ملاؤ شوې وې خپله ئې هغوی تنقيش نه وو کړې.

**فائده** : ددې حديث چه کومه حصه په ابن عباس رضي الله عنه باندې موقوف ده هغه امام بخاري رحمه الله هم تعليقا ذکر کړې ده اگر چه اصل حديث هغه نه دې اخستلې چه د هغې وجه حافظ ابن حجر رحمه الله دا ليکلې ده چه ددې حديث په سند کښې اضطراب دې بعض راويانو دا موصولا او بعض مرسلا ذکر کړې دې، هم دغه شان ځان پوهه کړه چه ﴿ لتزخرفنها ﴾ د لام په فتحې سره دې او دا لام لام القسم دې گويا ابن عباس قسم خوري چه تاسو به ضرور داسې کوئ په دې کښې د علامه طيبي شارح مشکاة وهم پيدا شوې دې چه هغه دا لام لام جاره گڼړلې دې او دا جمله ئې د ماقبل سره متعلق منلې ده او دا ټول هغه يو حديث گڼړلې دې او د حديث مطلب ئې دا بيان کړو چه هغه فرمائي چه ماته د مسجدونو د اوچتولو حکم نه دې کړې شوې چه تاسو ددې په ذريعه هغه ډولي او مزين کړئ.

[۴۴۹]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْخُزَاعِيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسٍ، وَقَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَتَبَاهَى النَّاسُ فِي الْمَسَاجِدِ".

[1]: سنن النسائي/المساجد ۲ (۶۹۰)، سنن ابن ماجه/المساجد ۲ (۷۳۹)، (تحفة الأشراف: ۹۵۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۱۳۴، ۱۷۵، ۲۳۰) (صحيح)

**ترجمه:** د انس ﷺ نه روايت دې، بيشکه نبی ﷺ ووېل. قيامت به نه قائمېږی تردې چې فخر وکړی خلق په جماتونو کښې.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا محمد بن عبدالله.... وقتادة عن انس ﴾ د قتاده عطف په ابو قلابه باندې دې يعنی ايوب دا حديث د ابو قلابه او قتاده دواړو نه روايت کوی او بيا دوی دواړه روايت کوی د انس ﷺ نه ﴿ لا تقوم الساعة حتى يتباهى الناس في المساجد ﴾ يعنی د قيامت نه مخکښې ددې خبرې موجود کيدل ضروری دی چه خلق به په خپلو خپلو مسجدونو فخر کوی چه زمونږ مسجد د فلانی قوم د مسجد نه اوچت او ښه دې، ددې حديث متبادر معنی هم دا ده، ددې يو بل مطلب هم کيدې شی چه خلق به په مسجدونو کښې کيناستلو سره د فخر مجلسونه قائموی حال دا چه مسجدونه ددې دپاره نه دی چه په هغې کښې کيناستلو سره د فخر او رياء خبرې اوکړې شی.

[ ٤٥٠ ](¹)حَدَّثَنَا رَجَاءُ بْنُ الْمُرَجَّى، حَدَّثَنَا أَبُو هَمَّامٍ الدَّلَّالُ مُحَمَّدُ بْنُ مُحَبَّبٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ السَّائِبِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عِيَاضٍ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَهُ أَنْ يَجْعَلَ مَسْجِدَ الطَّائِفِ حَيْثُ كَانَ طَوَاغِيتُهُمْ".

**ترجمه:** د عثمان بن ابی العاص نه روايت دې، چه نبی ﷺ امر وکړو هغه ته، چې جوړ کړی مسجد د طائف چرته چې به مشرکانو خپل بتان ايښودل.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا رجاء بن المرجى.... ان يجعل مسجد الطائف حيث كان طواغيتهم ﴾ سيدنا عثمان بن ابی العاص ﷺ کوم چه د رسول الله ﷺ د طرف نه د طائف عامل او حاکم وو هغه ته رسول الله ﷺ حکم اوکړو چه هغه ځائې کښې مسجد جوړ کړی چرته چه مخکښې د کفارو بتان پراته وو يعنی بت خانه ختمه کړی او د هغې په ځائې باندې مسجد تعمير کړی چه په کوم ځائې کښې به د غير الله بندگی کولې شوه هلته اوس د معبود حقيقی بندگی اوکړې شی او د کفر د اثارو خاتمه او د هغوی سپکاوې اوشی، د طاغوت اطلاق په شيطان او بت دواړو باندې کيږی.

[ ٤٥١ ](²)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، وَمُجَاهِدُ بْنُ مُوسَى، وَهُوَ أَتَمُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا نَافِعٌ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ أَخْبَرَهُ "أَنَّ الْمَسْجِدَ كَانَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَبْنِيًّا بِاللَّبِنِ وَالْجَرِيدِ، قَالَ مُجَاهِدٌ: وَعُمُدُهُ مِنْ خَشَبِ النَّخْلِ، فَلَمْ يَزِدْ فِيهِ أَبُو بَكْرٍ شَيْئًا، وَزَادَ فِيهِ عُمَرُ: وَبَنَاهُ عَلَى بِنَائِهِ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّبِنِ وَالْجَرِيدِ وَأَعَادَ عُمُدَهُ، قَالَ مُجَاهِدٌ: عُمُدَهُ خَشَبًا، وَغَيَّرَهُ عُثْمَانُ فَزَادَ فِيهِ زِيَادَةً كَثِيرَةً: وَبَنَى جِدَارَهُ بِالْحِجَارَةِ الْمَنْقُوشَةِ وَالْقَصَّةِ وَجَعَلَ عُمُدَهُ مِنْ حِجَارَةٍ مَنْقُوشَةٍ وَسَقَفَهُ بِالسَّاجِ، قَالَ مُجَاهِدٌ: وَسَقَفَهُ السَّاجَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: الْقَصَّةُ الْجِصُّ.

**ترجمه:** عبد الله بن عمر خبر ورکړی دی نافع ته، چې بيشکه جماتونه په زمانه د رسول الله ﷺ کښې وو جوړ شوی او په خختو او پتهو د قجورو نه. وئيلی دی مجاهد وائی: او ستنې

¹): سنن ابن ماجه /المساجد والجماعات ٣ (٧٤٣)، (تحفة الأشراف: ٩٧٦٩) (ضعيف)

²): صحيح البخاري /الصلاة ٦٢ (٤٤٦)، (تحفة الأشراف: ٧٦٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣٠/٢) (صحيح)

د هغې د لرګو د قجورو نه وې۔ زيادت نه دی ابو بکر ﷺ په دې هيڅ شی، او زيادت کړی دی په هغې کښې عمر او جوړې کړو هغه شان چې جوړ وو په زمانه د رسول الله ﷺ کښې په خښتو او د قجورو د ښاخونونه، او دهغې ستنې ئې هم د نوی لرګو نه جوړې کړې، وئيلی دی مجاهد: عُمُدَهُ خَشَبًا (ستنې د هغې لرګی وو). او تغيير ورکړو ورته عثمان زيادت ئې وکړو په هغې ډير زيات، او جوړ ئې کړل ديوال نه د هغې په کاڼرو سره چې نقشدار وو او د چونې نه، او جوړې ئې کړې ستنې د هغې د کاڼرو نه چې نقشدار دی او چت د هغې په ساج لرګې. وئيلی دی مجاهد: او چت د هغه ساج وو. وئيلی دی ابوداود: قَصَّةُ الْجِصُّ (قصة چونې ته وائی).

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا محمد بن يحيى بن فارس.... ان المسجد كان على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم مبنيا باللبن والجريد... ﴾ يعنی مسجد نبوی د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د کچه ښختو نه جوړ کړې شوې وو او د هغې چهت د کهجورو د ښانګو نه، لکه څنګه چه زمونږ په علاقو کښې دالانونه او چوپالونه جوړولې شی. او د هغې ستنې د کجهورو تنې وې؟ لفظ ﴿عمد ﴾ بفتحين او ﴿ عمد ﴾ بضمتين دواړه قسم نقل دي چه جمع ده ﴿ عمود ﴾ ده په معنی د ستن، ﴿ فلم يزد فيه ابوبكر شيئا ﴾ يعنی د صديق اکبر ﷺ په زمانه کښې چه کله د مسجد ابادی زړه شوه نو هغه بغير د څه ترميم او زيادت نه د مخکښې په شان سامان سره ددې دوباره تعمير اوکړو او سيدنا عمر ﷺ چه په خپله زمانه کښې جوړ کړو نو هغه ئې هم په هغه شان سامان سره، خو هغه د مسجد په رقبه کښې تعمير او توسيع هم اوفرمائيله

**قوله:** وقال مجاهد: عمده خشبا : د مصنف په سند کښې دوه استاذان دی محمد بن يحيى او مجاهد، د دواړو په الفاظو کښې فرق بيانوی، فرق يا خو دا دې چه يو استاذ ئې لفظ ﴿ عمد ﴾ لره بضمتين ذکر کړې دې او دويم په بفتحتين، او کيدې شی مراد دا وی چه يو استاذ لفظ ﴿ خشبا ﴾ وئيلې وی او دويم نه، حضرت سهارنپوری ﷺ په بذل کښې ليکلې دی چه سيدنا عمر ﷺ په مسجد کښې اضافه د قبلې طرف ته کړې وه او په منهل کښې ليکلې دی چه هغه زيادت د مسجد په طول او عرض کښې کړې وو، او بيا صاحب منهل په دې باندې تفصيلی کلام کړې دې ﴿ وغيره عثمان ﴾ سيدنا عثمان ﷺ نه صرف دا چه په مسجد کښې توسيع اوکړه. بلکه مسجد ئې پوخ تعمير کړو او په پخو ښختو سره او د هغې چهت ئې هم بدل کړو د کهجورو د ښانګو په ځائې ئې د هغې تختې د ساګون د لرګی نه جوړې کړې، ساګون يو مشهوره اونه ده کومه چه په هندوستان کښې کيږی ډير اوږد او پير وی چه د هغې پاڼې هم ډير لوئې لوئې وی

﴿ وسقفه با الساج ﴾ دا لفظ مجرور او مزيد دواړه کيدې شی ﴿ سقفه، سقفه ﴾ يو استاذ ﴿ بالساج ﴾ وئيلې دې په باء جاره سره او دويم بغير د حرف جار نه، د عثمان ﷺ ددې ابادئ ذکر د باب په اولنی حديث کښې تير شوې دې.

[٤٥٢]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، عَنْ شَيْبَانَ، عَنْ فِرَاسٍ، عَنْ عَطِيَّةَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ مَسْجِدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتْ سَوَارِيهِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ جُذُوعِ النَّخْلِ، أَعْلَاهُ مُظَلَّلٌ بِجَرِيدِ النَّخْلِ، ثُمَّ إِنَّهَا نَخِرَتْ فِي خِلَافَةِ أَبِي بَكْرٍ فَبَنَاهَا بِجُذُوعِ النَّخْلِ وَبِجَرِيدِ النَّخْلِ، ثُمَّ إِنَّهَا نَخِرَتْ فِي خِلَافَةِ عُثْمَانَ فَبَنَاهَا بِالْآجُرِّ، فَلَمْ تَزَلْ ثَابِتَةً حَتَّى الْآنَ".

**ترجمه**: د ابن عمر ﷺ نه روايت دې، بيشکه مسجد د نبي ﷺ وې ستنې د هغې په زمانه د رسول الله ﷺ کښې د تنو د قجورو نه وې، د بره نه پټ شوی وو په پتو د قجورو باندې، بيا دا زوړ شو په خلافت د ابوبکر کښې نو هغه ئې جوړ کړو په تنو د قجورو باندې او په پتو د قجورو، بيا دا زوړ شو په خلافت د عثمان کښې نو جوړه ئې کړه په خښتو نو هميشه پاتې ده تر اوسه په همدغه حالت(يعنی دحديث تر وخته پورې).

**تشريح**: **قوله**:﴿ حدثنا محمد بن حاتم.... ثم انها نخرت فى خلافة عثمان فبناها بالاجر ﴾ ﴿ اجر ﴾ پخه ښخته د ﴿ لبن ﴾ په مقابله کښې، ددې روايت نه معلوميږی چه د مسجد نبوی ستنو لره سيدنا عثمان ﷺ د پخو ښختو نه جوړ کړې وو ، او ددې نه مخکښې تير شو ، ﴿ بالحجارة المنقوشة ﴾ خو دا روايت د اولنی حديث په مقابله کښې ضعيف دې ددې په سند کښې عطيه بن سعد العوفي دې کوم چه ضعيف دې، او يا دې دا اووئيلې شی چه بعض ستنې د ښختو او بعض د حجاره منقوشه نه جوړ کړې شوې وو.

[٤٥٣]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ أَبِي التَّيَّاحِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ فَنَزَلَ فِي عُلْوِ الْمَدِينَةِ فِي حَيٍّ يُقَالُ لَهُمْ: بَنُو عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ، فَأَقَامَ فِيهِمْ أَرْبَعَ عَشْرَةَ لَيْلَةً ثُمَّ أَرْسَلَ إِلَى بَنِي النَّجَّارِ فَجَاءُوا مُتَقَلِّدِينَ سُيُوفَهُمْ، فَقَالَ أَنَسٌ: فَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى رَاحِلَتِهِ، وَأَبُو بَكْرٍ رِدْفُهُ، وَمَلَأُ بَنِي النَّجَّارِ حَوْلَهُ حَتَّى أَلْقَى بِفِنَاءِ أَبِي أَيُّوبَ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي حَيْثُ أَدْرَكَتْهُ الصَّلَاةُ وَيُصَلِّي فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ، وَإِنَّهُ أَمَرَ بِبِنَاءِ الْمَسْجِدِ، فَأَرْسَلَ إِلَى بَنِي النَّجَّارِ، فَقَالَ: يَا بَنِي النَّجَّارِ، ثَامِنُونِي بِحَائِطِكُمْ هَذَا، فَقَالُوا: وَاللَّهِ لَا نَطْلُبُ ثَمَنَهُ إِلَّا إِلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، قَالَ أَنَسٌ: وَكَانَ فِيهِ مَا أَقُولُ لَكُمْ كَانَتْ فِيهِ قُبُورُ الْمُشْرِكِينَ وَكَانَتْ فِيهِ خِرَبٌ وَكَانَ فِيهِ نَخْلٌ، فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقُبُورِ الْمُشْرِكِينَ فَنُبِشَتْ، وَبِالْخِرَبِ فَسُوِّيَتْ، وَبِالنَّخْلِ فَقُطِعَ، فَصَفُّوا النَّخْلَ قِبْلَةَ الْمَسْجِدِ وَجَعَلُوا عِضَادَتَيْهِ حِجَارَةً، وَجَعَلُوا يَنْقُلُونَ الصَّخْرَ وَهُمْ يَرْتَجِزُونَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَهُمْ وَهُوَ يَقُولُ: اللَّهُمَّ لَا خَيْرَ إِلَّا خَيْرُ الْآخِرَهْ، فَانْصُرِ الْأَنْصَارَ وَالْمُهَاجِرَهْ".

**ترجمه**: د انس بن مالک ﷺ نه روايت دې هغه وئيلی دي: راغې رسول الله ﷺ مدينې ته نو پراوېې واچولو په اوچت ځائې د مدينه کښې په يو کلی کښې چې ورته ويلی شی بنو عمرو بن عوف، نو مقيم شو هلته کښې څوارلس شپې، بيا ئې استادی ولېږلو بنی النجار ته نو راغلل چې خپلې تورې ئې راويستلې وې، نو وايې انس: ګويا کښې زه ګورم رسول الله ﷺ

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٣٣٥) (ضعيف)

(۲): صحيح البخاري/الصلاة ٤٨ (٤٢٨)، وفضائل المدينة ١ (١٨٦٨)، وفضائل الأنصار ٤٦ (٣٩٠٦)، صحيح مسلم/المساجد ١ (٥٢٤)، سنن النسائي/المساجد ١٢ (٧٠٣)، سنن ابن ماجه/المساجد ٣ (٧٤٢)، (تحفة الأشراف: ١٦٩١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ١٤٢ (٣٥٠)، مسند احمد (١١٨/٣، ١٢٣، ٢١٢، ٢٤٤) (صحيح)

ته د هغه په اوښه باندې، او ابوبکر ورپسې وو، او مشران د بني النجار ګير چاپير د هغه نه وو، تردې چې غولې د ابو یوب ته راغی، او وو رسول الله ﷺ چې مونځ ئې کولو په کوم ځائي کښې چې به د مونځ وخت شو، تردې چه مونځ به ئې کولو د چیلو په شپول (باړ) کښې، او هغه امر وکړو په جوړولو د جمات، نو ويې لېږلو بني النجار ته ويې وئيل: اې بني النجار! راخرڅ کړئ په ما باندې خپل دا باغ، هغوی وويل: قسم په الله مونږ نه طلب کوو ستانه قیمت ددې مګر دا مونږ پريږدو د الله دپاره، وئيلی دی انس: او په هغې کښې چه کوم څه وو زه ئې تاسو ته وايم، وو په هغې کښې قبرونه د مشرکانو، او وو په هغې کښې خراب او کنډر ځايونه، او وې په هغې کښې ووني د کجورو، نو امر وکړو رسول الله ﷺ د قبرونو د مشرکانو ،نو هغه راویستل شو، او د کنډراتو او ويرانو ځايونو چې هوار کړې شو، او د کجورود وونو چې پرې کړې شوې، په قطار کښې ئې کیخودل لرګی د کجورو قبلې د جمات قبلې طرف ديوال ته، او جوړې ئې کړې دواړه درشلې د هغې دکانړو نه، او شروع شول چې نقل کول ئې کانړي، او هغوی به اشعار وئيل او نبی ﷺ هم د هغوی سره وو، او هغه به وئيل: ( اللَّهُمَّ لَا خَيْرَ إِلَّا خَيْرُ الْآخِرَةْ، فَانْصُرِ الْأَنْصَارَ وَالْمُهَاجِرَةْ) ای الله نشته دی خير مګر خير د اخرت مدد وکړې د انصارو او د مهاجرينو.

## شرح حدیث

**قوله**:حدثنا مسدد.... فنزل في علو المدينة.... په علو کښې د عين ضمه او کسره دواړه جائز دی علوم المدينة ته عاليه هم وئيلې شی چه د هغې جمع عوالی راځی او دا د مدينې منورې هغه حصه ده کومه چه د نجد (لوړې) طرف ته ده او د مدينې هغه حصه کومه چه د تهامه د طرف نه چه کوم طرف ته مکه ده هغې ته سافله وئيلې شی، دلته د علو المدينه نه مراد قباء ده کومه چه د عوالی مدينه نه ده، دا د مدينې منورې نه تقريبا درې ميلو په فاصله باندې يوه ابادی ده چه په هغې کښې د انصارو بعض خاندانونه اباد وو د تولو نه ممتاز د عمرو بن عوف خاندان وو د رسول اللهﷺ نزول په قباء کښې هم د هغوی په نزد شوې وو په اتم تاريخ يا په دولسم بناء بر اختلاف قولين، رسول اللهﷺ مدينې ته د داخليدو دپاره اوچته لاره اختيار کړه، ددې نه علماء کرامو د رسول اللهﷺ او د هغه د دين د اوچت والی نيک فال نيولې دې چه رسول اللهﷺ او د هغه دين به اوچت وی، پس هم دغه شان اوشوه، فالحمد لله علی ذلک.

﴿ فاقام فيهم اربع عشرة يوما ﴾ په قباء کښې د هغه د قيام په موده کښې روايات مختلف دی، د بخاری شريف په يو روايت کښې څوارلس ورځې او په يو کښې څليرشت ورځې ذکر شوې دی او دريم قول صرف د څلور ورځې قيام دې ددې تفصيل به ان شاء الله په باب الجمعة فی القری په بحث کښې راشی.

## په روايت کښې اختصار

**قوله:**﴿ ثم ارسل الى بني النجار ﴾ دلته په روايت کښې اختصار دې چه رسول الله ﷺ څو ورځې په قباء کښې قيام فرمائيلو نه پس د جمعې په ورځ باندې د هغه ځائې نه روان شو د مدينې په لاره کښې د بنو سالم محله راځي هلته رسيدو سره د جمعې وخت شو په دې وجه رسول الله ﷺ په مسجد د بنو سالم کښې جمعه ادا کړه، دا په اسلام کښې د جمعې د ټولو نه اولنې مونځ وو کوم چه د بنو سالم په مسجد کښې رسول الله ﷺ کړې وو، د مونځ نه فارغ کيدو سره رسول الله ﷺ په اوښه باندې سور شو او صديق اکبر رضی الله عنه ئې په ځان پسې په خپله سورلئ باندې کينولو، د هجرت په وخت باندې رسول الله ﷺ او صديق اکبر په جدا جدا سورلئ باندې وو، غالبا دلته رسول الله ﷺ مصلحتا په خلقو باندې د صديق اکبر اوچت شان ظاهرولو دپاره په خپله سورلئ باندې هغه ځان پسې رديف کړو، ددې ځائې نه په روانيدو باندې رسول الله ﷺ خپل يو قاصد بنو نجار ته کوم چه د رسول الله ﷺ ماماخيل وو (ځکه چه د عبدالمطلب مور سلمى هم د هغوى نه وه) ته اوليږل چه د رسول الله ﷺ اراده هم د هغوى خوا کښې د قيام وه، پس هغوى د رسول الله ﷺ د أستقبال دپاره وسله راخستلې حاضر شو او د هغه نه ښى او ګس، او وړاندې روستو روان وو، د هر سړي خواهش او درخواست د رسول الله ﷺ نه دا وو چه د رسول الله ﷺ قيام د هغوى سره وى، رسول الله ﷺ په هغوى ته دعا کوله او فرمائيل به ئې چه دا اوښه د الله پاک د طرف نه مامور ده چه چرته کيناستله هم هلته به زما قيام وى، بالاخر د رسول الله ﷺ اوښه په محله د بنو نجار کښې رسيدو سره خپله په هغه مقام باندې اودريده چرته چه اوس مسجد نبوى دې، د سيرت په کتابونو کښې دى چه رسول الله ﷺ د اوښې نه کوز نه شو لږ ساعت پس ناقه خپله پاسيده او د ابو ايوب انصارى رضی الله عنه په دروازه باندې کومه چه مخامخ وه هلته کيناستله هغه وخت رسول الله ﷺ د اوښې نه کوز شو او ابوايوب انصارى رضی الله عنه د رسول الله ﷺ سامان اوچت کړو او کور ته ئې يوړلو، د رسول الله ﷺ طبعي ميلان هم دا وو چه رسول الله ﷺ په څه طريقه په بنو نجار کښې کوز شى کوم چه د عبدالمطلب ماماخيل يعنى د رسول الله ﷺ د نيکه ماما خيل دى، الله پاک د رسول الله ﷺ دا خواهش داسې معجزانه طور پوره اوفرمائيلو چه پخپله ناقه هم هلته تلو سره ايسار شوه ددې دپاره چه نور حضرات کوم چه د رسول الله ﷺ د قيام خواهش مند وو په هغې کښې دې د چا دا تاثر نه وى چه مونږ لره پريخودلو سره ئې فلانى ته ترجيح ورکړه.

**قوله:**﴿ وكان رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلي الخ ﴾ د مسجد نبوى د ابادئ نه مخکښې به چه کوم ځائې کښې د مونځ وخت راغلو نو رسول الله ﷺ به په (غير مسجد) کښې کولو، چونکه چرته خواوشا مسجد موجود نه وو په دې وجه رسول الله ﷺ د مسجد د جوړولو او د هغې دپاره د ځائې د اخستلو اراده اوفرمائيله چه د هغې ذکر وړاندې په روايت کښې راروان دې، پس د رسول الله ﷺ اوښه چه په کوم ځائې کښې ناسته وه هغه د بنو نجار د

دوه یتیمانو(١) (مربد) یعنی د کهجورو د اوچولو ځائې وو لکه چه په بعض روایاتو کښې دی او د ابوداود په روایت کښې هغې ته حائط وئیلې شی یعنی باغ ممکنه ده هغه باغ وی او بیا د هغې د ورانیدو نه پس هغه مربد جوړ کړې شوې وی، یا بعض حصه باغ وی او بعض حصه مربد، غرض دا چه رسول الله ﷺ د هغې د زمکې د اخستلو خبرې اترې اوکړې هغه خلقو عرض اوکړو مونږ بغیر د عوض نه هغه له ورکول غواړو، خو رسول الله ﷺ ددې دپاره تیار نه شو بلکه رسول الله ﷺ هغه په ثمن باندې واخستلو، په یو روایت کښې دی چه د ثمن مقدار لس دیناره ورکړې شوو ظاهره ده چه د اخستلو معامله به دې یتیمانو سره د هغوی د ولی په واسطې سره شوې وی، وړاندې په روایت کښې دی چه په دې زمکه کښې د بعض مشرکانو قبرونه ووکوم چه ویستلې شو.

## د مشرکینو قبرونه وړانول

ددې نه معلومه شوه چه د قبور مشرکین نبش جائز دی، امام بخاری رحمه الله هم په دې وجه باندې په دې حدیث باندې ﴿ هل ینبش قبور المشرکین ﴾ باب قائم کړې دې او امام ابوداود هم د کتاب الخراج په بالکل اخر کښې یو باب ترلې دې باب نبش القبور العادیة چه په هغې کښې د ابو رغال قبر او د هغه د نبش واقعه ذکر کړې دې، شامی کښې هم ددې مسئلې تصریح ده چه د قبور مشرکین نبش بلا کراهت جائز دې، ﴿ وکانت فیه حرب ﴾ حرب په وزن د ﴿ کلم ﴾ کوم چه جمع د ﴿ حربة ﴾ په وزن د ﴿ کلمة ﴾ دې، په معنی د غار، غرض دا چه د مشرکانو قبرونه خو ویستلې شو او کوم چه په هغه زمکه کښې غارونه وغیره وو هغه په خاوره باندې هوار کړې شو او کوم چه هلته د کهجورو اونې وې هغه د مسجد دجوړولو په کار کښې استعمال کړې شو.

**قوله:** ﴿ فصفف النخل قبلة المسجد ﴾ یعنی په مسجد کښې د قبلې طرف ته د کهجورو تنې د ستنو په طور قائم کړې او د مسجد د دروازې په دواړو طرفونو کښې د درشل په طور کاڼړی اودرولې شو ﴿ وهم یرتجزون ﴾ چه کله صحابه کرامو د مسجد د تعمیر دپاره کاڼړی اوچتولو سره زاوړل نو په ذوق او شوق کښې ئې دا اشعار وئیل ﴿ اللهم لا خیر الا خیر الاخرة ﴾ الخ رجز د شعر یو قسم دې، او وئیلې شوې دی چه دا باقاعده شعر نه وی بلکه هغه د کلام موزون یو قسم دې لکه چه ترانه وی.

[٤٥٤](٢)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي التَّيَّاحِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: كَانَ مَوْضِعُ الْمَسْجِدِ حَائِطًا لِبَنِي النَّجَّارِ فِيهِ حَرْثٌ وَنَخْلٌ وَقُبُورُ الْمُشْرِكِينَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ثَامِنُونِي بِهِ، فَقَالُوا: لَا نَبْغِي بِهِ ثَمَنًا، فَقُطِعَ النَّخْلُ وَسُوِّيَ الْحَرْثُ وَنُبِشَ قُبُورُ الْمُشْرِكِينَ، وَسَاقَ الْحَدِيثَ، وَقَالَ: فَاغْفِرْ مَكَانَ: فَانْصُرْ، قَالَ مُوسَى: وَحَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بِنَحْوِهِ، وَكَانَ عَبْدُ الْوَارِثِ، يَقُولُ: خَرِبٌ، وَزَعَمَ عَبْدُ الْوَارِثِ أَنَّهُ

(١) چه د هغوی نومونه د یو روایت مطابق سهل او سهیل وو کوم چه د سعد بن زراره په تربیت کښې وو، هسې ددې دواړو په تعیین کښې د علماء رجال اختلاف دې کوم چه ابن الاثیر جزری وغیره ذکر کړې دې، (هامش بذل)

(٢): أنظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٦٩١) (صحیح)

أَفَادَ حَمَّادًا هَذَا الْحَدِيثَ.

**ترجمه**: د انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې هغه وئيلی دي: وو ځائې د جمات يو باغ د بني النجار په هغې کښې فصل وو او قجورې وې، او قبرونه د مشرکانو، نو ووئيل رسول الله ﷺ دا خرڅ کړئ په ما باندې. هغوی ووئيل: مونږ نه غواړو په دې باندې پيسي، قطع ئې کړې اونې، او هوارې کړو فصل، او وېې سپړل قبرونه د مشرکانو، او حديث بيان کړو. او وېې وئيل: (فَاغْفِرْ) په ځائې د (فَانْصُرْ)، وئيلی دی موسی: او بيائې پوره حديث بيان کړې دې مونږ ته عبد الوارث پشان د هغې، او وو عبد الوارث چې وئيل به يې: خِرَث، او گمان کړی دی عبد الوارث، چې هغه بيان کړی دی دا حديث صرف د حماد نه.

**تشريح: قوله:**﴿ حدثنا موسى بن اسماعيل... وساق الحديث ﴾ د ﴿ ساق ﴾ ضمير حماد بن سلمه طرف ته راجع دې چه د ابو التياح شاگرد دې، ددې نه په مخکښې سند کښې د هغه شاگرد عبدالوارث وو او دا خبره د ياد ساتلو ده چه کله په سند کښې داسې عبارت راشی نو ضمير به هغه سړی طرف ته راجع وی چه کوم نوې راوی په هغه دويم سند کښې راشی او دلته حماد بن سلمه دې، د حماد په روايت کښې ﴿ فانصر الانصار ﴾ په ځائې ﴿ فاغفر الانصار ﴾ دې، هم دغه شان په دې دويم روايت کښې په ځائې د لفظ حرب حرث دې (يتيې).

## شرح السند

**قوله:**﴿ وزعم عبدالوارث انه افاد حمادا هذا الحديث ﴾: دې جملې تشريح دا ده چه په دې دويم سند کښې حماد براه راست روايت کوی د ابو التياح نه او په اول سند کښې د ابو التياح نه روايت کونکې عبد الوارث وو او چه د هغې نه دا خبره ثابتيږی چه عبد الوارث او حماد زما نه حاصل کړې وو لهذا حماد د عبد الوارث شاگرد شو نه ملگرې، خو روستو داسې اوشوه چه حماد ترقی کولو سره حديث د خپل استاد الاستاد يعنی ابو التياح نه حاصل کړو په دې وجه حماد دا حديث براه راست د ابو التياح نه روايت کول شروع کړل هم ددې ترقئ نوم علو سند دې.

## بَابُ اتِّخَاذِ الْمَسَاجِدِ فِي الدُّورِ

### باب دې په بيان د جوړولو د جماتونو کې په کورونو کې

[٤٥٥] ([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ، عَنْ زَائِدَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "أَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبِنَاءِ الْمَسَاجِدِ فِي الدُّورِ وَأَنْ تُنَظَّفَ وَتُطَيَّبَ".

**ترجمه**: د عائشې رضی الله عنها نه روايت دې هغې ويلی دي: امر کړی دی رسول الله ﷺ په جوړولو د جماتونو باندې په کورونو کښې، او چې پاک کړی شی او خوشبو کړی شي.

**تشريح: قوله:**﴿ حدثنا محمد بن العلاء.... امر رسول الله صلى الله عليه وسلم ببناء المساجد فی الدور ﴾ دور، د دار جمع ده چه د هغې معنی د بيت او منزل هم راځی او د محلې او قبيلې

[1]: سنن ابن ماجه/المساجد والجماعات ٩ (٧٥٩)، (تحفة الأشراف: ١٦٨٩١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الجمعة ٦٤ (٥٩٤)، مسند احمد (١٢/٥، ٢٧١) (صحيح)

هم، ظاهره دا ده چه دلته دويمه معنى مراد ده، يعني په هر هر محله کښې مسجدونه جوړول پکار دى ځکه چه که داسې نه وى نو د يوې محلې والا به د بلې محلې والا مسجد ته د مونځ کولو دپاره ځى او د فاصلې د وجې نه به د جماعت د فوت کيدو خطره وى، لهذا د ضرورت موافق په هره هره محله کښې مسجدونه پکار دى او که په حديث کښې د دار نه مخکښې معنى مراد کړې شى نو مطلب به دا وى چه په هر يو کور کښې يو مخصوص ځائې د مونځ دپاره هم کيدل پکار دى، مثلا يوه چبوتره يا چوکئ، انسان چه څنګه په کور کښې د خپل ضرورت نور ځيزونه تعمير کوى، غسل خانه، باورچى خانه وغيره، نو د مونځ دپاره ئې هم يوځائې مخصوص کيدل پکار دى کوم چه د مونځ کولو دپاره صفا ستهره اوساتلې شى، خو په دې صورت کښې به د مسجد نه مسجد شرعى مراد نه وى په خلاف د اول صورت چه په هغې کښې مسجد شرعى مراد دې.

## د صحيفه سمره اول حديث

[٤٥٦]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ بْنِ سُفْيَانَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ حَسَّانَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سَعْدِ بْنِ سَمُرَةَ، حَدَّثَنِي خُبَيْبُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِيهِ سُلَيْمَانَ بْنِ سَمُرَةَ، عَنْ أَبِيهِ سَمُرَةَ، أَنَّهُ كَتَبَ إِلَى ابْنِهِ، أَمَّا بَعْدُ، "فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْمُرُنَا بِالْمَسَاجِدِ أَنْ نَصْنَعَهَا فِي دِيَارِنَا وَنُصْلِحَ صَنْعَتَهَا وَنُطَهِّرَهَا".

**ترجمه:** خبيب بن سليمان د خپل پلار سليمان نه روايت کوي، او هغه ئې د خپل پلار سمرة نه کوي، چه هغه وليکل خپل ځوى ته: اما بعد: بيشکه رسول الله ﷺ وو چې امريې کولو مونږ ته په جماتونو باندې چې مونږ ئې جوړ کړو په خپلو کورونو کښې، او د هغې صنعت اصلاح وکړو، او پاک ئې کړو.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا محمد بن داود... انه کتب الى ابنه اما بعد ﴾ دا حديث خبيب د خپل پلار سليمان نه او سليمان د خپل پلار سمره بن جندب صحابى نه روايت کوى په دې کتاب کښې هم په دې سند سره او هم په دې طرز باندې تول شپږ احاديث شو او په مسند بزار کښې داسې تقريبا سل احاديث دى، په اصل کښې دا يوه صحيفه ده، د صحيفه سمره په نوم سره چه په هغې کښې هغه ډير احاديث راجمع کولو سره خپلو ځامنو ته ليږلې وو، ددې تول احاديث په يو سند سره نقل دى هم په دې وجه هغه سند د صحيفې په شروع کښې اوليکلې شو د صحيفه په شروع کښې د سند سره لفظ د ﴿ اما بعد ﴾ هم دې، اوس چه مصنف ددې صحيفې نه يو حديث اخلى نو په شروع کښې چه کوم سند دې هغه اخلى هم په دې وجه باندې هر ځائې کښې ددې صحيفې په حديث کښې لفظ د ﴿ اما بعد ﴾ ملاويږى، دا خبره په مقدمة الکتاب کښې هم راغله د کتابت حديث په بحث کښې، خو دا دې هم واضحه وى چه د محدثينو په نزد دا سند ضعيف شمارلې شى ځکه چه ددې د سند راويان تول مجهول او غير معروف دى، په بذل کښې ليکى: قال ابن القطان ما من هؤلاء من يعرف حاله.

(): تفرد به أبو داود، مسند احمد (۱۷/۵)، (تحفة الأشراف: ٤٦١٦) (صحيح)

## بَابٌ فِي السُّرُجِ فِي الْمَسَاجِدِ

### باب دې په بيان د ډيووکې په جماتونوکې

په مسجدونو كښې ډيوه بلول، ابن رسلان چه د ابوداود شارح دې ليكى : ﴿ واول من اسرج في المساجد تميم الداري ﴾

[٤٥٧]( )حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مِسْكِينٌ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ زِيَادِ بْنِ أَبِي سَوْدَةَ، عَنْ مَيْمُونَةَ مَوْلَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهَا قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَفْتِنَا فِي بَيْتِ الْمَقْدِسِ، فَقَالَ: "ائْتُوهُ فَصَلُّوا فِيهِ، وَكَانَتِ الْبِلَادُ إِذْ ذَاكَ حَرْبًا، فَإِنْ لَمْ تَأْتُوهُ وَتُصَلُّوا فِيهِ، فَابْعَثُوا بِزَيْتٍ يُسْرَجُ فِي قَنَادِيلِهِ".

**ترجمه**: د ميمونى نه روايت دې، دا د نبى ﷺ آزاده كړې وينځه وه، هغې ويلى دي: اې د الله رسوله! فتوى راكړه مونږ ته په باره د بيت المقدس كښې، هغه وفرمائيل: ورشئ هغې ته او مونځ وكړئ په هغې كښې. او وو ښارونه په هغه وخت كښې چه جنګونه به پكښې كيدل، كه تاسو ورته لاړ نه شوئ او مونځ پكې نشئ كولى، نو ولېږئ ورته تيل چې بلولى شى د هغې په ډيوو كښې.

**تشريح**: **قوله**:﴿ قالت : يا رسول الله افتنا في بيت المقدس ﴾ يوې زنانه د هغه نه دا سوال اوكړو چه د بيت المقدس په باره كښې مونږ د حكم شرعى نه خبر كړئ، يعنى دا چه هلته مونږ سفر كولو سره تلې شو او په هغې كښې مونځ وغيره كولى شو يا نه نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه او! هلته ته تلې شي او په هغې كښې مونځ كولې شي وړاندې راوى وائى ﴿ وكانت البلاد اذ ذاك حربا ﴾ يعنى تر هغه وخته پورې د اهل اسلام او اهل شام ترمينځه جنګونه كيدل، ملك شام چرته چه بيت المقدس دې مسلمانانو نه وو فتح كړې د يو مسلمان هلته تلل ګران وو هم په دې وجه رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ فان لم تاتوه وتصلوا فيه ﴾ كه تاسو هلته تلې نه شئ نو داسې اوكړئ چه په څه ذريعې سره هلته د زيتون تيل اوليږئ كوم چه د بيت المقدس ډيوې او تاخچې روښانه كړى. د دې حديث نه په مسجد كښې د ډيوې د بلولو مشروعيت ثابتيږى.

(**جوماتونو ته تيل ليږل**): هم دغه شان ددې نه په مسجدونو كښې د تيلو د ليږلو اصليت هم ثابت شو لكه چه عام طور سره زنانه مسجدونو ته تيل ليږى، معلومه شوه چه دا بې اصله خبره نه ده.

## بَابٌ فِي حَصَى الْمَسْجِدِ

### باب دې په بيان د كانړود مسجد كې

**قوله**:﴿ حصى ﴾ جمع ده د ﴿ حصاة ﴾، ﴿ الاحجار الصغار ﴾ (كانړي) مطلب دا دې چه په مسجد كښې كانړي غوړولې شى په دې كښې هيڅ باک نشته لكه چه د حديث الباب نه معلوميږى.

[٤٥٨]( )حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ تَمَّامِ بْنِ بَزِيعٍ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ سُلَيْمٍ الْبَاهِلِيُّ، عَنْ أَبِي الْوَلِيدِ، سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ عَنِ الْحَصَى الَّذِي فِي الْمَسْجِدِ، فَقَالَ: "مُطِرْنَا ذَاتَ لَيْلَةٍ فَأَصْبَحَتِ الْأَرْضُ مُبْتَلَّةً فَجَعَلَ الرَّجُلُ يَأْتِي بِالْحَصَى فِي ثَوْبِهِ

[1]: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٩٦ (١٤٠٧)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٤٦٣) (ضعيف)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٥٩٤) (ضعيف)

فَيَبْسُطُهُ تَحْتَهُ، فَلَمَّا قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلَاةَ قَالَ: مَا أَحْسَنَ هَذَا".

**ترجمه**: ابو الوليد وايي ما تپوس وکړو د ابن عمر نه په باره د ګيټو کښې هغه چې په مسجد کښې خواره کړی شوی وو؟ هغه وفرمائيل: باران وشو په مونږ باندې يوه شپه نو ځمکه لمده شوه، نو شروع شو سړی چې راوړل به ئې کانړی په خپله جامه کښې، نو خورول به ئې خپل لاندې، هرکله چې رسول الله ﷺ مونځ پوره کړو ويې وئيل: دا څومره ښه دی.

**تشريح**: **قوله**:﴿ سالت ابن عمر عن الحصى اللذى فى المسجد ﴾ د مسجد نبوی په انګنړ کښې کانړی خواره شوي وو، د درو او صفونو خو هغه وخت دستور نه وو ددې په باره کښې يو تابعي د ابن عمر ﷺ نه تپوس اوکړو چه دا چه په مسجد نبوی کښې کانړی خواره دی دا د کله نه خواره دی او ددې څه وجه وه نو هغه ورته جواب ورکړو چه د يو ځل خبره ده چه په مدينه منوره کښې د شپې باران اوشو د مسجد ټول انګنړ په اوبو باندې لوند شو نو خلقو داسې اوکړل چه په خپلو لمنو کښې ئې کانړی راوړل او هر سړی د خپل مونځ کولو په ځائې کښې هغه خواره کړل او په هغې کښې ئې مونځ اوکړل ددې دپاره چه کپړې ئې لوندې نه شی، رسول الله ﷺ د مونځ نه په فارغ کيدو باندې چه کله هغه کانړی اوليدل نو وې فرمائيل ﴿ ما احسن هذا ﴾ چه تاسو څه ښه کار اوکړو، غرض دا چه د هغه وخت نه دا کانړی خواره کړې شوې دی، زه وائم چه په ۱۳۹۳ه کښې چه کله مونږ د حج دپاره حاضر شو نو تر هغه وخته پورې دا د کانړو سلسله قائمه وه په مسجد حرام کښې هم او په مسجد نبوی کښې هم خو په پوره انګنړ کښې نه بلکه د هغې په بعضو حصو کښې، ګويا دا قديم يادګار راروان وو، خو څو کلونه پس چه کله مونږ بيا حاضر شو نو مونږ اوکتل چه د هغه ځائې نه هغه کانړی اوچت کړې شوې وو او د هغې په ځائې پوخ فرش خور کړې شوې وو، وجه د هغې دا بيان کړې شوه چه زنانو چه به کله د ځان سره ماشومان په غيږ کښې حرم ته بوتلل نو د ماشومانو نجاست او متيازې وغيره به هغوی په دغه کانړو کښې پټولو په دې وجه د هغه ځائې منتظمينو دغه سلسله ختمه کړه. انا لله وانا اليه راجعون فالى الله المشتكى. د رسول الله ﷺ د زمانې يوه نخښه ختمه شوه.

[۴۵۹] (۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، وَوَكِيعٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، قَالَ: كَانَ يُقَالُ "إِنَّ الرَّجُلَ إِذَا أَخْرَجَ الْحَصَى مِنَ الْمَسْجِدِ يُنَاشِدُهُ".

**ترجمه**: د ابو صالح نه روايت دې هغه وئيلی دې: دا به وئيل کيده، سړی چې کله اوباسي کانړی د جمات نه ن سوال ورته کوي.

**تشريح**: **قوله**:﴿ ان الرجل اذا اخرج الحصى من المسجد يناشده ﴾ که يو سړې د مسجد نه کانړی اوباسي يعنې هغه بهر غورځوی يا ئې اوچتولو سره بهر راوړی نو هغه کانړې ورته سوال کوی چه د الله خاطر اوکړه ته ما دې ځائې نه مه اوباسه، د کانړی دا سوال کول په دې وجه دی چه مسجد پاک او صفا ځائې دې په دې وجه د هغه ځائې نه وتل نه غواړی، څکه چه

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۸۳۷) (صحيح)

مسجد د رحمت، برکت او عبادت ځائې دې خلق په هغې باندې مونځ کوی او د بهر تلو نه پس به هغه ددې تولو څیزونو نه محروم شی، هم دغه شان دا د کانړو سوال کول کیدې شی په لسان قال او حقیقة وی چه د هغې د کیفیت نه مونږ خبر نه یو، پس د جمهورو سلفو رائې د جمادات او حیوانات د تسبیح په باره کښې هم دا ده چه د هغې ذکر په دې آیت کریمه کښې دې ﴿وان من شئ الا یسبح بحمده﴾ او دا هم احتمال دې چه دا سوال د حال په ژبې سره وی ګویا د کانړو موجوده حالت په مسجد کښې د پریوتلو ددې خبرې مقتضی دې چه هغه دا غواړی چه هغه په کوهی کښې پریخودلې شی اګر چه په ژبې سره هغه هیڅ او نه وئیلې شی، دلته په روایت کښې دی ﴿کان یقال﴾ یعنی صحابه کرامو به خپل مینځ کښې وئیل چه کله یو سړې کانړې د مسجد نه اوباسی نو هغه داسې وائی خو ظاهره خبره دا ده چه صحابه کرام دا خبره په قیاس سره خو نه شی کولې هغوی به د رسول الله ﷺ نه اوریدلې وی لهذا دا حدیث په مرفوع حکم کښې دې ددې نه وړاندې چه کوم حدیث دې په هغې کښې هم د حدیث د مرفوع کیدو ذکر دې اګر چه په تردد سره دې.

[٤٦٠] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ أَبُو بَكْرٍ يَعْنِي الصَّاغَانِيَّ، حَدَّثَنَا أَبُو بَدْرٍ شُجَاعُ بْنُ الْوَلِيدِ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، حَدَّثَنَا أَبُو حُصَيْنٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ أَبُو بَدْرٍ: أُرَاهُ قَدْ رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ الْحَصَاةَ لَتُنَاشِدُ الَّذِي يُخْرِجُهَا مِنَ الْمَسْجِدِ".

**ترجمه**: د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې، ابو بدر وئیلی دې: زما ګمان دی چې بیشکه هغه مرفوع بیلانکړی دی د نبی ﷺ نه هغه ووئیل: بیشکه کانړی سوال کوی هغه کس ته چې اوباسی هغې لره د مسجد نه.

## بَابٌ فِي كَنْسِ الْمَسْجِدِ

### باب دې په بیان د جارو کولو د مسجد کې

یعنی په مسجد کښې جارو وهل مکنسه اله کنس یعنی جارو

[٤٦١] (٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَبْدِ الْحَكَمِ الْخَزَّازُ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْمَجِيدِ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي رَوَّادٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنِ الْمُطَّلِبِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَنْطَبٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عُرِضَتْ عَلَيَّ أُجُورُ أُمَّتِي حَتَّى الْقَذَاةُ يُخْرِجُهَا الرَّجُلُ مِنَ الْمَسْجِدِ، وَعُرِضَتْ عَلَيَّ ذُنُوبُ أُمَّتِي فَلَمْ أَرَ ذَنْبًا أَعْظَمَ مِنْ سُورَةٍ مِنَ الْقُرْآنِ أَوْ آيَةٍ أُوتِيَهَا رَجُلٌ ثُمَّ نَسِيَهَا".

**ترجمه**: انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې هغه وئیلی دې وئیلی دی رسول الله ﷺ: پیش کړی شو ماته اجرونه د امت زما، تردې چې د غورځول شوی شی په جمات کښې چې اوباسي هغې لره سړی د جمات نه، او پیش کړی شو ماته ګناهونه د امت زما، ما ونه لیدله ګناه چې ډیره غټه ده د یو سورت د قرآن نه او یا ایت چې یاد کړی وې هغه سړی بیا ئې هیر کړی وي.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٨٣٧) (ضعيف)
(٢): سنن الترمذي/فضائل القرآن ١٩ (٢٩١٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٩٢) (ضعيف)

**تشریح: قوله:** ﴿ عرضت علي اجور امتي حتى القذاة ﴾ اى اجور اعمال امتي... د مضاف په حذف سره او د مسلم په روایت کښې دی ﴿ عرضت علي اعمال امتى ﴾ اوس په دواړو کښې هیڅ منافات نشته څنګه چه اجرونه پیش کیدلی شی هم دغه شان اعمال هم.

## شرح حدیث

اوعرض نه مراد یا خوعلمی احاطه ده چه دا څیزونه درسول الله ﷺ په علم کښې راوستلې شو، او دا په حقیقت باندې هم محمول کیدې شی په داسې طریقه چه دا اعمال حسنه په ښه صورت کښې پیش کړې شو او اعمال سیئه په ګنده صورت کښې لکه چه د اعمالو په وزن کښې هم یو قول دا دې اوس پاتې شوه دا خبره چه دا عرض کله شوې دې، کیدې شی چه په لیلة المعراج کښې داسې شوې وی یا په بله یوه موقع باندې. والله تعالى اعلم

"حتى القذاة" قذاة هغه خشاک او خځلي (بځری) ته وئیلې شی کوم چه په سترګو یا د څکلو په یو څیز کښې پریوځی کوم چه ډیر معمولی وی، په دې کښې ډیره مبالغه ده مسجدونو لره په صفا کولو کښې، چه کله په دومره لږ څیز کښې ثواب دې نو ددې نه زائد کښې به په طریق اولی وی.

**قوله:** ﴿ فلم ار ذنبا اعظم من سورة من القران الخ ﴾ یعنی په ما باندې زما د امت ګناهونه هم پیش کړې شو نو ما ددې نه لویه ګناه بله او نه لیده چه یو سړی د قران کریم یو سورت یا آیت یاد کړې وی او بیا ترې هغه هیر شوې وی.

## بعض اشکال او د هغې جواب

**اشکال (۱):** دلته دا شبه کیږی چه په دویم حدیث کښې اعظم الذنوب شرک بالله منلې شوې دې، پس وارد دې چه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو، اى الذنوب اعظم عند الله تعالى... نو هغه اوفرمائیل ﴿ ان تجعل لله ندا وهو خلقک ﴾ د دې مختلف جوابات ورکړې شوې دی، یو دا چه په دې حدیث کښې د ټولو ګناهونو نه لوئې ګناهونه مراد نه دی بلکه د صغائرو په نسبت یعنی په صغیره ګناهونو کښې د ټولو نه لوئې دې، یا دا اووئیلې چه مراد دا دې چه نسیان په علم باندې مرتب کیدو والا ګناهونو کښې د ټولو نه لویه ګناه د ټولو نه لویه ګناه د قران کریم هیرول دی، یو بل اشکال دا دې چه نسیان خو په شریعت کښې معاف دې نو بیا په دې باندې مواخذه ولې؟ جواب دا دې چه دوه څیزونه دی یو هیریدل او بل هیرول، دلته دویم مراد دې، او مطلب د ﴿ ثم نسيها ﴾ دا دې چه ﴿ ثم تركها حتى نسيها ﴾ او یو جواب دا هم ورکړې شوې دې چه د نسیان نه مراد عدم الایمان بها دې لکه چه ددې آیت کریمه په تفسیر کښې وئیلې شوې دی ﴿ كذلك اتتك اياتنا فنسيتها ﴾

## نسيان د قرآن کريم حکم

بيا ځان پوهه کړه چه په دې کښې د فقهاء کرامو اختلاف دې چه نسيان د آيت څنګه دې،(١) په منهل کښې ليکلي دی چه د جمهور علماء او ائمه ثلاثه په نزد حرام او کبيره ګناه ده، البته د امام مالک په نزد ما تصح به الصلاة نه زائد يادول مستحب دی ابتداء هم او دواما هم، لهذا ددې هيرول د هغه په نزد صرف مکروه دي.

## باب في اعتزال النساء في المساجد عن الرجال

### باب دې په بيان د اعتزال د ښځو کې په جماتونو کې د سړو نه

د رسول الله ﷺ په زمانه کښې چونکه زنانو په مسجد کښې د سړو سره مونځ کولو، په دې وجه ددې متعلق دا باب دې چه زنانو له پکار دی چه د هغوی د سړو سره اختلاط رانشي.

[٤٦٢](٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو، وَأَبُو مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ تَرَكْنَا هَذَا الْبَابَ لِلنِّسَاءِ"، قَالَ نَافِعٌ: فَلَمْ يَدْخُلْ مِنْهُ ابْنُ عُمَرَ حَتَّى مَاتَ، وَقَالَ غَيْرُ عَبْدِ الْوَارِثِ: قَالَ عُمَرُ: وَهُوَ أَصَحُّ.

**ترجمه:** د ابن عمر رضی الله عنه نه روايت دې هغه وئيلی دي: وئيلی دی رسول الله ﷺ: که چرې دا دروازه مونږ ښځو ته پريخوده نو بهتره ده. وئيلی دی نافع: نو ابن عمر د هغې نه داخل نه شو تر مرګه پورې، او وئيلی دی (نورو راويانو) بغير د عبد الوارث نه: چه وئيلی دی عمر (يعنی ابن عمر نه بلکه عمر وئيلی دی)، او دا ډير صحيح دی.

**تشريح: قوله:** ﴿لو ترکنا هذا الباب للنساء﴾ رسول الله ﷺ د مسجد نبوی د يوې دروازې طرف ته اشاره کولو سره اوفرمائيل چه دا دروازه که مونږ د زنانو دپاره پريږدو نو څه به ښه وی يعنی په دې دروازې سره مسجد ته راتلل صرف د زنانو دپاره شی سړې خپل تلل راتلل په بله دروازه باندې اوساتی، دې وخت کښې خو په مسجد نبوی کښې څو بابونه دی تقريبا اووه اته به وی، خو ددې حديث نه معلوميږی چه هغه وخت کم از کم دوه دروازې وې، په منهل کښې ليکلي دی چه د کومې دروازې طرف ته په دې حديث کښې اشاره ده دا هغه دروازه ده کومه چه د تحويل قبله نه روستو شمالی طرف ته چرته چه بيت المقدس دې پرانستلې شوې وه. ځکه چه اول خو هغه طرف ته قبله وه، اوس چونکه قبله د مکې طرف ته شوه کومه چه د مدينې نه د جنوب په طرف کښې ده نو ددې جانب مقابل په شمال کښې دروازه پرانستلې شوې وه.

﴿قال نافع الخ﴾ نافع رحمه الله د ابن عمر رضی الله عنه شاګرد فرمائی چه ددې حديث د اوريدولو نه پس

---

(١) دکتاب الصلوة په آخر کښې يو بل باب راروان دې: باب التشديد في من حفظ القرآن ثم نسيه، اودهغې لاندې مصنف رحمه الله دا مرفوع حديث ذکر کړې دې: مامن امرئ يقرأ القرآن ثم ينساه الا لقي الله يوم القيامة أجزم، په دې باندې حضرت شيخ رحمه الله ليکلی دی چه د شوافعو په نزد د نسيان (هيرولو) نه مراد دادې چه دا په غيب يعنی حفظ باندې نه شی وئيلی اود احنافو په نزد مراد دادې چه دومره نې هيرکړی چه په کتلو نې هم نه شی وئيلی، والله تعالی أعلم.

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٥٨٨)، ويأتي هذا الحديث عند المؤلف برقم (٥٧١) (صحيح)

ابن عمر تر مرګه پورې کله هم په هغه دروازه باندې مسجد ته نه دې داخل شوې، د ابن عمر رضی الله عنه په باره کښې مشهوره ده چه هغه شديد الاتباع بالسنة وو، ددې نه په طور د مفهوم مخالف دا ذهن ته راځی چه د ابن عمر رضی الله عنه نه علاوه به نور خلق په دغه دروازه داخليدل نو اول خو دا ضروري نه ده، تخصيص ذکري تخصيص حکم لره مستلزم نه دې او که دا اومنو نو کیدې شی چه نور صحابه کرام د مونځ د وختونو نه علاوه په نورو اوقاتو کښې په هغه دروازه باندې داخل شوې وی او دا هم وئيلې کيدې شی چه چونکه د ابن عمر رضی الله عنه نه علاوه نورو صحابه کرامو د رسول الله ﷺ نه په دې سلسله کښې د منع عن الدخول څه صريح ممانعت نه وو اوريدلې په دې وجه به هغوی داخليدل.

﴿وقال غير عبدالوارث : قال عمر : وهو اصح﴾ په دې حديث کښې چه کوم د راويانو اختلاف دې، مصنف هغه بيانوی.

## د مصنف رائې او په هغې باندې نقد

هغه دا چه په دې حديث کښې د ايوب دوه شاګردان دی يو عبدالوارث کوم چه په اول سند کښې دې دويم اسماعيل کوم چه په دويم سند کښې راروان دې، اول الذکر دې حديث ته مرفوع وئيلې دې او مؤخر الذکر دې حديث ته موقوف وئيلې دې، مصنف فرمائی چه ددې حديث په عمر باندې موقوف کيدل زيات صحيح دی په نسبت د مرفوع کيدو، ددې نه روستو مصنف هغه نور روايات ذکر کړې دی کوم چه موقوف دی د هغې نه روستو ئې بيا يو بل روايت ذکر کړو : ﴿ان عمر بن الخطاب کان ينهی الخ﴾ د مصنف غرض ددې دوه روايتونو په ذکر کولو سره وقف لره په رفع باندې ترجيح ورکول دی، خو په دې کښې اشکال دې ځکه چه د اسماعيل روايت منقطع دې، د نافع سماع د عمر نه ثابته نه ده، هم دغه شان د عمر د منع کولو نه دا نه لازميږی چه رسول الله ﷺ ددې نه منع فرمائيلې وی، هم دغه شان عبدالوارث کوم چه دا روايت مرفوعا نقل کوی هغه ثقه دې ددې سند هم متصل دې، فکيف ترجيح الوقف. (من البذل)

[۴۶۳]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ قُدَامَةَ بْنِ أَعْيَنَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، بِمَعْنَاهُ، وَهُوَ أَصَحُّ.

**ترجمه:** دحضرت نافع رضی الله عنه نه روايت دې چه حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه وئيلی دی په شان د هغه حديث، او هم دا ډير صحيح دی

[۴۶۴]([2])حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ يَعْنِي ابْنَ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا بَكْرٌ يَعْنِي ابْنَ مُضَرَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ بُكَيْرٍ، عَنْ نَافِعٍ، "أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ كَانَ يَنْهَى أَنْ يُدْخَلَ مِنْ بَابِ النِّسَاءِ".

**ترجمه:** د نافع نه روايت دې، بيشکه عمر بن الخطاب وو چې منع به ئې کوله د داخليدو نه د دروازې د ښځو نه.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۵۸۸) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۵۸۸) (صحيح)

## بَابٌ فِيمَا يَقُولُهُ الرَّجُلُ عِنْدَ دُخُولِهِ الْمَسْجِدَ

### باب دې په هغې چې سړی چه وايي په وخت د ننوتلو کې جمات ته

[٤٦٥]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُثْمَانَ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي الدَّرَاوَرْدِيَّ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ سَعِيدِ بْنِ سُوَيْدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا حُمَيْدٍ، أَوْ أَبَا أُسَيْدٍ الْأَنْصَارِيَّ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ فَلْيُسَلِّمْ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ لِيَقُلْ: اللَّهُمَّ افْتَحْ لِي أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ، فَإِذَا خَرَجَ فَلْيَقُلْ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ".

**ترجمه**: د عبد الملک بن سعيد بن سويد نه روايت دې هغه وايي چې ما اوريدلی دی د ابو حميد نه او يا د ابو اسيد الانصاری نه، هغه به وئيل: وئيلی دی رسول الله ﷺ کله چې داخلېږي يو کس ستاسو نه جمات ته نو سلام دې کوی په نبی ﷺ، بيا دې وايي: (اللَّهُمَّ افْتَحْ لِي أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ، فَإِذَا خَرَجَ فَلْيَقُلْ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ) ای الله کولاو کړی ماته دروازې د رحمت ستا، کله چې اوځی نو وايي دي: اې الله زه سوال کوم ستانه د فضل ستا.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ سمعت ابا حميد او ابا اسيد ﴾ هم دغه شان په شک سره د مسلم په روايت کښې دی، په ظاهره دا شک خپله عبد الملک ته د ځان متعلق دې چه ما په دې دواړو کښې د يو نه دا حديث واوريدلو، او د ابن ماجه په يو روايت کښې صرف ﴿ عن ابی حميد ﴾ او په يو روايت کښې د دواړو نه روايت دې ﴿ عن ابی حميد وابی اسيد يقولان ﴾ (منهل) دا ابو حميد الساعدی مشهور صحابی دې د هغوی په نوم کښې اختلاف او د ابو اسيد نوم مالک بن ربيعه دې، ابو اسيد بضم الهمزة مصغرا دې دا هم ساعدی دې، ملا علی قاری رحمه الله ليکی وقيل بفتح الهمزة، احقر وائی چه ﴿ ابو اسيد بفتح الهمزة ﴾ بل صحابی دې ﴿ ابو اسيد بن ثابت الانصاری ﴾ چه د هغه نوم عبد الله دې او يو بل راوی دې عطاء بن اسيد دا هم بفتح الهمزة دې (كذا فی الفيض السمائی)

﴿ اذا دخل احدكم المسجد الخ ﴾ چه کله انسان مسجد ته داخل شی نو اولا دې په رسول الله ﷺ باندې سلام اوليږی او بيا دې دا دعا اوکړی ﴿ اللهم افتح لی ابواب رحمتک ﴾، ابن السنی په روايت د انس رضی الله عنه نقل کړې دی چه رسول الله ﷺ چه به کله مسجد ته داخليدو نو وئيل به ئې چه ﴿ بسم الله اللهم صل علی محمد ﴾ هم دغه شان چه به کله مسجد ته داخليدو نو وئيل به ئې ﴿ قال بسم الله اللهم صل علی محمد ﴾ هم دغه شان چه به کله د مسجد نه بهر راوتلو نو داسې به ئې وئيل، د مسند احمد او ابن ماجه يو حديث چه د فاطمه الزهرا رضی الله عنها نه روايت دې چه کله به رسول الله ﷺ مسجد ته داخليدو نو ﴿ بسم الله والسلام علی رسول الله اللهم اغفرلی ذنوبي وافتح لي ابواب رحمتک ﴾ به ئې وئيل، او هم دغه شان به ئې د مسجد نه بهر راوتلو باندې هم دغه شان وئيل او په ځائې د ﴿ ابواب رحمتک ﴾ به ئې ﴿ ابواب فضلک ﴾

(): صحيح مسلم/المسافرين ١٠ (٧١٣)، سنن النسائي/المساجد ٣٦ (٧٣٠)، (تحفة الأشراف: ١١١٩٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المساجد والجماعات ١٣ (٧٧٢)، مسند احمد (٥/ ٤٢٥) سنن الدارمي/الصلاة ١١٥ (١٤٣٤)، والاستئذان ٥٦ (٧٧٢) (صحيح)

وئيل، هم دغه شان د ابن ماجه په يو روايت کښې دی چه د مسجد نه د بهر راوتلو په وخت باندې په رسول اللهﷺ باندې د سلام ليږلو نه روستو دې دا اولولی ﴿ اللهم اعصمنی من الشيطان الرجيم ﴾

**فائده** : د دې رواياتو نه معلومه شوه چه خپله به رسول اللهﷺ هم په خپل ځان باندې سلام ليږلو ددې په پاره کښې شارحينو خو دلته څه نه دی ليکلی، په ظاهره ددې دوه وجې کيدې شی. ۱: رسول اللهﷺ به د امت د تعليم دپاره داسې کول. ۲: خپله نبی باندې هم په خپل نبوت او رسالت باندې ايمان راوړل واجب دې بلکه د ټولو نه مخکښې نو هم هغه ددې خبرې مکلف وی چه هغه په خپل نبوت باندې ايمان راوړی او په دې باندې يقين اوساتی، على هذا القياس، نور څيزونه هم په دې کښې راغلل د خپل مقام رسالت تعظيم او تکريم او صلاة او سلام ليږل وغيره او دا په دې وجه باندې چه رسول کښې وصف نبوت او رسالت نه علاوه يو حيثيت بشر او د ابن ادم کيدو دې، نو نبی ددې خپل دويم حيثيت په لحاظ سره د خپل ذات سره هغه معامله کوی کوم چه امتی لره د خپل نبی سره کول پکار دی.

[٤٦٦]()حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ بِشْرِ بْنِ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ، عَنْ حَيْوَةَ بْنِ شُرَيْحٍ، قَالَ: لَقِيتُ عُقْبَةَ بْنَ مُسْلِمٍ، فَقُلْتُ لَهُ: بَلَغَنِي أَنَّكَ حَدَّثْتَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَنَّهُ كَانَ إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ، قَالَ: أَعُوذُ بِاللَّهِ الْعَظِيمِ وَبِوَجْهِهِ الْكَرِيمِ وَسُلْطَانِهِ الْقَدِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ"، قَالَ: أَقَطْ؟ قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: فَإِذَا قَالَ ذَلِكَ، قَالَ الشَّيْطَانُ: حُفِظَ مِنِّي سَائِرَ الْيَوْمِ.

**ترجمه**: د عبد الله بن عمرو بن العاص روايت کوی د نبی ﷺ نه، بيشکه هغه به چې کله داخليدو مسجد ته وئيل به يې: پناه نيسم په الله لوی باندې، او په مخ د هغه عزتمند . او په بادشاهئ د هغه چې مخکنئ ده، د شيطان رټلی شوی نه. هغه ووېل: ايا بس؟ ما ووېل: آو، هغه ووېل: کله چې دا ووايي، وايي شيطان چې وساتلی شو زمانه ټوله ورځ.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ فقلت له : بلغنی انک حدثت الخ ﴾ حيوة بن شريح فرمائی چه ما عقبه بن مسلم ته اووې چه ماته دا خبره رارسيدلې ده چه تاسو عبدالله بن عمرو بن العاصؓ نه يو حديث مرفوع بيانوی هغه دا چه د رسول اللهﷺ معمول وو چه کله به مسجد کښې داخليدو سره دا دعا کوله (کوم چه په کتاب کښې مذکور ده) نو هغه ددې تصديق اوکړو، خو هغه ورسره دا هم اوفرمائيل چه ايا تاته بس هم دا حديث در رسيدلې دې؟ ما اووې آو! په دې باندې هغه اوفرمائيل چه نه! په دې کښې وړاندې نور هم څه دی هغه دا چه ﴿ فاذا قال ذلک قال الشيطان الخ ﴾ يعنی کله چه يو سړې مسجد ته داخليدو سره ذکر شوې دعا اووائی نو شيطان وائی چه دا سړې د پوره ورځ دپاره زما نه محفوظ شو.

## د ادعيه ماثوره اهتمام

سبحان الله څه ښه دعا ده، لهذا دا دعا مسجد کښې د داخليدو په وخت ضرور وئيل پکار دی بلکه د ټولو ادعيه ماثوره د هغې د معانی او فوائد د استحضار سره هميشه د ياد

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۸۹۰) (صحيح)

ساتلو او وئيلو اهتمام كول پكار دى.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الصَّلَاةِ عِنْدَ دُخُولِ الْمَسْجِدِ

### باب دې په بيان د مونځ (تحية المسجد) كې په وخت د ننوتلو كې جمات ته

[٤٦٧] (¹) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ الزُّرَقِيِّ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ، فَلْيُصَلِّ سَجْدَتَيْنِ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَجْلِسَ".

**ترجمه:** د ابو قتادة رضي الله عنه نه روايت دې بيشكه رسول الله ﷺ ويلى دي: كله چې داخل شي يو كس ستاسو نه مسجد ته نو ودې كړي دوه ركعاته مخكې د كيناستلو نه.

**تشريح: قوله:** إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ: په دې باب او حديث سره مصنف تحية المسجد ثابت كړې دى په دې حديث كښې پنځه مباحث دى.

### د حديث متعلق مباحث خمسه

۱: د تحية المسجد حكم، ۲: تحية المسجد د كوم سړي دپاره دى،

۳: په مسجد كښې د داخليدو نه پس تحية المسجد كولو نه مخكښې كه كيني نو ددې جلوس نه تحية المسجد فوت كيږي يا نه.

۴: ايا دا مونځ به په اوقات مكروه كښې هم كولې شي يا نه؟

۵: د كومو علماء كرامو په نزد چه تنفل بركعة جائز دې نو ايا د هغوى په نزد به يو ركعت تحية المسجد ادا كيږي يا نه؟

### اول بحث:

تحية المسجد د جمهورو په نزد مستحب دې او د اهل ظواهر په نزد واجب دې خو ابن حزم په دې كښې د جمهورو سره دې، هغه د سنتيت قائل دې، اهل ظاهر د امر د صيغې نه استدلال كوى او جمهور د حديث د اعرابى ﴿ هل على غيرهن؟ قال لا الا ان تطوع ﴾ وغيره احاديثو نه استدلال كړې دې، هم دغه شان په طحاوى كښې يو روايت دې، عبد الله بن بسر صحابى نه چه يو ځل د جمعې په ورځ باندې يو سړې مسجد ته داخل شو او د خلقو په ستونو باندې اوريدلو سره وړاندې لاړو نو په دې باندې رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائيل ﴿ اجلس فقد اذيت ﴾ حال دا چه هغه لا تر اوسه پورې تحية المسجد نه وو كړې.

### بحث ثاني:

امام مالك رحمه الله فرمائى چه د تحية المسجد حكم د هغه سړي دپاره دې كوم چه مسجد ته داخل شى د ناستې په قصد باندې، او د كوم سړي اراده چه د كيناستلو نه وى بلكه صرف

---

¹): صحيح البخاري/الصلاة ٦٠ (٤٤٤)، والتهجد ٢٥ (١١٦٣)، صحيح مسلم/ المسافرين ١١ (٧١٤)، سنن الترمذي/ الصلاة ١١٩ (٣١٦)، سنن النسائي/ المساجد ٣٧ (٧٣١)، سنن ابن ماجه/ إقامة الصلاة ٥٧ (١٠١٣)، (تحفة الأشراف: ١٢١٢٣)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ قصر الصلاة ١٨(٥٧)، مسند احمد (٥/٢٩٥، ٢٩٦، ٣٠٣)، سنن الدارمي/الصلاة ١١٤ (١٤٣٣) (صحيح)

تيريدل ئې مقصود وي نو د هغه دپاره نشته، په ظاهره کښې هغه دا قيد د جلوس لفظ حديث ﴿ قبل ان يجلس ﴾ نه مستنبط کړې دې، او د جمهور علماء ائمه ثلاث په نزد د تحية المسجد حکم د هر هغه سړي دپاره دې که مسجد ته د کيناستلو په ارادې سره داخل شوې وي يا هم داسې وي.

**بحث ثالث:**

د حنابله په نزد جلوس طويل سره فوت کيږي په قصير سره نه، که عمدا وي او د شوافعو په نزد په جلوس طويل سره، هم دغه شان په جلوس قصير سره هم که عمدا وي او د احنافو او مالکيانو په نزد مطلقا نه فوت کيږي د کيناستلو نه روستو ئې هم کولې شي.

**بحث رابع:**

د امام شافعي رحمه الله په نزد اوقات مکروه او غير مکروهه ټولو کښې به کولې شي د باقي ائمه ثلاث په نزد صرف په اوقات غير مکروهه کښې، لهذا چه کوم سړې مسجد ته په اوقات منهيه کښې داخل شي نو د هغه دپاره... د تحية المسجد بدل د الله پاک ذکر دې.

**بحث خامس:**

د امام شافعي او احمد په نزد اگر چه تنفل برکعة جائز دې خو د هغه په اصل قول کښې تحية المسجد برکعة کافي نه دې، ځکه چه په حديث کښې د رکعتين قيد ذکر دې.

**فائده**: د تحية المسجد د حکم نه مسجد حرام مستثنى دې ځکه چه د هغه مسجد تحية مونځ نه دې بلکه طواف دې لکه چه فقهاء کرامو ددې خبرې تصريح کړې ده مگر دا چه د يو سړي اراده داخليدو سره فورا د طواف نه وي بلکه د کيناستلو وي نو هغه له پکار دي چه د کيناستلو نه مخکښې دوه رکعتونه اوکړي.

[۴۶۸] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عُمَيْسٍ عُتْبَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي زُرَيْقٍ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِنَحْوِهِ، زَادَ: ثُمَّ لِيَقْعُدْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ، أَوْ لِيَذْهَبْ لِحَاجَتِهِ.

**ترجمه**: د ابو قتادة نه روايت دې، هغه روايت کوي د نبي ﷺ نه پشان د هم هغه حديث، په دې کښې زيادت کړې دې (باقي ص ۱۵۵) بيا دې کيني وروسته که چرې ئې خوښه وي او يا دې لاړ شي خپل ضرورت دپاره.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ زاد : ثم ليقعد بعد ان شاء ﴾ دا حديث هم د ابو قتاده رضي الله عنه دې خو د دويم طريق نه مخکښې طريق کښې عامر بن عبد الله نه روايت کونکې مالک وو او په دې کښې د هغه نه روايت کونکې ابو عميس دې، د ﴿ زاد ﴾ ضمير هم د هغه طرف ته راجع دې، په دې روايت کښې زيادت دې چه د تحية المسجد د کولو نه پس که ئې زړه غواړي نو کيني دې يا چه د کوم کار دپاره راغلې دې د هغې دپاره دې لاړ شي، ددې نه په ظاهره کښې د مالکي مذهب ترديد کيږي کوم چه دا وائي چه تحية المسجد د هغه سړي دپاره دې کوم چه مسجد

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٢١٢٣) (صحيح)

ته د کیناستلو دپاره راغلي وی.

## بَابٌ فِي فَضْلِ الْقُعُودِ فِي الْمَسْجِدِ

### باب دې په بیان د فضیلت د کیناستلو کې په مسجد کې

دا باب د قعود فی المسجد د فضیلت په بیان کښې دې، امام بخاری رحمه الله هم دلته دا باب تړلي دې خو هغه په دې کښې یو قید لګولي دې، من جلس فی المسجد ینتظر الصلاة... فرق دا شو چه د مصنف په رائې کښې د قعود فی المسجد فضیلت مطلقا دې او د امام بخاری د ترجمې نه معلومیږی چه دا فضیلت هغه وخت دې چه کله دا کیناستل د مونځ د انتظار یا د بل یو عبادت دپاره وی، خو مصنف په دې باب کښې دوه روایات ذکر کړې دی، پس د باب د اولنی حدیث نه د مطلق جلوس فی المسجد فضیلت معلوم شو خو په دې کښې یو بل قید دې هغه دا چه ترڅو پورې په هغه ځائې کښې ناست وی چرته چه ئې فرض مونځ کړې دې، او د دویم او دریم حدیث نه د هغه جلوس فضیلت معلومیږی کوم چه د انتظار صلاة دپاره وی.

[۴۶۹] (۱) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمَلَائِكَةُ تُصَلِّي عَلَى أَحَدِكُمْ مَا دَامَ فِي مُصَلَّاهُ الَّذِي صَلَّى فِيهِ، مَا لَمْ يُحْدِثْ أَوْ يَقُمْ، اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ، اللَّهُمَّ ارْحَمْهُ".

**ترجمه:** د أبو هریرة رضی الله عنه نه روایت دې بیشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلی دي: ملائکې دعاګانې غواړی د یو کس ستاسو لپاره تر کومه چې هغه خپل د مانځه په ځائې کښې وې ترکومه چې ئې خبرې نه وې کړی او یا پاخیدلی نه وي: اې الله ته بخښنه وکړی هغه ته، او اې الله ته ورباندې رحم وکړې.

**تشریح: قوله** ﴿ ما لم یحدث او یقوم ﴾ یعنی ملائک د داسې سړی دپاره استغفار هغه وخت کوی چه ترڅو پورې هغه په اودس کښې وی هغه ته بې اودسی نه وی رسیدلې او ترڅو پورې چه هغه د خپل مجلس نه پاسیدلې نه وی،(۲) معلومه شوه چه په اودس ماتیدلو سره د ملائکو دعاء منقطع کیږی.

[1] ): صحیح البخاري/الوضوء ۳۴ (۱۷۶)، والصلاة ٦١ (٤٤٥)، ۸۷ (٤٧٧)، والأذان ۳۰ (٦٤٧)، ۳٦ (٦٥٩)، والبیوع ٤٩ (۲۰۱۳)، وبدء الخلق ۷ (۳۲۲۹)، سنن النسائي/المساجد ٤۰ (۷۳٤)، (تحفة الأشراف: ۱۳۸۱٦)، وقد أخرجه: صحیح مسلم/المساجد ٤٩ (٦٤٩)، سنن الترمذي/الصلاة ۱۲۹ (۳۳۰)، سنن ابن ماجه/المساجد والجماعات ۱۹ (۷۹۹)، موطا امام مالك/ قصر الصلاة ۱۸ (٥۱)، مسند احمد (۲/۲٦٦، ۲۸۹، ۳۱۲، ۳۹٤، ٤۱٥، ٤۲۱، ٤۸٦، ٥۰۲) (صحیح)

[2] ) دغه شان د بخاری په یو روایت کښې د مادام في مجلسه، قید دې، حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی څنګه چه په لامع کښې دی ښکاره داده چه ټول مسجد په حکم د مجلس کښې دې خاص هغه ځای چرته ئې چه مونځ کړې دې نه دې مراد، د لامع په حاشیه کښې حضرت شیخ رحمه الله د حافظ ابن حجر رحمه الله نه هم دا نقل کړی دی څکه چه په یو روایت کښې مطلقا د منتظر صلوة باره کښې راغلی دی چه دا په حکم د مونځ کښې دې، لا یزال في الصلوة ما انتظر الصلوة، او په حدیث کښې منتظر د صلوة د مونځ کونکی په حکم کښې ګرځولې شوې دې نو دغه شان دا هم ونیلی شی چه د في مجلسه نه مراد مطلق موضع د صلوة دې.

## اشكال او جواب

دلته دا اشكال دې چه د ملائكو په استغفار كښې د منتظر صلاة څه تخصيص دې حال دا چه په قران كريم كښې د ملائک حملة العرش په باره كښې دى چه ﴿ ويستغفرون للذين امنوا ﴾ چه د هغې نه معلوميږى چه ملائک د ټولو مومنانو دپاره استغفار كوى، ابن رسلان ددې جواب دا كړې دې چه د حملة العرش دعا كومه چه د ټولو مومنانو دپاره عام وى هغه صرف استغفار دې او د منتظر صلاة دپاره استغفار او دعا د رحمت دواړه دى لكه چه په حديث كښې ددې تصريح ده. ﴿ اللهم اغفر له اللهم ارحمه ﴾ او په مغفرت او رحمت كښې فرق دې، مغفرت صرف د ګناهونو د معافئ نوم دې او رحمت د مزيد لطف او احسان.

[ ٤٧٠ ](¹)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَزَالُ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاةٍ مَا كَانَتِ الصَّلَاةُ تَحْبِسُهُ، لَا يَمْنَعُهُ أَنْ يَنْقَلِبَ إِلَى أَهْلِهِ إِلَّا الصَّلَاةُ".

**ترجمه:** د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې بيشكه رسول الله ﷺ ويلى دي: هميشه وى يو كس ستاسو نه په مانځه كښې تر كومه چې هغه مانځه بند كړى وي، نه وى منع كړى هغه لره چې واپس شى خپل اهل ته مګر مونځ.

[ ٤٧١ ](²)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَزَالُ الْعَبْدُ فِي صَلَاةٍ مَا كَانَ فِي مُصَلَّاهُ يَنْتَظِرُ الصَّلَاةَ، تَقُولُ الْمَلَائِكَةُ: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ اللَّهُمَّ ارْحَمْهُ، حَتَّى يَنْصَرِفَ أَوْ يُحْدِثَ، فَقِيلَ: مَا يُحْدِثُ؟ قَالَ: يَفْسُو أَوْ يَضْرِطُ".

**ترجمه:** د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې بيشكه رسول الله ﷺ ويلى دي: هميشه وى بنده په مانځه كښې تركومه چې د خپل مونځ ځائې كښې وى او د مونځ انتظار كوي، وايي ملائكې: يا الله ته ورته بخښنه وكړي، اى الله ته ورباندې رحم وكړې، تر دې چې لاړ شى او يا بې اودسه شي، وويل شو بې اودسي څه شى دى؟ هغه وفرمائيل: چې فسكئ يا تېز واچوي.

**تشريح: قوله:** ﴿ فقيل ما يحدث الخ ﴾ د ابوهريره رضي الله عنه نه چا تپوس اوكړو چه په حديث كښې د ﴿يحدث﴾ نه څه مراد دې نو هغه اوفرمائيل چه د هوا خارج كيدل، او ريح كوم چه بغير د اواز نه وى او ضراط كوم چه د اواز سره وى، راوى د ﴿ يحدث ﴾ معنى په دې وجه اوتپوسله چه د احداث يوه بله معنى احداث فى الدين يعنى بدعت هم راځى.

## د اخراج ريح فى المسجد حكم

خان پوهه كړه چه د حديث د ظاهر نه معلوميږى چه اخراج ريح فى المسجد جائز دي، پس امام بخارى رحمه الله په دې حديث باندې "الحدث فى المسجد" باب قائم كړې دي، امام نووى رحمه الله فرمائى چه داسې كول حرام خو نه دى خو مكروه دى، علامه دردير مالكى هم دې ته

¹: صحيح البخاري/الأذان ٣٦ (٦٥٩)، صحيح مسلم/المساجد ٤٩ (٦٤٩)، (تحفة الأشراف: ١٣٨٠٧) (صحيح)
²: صحيح مسلم/المساجد ٤٩ (٦٤٩)، (تحفة الأشراف: ١٤٦٥١)، مسند احمد (٢/٤١٥، ٥٢٨) (صحيح)

ممنوع وئیلې دی خو ابن العربی مالکی ورته جائز وئیلې دی او په البحر الرائق کښې دا دی چه زمونږ د مشائخو ددې په کراهت کښې اختلاف دې او علامه شامی لیکلې دی چه یو قول په دې کښې دا دې چه مطلقا جائز دی او اصح دا ده چه د حاجت په وخت جائز دی ګینې مکروه.

## جلوس المحدث فی المسجد

دا خبره خو د حدث فی المسجد وه، او بل څیز دې دلته د جلوس المحدث فی المسجد، پس ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چه دا د حدیث نه معلومیږی چه حدث اصغر د جلوس فی المسجد د جواز نه مانع نه دې هغه وائی چه بعض علماء کرامو ددې په جواز باندې اجماع نقل کړې ده خو د اجماع نقل صحیح نه دې ځکه چه د سعید بن المسیب او حسن بصری مذهب دا دې چه جلوس فی المسجد د محدث دپاره جائز نه دې صرف مرور کولې شی

[۴۷۲]()حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي الْعَاتِكَةِ الْأَزْدِيُّ، عَنْ عُمَيْرِ بْنِ هَانِئٍ الْعَنْسِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَتَى الْمَسْجِدَ لِشَيْءٍ فَهُوَ حَظُّهُ".

**ترجمه**: د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې هغه وئیلی دی، وئیلی دی رسول الله ﷺ څوک چې مسجد ته په څه نیت سره راغې نو هم دا دهغه حصه ده

**تشریح**: **قوله**: ﴿ حدثنا هشام بن عمار.... من اتی المسجد لشئ فهو حظه ﴾ یعنی کوم سړې چه مسجد ته د کوم غرض دپاره راځی هم هغه څیز به د هغه په حصه کښې راځی اوس که هغه راتلل مسجد ته د څه دینی غرض دپاره وی نو هغه ته به ثواب ملاویږی او که د څه دنیوی غرض دپاره وی نو ثواب به ئې هم نه وی.

**تنبیه**: دا خیال دې اونکړې شی چه په دې حدیث او مخکښې روایت کښې تعارض دې، د اولنی حدیث نه مطلقا د کیناستلو فضیلت معلومیږی او په دې کښې دا دی چه څوک په کوم نیت سره مسجد ته لاړ شی هغه ته به هم هغه ملاویږی ځکه چه د مخکښې حدیث تعلق د هغه سړی د جلوس سره دې کوم چه مسجد ته د مونځ دپاره راغلې وو او بیا هم هلته کیناستلو او دا حدیث عام دې که دهغه مسجد ته راتلل په هر څه نیت سره وی، زه وائم چه په ظاهره کښې دا سې معلومیږی چه کوم سړې مسجد ته د یو دنیوی غرض دپاره لاړ شی، د خپل څه ذاتی کار دپاره نو د هغه دپاره ثواب نشته او کوم سړې چه مسجد ته د مونځ یا د بل څه عبادت په غرض باندې لاړ شی نو ترڅو پورې چه په مسجد کښې وی اګر که پوره وخت ئې په عبادت کښې تیر نه شی هغه ته به ددې ثواب ملاویږی، والله تعالی اعلم بالصواب.

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ إِنْشَادِ الضَّالَّةِ فِي الْمَسْجِدِ

### باب دې په بیان د کراهیت د اعلان کولو لپاره د ورک شوې شي په مسجد کې

ضاله ورک شوی څیز. او مشهوره دا ده چه دا خاص دې د حیوان سره او غیر حیوان ته ﴿ لقط ﴾ او ﴿ ضائع ﴾ وئیلې شی، انشاد کوم چه د باب افعال مصدر دې ددې معنی ده د

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۴۲۷۹) (حسن)

ورک شوی څیز تعریف کول یعنی دا اعلان کول چه که د چا یو څیز ورک شو نو زمونږ نه دې معلوم کړی، او په مجرد کښې ﴿ نشد ینشد نشدا ونشدانا ﴾ د دې معنی ده ورک شوی څیز له لټول او طلب کول، او بعض وائی چه د ثلاثی مجرد نه دې ددې معنی تعریف او طلب دواړه دی په خلاف د انشاد چه ددې معنی صرف د تعریف ده چونکه د ورک شوی څیز تعریف یا طلب په اوچت اواز سره کیږی کوم چه د مسجد د احترام خلاف دې په دې وجه په حدیث کښې ددې ممانعت راغلې دې تردې چه امام مالک او د بعض علماء کرام په نزد په مسجد کښې د تعلیم او تعلم دپاره هم اواز اوچتول مکروه دی خو امام ابو حنیفه رحمه الله دې ته جائز وئیلې دی.

[٤٧٣]()حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ الْجُشَمِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنَا حَيْوَةُ يَعْنِي ابْنَ شُرَيْحٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا الْأَسْوَدِ يَعْنِي مُحَمَّدَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ نَوْفَلٍ، يَقُولُ: أَخْبَرَنِي أَبُو عَبْدِ اللَّهِ مَوْلَى شَدَّادٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ سَمِعَ رَجُلًا يَنْشُدُ ضَالَّةً فِي الْمَسْجِدِ فَلْيَقُلْ: لَا أَدَّاهَا اللَّهُ إِلَيْكَ، فَإِنَّ الْمَسَاجِدَ لَمْ تُبْنَ لِهَذَا".

**ترجمه**: ابو هریره رضی الله عنه به ویل، چې ما اوریدلی د رسول الله ﷺ نه هغه به فرمائیل: چا چې واوریدل د سړی نه چې اعلان ئې کولو د ورک شی په مسجد کښې نو ودې وایې: الله دې پیدا نه کړی تاته ځکه جماتونه نه دې جوړ شوی ددې دپاره.

**تشریح: قوله**:﴿ لا اداها الله الیک ﴾ په دې جمله کښې دوه احتمالات مشهور دی. ۱: دا چه دا یوه جمله ده او مطلب دا دې چه الله پاک دې تاته ستا څیز درنکړی. ۲: دا دوه جملې دی او د حرف ﴿ لا ﴾ مدخول محذوف دې یعنی ﴿ لا تنشد ﴾ او دویم جمله ﴿ اداها الله الیک ﴾ یعنی اول ئې هغه په مسجد کښې د اواز اوچتولو نه منع کړو بیا ئې د هغه دپاره دعا اوکړه چه الله پاک دې ستا څیز تاته درکړی.

﴿ فان المساجد لم تبن لهذا ﴾ یا خو دا هم ددې مقولې نه ده چه دا قوله خبره دې هغه ته اوکړی او دا د حکم مذکور علت دې، دا مطلب نه دې چه دا دې هم ورسره اوائی.

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ الْبُزَاقِ فِي الْمَسْجِدِ

### باب دې په بیان د کراهیت د لاړو غورځولو کې په مسجد کې

بزاق او بصاق او بساق دری واړه قسمه دې یعنی ماء الفم (لاړې) د خولې نه بهر راتلو نه پس او چه ترڅو پورې هغه په خولې کښې دننه وی نو هغې ته ﴿ ریق ﴾ وئیلې شی، دا ابواب المساجد روان دی نو په دې ابوابو کښې مصنف د مسجد اداب او احکام بیانوی بعض د هغې نه دا دی کوم چه په دې باب کښې ذکر شوې دی

[۱]: صحیح مسلم/المساجد ۱۸ (۵٦۸)، سنن ابن ماجه/المساجد والجماعات ۱۱ (۷٦۷)، (تحفة الأشراف: ۱۵٤٤٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۳٤۹)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۱۸ (۱٤٤۱) (صحيح)

[۴۷۴]()حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، وَشُعْبَةُ، وَأَبَانُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "التَّفْلُ فِي الْمَسْجِدِ خَطِيئَةٌ، وَكَفَّارَتُهُ أَنْ تُوَارِيَهُ".

**ترجمه**: د انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دي بيشکه نبی ﷺ ويلی دي لاړې غورځول په مسجد کښې ګناه ده او کفاره ئې داده چې هغه خښه کړی شي.

**تشريح**: **قوله**:﴿ حدثنا مسلم بن ابراهيم.... التفل فی المسجد خطيئة وكفارته ان تواريه ﴾ يعنی په مسجد کښې تهوکل خطاء ده لهذا داسې نه دی کول پکار خو که اوکړی نو د هغې کفاره پوره کول دا دی چه په خپو سره ئې په خاور کښې پټ کړی، ددې حديث نه په ظاهره کښې معلوميږی چه تفل فی المسجد مطلقا خطاء ده هم دا رائې د امام نووی رحمه الله ده.

**د حديث په شرح د امام نووی رحمه الله او د قاضی عياض رحمه الله سخت اختلاف**

په دې کښې د امام نووی رحمه الله او قاضی عياض رحمه الله مشهور اختلاف دې، قاضی صاحب دا فرمائی چه تفل فی المسجد هغه وخت خطاء ده چه کله ئې هغه دفن کړې نه وی او که د دفن کولو په ارادې سره په مسجد کښې اوتهوکی نو بيا جائز ده، امام نووی رحمه الله د مسلم په شرح کښې ددې رائې سخت ترديد کړې دې چه دا رائې بالکل باطله ده، حافظ ابن حجر رحمه الله ددې اختلاف توضيح داسې کړې دې چه دلته دوه احاديث ذکر شوې دی ﴿ التفل فی المسجد خطيئة ﴾ او دويم حديث ﴿ ليبصق عن يساره او تحت قدمه ﴾ يعنی کوم سړې چه مونځ کوی او د توخی د وجې نه ئې بلغم خولې ته راشی نو هغه له پکار دی چه نه خو دې ښی طرف ته تهوکی او نه مخامخ، بلکه ګس طرف يا د قدم د لاندې، دا دويم حديث په ظاهره کښې عام دې برابره خبره ده که هغه په مسجد کښې مونځ کوی يا د مسجد نه خارج، لهذا په حديثين کښې تعارض شو، د رفع تعارض شکل امام نووی رحمه الله دا اختيار کړو چه د منع حديث دې د هغه په عموم باندې اوساتلو، او د جواز والا حديث ئې خاص کړو ددې صورت سره چه کله د مسجد نه خارج مونځ کوی او قاضی عياض ددې برعکس کړې دی چه د جواز روايت ئې په خپل عموم باندې کيخودلې دې، او د جواز والا حديث ئې په خپل عموم باندې ساتلې دې برابره خبره ده که مونځ په مسجد کښې کوی يا د مسجد نه بهر او د منع روايت ئې خاص کړې دې د هغه سړی سره کوم چه په مسجد کښې تهوکلو سره دې هغه دفن نه کړی هسې د حافظ ميلان د قاضی عياض رائې طرف ته دې ځکه چه هغه ددې قسم ډيرو رواياتو حواله کړې ده چه د هغې نه د قاضی عياض د رائې تائيد کيږی او معلوميږی چه تفل فی المسجد هم په هغه وخت کښې خطاء ده چه کله هغه دفن نه کړی. زه وايم چه د باب د دريم حديث نه هم د قاضی عياض تائيد کيږی ﴿ من دخل هذا المسجد الخ ﴾ يعنی کوم سړې چه مسجد ته داخل شو او په هغې کښې د ضرورت د وجې نه لاړې اوتهوکی نو

[1]: حديث مسلم بن إبراهيم عن هشام وأبان تفرد به أبو داود، تحفة (۱۱۳۷، ۱۳۸۳)، وحديث مسلم بن إبراهيم عن شعبة، صحيح البخاري/الصلاة ۳۷ (۴۱۵)، صحيح مسلم/المساجد ۱۳ (۵۵۲)، (تحفة الأشراف: ۱۲۵۱)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الجمعة ۴۹ (۵۷۲)، سنن النسائي/المساجد ۳۰ (۷۲۴)، مسند احمد (۱۷۳/۳، ۲۳۲، ۲۷۴، ۲۷۷)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۱۶ (۱۴۳۵) (صحيح)

هغه له پکار دي چه په خاوره کښې ئې دفن کړي او که هلته د دفن څه شکل نه وي نو د خپلې کپړې په يو ګټ کښې دې اوتهوکي او هغه دې اومږي ددې دپاره چه کپړه ئې جذب کړي.

[٤٧٥]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْبُزَاقُ فِي الْمَسْجِدِ خَطِيئَةٌ، وَكَفَّارَتُهَا دَفْنُهَا".

**ترجمه:** د انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت هغه وئيلي دي وئيلي دي رسول الله ﷺ: لاړې په جمات کښې ګناه ده او کفاره د هغې خښول دي.

[٤٧٦]([2])حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ يَعْنِي ابْنَ زُرَيْعٍ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: النُّخَاعَةُ فِي الْمَسْجِدِ، فَذَكَرَ مِثْلَهُ.

**ترجمه:** د انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلي دي: فرمائيلي دي رسول الله ﷺ: خراشکي (دخولې يا پوزې نه) په جمات کښې تهوکل (ګناه ده). بيا ئې ذکر کړو حديث پشان دهغې.

[٤٧٧]([3])حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو مَوْدُودٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي حَدْرَدٍ الْأَسْلَمِيِّ، سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ دَخَلَ هَذَا الْمَسْجِدَ فَبَزَقَ فِيهِ أَوْ تَنَخَّمَ، فَلْيَحْفِرْ فَلْيَدْفِنْهُ، فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ، فَلْيَبْزُقْ فِي ثَوْبِهِ ثُمَّ لِيَخْرُجْ بِهِ".

**ترجمه:** ابو هريره رضي الله عنه به وئيل: فرمائيلي دي رسول الله ﷺ: څوک چې دې مسجد ته داخل شو او لاړې ئې پکې واچولې، او يايې پکې بلغم واچوله نو کنده دې وباسي او هغه دې ښخ کړي، که داسې نه کوي نو لاړې دې واچوي په جامه کښې بيا دې بهر اوباسي.

[٤٧٨]([4])حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ رِبْعِيٍّ، عَنْ طَارِقِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْمُحَارِبِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا قَامَ الرَّجُلُ إِلَى الصَّلَاةِ، أَوْ إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ، فَلَا يَبْزُقْ أَمَامَهُ وَلَا عَنْ يَمِينِهِ، وَلَكِنْ عَنْ تِلْقَاءِ يَسَارِهِ إِنْ كَانَ فَارِغًا، أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ الْيُسْرَى ثُمَّ لِيَقُلْ بِهِ".

**ترجمه:** طارق بن عبد الله المحاربي وېلي دي: فرمائيلي دي رسول الله ﷺ: کله چې ودرېږي سړي مانځه ته، او يا کله چې مونځ کوي يو کس ستاسو نه، نو لاړې دې نه توکي خپلې مخې ته، او نه ښي طرف ته، لکن ګس طرف ته، که چرې فارغ وو او يا لاندې د ګسې خپې نه، بيا دې ومږي په هغې سره

[1]: صحيح مسلم/المساجد ٣٧ (٥٥٢)، سنن الترمذي/الجمعة ٤٩ (٥٧٢)، سنن النسائي/المساجد ٣٠ (٧٢٤)، (تحفة الأشراف: ١٤٢٨) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢١١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠٩/٣، ٢٠٩، ٢٣٤) (صحيح)

[3]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٣٥٩٥)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلاة ٣٤ (٤٠٨ و ٤٠٩)، ٣٥ (٤١٠ و ٤١١)، صحيح مسلم/المساجد ١٣ (٥٤٨)، سنن النسائي/المساجد ٣٢ (٧٢٦)، سنن ابن ماجه/المساجد والجماعات ١٠ (٧٢٤)، مسند احمد (٢٦٠/٢، ٣٢٤، ٤٧١، ٥٣٢)، سنن الدارمي/الصلاة ١١٦ (١٤٣٨) (حسن صحيح)

[4]: سنن الترمذي/الجمعة ٤٩ (٥٧١)، سنن النسائي/المساجد ٣٣ (٧٢٧)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٦١ (١٠٢١)، (تحفة الأشراف: ٤٩٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩٦/٦) (صحيح)

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا هناد بن السري.... فلا يبزق امامه ولا عن يمينه الخ ﴾ يعنې په مانځه کښې که د تهوکلو ضرورت راشي نو نه دې ورانديې لاړې تهوکې چه دې طرف ته قبله ده او نه دې ښي طرف ته تهوکې ځکه چه دا طرف يمين محترم دې او ا ګس طرف ته دې وتهوکې که دې طرف ته څوک مونځ کونکې نه وي.

## په جانب يمين او جانب يسار کښې د فرق وجه

دلته دا سوال راځي چه ګس طرف ته د تهوکلو اجازت ولې دې حال دا چه دې طرف ته هم فرشته ده ددې يو جواب خو دا دې چه د ښي طرف ممانعت د فرشتې د وجې نه نه دې بلکه د هغه ښې طرف فی نفسه اشرف دې او بعض ددې جواب د اورکړې دې چه ملک اليمين کاتب حسنات دې او ملک اليسار کاتب سيئات دې او کاتب حسنات امير وي په کاتب سيئات باندې، پس په يو روايت کښې دی چه کله انسان ګناه کوی نو ملک اليمين ملک اليسار لره د لږ ساعت دپاره د هغې د کتابت نه منع کړي چه کيدې شي هغه سړې د خپل معصيت نه رجوع اوکړي، او بعض شارحينو دا وجه بيان کړې ده چه مونځ حسنه دې د ښي طرف والا فرشته کاتب حسنات ده هغه په داسې وخت کښې د مونځ طرف ته متوجه کيږي او د کاتب سيئات د عمل دا وخت نه دې هغه به يو طرف ته ناست وي لهذا په ګس طرف ته تهوکلو کښې هيڅ باک نشته، او ددې نه غوره جواب هغه دې کوم چه د طبراني د روايت نه معلوميږي چه کله انسان مونځ کوی نو د هغه ښي طرف ته يوه فرشته اودريږي او ګس طرف ته ئې قرين يعنې شيطان، ددې نه معلومه شوه چه د ښي طرف ممانعت د کاتب حسنات د وجې نه نه دې بلکه ددې نه علاوه يوه بله فرشته هغه وخت ښي طرف ته وي او د هغې په مقابله کښې ګس طرف ته شيطان.

**قوله:** ﴿ ثم ليقل به ﴾ دلته ﴿ ليقل ﴾ د ﴿ ليفعل ﴾ په معنی کښې دې، رسول الله ﷺ په اشارې سره پوهه کړو چه بيا دې داسې اوکړي يعنې هغه دې په خاوره کښې دفن کړي، عرب خلق قول په مختلفو معنی کښې استعمالوی، ﴿ قال بيده قال برجله ﴾، يعنې په لاس سره ئې اونيولو او په خپو سره روان شو وغيره وغيره.

[۴۷۹] (۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "بَيْنَمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ يَوْمًا إِذْ رَأَى نُخَامَةً فِي قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ فَتَغَيَّظَ عَلَى النَّاسِ ثُمَّ حَكَّهَا، قَالَ: وَأَحْسِبُهُ قَالَ: فَدَعَا بِزَعْفَرَانٍ فَلَطَخَهُ بِهِ، وَقَالَ: إِنَّ اللَّهَ قِبَلَ وَجْهِ أَحَدِكُمْ إِذَا صَلَّى، فَلَا يَبْزُقْ بَيْنَ يَدَيْهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ إِسْمَاعِيلُ، وَعَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، وَمَالِكٍ، وَعُبَيْدِ اللَّهِ، وَمُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ نَافِعٍ، نَحْوَ حَمَّادٍ، إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرُوا الزَّعْفَرَانَ، وَرَوَاهُ مَعْمَرٌ، عَنْ أَيُّوبَ، وَأَثْبَتَ الزَّعْفَرَانَ فِيهِ، وَذَكَرَ يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ الْخَلُوقَ.

(۱): صحيح البخاري/الصلاة ۳۳ (۴۰٦)، والأذان ۹۴ (۷۵۳)، والعمل في الصلاة ۲ (۱۲۱۳)، والأدب ۷۵ (٦۱۱۱)، صحيح مسلم/المساجد ۱۳ (۵۴۷)، (تحفة الأشراف: ۷۵۱۸) وقد أخرجه: سنن النسائي/المساجد ۳۰ (۷۲۴)، سنن ابن ماجه/المساجد والجماعات ۱۰ (۷۲۴)، موطا امام مالك/القبلة ۳ (۴)، مسند أحمد (۲/۳۲، ٦٦، ۸۳، ۹٦) سنن الدارمي/الصلاة ۱۱٦ (۱۴۳۷) (صحيح)

**ترجمه:** د ابن عمر ﷛ نه روايت دي هغه وئيلي دي چې يو ځل رسول الله ﷺ خطبه ورکوله وبي ليدله خنړه په مسجد کښې نو غصه شو خلقو ته، بيا ئي وسولوله، هغه وايي: زه ګمان کوم چې هغه ووېل: راوبې غوختل زعفران هغه پرې وسولولو، او وبې وئيل: بيشکه الله مخاخ د مخ ستاسو د يو کس ته وی کله چې مونځ کوی نو لاړې دې نه توکي مخې خپلې ته. وئيلي دي ابوداود: روايت کړې دی اسماعيل او عبد الوارث د ايوب نه، او ذکر کړې ئي دی زعفران په هغې کښې، او ذکر کړې دی يحيى بن سليم د عبيد الله نه او هغه د نافع نه د خلوق خوشبوئی.

[۴۸۰]() حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَبِيبِ بْنِ عَرَبِيٍّ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ يَعْنِي ابْنَ الْحَارِثِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عِيَاضِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُحِبُّ الْعَرَاجِينَ، وَلَا يَزَالُ فِي يَدِهِ مِنْهَا فَدَخَلَ الْمَسْجِدَ فَرَأَى نُخَامَةً فِي قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ فَحَكَّهَا ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ مُغْضَبًا، فَقَالَ: "أَيَسُرُّ أَحَدَكُمْ أَنْ يُبْصَقَ فِي وَجْهِهِ، إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ فَإِنَّمَا يَسْتَقْبِلُ رَبَّهُ عَزَّ وَجَلَّ وَالْمَلَكُ عَنْ يَمِينِهِ، فَلَا يَتْفُلْ عَنْ يَمِينِهِ وَلَا فِي قِبْلَتِهِ وَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ أَوْ تَحْتَ قَدَمِهِ فَإِنْ عَجِلَ بِهِ أَمْرٌ فَلْيَقُلْ هَكَذَا، وَوَصَفَ لَنَا ابْنُ عَجْلَانَ ذَلِكَ: أَنْ يَتْفُلَ فِي ثَوْبِهِ ثُمَّ يَرُدَّ بَعْضَهُ عَلَى بَعْضٍ".

**ترجمه:** د ابو سعيد الخدری ﷛ نه روايت دي، بيشکه نبی ﷺ وو چې خوښ ئي وو عراجين (د قجورې څانګې پورې لرګی) هميشه وو د ه غه له لاس کښې د هغې نه، نو داخل شو مسجد ته نو وبې ليدله خنړه په طرف د مسجد کښې نو وبې سولوله، بيا مخامخ شو خلکو ته په غصه، وی فرمائيل: ايا خوشالوی يو کس ستاسو دا چې توکړی خپلې مخې ته؟ بيشکه يو کس ستاسو نه کله چې مخ کړی قبلې ته بيشکه هغه مخ کوی خپل رب ته او فرشته د هغه ښي طرف ته وي، نو نه دې توکي ښي طرف ته، او نه قبلې ته، ودې توکي ګس طرف ته، او يا لاندې د خپې نه، که چيرې په تلوار کړی وو ده څه کار نو داسې دې وکړې او صفت بيان کړو مونږ ته ابن عجلان د دغې چې توکړی په خپله جامه باندې، بيا او مږی ديو بل سره.

## مضمون حديث

**قوله:** حدثنا يحيى بن حبيب.... ان النبی صلی الله عليه وسلم کان يحب العراجين الخ... د حديث مضمون دا دې چه رسول الله ﷺ په خپل لاس مبارک کښې د اونې څانګه چوکه ساتل خوښول، چه کله به ئې چرته تشريف اوړلو نو په لاس کښې به ئې چوکه وه، يو ځل رسول الله ﷺ مسجد ته داخل شو نو مخامخ د قبلې په ديوال باندې هغه بلغم لګيدلې اوليدو نو رسول الله ﷺ هغه په همسا باندې ختمه کړه او بيا د غصې په حالت کښې خلقو ته متوجه شو. وراندې د حديث مضمون واضح دې ﴿ فان عجل به امر ﴾ يعنی که چاته ناڅاپه د تهوکلو ضرورت راشي نو د خپلې کپړې په په ګوټ باندې دې هغه اوتهوکی او بيا دې هغه اومږی

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٢٧٥)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلاة ٣٤ (٤٠٨، ٤٠٩)، ٣٥ (٤١٠، ٤١١)، ٣٦ (٤١٣)، صحيح مسلم/المساجد ١٣ (٥٥٠)، سنن النسائي/المساجد ٣٢ (٧٢٦)، سنن ابن ماجه/المساجد ١٠ (٧٦١)، مسند احمد (٦/٣، ٢٤، ٥٨، ٨٨، ٩٣) (حسن صحيح)

ددې دپاره چه جذب شي.

دا حديث د بلغم په پاکوالی باندې دلالت کوی لکه چه د جمهور علماء کرامو مسلک دې البته ابراهيم نخعي د بلغم د نجاست قائل دې. (ابن رسلان)

[٤٨٥]()حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ الْفَضْلِ السِّجِسْتَانِيُّ، وَهِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الدِّمَشْقِيَّانِ، بِهَذَا الحديث وهذا لفظ يحيى بن الفضل السجستاني، قَالُوا: حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ مُجَاهِدٍ أَبُو حَزْرَةَ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الْوَلِيدِ بْنِ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، أَتَيْنَا جَابِرًا يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ اللَّهِ وَهُوَ فِي مَسْجِدِهِ، فَقَالَ: أَتَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَسْجِدِنَا هَذَا وَفِي يَدِهِ عُرْجُونُ ابْنِ طَابٍ، فَنَظَرَ فَرَأَى فِي قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ نُخَامَةً فَأَقْبَلَ عَلَيْهَا فَحَتَّهَا بِالْعُرْجُونِ، ثُمَّ قَالَ: "أَيُّكُمْ يُحِبُّ أَنْ يُعْرِضَ اللَّهُ عَنْهُ بِوَجْهِهِ؟ ثُمَّ قَالَ: إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا قَامَ يُصَلِّي فَإِنَّ اللَّهَ قِبَلَ وَجْهِهِ، فَلَا يَبْصُقَنَّ قِبَلَ وَجْهِهِ وَلَا عَنْ يَمِينِهِ، وَلْيَبْزُقْ عَنْ يَسَارِهِ تَحْتَ رِجْلِهِ الْيُسْرَى، فَإِنْ عَجِلَتْ بِهِ بَادِرَةٌ فَلْيَقُلْ بِثَوْبِهِ هَكَذَا، وَوَضَعَهُ عَلَى فِيهِ، ثُمَّ دَلَكَهُ، ثُمَّ قَالَ: أَرُونِي عَبِيرًا، فَقَامَ فَتًى مِنَ الْحَيِّ يَشْتَدُّ إِلَى أَهْلِهِ فَجَاءَ بِخَلُوقٍ فِي رَاحَتِهِ، فَأَخَذَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَهُ عَلَى رَأْسِ الْعُرْجُونِ ثُمَّ لَطَخَ بِهِ عَلَى أَثَرِ النُّخَامَةِ"، قَالَ جَابِرٌ: فَمِنْ هُنَاكَ جَعَلْتُمُ الْخَلُوقَ فِي مَسَاجِدِكُمْ.

**ترجمه**: د عبادة بن الوليد بن عبادة بن الصامت نه روايت دې هغه وايي: مونږ راغلو جابر ابن عبد الله ته، او هغه په خپل مسجد کښې وو، هغه ووېل راغې مونږ ته رسول الله ﷺ زمونږ په دې مسجد کښې، او په لاس د هغه کښې څانګه وه د ابن طاب (د کجورې يو قسم) نه، نو وئې کتل، نو ويې ليدل په قبلې د مسجد کښې خنړه نو مخامخ شو هغې ته، هغه وګرولو په څانګه د کجورې، بيا ئې ووېل: کوم يو د تاسو نه خوښوی چې الله اعراض وکړی د هغه نه په خپل مخ باندې، بيا ئې ووېل: بيشکه يو کس ستاسو نه کله چې ودرېږی چې مونځ وکړی بيشکه الله مخامخ د هغه مخ ته وي، نو لاړې دې نه توکی مخامخ د مخ خپل ته، او نه ښي طرف ته، بلکه لاړې دې توکړی چپ طرف ته د چپې خپې لاندې، که چرې تلوار وکړو په ده باندې څه تلوار کونکې نو ودې کړی په جامه خپله باندې داسې. او هغه کيخوده په خپله خوله بيا ئې ومږله، بيا ئې وفرمائيل: ماته ونښائې خوشبويي، نو پاڅيدلو يو ځوان د کلی نه چې منډې ئې وهلی خپل اهل ته نو راېې وړه خوشبويي په ورغوی کې، نو هغه واخسته رسول الله ﷺ، ويې چوله په سر د څانګه بيا ئې ورباندې ولړلو هغه اثر د خنړې، وئيلی دی جابر: ددې وجې نه تاسو ګرځوئ خوشبويي په جماتونو خپلو کښې

**تشريح**: قوله: حدثنا يحيى بن الفضل.... وفي يده عرجون ابن طاب ﴾ عباده وائی چه يو ځل مونږ د جابر رضی الله عنه په خدمت کښې حاضر شو په داسې حال کښې چه هغه په خپل مسجد کښې وو، ددې نه مراد مسجد د بنو سلمه دې چه هغې ته مسجد بنی حرام هم وئيلې شي (کما فی وفاء الوفاء) نو هغه اوفرمائيل چه يو ځل رسول الله ﷺ زمونږ مسجد ته تشريف راوړلو هغه وخت د هغه په لاس مبارک کښې د ابن طاب يو همسا وه، ابن طاب د کهجورو د يو خاص قسم نوم دې، په اصل کښې په مدينه کښې يو سړې وو چه د هغه طرف ته دا کهجوره منسوب ده، وړاندې د حديث مضمون واضح دې او بيا د حديث په اخر کښې دی ﴿ ثم قال :

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٣٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٢٤) (صحيح)

اروني عبيرا ﴾ يعني رسول الله ﷺ ددې همسا په ذريعه دا بلغم اول صفا کړو او وې فرمائيل چه که چا سره عبير وی نو هغه راوړئ، د عبير تفسير په زعفران سره کولې شی او بعض ليکی چه دا يو مرکب خوشبوئی ده چه په هغې کښې زعفران هم وی د عبير ذکر د ګلستان په يو شعر کښې هم شته.

بدو گفتم که مشکی یا عبیری · که از بوی دلاویز تو مستم

په دې باندې يو ځوان انصاری په منډه منډه باندې کور ته لاړو او په خپل تلی باندې خلوق کوم چه د يوې خوشبويئ نوم دې راوړل نبی ﷺ هغه خوشبوئی د خپلې همسا په سر باندې پورې کړه او هغه ئې د بلغم په ځائې باندې راښکله

قال جابر: فيمن هناک جعلتم الخلوق في مساجدکم... يعنی تاسو خلق چه په خپلو مسجدونو کښې کومه خوشبوئی وغيره لګوئ (که لوړې کول وی يا شيندل وی) ددې اصل هم دا د رسول الله ﷺ عمل دې، زه وائم چه امام نسائی په دې باندې مستقل باب تړلې دې ﴿باب تخليق المساجد﴾ او امام ترمذی ﴿تطيب المساجد﴾

## اسطوانه مخلقه

د مسجد نبوی په ستنو کښې يوه ستن "الاسطوانه المخلقة" په نوم سره مشهوره ده په ظاهره کښې په دې باندې خاص طور سره خوشبوئی لګولې شی، د مسجد نبوی بعض ستنې داسې دی کومې چه په يو خاص وصف او نوم سره نامداره دی بلکه د هغې نوم ډير خوشخطه ليکلې شوې دې چه د هغې تفصيل په وفاء الوفاء کښې هم دې، الحمد لله مونږ هم ددې اساطين مبارکه زيارت کړې دې.

**تنبيه** : په دې احاديثو کښې دا دی چه رسول الله ﷺ په خپلې همسا باندې خوشبوئی اولګوله او د نسائی په روايت کښې دی ﴿فقامت امراة﴾ چه يوه زنانه اودريده او هغې دا خوشبوئی اولګوله، د ابن ماجه په روايت کښې هم دغه شان دی، اوس يا خو به دا د واقعاتو په تعدد باندې محمول کولې شی او يا دې داسې اووئيلې شی چه د امام ابوداود په روايت کښې د رسول الله ﷺ طرف ته نسبت مجازی دې د امر کيدو په حيثيت سره (الفيض السمائی)

[٤٨١] (¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، عَنْ بَكْرِ بْنِ سَوَادَةَ الْجُذَامِيِّ، عَنْ صَالِحِ بْنِ خَيْوَانَ، عَنْ أَبِي سَهْلَةَ السَّائِبِ بْنِ خَلَّادٍ، قَالَ أَحْمَدُ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّ رَجُلًا أَمَّ قَوْمًا فَبَصَقَ فِي الْقِبْلَةِ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْظُرُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ فَرَغَ: لَا يُصَلِّي لَكُمْ، فَأَرَادَ بَعْدَ ذَلِكَ أَنْ يُصَلِّيَ لَهُمْ فَمَنَعُوهُ وَأَخْبَرُوهُ بِقَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: نَعَمْ، وَحَسِبْتُ أَنَّهُ، قَالَ: إِنَّكَ آذَيْتَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ".

**ترجمه**: د ابو سهلة السائب بن خلاد نه روايت دې، بيشکه يو سړی امامت وکړو قوم ته، نو لاړې ئې توکړی قبلې ته، او رسول الله ﷺ ورته کتل، نو ووئيل رسول الله ﷺ کله چې فارغ

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٧٨٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥٦/٤) (حسن)

شو. دا دي مونځ نه کوي تاسو ته، نو اراده ئي وکړه د دېنه وروسته چې مونځ وکړي دوی ته نو هغوی منع کړو او خبريې کړو په قول د رسول الله ﷺ، نو ذکر ئې کړه دغه رسول الله ﷺ ته، نو هغه وويل: آو. او زه ګمان کوم چې هغه وويل: بيشکه تا ضرر ورسوه الله او د هغه رسول ته.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا احمد بن صالح.... انک اذيت الله ورسوله ﴾ کوم سړي چه د مونځ ورکولو په وخت د قبلې طرف ته لاړې تهوکلي وې نو د هغه په باره کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل يقينا تا الله او د هغه رسول ﷺ ته تکليف ورکړو، دا ډير لوئې وعيد دې د قبلې طرف ته په تهوکلو کښې خاص کر د مونځ په حالت کښې.

## اشکال او جواب

دلته يو اشکال دا راځي چه په قران کريم کښې الله او رسول ﷺ ته اذيت ورکونکو ته ملعون في الدنيا والاخره وئيلي شوې دي، او دا سړې مسلمان بلکه صحابي وو، جواب دا دې چه د قران کريم والا وعيد دلته صادق نه راځي ځکه چه په قران کريم کښې د ايذاء نه ايذاء بالقصد مراد ده او دلته په حديث کښې ايذاء خطاء او جهلا مراد ده او دا هم امکان دې چه دا سړې منافق وی بيا خو هيڅ اشکال نشته. (بذل)

[۴۸۲]([1])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا سَعِيدٌ الْجُرَيْرِيُّ، عَنْ أَبِي الْعَلَاءِ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُصَلِّي، فَبَزَقَ تَحْتَ قَدَمِهِ الْيُسْرَى".

**ترجمه:** د ابو العلاء نه روايت دې، هغه د خپل پلار نه روايت کوی په معنی د هغې سره، هغه زيادت کړی دی: بيا ئې ومږلو په خپل پيزار.

**تشريح: قوله:**﴿ حدثنا موسى بن اسماعيل... وهو يصلى فبزق تحت قدمه اليسرى ﴾ د امام نووی رحمه الله د رائې تقاضه دا ده چه ممکنه ده دا واقعه د مسجد نه غير وی او د قاضي عياض رائې ته کتلو سره د تخصيص حاجت نشته.

[۴۸۳]([2])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، عَنْ سَعِيدٍ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي الْعَلَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، بِمَعْنَاهُ، زَادَ: ثُمَّ دَلَكَهُ بِنَعْلِهِ.

**ترجمه:** د ابو العلاء نه روايت دې، هغه د خپل پلار نه روايت کوی په معنی د هغې سره، هغه زيادت کړی دی: بيا ئې ومږلو په خپل پيزار.

[۴۸۴]([3])حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا الْفَرَجُ بْنُ فَضَالَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: رَأَيْتُ وَاثِلَةَ بْنَ الْأَسْقَعِ فِي مَسْجِدِ دِمَشْقَ بَصَقَ عَلَى الْبُورِيِّ، ثُمَّ مَسَحَهُ بِرِجْلِهِ، فَقِيلَ لَهُ: لِمَ فَعَلْتَ هَذَا؟ قَالَ: "لِأَنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُهُ".

---

[1]: صحيح مسلم/المساجد ۱۳ (۵۵۴)، (تحفة الأشراف: ۵۳۴۸)، وقد أخرجه: سنن النسائي/المساجد ۳۴ (۷۲۸)، مسند احمد (۲۵/۴، ۲۶) (صحيح)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۵۳۴۸) (صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۵۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۹۰/۳) (ضعيف)

**ترجمه:** د ابو سیعد رضی الله عنه نه روایت دې هغه وئیلی دي: ما ولیدلو واثلة بن الاسقع رضی الله عنه د دمشق په مسجد کښې لاړې ئې توکړې په پوزې بیا ئې مسح کړې په خپه باندې، هغه ته وویل شول: داسې دې ولې وکړل؟ هغه وویل: بیشکه ما لیدلی وو رسول الله صلی الله علیه وسلم چې داسې ئې کړې وو.

**تشریح: قوله:**﴿عن ابی سعید قال : رایت واثلة بن الاسقع ﴾ ابوسعید فرمائی چه ما واثله رضی الله عنه اولیدو د دمشق په مسجد کښې په مونځ کولو باندې چه اول ئې په درئ باندې لاړې اوتهوکلې او بیا ئې په خپې سره پاکې کړې، هغه ته اووئیلې شو چه دا تاسو څه اوکړل نو هغه جواب ورکړو چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم په داسې کولو باندې لیدلې دې، دا حدیث ضعیف دې ځکه چه په دې کښې فرج بن فضاله ضعیف دې او د هغه استاذ ابو سعید مجهول دې لهذا د مسجد په صف باندې باندې تهوکل جائز نه دی، للحدیث الصحیح... التفل فی المسجد خطیئة وکفارتها دفنها... د دفن تحقق په کچه زمکه باندې کیدې شی په فرش یا صف باندې تهوکلو سره به هغې کښې مزید تلویث لازمیږی لهذا دا حدیث قابل عمل نه دې.

## بَاب مَا جَاءَ فِي الْمُشْرِكِ يَدْخُلُ الْمَسْجِدَ

**باب دې په بیان د هغې کې چې راغلې دې په باره د مشرک کې چې ننوځي مسجد ته**

د مشرک داخلیدل مسجد ته مختلف فیه دی.

### په مسئله مترجم بها کښې د ائمه کرامو مذاهب

صحیح دا ده چه دخول مشرک فی المسجد د احنافو په نزد مطلقا جائز دې برابره خبره ده که کافر حربی وی یا ذمی او کتابی، او ددې بالمقابل د امام مالک رحمه الله په نزد مطلقا ناجائز دی او د امام شافعی رحمه الله په نزد مسجد حرام ته ناجائز او نورو مسجدونو ته جائز دی او امام احمد رحمه الله هم ورته د امام شافعی په شان مسجد حرام ته داخلیدل خو ناجائز او د هغې نه علاوه مسجدونو ته داخلیدلو کښې د هغه دوه روایتونه دی. ۱: عدم الجواز مطلقا ۲: الجواز باذن الامام، ددې مسئلې تفصیل په امانی الاحبار (ص۱۹ ج۱) کښې ذکر شوې دې، زمونږ د فقهاء کرامو د عبارتونو نه معلومیږی چه جواز د دخول صرف د ذمی د پاره دې، په کوکب کښې هم دغه شان لیکلې دی، شامی په باب الجزیه کښې د علامه سرخسی رحمه الله نه نقل کړې دی چه د احنافو په نزد جواز دخول کښې کتابی او حربی برابر دی او په امانی الاحبار کښې هم داسې دی او د احنافو د طرف نه آیت کریمه ﴿ انما المشرکون نجس فلا یقربوا المسجد الحرام ﴾ جواب دا دې چه ددې نه مراد لاجل الحج دې، کما فی الکوکب.

[۴۸۶] (۱) حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ حَمَّادٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ شَرِيكِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي نَمِرٍ، أَنَّهُ

[1]: صحيح البخاري/العلم ٦ (٦٣)، سنن النسائي/الصيام ١ (٢٠٩٤)، سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ١٩٤ (١٤٠٢)، (تحفة الأشراف: ٩٠٧)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الإيمان ٣ (١٠)، سنن الترمذي/الزكاة ٢ (٦١٩)، مسند احمد (١٩٣، ١٤٣/٣)، سنن الدارمي/الصلاة ١٤٠ (١٤٧٠) (صحيح)

سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، يَقُولُ: دَخَلَ رَجُلٌ عَلَى جَمَلٍ فَأَنَاخَهُ فِي الْمَسْجِدِ ثُمَّ عَقَلَهُ، ثُمَّ قَالَ: "أَيُّكُمْ مُحَمَّدٌ؟ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَّكِئٌ بَيْنَ ظَهْرَانَيْهِمْ، فَقُلْنَا لَهُ: هَذَا الْأَبْيَضُ الْمُتَّكِئُ، فَقَالَ لَهُ الرَّجُلُ: يَا ابْنَ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قَدْ أَجَبْتُكَ، فَقَالَ لَهُ الرَّجُلُ: يَا مُحَمَّدُ، إِنِّي سَائِلُكَ وَسَاقَ الْحَدِيثَ".

**ترجمه**: د شریک بن عبد الله نه روایت دې بیشکه هغه اوریدلی دی د انس بن مالک ﷺ نه چې وئیل یې: راغې شو یو سړی په اوښ باندې نو هغه ئې چو کړو په مسجد کښې، بیا ئې وتړلو، بیا ئې وویل: کوم یو په تاسو کښې محمد دی؟ او رسول الله ﷺ تکیه کړې په مینځ د دوی کښې، مونږ وئیل: دا سپین تکیه کونکی، هغه ته سړی وویل: اې د عبد المطلب ځویه، نو وویل ورته نبی ﷺ ستا خبره مې واؤریدله، نو هغه سړی وویل: اې محمد! زه تپوس کوم ستانه، بیا راوی پوره حدیث بیان کړو.

**تشریح**: **قوله**: ﴿ حدثنا عیسی بن حماد... دخل رجل علی جمل فاناخه فی المسجد ﴾ د دې رجل نه مراد ضمام بن ثعلبه دې، لکه چه په وړاندې روایت کښې ددې تصریح ده او دې د بنو سعد بن بکر د طرف نه د قاصد په شکل راغلې وو د هغه قدوم په ۹ هجری کښې شوې وو، په دې روایت کښې دی ﴿ فاناخه فی المسجد ﴾ خو مراد ترې عند باب المسجد دې لکه چه د ابن عباس ﷺ په روایت کښې راروان دی په بعض نورو روایاتو کښې هم ددې تصریح ده.

## د ابن بطال مالکي د حدیث نه استدلال

لهذا ابن بطال مالکی د مالکیانو د مسلک په وجه باندې د حدیث د ظاهر نه چه کوم استدلال کړې دې چه د ماکول اللحم حیواناتو ابوال او ارواث پاک دی ځکه چه اوښ ترځو پورې په مسجد کښې وی نو د هغه هلته د متیازو وغیره احتمال یقینی دې او رسول الله ﷺ مسجد ته د اوښ داخلولو نه منع نه ده فرمائیلې، دا استدلال صحیح نه دې.

**قوله**: ﴿ ثم قال ایکم محمد ﴾ په روایاتو کښې راځی چه په شروع کښې به رسول الله ﷺ د صحابه کرامو په مجلس کښې یوځائې بغیر د فرق (او امتیاز) نه کیناستلو چه د هغې د وجې نه به نوی راتلونکی سړی د هغه متعلق تپوس کولو. روستو صحابه کرامو د رسول الله ﷺ په خدمت کښې عرض اوکړو چه که اجازت وی نو مونږ به ستاسو دپاره په مجلس کښې لوړ ځائې جوړ کړو ددې دپاره چه راتلونکو ته د تپوس ضرورت رانشی، رسول الله ﷺ ددې اجازت ورکړو، د ابوداود وغیره په روایت کښې به راشی ﴿ فبنینا له دکانا ﴾ چه مونږ د هغه دپاره یو لوړ ځائې جوړ کړو چه په هغې باندې به رسول الله ﷺ د مجلس په وخت کښې کیناستلو.

**قوله**: ﴿ فقلنا له هذا الابیض المتکئ ﴾ دا چه تکیه وهلې سپین سړې ناست دې، ضمام بن ثعلبه ته چه کله معلومه شوه چه محمد ﷺ دا دې نو هغه ورنزدې شو او عرض ئې اوکړو ﴿ یا ابن عبدالمطلب ﴾ نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل.

## د دې کلام تشريح

﴿ قد اجبتک ﴾ [١] په اصل کښې چه کله يو سړې د چا سره خطاب يا خبره کول غواړي نو د عرب خلقو عادت دې هغه وخت وائي چه ﴿ نعم ﴾ چه د هغې مطلب دا وی چه او! وايه څه وئيل غواړې، خو دلته رسول الله ﷺ د عام طريقې خلاف د ﴿ نعم ﴾ په ځائې ﴿ قد اجبتک ﴾ اوفرمائيل، شارحين ليکی چه دلته ددې اسلوب په بدلولو کښې د ناخوښئ طرف ته اشاره ده ځکه چه ددې لفظ ترجمه دا ده چه او! اورم څه وئيل غواړې، او ناخوښی په دې وجه وه چه څنګه رسول الله ﷺ ته خطاب کول د هغه د شان مناسب وو هغه اعرابی داسې نه وو کړې، پس اول خو په شروع کښې هغه د رسول الله ﷺ نوم واخستلو، دويم رسول الله ﷺ ئې د هغه کافر نيکه عبدالمطلب طرف ته منسوب کړو، (قاله الخطابی) خو په دې باندې اشکال دې چه رسول الله ﷺ خو د غزوه حنين په يوه موقع باندې خپله خپل انتساب د عبدالمطلب طرف ته کړې وو ﴿ انا النبی لا كذب انا ابن عبدالمطلب ﴾ د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه هغه انتساب ضرورة وو او د هغه مقام مناسب وو ځکه چه د هغې مخاطب کفار او مشرکين وو، چا چه د عبدالمطلب سيادت او وجاهت منلو، په دې وجه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه زه د هغه سړی ځوئې يم کوم چه تاسو هم پيژنئ.

دا حديث په بخاری او مسلم کښې تفصيلا ذکر دې چه په هغې کښې دا دی چه هغه سړی رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه اې محمد ﷺ زه ستا نه څو تپوسونه کول غواړم، او ښه په شد مد به ئې کوم لهذا په ما باندې مه خفه کيږه، په دې باندې هغه اوفرمائيل ﴿ سل عما بدالک ﴾ څه چه ستا زړه غواړی تپوس اوکړه، هغه د ټولو نه اول د رسول الله ﷺ د رسالت په باره کښې تپوس اوکړو ﴿ الله ارسلک الى الناس كلهم ﴾ په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ اللهم نعم ﴾ او ددې نه روستو ئې بيا د صلوات خمسه په باره کښې تپوس اوکړو چه ايا الله پاک تاته په شپه او ورځ کښې د پنځو مونځونو کولو حکم کړې دې، په دې باندې هم رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ اللهم نعم ﴾ او بيا ددې نه روستو د زکاة او روژې په باره کښې هم دغه شان تپوس اوکړو، او دغه شان سوال او جواب اوشو او بيا په اخر کښې هغه اووې ﴿ امنت بما جئت به ﴾ د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت ظاهر دې چه دلته دخول د مشرک فی المسجد موندلې شوې دې

### په يو حديث باندې د مصنف او امام بخاری رحمه الله دوه مختلف ترجمې

امام بخاری په دې حديث باندې په کتاب العلم کښې يوه بله ترجمه قائم کړې ده ﴿ بالعرض على

---

[١] دلته دا سوال وارديږی چه رسول الله ﷺ خو لا تر اوسه پورې د هغه اعرابی سره هيڅ قسم خبرې نه دی کړی نو بيا به ﴿ قد اجبتك ﴾ وئيل څنګه صحيح وی؟ ددې يوه توجيه دا کړې شوې ده چه د اجابت نه مراد دلته سماع ده يعنی ان شاء سماع چه او! زه ستا خبره اورم تپوس اوکړه څه تپوس کوې، بله توجيه دا کړې شوې ده چه رسول الله ﷺ لا د هغه سره څه کلام نه وو کړې خو په مجلس کښې حاضر صحابه کرامو د هغه ددې خبرې جواب ورکړو او هغه ته ئې وئيلې وو چه رسول الله ﷺ دا دې، لهذا د صحابه کرامو جواب ورکول ګويا د رسول الله ﷺ جواب ورکول دی.

المحدث ﴾ هغه دا چه د حديث د حاصلولو يوه طريقه دا ده چه شاګرد په خپل استاذ باندې پيش کړي لکه څنګه چه دلته په رسول الله ﷺ باندې څو مضامين د سوال په صورت پيش کړل، رسول الله ﷺ د هغه تصديق او اقرار اوفرمائيلو، بيا هغه مضامين هغه اعرابي خپل قوم ته واورول، په دې باندې اعرابي شاګرد او رسول الله ﷺ محدث او استاذ شو، د امام بخاري د ترجمې مقتضی دا ده چه سائل په وخت د سوال کافر نه وی بلکه مسلمان وی څکه چه ظاهره ده په روايت حديث کښې عرض صرف د مسلمان معتبر کيدې شی نه د کافر عرض.

د دې نه معلومه شوه چه د امام بخاري او امام ابوداود رائې د هغه سړی په باره کښې مختلف دې، حاصل ددې اختلاف رائې دا دې چه د امام بخاري په نزد ﴿ امنت بما جئت به ﴾ کښې اخبار عن الماضی دې چه ما د مخکښې نه ايمان راوړې دې، او د امام ابوداود په نزد دا اخبار نه دې بلکه په دې سره مقصود انشاء ايمان دې چه زه اوس ايمان راوړم او دا هم ممکنه ده چه دا سې اووئيلې شی چه ددې جملې مطلب د امام ابوداود رحمه الله په نزد هم هغه وی کوم چه د امام بخاري رحمه الله په نزد دې، خو د امام ابوداود رحمه الله استدلال ددې حديث نه په دخول مشرک فی المسجد باندې دې اعتبار سره دې چه ظاهره ده چه صحابه کرامو ته د هغه سړی اسلام راوړل معلوم نه وو او بيا هم هغوی لره مسجد ته د داخليدو نه منع نه کړو او نه ئې ترې د اسلام په باره کښې څه استفسار اوکړو او رسول الله ﷺ هم د صحابه کرامو په دې طرز عمل باندې سکوت اوفرمائيلو چه ددې نه معلومه شوه چه دخول مشرک فی المسجد جائز دې.

[۴۸۷](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْوَلِيدِ بْنِ نُوَيْفِعٍ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: بَعَثَ بَنُو سَعْدِ بْنِ بَكْرٍ ضِمَامَ بْنَ ثَعْلَبَةَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَدِمَ عَلَيْهِ فَأَنَاخَ بَعِيرَهُ عَلَى بَابِ الْمَسْجِدِ ثُمَّ عَقَلَهُ ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ، قَالَ: فَقَالَ: أَيُّكُمُ ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، قَالَ: يَا ابْنَ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

**ترجمه**: د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې، هغه وئيلی دي: ولېږلو بنو سعد بن بکر ضمام بن ثعلبة رسول الله ﷺ ته، نو ورغی هغه ته چوپې کړه خپله اوښه په دروازه د مسجد کښې، بيا ئې وتړله، بيا مسجد ته داخل شو، نو ذکر ئې کړو پشان د هغې، هغه وئيلی دي: چې هغه ووېل: کوم يو په تاسو کښې د عبد المطلب څوی دی؟ ووېل رسول الله ﷺ: زه د عبد المطلب څوی يم. هغه ووېل: اې د عبد المطلب څويه. او بيائې بيان کړو پوره حديث.

[۴۸۸](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، حَدَّثَنَا رَجُلٌ مِنْ مُزَيْنَةَ وَنَحْنُ عِنْدَ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "الْيَهُودُ أَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ جَالِسٌ فِي الْمَسْجِدِ فِي أَصْحَابِهِ، فَقَالُوا: يَا أَبَا الْقَاسِمِ، فِي رَجُلٍ وَامْرَأَةٍ زَنَيَا مِنْهُمْ".

[١]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٣٥٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٥٠، ٢٦٤، ٢٦٥) (حسن)

[٢]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٤٩٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٧٩) ويأتي هذا الحديث في الأقضية برقم (٣٦٢٤، ٣٦٢٥)، وفي الحدود برقم (٤٤٥٠، ٤٤٥١) (ضعيف)

**ترجمه:** د ابو هريرة ﷺ نه روايت دې هغه وئيلى دي: يهود نبى ﷺ ته راغلل او هغه ناست وو په مسجد کښې د خپلو ملګرو سره، هغوی وويل: اې ابو القاسم! په باره د يو سړي او ښځه کښې چې دواړو زنا کړې وه د دوى نه (يعنى مونږ دې باره کښې راغلى يو نوځه حکم دې؟)

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا محمد بن يحيى بن فارس الخ ﴾ د ضمام بن ثعلبه ﷺ حديث لره په دوه طريق سره د ذکر کولو نه پس اوس مصنف په دې باب کښې دا دويم حديث راوړى، دا حديث به په کتاب الحدود کښې مفصلا راشى چه په هغې کښې د يو يهودى او يوې يهودئې د زنا قصه ذکر شوې ده دې خلقو به د زنا حکم په شريعت محمديه کښې د معلوم کولو دپاره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوې وو په داسې حال کښې چه رسول الله ﷺ ناست وو ددې نه معلومه شوه چه د غير مسلم دخول مسجد ته جائز دې او د کافر حربى حکم د حديث اول نه معلوم شو.

## بَابٌ فِي الْمَوَاضِعِ الَّتِي لَا تَجُوزُ فِيهَا الصَّلَاةُ

### باب دې په بيان د هغه ځايونو کښې چې مونځ پکښې جائز نه دى

د ترجمة الباب په عبارت کښې اختصار دې او مراد دا دې ﴿ فى المواضع التى تجوز والتى لا تجوز فيها الصلاة ﴾ لهذا اوس د باب حديث اول د ترجمة الباب سره مطابق شو.

[۴۸۹](1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "جُعِلَتْ لِيَ الْأَرْضُ طَهُورًا وَمَسْجِدًا".

**ترجمه:** د ابو ذر ﷺ نه روايت دې هغه وئيلى دى، وئيلى دى رسول الله ﷺ: ګرځول شوې ده زما لپاره ځمکه پاکونکې او جمات.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا عثمان بن ابى شيبة الخ قوله جعلت لى الارض مسجدا وطهورا ﴾ دا حديث مشهور دې چه په اکثر صحاح سته او په صحيحين کښې موجود دې خو مصنف دا مختصر کړې دې، اصل روايت داسې دې ﴿ أُعْطِيتُ خَمْسًا لَمْ يُعْطَهُنَّ أَحَدٌ قَبْلِي نُصِرْتُ بِالرُّعْبِ مَسِيرَةَ شَهْرٍ وَجُعِلَتْ لِيَ الْأَرْضُ مَسْجِدًا وَطَهُورًا وَأُحِلَّتْ لِي الْغَنَائِمُ وَلَمْ تَحِلَّ لِأَحَدٍ قَبْلِي وَأُعْطِيتُ الشَّفَاعَةَ وَكَانَ النَّبِيُّ يُبْعَثُ إِلَى قَوْمِهِ خَاصَّةً وَبُعِثْتُ إِلَى النَّاسِ عَامَّةً ﴾ د دې حديث نه معلوميږى چه د امت محمديه په حق کښې ټوله زمکه مسجد او د مونځ کولو ځائې دې، په خلاف د تيرو امتونو چه د هغوى دپاره مونځ کول جائز نه وو سوا د خپلو عبادت ځانو نه، کنيسه او بيعه، خو دلته اشکال دا دې چه د سيدنا عيسى ﷺ په باره کښې راځى چه هغه به په زمکه کښې سياحت کولو ﴿ کان يسيح فى الارض ويصلى حيث ادرکته الصلاة ﴾ او چرته چه به د مونځ وخت راغلو هم هلته به ئې مونځ کولو، ددې جواب حافظ ابن حجر او علامه عينى دا ورکړې دى چه دا خصوصيت د تيمم په اعتبار سره دې چه خاوره پاکه کړې شوه، د صلاة په اعتبار سره نه دې، يا داسې اوايه چه خصوصيت ددې دواړو من حيث المجموع دې لا من حيث کل فرد،

(1): تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۹۶۹) وقد أخرجه: مسند احمد (۱۴۵/۵، ۱۴۷، ۲۴۸، ۲۵۶) (صحيح)

او يا دي دا اووئيلې شي چه خصوصيت خو د هر يو دې خو د امم په لحاظ سره نه د انبياء كرام په أعتبار سره.

[٤٩٠]() حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي ابْنُ لَهِيعَةَ وَيَحْيَى بْنُ أَزْهَرَ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ سَعْدٍ الْمُرَادِيِّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ الْغِفَارِيِّ، أَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مَرَّ بِبَابِلَ وَهُوَ يَسِيرُ فَجَاءَهُ الْمُؤَذِّنُ يُؤَذِّنُ بِصَلَاةِ الْعَصْرِ، فَلَمَّا بَرَزَ مِنْهَا أَمَرَ الْمُؤَذِّنَ فَأَقَامَ الصَّلَاةَ، فَلَمَّا فَرَغَ، قَالَ: "إِنَّ حَبِيبِي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَانِي أَنْ أُصَلِّيَ فِي الْمَقْبَرَةِ وَنَهَانِي أَنْ أُصَلِّيَ فِي أَرْضِ بَابِلَ فَإِنَّهَا مَلْعُونَةٌ".

**ترجمه**: د ابو صالح الغفاري نه روايت دې بيشكه على رضي الله عنه تېر شو بابل ښهر ته نزدې او هغه روان وو، نو راغې ورته مؤذن چې اذان ئې كولو د مانځه د مازيګر دپاره، هركله چې تير شو د هغې نه امريې وكړو مؤذن ته نو اقامت ئې د مونځ وكړو، هركله چې فارغ شو ويې وئيل: بيشكه زما حبيب صلى الله عليه وسلم زه منع كړې يم چې زه مونځ وكړم په مقبرة كښې، او زه ئې منع كړې يم چې مونځ وكړم په ځمكه د بابل كښې ځكه چه هغه ملعونه ده

[٤٩١]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يَحْيَى بْنُ أَزْهَرَ، وَابْنُ لَهِيعَةَ، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ شَدَّادٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ الْغِفَارِيِّ، عَنْ عَلِيٍّ، بِمَعْنَى سُلَيْمَانَ بْنِ دَاوُدَ، قَالَ: فَلَمَّا خَرَجَ مَكَانَ فَلَمَّا بَرَزَ.

**ترجمه**: ابو صالح الغفاري روايت كوي د علي نه، په معنى د سليمان بن داود سره، هغه وئيلي دي: فَلَمَّا خَرَجَ په ځائې د فَلَمَّا بَرَزَ باندې.

## شرح حديث

**تشريح: قوله**: حدثنا سليمان بن داود.... ان عليا رضى الله عنه مر ببابل وهو يسير... يعنى سيدنا على رضي الله عنه په خپل يو سفر كښې په بابل ښهر باندې ورتير شو، ابن رسلان ليكلي دى چه: لعله فى مسيرة الى البصرة. يعنى د سيدنا على رضي الله عنه چه كوم سفر د مدينې منورې نه د عراق طرف ته شوې وو[3]، ځكه چه دا هم هغه د بابل ښهر دې چه د هغې ذكر په قران كريم كښې دې چه د كوم ځائې جادوګر مشهور دى، دا د عراق يو مشهور ښهر دې.

سيدنا على رضي الله عنه هلته مونځ ادا اوفرمائيلو او چه كله په دې ښهر باندې ورتير شو نو بيا ئې مونځ ادا كړو او بيا ئې ددې وجه بيان كړه ﴿ان حبيبى صلى الله عليه وسلم نهانى الخ﴾ چه زه خپل محبوب منع كړې يم په أرض بابل كښې د مونځ كولو نه ځكه چه دا زمكه ملعونه ده. دې زمكې ته ملعونه په ظاهره كښې په دې وجه وئيلې شوې دى چه په دې كښې خسف واقع شوې وو په نمرود بن كنعان باندې كوم چه د خپلې زمانې مشهور بادشاه وو د ابراهيم عليه السلام په زمانه كښې، هغه په دې ښهر كښې يو ډير اوچت محل جوړ كړې وو ددې دپاره چه په هغې باندې د اسمان والو سره قتال اوكړي، ددې واقعې ذكر مفسرينو د ﴿قد

[1]: تفرد به ابو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٣٢٨) (ضعيف)
[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٣٢٨) (ضعيف)
[3]، ځكه چه هغه خپله دار الخلافه د مدينې منورې په ځائې عراق جوړه كړې وه لكه چه معاويه رضي الله عنه شام او باقي خلفاء راشدينو مدينې لره)

مكر الذين من قبلهم فاتى الله بنيانهم من القواعد ﴾ د لاندې کړي دي. (منهل)

## ما يستفاد من الحديث

د دې حديث نه په ظاهره کښې معلوميږي چه په ارض بابل کښې مونځ کول ممنوع دي، امام خطابی فرمائي چه دا د چا مذهب هم نه دې او ددې حديث په سند کښې مقال دې او صحيح حديث ددې معارض دې يعنی د باب اولنی حديث، او يا دې داسې اووئيلې شي چه دا نهی د سيدنا علی رضی الله عنه سره خاص ده لکه چه د ﴿ نهانی ﴾ متکلم د صيغې نه معلوميږي.

[۴۹۲]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَقَالَ مُوسَى فِي حَدِيثِهِ فِيمَا يَحْسَبُ عَمْرٌو: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْأَرْضُ كُلُّهَا مَسْجِدٌ، إِلَّا الْحَمَّامَ وَالْمَقْبَرَةَ".

**ترجمه:** د ابو سعيد نه روايت دې هغه ويلي، چې فرمائيلي دی رسول الله ﷺ او وئيلي دی موسى په خپل حديث کښې چې عمرو ئې گمان کوي، بيشکه نبی ﷺ ويلی دي: ځمکه ټوله مسجد دی مګر حمام او مقبرة نه.

**تشريح: قوله:**﴿ حدثنا موسى بن اسماعيل... الارض كلها مسجد الا الحمام والمقبرة ﴾ صلاة في الحمام يعنى فى المغتسل عن الجمهور ومنهم الائمة الثلاثة... جائز مع الكراهت دې او وجه د كراهت كونه محلا للنجاسة والشيطان دې، او د امام احمد او ظاهريه په نزد بالكل جائز نه دې، غالبا په دې وجه چه د هغوی په نزد نهی فساد منهى عنه لره مقتضی دې، او صلاة فى المقبرة هم مختلف فيه دې، د ظاهريه او حنابله په نزد دا هم مطلقا جائز نه دې، او د امام شافعی رحمه الله په نزد د مقبره منبوشه فرق دې يعنی چه په کومه مقبره کښې قبرونه ګډوډ او منتشر وی، د عظام موتى وغيره ګندګی خوره وی نو په هغې کښې خو ناجائز دې او د کومې مقبرې قبرونه چه برابر وی په هغې کښې مونځ جائز مع الکراهت دې او د امام مالک په نزد په هره مقبرې کښې مونځ جائز دې په دې شرط چه طهارة المكان وی او د احنافو په نزد د مقبره په هغه حصه کښې کومه چه دمونځ دپاره تياره کړې شوې وی کښې بغير د کراهت نه جائز دې ګينې مکروه دې.

## هغه مواضع چه په هغې کښې مونځ کول منع دی

د حمام او مقبرې نه علاوه هم بعض مواضع داسې دی چه په هغې کښې د موځ کولو نه په حديث کښې ممانعت راغلې دې، پس د ترمذی او ابن ماجه په حديث کښې د ابن عمر رضی الله عنه په روايت سره داسې دی چه رسول الله ﷺ په اووه ځايونو کښې د مونځ کولو نه منع فرمائيلې دې ﴿ فى المزبلة ﴾ د دې ذکر پورته شوې دې، ﴿ وقارعة الطريق ﴾ يعنی د لارې په مينځ ﴿ وفى الحمام ﴾ د دې حکم تير شو، ﴿ ومعاطن الابل ﴾ د دې باب وړاندې مستقل راروان دې، ﴿ وفوق ظهر بيت الله ﴾، د امام احمد په نزد د بيت الله په چهت باندې مونځ

[۱]: سنن الترمذي/الصلاة ۱۲۰ (۳۱۷)، سنن ابن ماجه/المساجد والجماعات ٤ (۷٤٥)، (تحفة الأشراف: ٤٤٠٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۸۳/۳، ۹٦) (صحيح)

صحيح نه دې، او د احنافو په نزد اګر چه صحيح دې خو د ادب خلاف دې او د امام شافعي رحمه الله په نزد په يو شرط سره جائز دې هغه دا چه د بيت الله څه اندازه يعني يو ليشت د مصلى مخې ته وي او که بالکل ښکاره جهت وي نو په دې صورت کښې صحيح نه دې، ځکه چه په دې صورت کښې به دا ﴿صلاة على البيت﴾ وي، نه الى البيت، او د احنافو په نزد دا قيد نشته ځکه چه د بيت الله حقيقت د هغې عمارت او ابادي نه ده بلکه هغه مخصوص فضاء ده کومه چه د زمکې نه تر اسمان پورې ده، او په مزبله او مجزره کښې د اختلاف څه تصريح ملاؤ نه شوه، په ظاهره کښې د مزبله او مجزره هغه حصه کومه کښې چه مونځ کوى که نجس نه ده نو مونځ به د قرب نجاست په وجه باندې جائز مع الكراهت وى او که ځائې ناپاک کوى نو صحيح به نه وي هم دغه شان داخل بيت الله کښې د مونځ صحت مختلف فيه دې، د احنافو او شوافعو په نزد مطلقا صحيح دې، د امام مالک او احمد په نزد فرض صحيح نه دې نفل صحيح دې ځکه چه د رسول الله ﷺ نه په بيت الله کښې دننه صرف نفل مونځ کول ثابت دى او د قياس تقاضه هم دا ده چه صحيح نه وى ځکه چه په بيت الله کښې دننه د مونځ کولو په صورت کښې د کعبې د بعض حصې استدبار لازميږى او د ابن جرير طبرى په نزد په بيت الله کښې دننه مطلقا يو مونځ هم صحيح نه دې. والله تعالى اعلم

## بَابُ النَّهْيِ عَنِ الصَّلَاةِ فِي مَبَارِكِ الْإِبِلِ

### باب دې په بيان د منع کې د مانځه نه په ځاى د چوکېدو د اوښانو کې

[۴۹۳]([1])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الرَّازِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: "سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصَّلَاةِ فِي مَبَارِكِ الْإِبِلِ، فَقَالَ: لَا تُصَلُّوا فِي مَبَارِكِ الْإِبِلِ، فَإِنَّهَا مِنَ الشَّيَاطِينِ، وَسُئِلَ عَنِ الصَّلَاةِ فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ، فَقَالَ: صَلُّوا فِيهَا فَإِنَّهَا بَرَكَةٌ".

**ترجمه**: د براء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دې، هغه وئيلى دى چې تپوس وشو د رسول الله ﷺ نه په باره د مانځه کښې په ځائې د چوکيدو د اوښانو کې؟ هغه وفرمائيل: تاسو مونځ مه کوئ په ځائې د چوکيدو د اوښانو کښې ځکه دا د شيطانو نه دي، او سوال ترېنه وشو د مانځه په باره کښې په شپول د ګډو کې؟ هغه وفرمائيل: مونځ کوئ په هغې کښې بيشکه دا برکت دى.

**تشريح**: مبارک جمع د مبرک ده په وزن د جعفر د اوښانو غوجل چه په هغې کښې هغوى ترلې شوې وى، صلاة فى مبارک الابل د ائمه کرامو په نزد مختلف فيه د، د احنافو او شوافعو په نزد صحيح دې او د ظاهريه او حنابله په نزد صحيح نه دې، د امام مالک نه دوه روايتونه دى ۱: الاعادة فى الوقت، ۲: الاعادة مطلقا، هم دغه شان چه کوم حضرات د مونځ د فساد قائل دى د هغوى په نزد فساد په هر حال کښې دې که محل طاهر ولې نه وى، په دې باب کښې مصنف چه کوم حديث راوړې دې هغه بعينه هم په دې سند او متن سره په باب مذکور

[1]: انظر حديث رقم: ۱۸۴، (تحفة الأشراف: ۱۷۸۳، ۱۶۸۶) (صحيح)

ګڼبي سره د شرح تير شوې دي.

## باب مَتَى يُؤْمَرُ الْغُلَامُ بِالصَّلَاةِ

### باب دی، کله به حکم کولی شي هلک ته په مانځه باندې

ماشوم يعنى نابالغ هلک، په لغة کښې ددې اطلاق په څه څه باندې کيږي، دا مختلف فيه دي. (١)

[٤٩٤] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى يَعْنِي ابْنَ الطَّبَّاعِ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ الرَّبِيعِ بْنِ سَبْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مُرُوا الصَّبِيَّ بِالصَّلَاةِ إِذَا بَلَغَ سَبْعَ سِنِينَ، وَإِذَا بَلَغَ عَشْرَ سِنِينَ فَاضْرِبُوهُ عَلَيْهَا".

**ترجمه**: عبد الملک بن الربيع بن سبرة د خپل پلار نه روايت کوی او هغه د خپل نيکه نه، هغه وئيلی دي: چې فرمائيلی دی نبی ﷺ: امر کوئ ماشوم ته په مانځه باندې کله چې ورسيږي اوه کلونو ته، او کله چې ورسيږي لسو ته نو ويې وهئ په هغې باندې.

**تشريح**: **قوله**: حدثنا محمد بن عيسى.... مروا الصبى بالصلاة اذا بلغ سبع سنين... يعنى د ماشوم اولياء پلار، نيکه او وصي وغيره له پکار دی چه کله ماشوم د اووه کالو شي نو که هغه هلک وی يا جينئ وی نو هغوی ته دې د مونځ کولو حکم کوی، هم دغه شان د مونځ کولو طريقه د هغې ارکان او واجبات وغيره دې هغه ته ښائی، فقهاء کرامو ليکلې دی چه په دې تعليم صلاة کښې که د اجرت د ورکولو ضرورت راشی نو هغه دې د صبی د مال نه ورکړې شی که هغه سره مال وی، ګينې د پلار د مال نه او هغه سره هم نه وی نو د ماشوم د مور د مال نه.

اووم کال د تمييز دې عام طور سره د اووه کالو ماشوم مميز شي، هغه ته د نبی او ګس وغيره تميز راشی هم په دې وجه د اووه کالو قيد دې او که بالفرض مميز نه وی نو بيا نه، ځکه چه د غير مميز ماشوم مونځ صحيح نه دی.

### ايا صبي شرعا مامور بالصلاة دې يا نه؟

صبی نابالغ ته د مونځ حکم د تخلق او اعتياد دپاره دې چه د فرض کيدو نه مخکښې هغه د مونځ سره عادت شی چه کوم کار څومره اهم وی د هغې هومره مخکښې تيارې کولې شی، مور د جينئ د جهيز دپاره تيارى کلونو مخکښې شروع کوی، ماشوم بچې فطرة ته ډير نزدې وی او بيا د عمر د زياتيدو سره د نفس اماره عمل دخل شروع کيږی بيا د زياتيدو نه پس د هغه په قابو کښې راتلل ګران شی، وړاندې په حديث کښې دی ﴿ واذا بلغ عشر سنين فاضربوه عليها ﴾ چه کله ماشوم د لسو کلونو شی يا ئې لسم کال روان شی (فيه قولان) او هغه مونځ نه کوی نو هغه به وهلې شی، خو د ضرب نه ضرب غير مبرح دې يعنى غير شديد مراد

(١): غلام هلک، ددې اطلاق د فطام نه واخله تر د اووه کاله عمر پورې ماشوم باندې کيږی، او دويم قول ددې چه دا د ولادت نه تر بلوغ پورې، او يو قول دا دې چه ﴿ حد التجاء ﴾ پورې يعنى چه ترڅو پورې ئې ګيره راختلې نه وی.

(٢): سنن الترمذي/الصلاة ١٨٢ (٤٠٧)، سنن الدارمي/الصلاة ١٤١ (١٤٧١)، (تحفة الأشراف: ٣٨١٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠٤/٣) (حسن صحيح)

دي، شارحين ليکي چه د لسو کالو ماشوم قريب البلوغ وی او دغه شان په هغه کښې د ضرب تحمل هم پيدا شی په دې وجه د ضرب حکم ورکړې شوې دې، هم دغه شان دې واضحه وی چه په دې حديث کښې د امر بالصلاة مخاطب د صبي اولياء دي خو صبي نه دې ځکه چه هغه غير مکلف دې، لحديث : رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلَاثَةٍ عَنِ الْمَجْنُونِ الْمَغْلُوبِ عَلَى عَقْلِهِ حَتَّى يُفِيقَ وَعَنِ النَّائِمِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ وَعَنِ الصَّبِيِّ حَتَّى يَحْتَلِمَ (رواه ابوداود واحمد) د اکثر علماء کرامو رائې داده چه اولياء ته دا امر په طريقه د وجوب دې، وقيل للندب، په دې حديث کښې امر بالصلاة امر مذکور دې او اهل اصول ليکلې دی ﴿الامر بالامر بالشئ ليس امرا بذلک الشئ﴾ (١) يعنى يو سړي ته د امر کولو حکم کول دا براه راست هغه سړي ته حکم نه دې يعنى د جمهورو رائې ده لهذا ﴿مرو الصبى بالصلاة﴾ نه د صبى مامور من الشارع کيدل نه لازميږی بلکه هغه مامور من الولي دې، صاحب منهل ليکی چه په دې کښې د مالکيانو اختلاف دې هغوی وائی چه ﴿الامر بالامر بالشئ امر بذلک الشئ﴾ لهذا د هغوی په نزد ماشوم د شارع د طرف نه مامور بالصلاة شو خو استحبابا نه چه وجوبا.

## د حديث الباب نه د شوافعو په خپل مسلک باندې استدلال

ځان پوهه کړئ چه امام خطابی کوم چه مسلکا شافعی دې هغه د ﴿ واذا بلغ عشر سنين فاضربوه بها ﴾ نه په دې باندې استدلال کړې دې چه که صبى د بلوغ نه روستو مونځ پريږدی نو هغه ته به ددې نه زياته سزا ورکولې شی او د ضرب نه زياته سزا د قتل نه سوا څه کيدې شی، پس د علماء ثلاثه مذهب هم دا دې، او امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی چه د ترک صلاة سزا ضرب او حبس دې قتل ئې جائز نه دې، او د امام صاحب دليل ﴿ لا يحل دم امرئ مسلم الا باحدى ثلاث ﴾ (الحديث) په دې حديث کښې د مسلمان د قتل جواز په دې څيزونو کښې منحصر کړې شوې دې. ١: قصاص، ٢: د محصن زنا کول، ٣: ارتداد.

هم دغه شان د هغوی دا وينا چه د ضرب نه روستو د قتل درجه ده صحيح نه ده، خپله د ضرب مختلف درجات دی، ضرب مبرح او غير مبرح، هم دغه شان ضرب مع الحبس وبدون الحبس وغيره، هم دغه شان چه کوم ضرب قبل البلوغ وی هغه به تاديبا وی او کوم ضرب چه بعد البلوغ وی، هغه به زجرا او تعزيرا وی کوم چه د مخکښې نه اشد دې لهذا د خطابی وغيره استدلال صحيح نه دې. (٢)

[٤٩٥] (٣) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ يَعْنِي الْيَشْكُرِيَّ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ سَوَّارٍ أَبِي حَمْزَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَهُوَ سَوَّارُ بْنُ دَاوُدَ أَبُو حَمْزَةَ الْمُزَنِيُّ الصَّيْرَفِيُّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مُرُوا أَوْلَادَكُمْ بِالصَّلَاةِ وَهُمْ أَبْنَاءُ سَبْعِ سِنِينَ، وَاضْرِبُوهُمْ عَلَيْهَا وَهُمْ أَبْنَاءُ عَشْرِ سِنِينَ، وَفَرِّقُوا بَيْنَهُمْ فِي الْمَضَاجِعِ".

---

(١) يعنى که يو سړي ته اووئيلې شی چه فلانی ته ددې خبرې امر اوکړه نو په دې صورت کښې دا فلان به د اول سړي د طرف نه مامور نه وی بلکه د مامور د طرف نه به مامور وی، لهذا دا صبى دې د والدينو د طرف نه مامور وی نه د شارع عليه السلام د طرف نه.

(٢) د مونځ پريخودونکی حکم د کتاب الصلوة په شروع کښې هم تيرشوې دې.

(٣): تفرد به ابو داود، (تحفة الأشراف: ٨٧١٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٧/٢) (حسن صحيح)

**ترجمه:** د عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده نه روايت دې هغه وايي، وئيلى دى رسول الله ﷺ امر وکړئ تاسو خپل اولاد ته په مانځه باندې چې دوى د اوه کلونو وي، او وهل ورته ورکړئ په دې باندې چې دوى د لسو کلونو وي، او جداوالى راولئ د دوى په مينځ کښې په ځائې د اوده کيدو کښې.

**تشريح: قوله:**﴿ وفرقوا بينهم في المضاجع ﴾ يعنى کله چه رور او خور د لسو کالو شى نو بيا دې په يوځائې کښې بغير د عورت د ستر نه نه اوده کيږى چه بدن ئې د بدن سره نه مس کيږى که هر يو په جدا کپړه کښې مستور وى نو دا د تفريق دپاره فى الجمله کافى ده اګر چه د يو څادر د لاندې وى، خو اولى دا ده چه د لسو کالو نه پس د هر يو کټ او بستره جدا جدا وى ځکه چه د لسو کالو عمر مظنه شهوت دې، په بذل کښې د مجمع البحار نه هم دا نقل کړې شوې دى او ابن رسلان ﴿ وفرقوا بينهم ﴾ د لاندې ليکى ﴿ اى بين الغلمان فالغلام والجارية بالطريق الاولى ﴾ يعنى که دوه رونړه وى نو بيا هم تفريق کول پکار دى او که رور او خور وى نو بيا به هم تفريق په طريق اولى وى او دا شرح هغه وخت ده چه کله د ﴿ فرقوا ﴾ عطف په ﴿واضربوهم ﴾ باندې اومنلې شى، او دا هم احتمال دې چه د ﴿ فرقوا ﴾ عطف په ﴿ مروا اولادكم﴾ باندې وى نو په دې صورت کښې به د عطف تقاضه دا وى چه دا د تفريق المضاجع حکم د اووه کالو په عمر کښې وى، خو په در مختار وغيره کښې د لسو کالو قول اختيار کړې شوې دې.

[٤٩٦]([1])حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنِي دَاوُدُ بْنُ سَوَّارٍ الْمُزَنِيُّ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، وَزَادَ: وَإِذَا زَوَّجَ أَحَدُكُمْ خَادِمَهُ عَبْدَهُ أَوْ أَجِيرَهُ، فَلَا يَنْظُرْ إِلَى مَا دُونَ السُّرَّةِ وَفَوْقَ الرُّكْبَةِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهِمَ وَكِيعٌ فِي اسْمِهِ، وَرَوَى عَنْهُ أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ هَذَا الْحَدِيثَ، فَقَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو حَمْزَةَ سَوَّارٌ الصَّيْرَفِيُّ.

**ترجمه:** داود بن سوار المزنى حديث بيان کړې دې په په اسناد هغې سره او معنى د هغې سره، او زيات کړى ئې دي: کله چې په نکاح ورکړى يو کس ستاسو نه وينځه خپله خپل غلام او يا اجير ته، نو نه دې ګورې لاندې د نامه نه او بره د زنګون نه. وئيلى دى ابوداود: وهم کړى دى وکيع په نوم د هغه (داؤد بن مسوار) کښې، او روايت کړې دې د هغه نه ابوداود الطيالسى ددې حديث، هغه وئيلى دي: حديث بيان کړى مونږ ته أبو حمزة سوار الصيرفي.

**تشريح: قوله:**﴿ واذا زوج احدكم خادمه عبده الخ ﴾ د خادم نه مراد جاريه ده يعنى کله چه مولى د خپلې يوې وينځې واده اوکړى اګر چه هغه ئې د خپل غلام سره ولې نه وى کړې يا د خپل ملازم او مزدور سره، نو د مولى دپاره جائز نه دى چه د هغه وينځې د ستر طرف ته نظر اوکړى، ددې نه معلومه شوه چه د ستر نه علاوه باقى حصې ته کتلې شى او مسئله هم دا ده خو بغير د شهوت نه، شهوت سره کتل غير ستر ته هم جائز نه دى ځکه چه اوس هغه وينزه د واده نه پس په مولى باندې حرامه شوه.

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٨٧١٧) (حسن)

[۴۹۷]() حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، حَدَّثَنِي مُعَاذُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ خُبَيْبٍ الْجُهَنِيُّ، قَالَ: دَخَلْنَا عَلَيْهِ، فَقَالَ لِامْرَأَتِهِ: مَتَى يُصَلِّي الصَّبِيُّ؟ فَقَالَتْ: كَانَ رَجُلٌ مِنَّا يَذْكُرُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: "إِذَا عَرَفَ يَمِينَهُ مِنْ شِمَالِهِ، فَمُرُوهُ بِالصَّلَاةِ".

**ترجمه**: حديث بيان كړې دې معاذ بن عبد الله بن خُبيب الجهني، هغه وئيلى دي: مونږ ورغلو هغه (خبيب جهنى) ته، وويل هغه خپلې ښځې ته چه كله به مونځ كوى ماشوم؟ هغې وويل: وو سړى زمونږ نه چې بيان كوى د رسول الله ﷺ نه بيشكه هغه نه تپوس وشو د دغې په باره كښې، نو هغه وويل: كله چې ئې وپيژندلو ښې لاس د چپ لاس نه نو امر ورته وكړئ په مانځه باندې.

**تشريح: قوله**: ﴿ اذا عرف يمينه من شماله الخ ﴾ يعنى كله چه هغه ماشوم داسې عمر ته اورسيږى چه هغه په ښى او ګس كښې فرق كولې شى نو بيا خو هغه ته د مونځ كولو حكم كول پكار دى، او دا معرفت او تميز چونكه عموما په اووه كالو كښې راځى، په دې وجه په تير حديث كښې اووه كاله اووئيلې شو.

## باب بَدْءِ الْأَذَانِ

### باب دې په بيان د شروع د اذان كې

اوس ددې ځائې نه مستقل مضمون شروع كيږى په بخارى او نسائى كښې داسې دى كتاب الاذان او د هغې نه روستو باب بدء الاذان.

دلته شو بحثونه دى چه د هغې په شروع كښې بيانول ډير مفيد دى. ۱: المناسبة بما قبله، ۲: الاذان لغة وشرعا، ۳: متى شرع الاذان، ۴: كيفية المشروعية وما يرد عليه من الايراد والجواب، ۴: حكم الاذان واختلاف العلماء فيه، ۶: حكمة الاذان.

### مباحث سته متعلقه بالاذان

**بحث اول**:

چه كله مصنف د مواقيت الصلاة او مساجد د بيان نه فارغ شو نو اوس د جماعت او اذان بيان شروع كوى، د جماعت د مونځ دپاره چونكه د خلقو د اجتماع ضرورت دې په دې وجه مصنف د ابواب الجماعة نه مخكښې ابواب الاذان بيانوى، ځكه چه اذان د خلقو د جمع كولو ذريعه ده.

**بحث ثانى**:

د دې لغوى معنى د اعلان او اطلاع ده ﴿ قال الله تعالى : واذان من الله ورسوله ﴾ په اصل كښې دا د ﴿ اذن ﴾ بفتحين نه مشتق دې چه د هغې معنى استماع ده او شرعا اذان وئيلې شى ﴿الاعلام بوقت الصلاة بالفاظ مخصوصة ﴾ يعنى د وخت صلاة په مخصوص الفاظ سره اطلاع وركول.

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۷۱۰) (ضعيف)

**بحث ثالث:**

د بعض غير صحاح د رواياتو نه معلوميږي چه د اذان مشروعيت د فرضيت صلاة سره په ليلة الاسراء كښې شوې دې، حافظ ابن حجرؒ فرمائي چه دا روايات صحيح نه دی، د صحاح د رواياتو نه دا ثابته ده چه رسول اللهﷺ به په مكه مكرمه كښې اذان باندې د اذان او اقامت نه ادا كولو تردې چه كله هغه مدينې منورې ته هجرت اوكړو نو د هجرت په اول كال خو ئې مسجد نبوی تعمير كړو د هغې نه روستو ئې د اذان په سلسله كښې مشوره اوشوه او په اول كال د هجرت او وئيلې شوې دی چه په دويم كال باندې اذان مشروع شو.

**څلورم بحث:**

ځان پوهه كړه چه د اذان د مشروعيت په باره كښې دوه احاديث دی. ۱: حديث د ابن عمر كوم چه متفق عليه دې او په بخاری او مسلم دواړوكښې دې. ۲: د عبدالله بن زيد د خوب والا حديث چه د هغې تخريج اصحاب السنن امام ابوداود او ترمذی وغيره كړې دې، امام ترمذی په باب بدء الاذان كښې دا دواړه احاديث ذكر كړې دی، امام ابوداود صرف دا حديث ذكر كړې دې، حافظ ابن حجر فرمائي چه د عبدالله بن زيد د حديث تخريج امام بخاری نه دې كړې، لانه لم يكن علی شرطه.

[۴۹۸](۱) حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ مُوسَى الْخُتَّلِيُّ، وَزِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، وَحَدِيثُ عَبَّادٍ أَتَمُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، قَالَ زِيَادٌ، أَخْبَرَنَا أَبُو بِشْرٍ، عَنْ أَبِي عُمَيْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ عُمُومَةٍ لَهُ مِنَ الْأَنْصَارِ، قَالَ: "اهْتَمَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلصَّلَاةِ كَيْفَ يَجْمَعُ النَّاسَ لَهَا، فَقِيلَ لَهُ: انْصِبْ رَايَةً عِنْدَ حُضُورِ الصَّلَاةِ فَإِذَا رَأَوْهَا آذَنَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا، فَلَمْ يُعْجِبْهُ ذَلِكَ، قَالَ: فَذُكِرَ لَهُ الْقُنْعُ يَعْنِي الشَّبُّورَ، وَقَالَ زِيَادٌ: شَبُّورُ الْيَهُودِ فَلَمْ يُعْجِبْهُ ذَلِكَ، وَقَالَ: هُوَ مِنْ أَمْرِ الْيَهُودِ، قَالَ: فَذُكِرَ لَهُ النَّاقُوسُ، فَقَالَ: هُوَ مِنْ أَمْرِ النَّصَارَى، فَانْصَرَفَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ رَبِّهِ وَهُوَ مُهْتَمٌّ لِهَمِّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأُرِيَ الْأَذَانَ فِي مَنَامِهِ، قَالَ: فَغَدَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ، فَقَالَ لَهُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي لَبَيْنَ نَائِمٍ وَيَقْظَانَ إِذْ أَتَانِي آتٍ فَأَرَانِي الْأَذَانَ، قَالَ: وَكَانَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَدْ رَآهُ قَبْلَ ذَلِكَ فَكَتَمَهُ عِشْرِينَ يَوْمًا، قَالَ: ثُمَّ أَخْبَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُ: مَا مَنَعَكَ أَنْ تُخْبِرَنِي؟ فَقَالَ: سَبَقَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدٍ فَاسْتَحْيَيْتُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا بِلَالُ، قُمْ فَانْظُرْ مَا يَأْمُرُكَ بِهِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدٍ فَافْعَلْهُ، قَالَ: فَأَذَّنَ بِلَالٌ، قَالَ أَبُو بِشْرٍ: فَأَخْبَرَنِي أَبُو عُمَيْرٍ، أَنَّ الْأَنْصَارَ تَزْعُمُ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ زَيْدٍ لَوْلَا أَنَّهُ كَانَ يَوْمَئِذٍ مَرِيضًا لَجَعَلَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُؤَذِّنًا".

**ترجمه:** د ابو عمير بن انس نه روايت دې، هغه روايت كوی د خپل تره نه، هغه وئيلی دي: فكرمند شو نبی ﷺ د مانځه په باره كښې چې خلك څنګه راجمع كړی هغې ته، نو ووئيل شو هغه ته: يوه جنډه ودروه په وخت د حاضريدلو د مونځ كښې، كله چې ئې خلك ووينې خبر به وركوی بعضې د دوی نه بعضو ته، نو دا خبره ئې خوښه نه شوه، هغه وايي: ذكر كړی شو هغه ته ښكر، او وئيلی دی زياد: ښكر د يهودو. نو دايې هم خوښ نه شو، او ويې وئيل: دا د كارونو د يهودو نه دی. هغه وايي: ذكر كړی شو هغه ته ناقوس هغه وفرمائيل: دا د كارونو د نصاراو نه دی، نو لاړلو عبد الله بن زيد بن عبد ربه او هغه فكرمند وو د وجې د

۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۶۰۴) (حسن)

فکرمندئ د رسول الله ﷺ نه، بيشکه زه په مابين د خوب او ويخوالی کښې وم، چې راغې ماته يو راتلونکی نو ماته ئې اذان وښودلو، هغه وايي: او وو عمر بن الخطاب ﷺ چې هغه ليدلی وو هغه خوب لره مخکې د دېنه نو هغه پټ وساتلو شل ورځې، هغه وايي: بيا ئې رسول الله صلی الله ﷺ خبر کړو، نو هغه ورته وفرمائيل: ته څه شی منع کړې وې چې ما خبر کړې، هغه ووئيل: مخکې شو زمانه عبد الله بن زيد، نو ما حياء وکړه، نو ووئيل رسول الله ﷺ: اې بلاله! پاڅېږه اوګوره، په هغه شي چې تاته امر کوي عبد الله بن زيد هغه وکړه، هغه وايي: اذان وکړو بلال، وئيلی دی ابو بشر: خبر راکړی دی ماته عُمير: بيشکه انصار ګمان کوي چې عبد الله بن زيد که مريض نه وی په دغه ورځ نو رسول الله ﷺ به مؤذن جوړ کړی وو.

## د عبدالله بن زيد د حديث مضمون

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه د عبدالله بن زيد د حديث مضمون کوم چه مصنف د باب په شروع کښې بيان کړې دې، هغه فرمائي چه رسول الله ﷺ سره خلقو لره د مونځ دپاره د راجمع کولو فکر پيد شو چه هغوی څنګه راجمع کړې شی بعض صحابه کرامو مشوره ورکړه د جهنډې د اودرولو چه د مونځ وخت شی نو يوه جهنډه دې اودرولې شی چه خلق هغې ته کتلو سره يو بل ته خبر ورکړی او بعض هغه ته د شبور (١) مشوره ورکړه کوم چه د ښکر په شکل يو څيز وی چه د هغې په ذريعې سره اواز اوچتولې شي، او بعض ورته د ناقوس مشوره ورکړه کوم چه يو خاص قسم لرګې وی يو وړوکې وی او بل لوئې وی، لوئې ته ناقوس (ټلۍ) او وړوکی ته وبيل (د لرګی ستک) وئيلې شی چه يو بل لره راواچولې شی نو د هغې نه اواز پيدا کيږی، رسول الله ﷺ دا دواړه مشورې رد کړې، د يهودو او نصاری د مشابهت د وجې نه.

**قوله:**﴿ فانصرف عبدالله بن زيد بن عبد ربه وهو مهتم الخ ﴾ دا مجلس هم دغه شان بغير د فيصلې نه برخاست شو او په اهل مجلس کښې د ټولو زيات فکرمند عبدالله بن زيد پاسيدو ﴿ فاری الاذان فی منامه ﴾ الله پاک هغه ته ددې اهتمام او فکر په وجه باندې دا دولت نصيب کړو چه په خوکښې هغه ته اذان اوښودلې شو چه د هغې خبر هغه رسول الله ﷺ ته ورکړه په دې باندې هغه د اذان د مشروعيت فيصله اوکړه او بلال ﷺ ته ئې حکم اوکړو "يا بلال قم فانظر ما يامرک به عبدالله بن زيد".

او حديث د ابن عمر ﷺ کوم چه په بخاری شريف کښې دې د هغې مضمون دا دې چه د اذان د مشروعيت نه مخکښې به رسول الله ﷺ د صحابه کرامو سره مشوره کوله نو بعض ورته د ناقوس مشوره ورکړه او بعض ورته د قرن يهود، دا مشوره روانه وه چه سيدنا عمر ﷺ په مجلس کښې اووې ﴿ اولا تبعثون رجلا ينادی بالصلاة فقال رسول الله صلی الله عليه وسلم يا بلال قم فناد بالصلاة ﴾.

---

(١) د حضرت شيخ په تقرير کښې دی چه شبور د يهوديانو په باجو کښې يوه باجه ده د هغې صورت داسې وی لکه چه په چمياړانو کښې د واده ښادئ په موقع باندې يو اوږد عنق باجه استعمالولې شی کوم ته چه بيګل وئيلې شی. ۱۲)

## د اذان د مشروعيت په باره کښې د بخاري او د سنن په حديث کښې تعارض او د هغې جواب

دا حديث په ظاهره کښې د اول حديث خلاف دې ځکه چه دديې نه معلوميږي چه د اذان مشروعيت د سيدنا عمر رضي الله عنه په رائې باندې شوې وو اوس په دې دواړو احاديثو کښې تعارض پيدا شو، امام نووي رحمه الله د مسلم په شرح کښې د قاضي عياض نه دا تاويل نقل کړې دې چه د عمر رضي الله عنه په کلام کښې د نداء مصداق اذا معهود نه دې بلکه مطلق نداء بالصلاة مراد دې. ﴿ الصلاة جامعة ﴾ وغيره الفاظ کوم چه د اذان د مشروعيت نه مخکښې وئيلې شو، دويم جواب دا هم ورکړې شوې دې کوم چه حافظ په فتح الباري کښې او علامه سندهي په حاشيه د نسائي کښې نقل کړې دې چه داسې اووئيلې شي چه د ابن عمر رضي الله عنه په حديث کښې حذف او اختصار واقع شوې دې چه د هغې په وجه باندې د مقصود په فهم کيدو کښې خلل واقع شو او هغه اختصار په دې کښې داسې اوشو چه کوم وخت دا مجلس بغير د څه فيصلې نه برخاست شو نو د هغې نه روستو عبدالله بن زيد خوب اوليدو او بيا ئې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې خپل خوب بيان کړو چه په هغې باندې عمر رضي الله عنه اوفرمائيل : اولا تبعثون رجلا ينادي بالصلاة. په دې صورت کښې به د عمر رضي الله عنه د کلام نه نداء معهود مراد وي.

### غريبه

امام ترمذي رحمه الله چه کله په حديث د ابن عمر رضي الله عنه باندې د صحت حکم اولګولو نو په دې باندې قاضي ابوبکر بن العربي د ترمذي په شرح کښې اشکال اوکړو "وعجب لابي عيسى کيف حکم عليه بالصحة الخ" په امام ترمذي تعجب دې چه هغه په دې حديث باندې څنګه د صحت حکم لګولې دې او حال دا چه دا د عبدالله بن زيد د مشهور حديث خلاف دې، په دې باندې شيخ احمد شاکر د ترمذي په حاشيه باندې ليکي : "ولعل القاضي نسي ان الحديث في الصحيحين" يعنې ايا د ابن العربي په ذهن کښې دا خبره نشته چه دا حديث صرف په ترمذي کښې نه دې بلکه دا خو متفق عليه حديث دې، الغرض د ابن عربي رائې دا ده چه حديث د ابن عمر صحيح نه دې، په ظاهره احمد شاکر صحيح وئيلې دي چه د ابن العربي په ذهن کښې به دا نه وه چه دا حديث په بخاري کښې هم شته ګني هغه به داسې جرأت نه کولې. والله تعالى اعلم

### د اذان په مشروعيت باندې يو مشهور اشکال او جواب

خان پوهه کړه چه د اذان د مشروعيت په دې کيفيت باندې اشکال دې چه د غير نبي خوب حجت نه دې نو بيا پرې دلته د يو حکم شرعي بنياد څنګه کيخودلې شو؟ ددې مشهور جواب دا دې چه ممکنه ده ددې خوب سره وحي مقارن شوې وي، پس په مصنف د عبدالرزاق او د مراسيل ابي داود په يو روايت کښې دي چه سيدنا عمر رضي الله عنه چه کله په خوب کښې اذان اوليدو نو هغه ددې خبر رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ورکړه ﴿ فوجد الوحي قد ورد

بذلک﴾ نو عمر ﷺ ته معلومه شوه چه په دې سلسله کښې په رسول الله ﷺ باندې وحی نازله شوې ده، او زه ددې جواب دا ورکوم چه په سنن ابی داود او ترمذی کښې دا دی چه رسول الله ﷺ د عبدالله بن زيد په خوب اوريدلو سره اوفرمائيل چه ﴿ انها لرؤيا حق ﴾ چه ستا دا خوب حق دې، او د هغې نه پس رسول الله ﷺ په بلال ﷺ باندې اذان اوکړو، لهذا اوس هغه خوب د نبی د تصديق د وجې نه حجت شرعيه جوړ شو، اوس ددې حيثيت صرف د يو خوب پاتې نه شو، اوس وړاندې په دې کښې دوه احتماله کيدې شی دا تصديق به رسول الله ﷺ په خپل اجتهاد سره کړې وی څکه چه رسول الله ﷺ ته د جمهور علماء کرامو په نزد د اجتهاد حق وو، او دا هم ممکنه ده چه دا تصديق ئې د وحی په ذريعه کړې وی.

## رؤيا عمر بن الخطاب

هم دغه شان دې دا هم واضحه وی چه د اذان په باره کښې چه څنګه خوب عبدالله بن زيد اوليدو هم دغه شان څنګه چه په وړاندې روايت کښې راغی، سيدنا عمر ﷺ هم ليدلې وو بلکه هغه د عبدالله بن زيد نه شل ورځې مخکښې ليدلې وو خو هغه ددې ذکر رسول الله ﷺ ته نه وو کړې بيا چه څو ورځې پس د عبدالله بن زيد په خوب باندې رسول الله ﷺ سيدنا بلال ﷺ باندې اذان اوکړو او د هغې اواز عمر ﷺ ته اورسيدو نو په دې باندې هغه ته خپل زړو خوب راياد شو او په منډه منډه د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شو او خپل خوب ئې هم رسول الله ﷺ ته ذکر کړو خو رسول الله ﷺ د اذان د مشروعيت فيصله د عبدالله بن زيد په خوب باندې کړې وه.

د حديث د شروح نه معلوميږی چه ددې دواړو صحابه کرامو نه علاوه نورو بعض صحابه کرامو هم د اذان په باره کښې خوب ليدلې دې، پس د طبرانی په يو روايت کښې د ابوبکر صديق ﷺ د خوب ذکر دې او امام غزالی ﷺ ليکلې دی چه په دې سلسله کښې د لسو نه زيات صحابه کرامو خوب ليدلې دې، خو حافظ ابن حجر ﷺ فرمائی ﴿ لم يثبت شئ من ذلک الا ما جاء من قصة عمر ﴾

## په خوب باندې د فيصلې يو بل مثال

دلته يو سوال دا هم کيدې شی چه ايا د اذان نه علاوه هم يو څيز داسې شته چه د هغې فيصله رسول الله ﷺ په خوب باندې کړې وی؟ نو جواب دا دې چه ددې يو بل مثال زمونږ په ذهن کښې شته، په نسائی شريف ج ۱ ص ۱۹۸ کښې د زيد بن ثابت ﷺ يو روايت دې چه رسول الله ﷺ ددې خبرې حکم فرمائيلې وو چه د فرض مونځ نه پس درې ديرش کرته سبحان الله، درې ديرش کرته الحمد لله او څلور ديرش کرته الله اکبر لولئ، نو يو انصاری صحابی په خوب کښې اوليدل چه يو ويونکې ورته وائی چه ايا تاته رسول الله ﷺ ددې مذکوره ورد د وئيلو حکم کړې دې نو هغه اووې چه او! نو ويونکی ورته اووې چه د درې کلماتو په ځائې څلور لوله او په دې کښې تهليل ﴿ لا اله الا الله ﴾ هم شامل کړه او ددې اذکارو عدد ئې د درې ديرش په ځائې پنځويشت کرته کړه نو هغه صحابی سحر د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د خپل خوب تذکره اوکړه په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل

﴿اجعلوها كذلك﴾ چه هم دغه شان كوه.

**بحث خامس:**

اذان د جمهور او ائمه ثلاثه او هم دغه شان د احنافو په قول باندې راجحه دا ده چه سنت مؤكده دې، د احنافو په نزد دويم قول د وجوب دې، بلکه دا چه فقهاء كرامو ليكلې دی چه اذان اگر چه سنت مؤكده دې واجب نه دې خو د شعائر اسلام نه دې لهذا كه د يو علاقې خلق دې په ترک باندې اتفاق اوکړی نو امام به ورسره قتال كوی، او د داود ظاهری، اوزاعی او عطاء رحمة الله عليهم په نزد فرض دې، عطاء ددې هم قائل دې چه كه يو سړې بغير د اذان نه مونځ اوكړی نو په هغه باندې ئې اعاده واجب ده. دغه شان اذان د احنافو او حنابله په نزد د منفرد دپاره مستحب دې او د شوافعو او مالكيانو په نزد هم قول راجح كښې او په دې كښې يو قول دا دې ﴿لا يستحب لانه لاستدعاء الجماعة، وقيل يستحب لمن يرجو حضورا لجماعة والا فلا﴾.

**بحث سادس:**

امام نووی رحمه الله فرمائی چه علماء كرامو د اذان په حكمت كښې څلور څيزونه ذكر كړی دی.
۱: په دې كښې د شعائر اسلام او كلمة التوحيد اظهار دې. ۲: د دخول وخت صلاة اطلاع.
۳: د مكان صلاة ښودنه، ۴: د مونځ باجماعت دپاره دعوت، هم دغه شان علماء كرامو ليكلې دی چه اذان د خپل اختصار او قلت الفاظ باوجود امهات مسائل د دين په اهم بنيادی مسائلو باندې مشتمل وو.

**قوله:** ﴿حدثنا عباد بن موسى الخ...﴾ د دې حديث په ډيرو اجزاء باندې كلام پورته په ابتدائی مباحثو په ضمن كښې راغلې دې. ﴿فقال يا رسول الله انى لبين نائم ويقظان﴾ عبدالله بن زيد خپل خوب بيان فرمائی چه يا رسول الله ﷺ زه د خوب او بيدارئ ترمينځه حالت كښې اوم، شارحين ليكی چه ددې نه مراد نوم خفيف دې چه تردې وخته پورې ماته ډير خوب نه وو راغلې، او حضرت شيخ په اوجز كښې ليكی چه زما په نزد زيات غوره هغه خبره ده كومه چه علامه سيوطی اختيار كړې ده ﴿وهى الحالة التى تعترى ارباب الاحوال، والصحابة رؤس ارباب الاحوال﴾ يعنی ددې نه هغه حالت مراد دې كوم چه ارباب باطن او اهل كشوف ته پيښيږی يعنی دا خوب نه وو بلكه د بيدارئ د حالت مكاشفه وه.

**قوله:** ﴿اذ اتانى ات فارانى الاذان﴾ د دې خوب تفصيل د راروان باب په رومبی حديث كښې راروان دې ﴿فكتمه عشرين يوما﴾ يعنی د عبدالله بن زيد نه اول قسم خوب سيدنا عمر رضي الله عنه هم ليدلې دې ددې ذكر مونږ سره مخكښې تير شوې دې ﴿فاستحييت﴾ په ظاهره كښې عمر رضي الله عنه ته چه كله خپل خوب رایاد شو نو فورا ئې رسول الله ﷺ ته بيان نه كړو خكه چه په مجلس كښې د عبدالله بن زيد په خوب باندې خبره روانه وه، عمر رضي الله عنه ته هغه وخت خپل خوب بيانولو سره شرم ورغلو په دې وجه هغوی ددې ذكر رسول الله ﷺ ته روستو اوكړو.

**د ټولو نه اول د اذان ورکولو سعادت**

**قوله:** ﴿يا بلال قم﴾ د مشروعيت اذان اعزاز اګر چه د عبدالله بن زيد سره دې نو د ټولو نه مخکښې د اذان ورکولو سعادت د سيدنا بلال رضي الله عنه په حصه کښې راغلو ځکه چه هغه ددې نه مخکښې په مکه مکرمه کښې د اسلام قبلولو په سزا کښې په ګرمه شګه باندې د کاڼړو د بوجه د لاندې د احد احد اوازونه اوچت کړې وو.

**قوله:** ﴿لولا انه كان يومئذ مريضا الخ﴾ عبدالله بن زيد د انصارو نه دې، د انصارو خواهش وو چه څنګه د اذان د مشروعيت سعادت زمونږ د قبيلې يو فرد ته حاصل شوې وو هم دغه شان د اذان کولو فضيلت هم هغوی ته حاصل شي، خو الله پاک ته داسې منظوره نه وه په دې وجه انصار ددې دپاره عذر بيانوی هغه دا چه عبدالله بن زيد دواړه مريض وو د ضعف د وجې نه، اواز نه شي اوچتولې په دې وجه رسول الله ﷺ اذان په بلال حبشي رضي الله عنه باندې ورکړو ځکه چه د هغه اواز اوچت وو پس وړاندې په روايت کښې دی چه ﴿فانه اندى صوتا منك﴾

دلته په دې روايت کښې خو دومره ده چه وړاندې ﴿باب الرجل يؤذن ويقيم اخر﴾ کښې ددې روايت تکمله راروانه ده، هغه دا چه رسول الله ﷺ سيدنا بلال رضي الله عنه ته د اذان ورکولو حکم اوکړو نو په دې باندې عبدالله بن زيد رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه اذان ما کتلې وو، ما دا غوښتل چه د اذان ورکولو عمل هم زما نه اخستلې شوې وې په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿فاقم انت﴾ چه هم ته اقامت کوه.

## باب كَيْفَ الأَذَانُ

### باب دی کیفیت د اذان کې

د دې باب نه د مصنف مقصود د اذان الفاظ او په هغې کښې چه کوم د رواياتو اختلاف دې هغه بيانول دی.

### د کلمات اذان تعداد کښې اختلاف

ځان پوهه کړه چه د اذان په کلماتو کښې دوه ځايه اختلاف دې، يو د اذان په شروع کښې د تکبير متعلق چه هغه څو کرته دې، دوېم د شهادتين په باره کښې چه په دې کښې ترجيع شته يا نه، په اوله مسئله کښې صرف د امام مالک اختلاف دې د هغه په نزد د اذان په شروع کښې الله اکبر صرف دوه کرته دې او د باقي ائمه ثلاثه په نزد څلور کرته، او په مسئله ثانيه يعنی ترجيع کښې دوه امامان يو طرف ته دی او دوه بل طرف ته، شوافع او مالکيان د ترجيع قائل دی، احناف او حنابله نه دی، د احنافو او حنابله په نزد د اذان کلمات پنځلس دی او د شوافعو په نزد نولس دی او د مالکيانو په نزد اولس دی، شوافع او مالکيان اګر چه دواړه ډلې د ترجيع قائل دی خو د مالکيانو په نزد چونکه په شروع کښې تکبير صرف دوه کرته دې په دې وجه د هغوی په نزد د اذان کلمات اولس دی.

هم دغه شان ځان پوهه کړه چه د اقامت باب اګر چه وړاندې مستقلا راروان دې خو په احاديث الباب کښې چونکه د اذان سره اقامت هم مذکور دې په دې وجه په اقامت کښې چه د ائمه کرامو کوم اختلاف دې هغه هم که دلته معلوم شي نو غوره ده، په دلائلو باندې کلام خو به هلته راشي، دلته صرف دومره ځان پوهه کول پکار دی چه جمهور ائمه ثلاث د

اقامت د افراد قائل دی چه کلمات اقامة یو یو خل اووئیلي شي، او احناف د جفت اقامت قائل دی، د هغوی په نزد د اذان په شان اقامت هم شفعا شفعا دي.

[۴۹۹]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَنْصُورٍ الطُّوسِيُّ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ الْحَارِثِ التَّيْمِيُّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ رَبِّهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدٍ، قَالَ: "لَمَّا أَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاقُوسِ يُعْمَلُ لِيُضْرَبَ بِهِ لِلنَّاسِ لِجَمْعِ الصَّلَاةِ، طَافَ بِي وَأَنَا نَائِمٌ رَجُلٌ يَحْمِلُ نَاقُوسًا فِي يَدِهِ، فَقُلْتُ: يَا عَبْدَ اللَّهِ، أَتَبِيعُ النَّاقُوسَ؟ قَالَ. وَمَا تَصْنَعُ بِهِ؟ فَقُلْتُ: نَدْعُو بِهِ إِلَى الصَّلَاةِ، قَالَ: أَفَلَا أَدُلُّكَ عَلَى مَا هُوَ خَيْرٌ مِنْ ذَلِكَ؟ فَقُلْتُ لَهُ: بَلَى، قَالَ: فَقَالَ: تَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، قَالَ: ثُمَّ اسْتَأْخَرَ عَنِّي غَيْرَ بَعِيدٍ، ثُمَّ قَالَ: وَتَقُولُ إِذَا أَقَمْتَ الصَّلَاةَ: اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، فَلَمَّا أَصْبَحْتُ، أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا رَأَيْتُ، فَقَالَ: إِنَّهَا لَرُؤْيَا حَقٌّ إِنْ شَاءَ اللَّهُ، فَقُمْ مَعَ بِلَالٍ فَأَلْقِ عَلَيْهِ مَا رَأَيْتَ فَلْيُؤَذِّنْ بِهِ فَإِنَّهُ أَنْدَى صَوْتًا مِنْكَ، فَقُمْتُ مَعَ بِلَالٍ فَجَعَلْتُ أُلْقِيهِ عَلَيْهِ وَيُؤَذِّنُ بِهِ، قَالَ: فَسَمِعَ ذَلِكَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَهُوَ فِي بَيْتِهِ فَخَرَجَ يَجُرُّ رِدَاءَهُ، وَيَقُولُ: وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَقَدْ رَأَيْتُ مِثْلَ مَا رَأَى، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَلِلَّهِ الْحَمْدُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَكَذَا رِوَايَةُ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ، وقَالَ فِيهِ ابْنُ إِسْحَاقَ: عَنِ الزُّهْرِيِّ: اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، وقَالَ مَعْمَرٌ، وَيُونُسُ: عَنِ الزُّهْرِيِّ فِيهِ، اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ، لَمْ يُثَنِّيَا.

**ترجمه**: حديث بيان كړي دي عبد الله بن زيد ، هغه وئيلي دي: هركله چي امر وكړو رسول الله ﷺ په ناقوس چي جوړ كړى شي، او وهلى كيږى لپاره د جمع كولو خلقو د مانځه دپاره، يو سړي طواف وكړو په ما (يعني راغي ماته) او زه اوده وم، او د هغه په لاس كښي ناقوس وو، ما ورته ووئيل: اې د الله بنده دا ناقوس خرخوي؟ هغه ووئيل: په هغي باندي څه كوي؟ ما ورته ووئيل: خلك راغوارو په هغي سره مانځه ته، هغه ووئيل: ايا زه تاته د دېنه غوره شى ونه ښايم؟ ما ووئيل: ولې نه، هغه وايي: چې هغه راته ووئيل: چې ته ووايه! الله اكبر الله اكبر، الله اكبر الله اكبر، اشهدُ ان لا اله الا الله، اشهد ان لا اله الا الله، اشهدُ ان محمدًا رسول الله، اشهدُ ان محمد رسول الله، حي على الصلاة، حي على الصلاة، حى على الفلاح حي على الفلاح، الله اكبر الله اكبر، لا اله الا الله. هركله چي سحر شو راغلم رسول الله ﷺ ته. نو هغه ته خبر وركړو په هغه څه چي ما ليدلى وو، هغه وفرمائيل: بيشكه دا حق خوب دى ان شاء الله، پاڅيږه د بلال سره وښايه هغه ته څه چي دې ليدلى دي، نو هغه دې اذان كوى په هغي سره، بيشكه هغه ستانه په اواز كښي اوچت دى. زه پاڅيدم د بلال سره ما ښودلې هغې ته، او هغه اذان كولو په هغې سره، هغه وايي: عمر دغه واوريدي او هغه په خپل كور كښي وو راخكلويي خپل څادر، او وئيل يي: قسم په هغه ذات چې ته ئې رالېږلى ئې اى د الله رسوله! بيشكه ما ليدلى دى په خوب

(): سنن الترمذي/الصلاة ۲۵ (۱۸۹)، سنن ابن ماجه/الأذان ۱ (۷۰۶)، (تحفة الأشراف: ۵۳۰۹)، مسند احمد (۴۲/۴)، سنن الدارمي/الصلاة ۳ (۱۲۲۴) (صحيح)

کښې پښان د هغې چې هغه ليدلی دی، نو وويل رسول الله ﷺ: د الله حمد دی. وئيلی دی ابوداؤد: دارنګه دی روايت دې د زهری د سعيد بن المسيب نه او هغه د عبد الله بن زيد نه، او هغه وئيلی دي: په دې کښې اسحاق روايت کوی د زهری نه داسې: الله اکبر الله اکبر، او وئيلی دی معمر او يونس د زهری نه په هغې کښې: الله اکبر الله اکبر او تثنيه ئې نه کړل

**تشريح: قوله:**﴿ حدثنا محمد بن منصور...حدثني ابی عبدالله بن زيد ﴾... دلته د راوی عبدالله بن زيد خوئی محمد دې هغه د خپل پلار عبدالله بن زيد نه روايت کوی، لهذا د ﴿ ابی ﴾ نه مراد ﴿ والدی ﴾ دې، دا کنيت نه دې بلکه دا ياء د متکلم ده په ترکيب کښې مبدل منه ده او ورانديې عبدالله بن زيد بدل واقع شوې دې، يعنی بيان اوکړو ماته زما والد صاحب عبدالله بن زيد.

## شرح حديث

﴿ لما امر رسول الله صلی الله عليه وسلم بالناقوس الخ ﴾ ظاهره دا ده چه لفظ ﴿ امر ﴾ صيغه د مجهول ده، او مطلب دا دې چه کله رسول الله ﷺ ته د ناقوس مشوره ورکړې شوه او دا احتمال هم دې چه لفظ په صيغه د معروف وی خو په دې باندې به اشکال دا وی چه رسول الله ﷺ د ناقوس جوړولو حکم چرته ورکړې وو، وئيلې به شی چه مراد د امر نه اراده د امر ده، کيدې شی چه رسول الله ﷺ د ناقوس اراده فرمائيلې وی، په دې بناء چه نصاری د يهودو په نسبت باندې مسلمانانو ته زيات نزدې دی: ﴿ قال الله تعالی : وَلَتَجِدَنَّ أَقْرَبَهُمْ مَوَدَّةً لِلَّذِينَ آمَنُوا الَّذِينَ قَالُوا إِنَّا نَصَارَى ﴾

## د احاديث الباب تجزيه او په هغې کلام

په دې باب کښې مصنف اولا د عبدالله بن زيد رضی الله عنه حديث په دوه طريقو سره راوړې دې، دواړه طريقې د ترجيع نه خالی دی بلکه د عبدالله بن زيد د حديث ټولې طريقې د ترجيع نه خالی دی، خو د هغه د حديث په دې طريق کښې افراد اقامت ذکر شوې دې کوم چه د احنافو خلاف دې، دويم دا چه مصنف حديث د ابومحذوره رضی الله عنه په ډيرو طرقو سره ذکر کړې دې، چه په هغې کښې د ترجيع ثبوت دې لکه چه د شوافعو او مالکيانو مسلک دې خو په دې حديث کښې د افراد اقامت په ځائې تثنيه اقامت دې لکه چه د احناف مسلک دې.

## د عبدالله بن زيد روايات د اقامت په باره کښې

هم دغه شان ځان پوهه کړه چه د عبدالله بن زيد حديث د اقامت په باره کښې مختلف دې د هغې په بعض طرق کښې افراد اقامت دې لکه چه د باب په اول حديث کښې دی، او بعض طرق ئې په تثنيه اقامت باندې دلالت کوی لکه چه ددې باب په حديث نمبر ۸ کښې د ابن ابی ليلی په روايت کښې راځی ﴿ احيلت الصلاة ثلاثة احوال ﴾ پس په دې روايت کښې دی ﴿فقام علی المسجد فاذن ثم قعد قعدة ثم قام فقال مثلها ﴾ په دې روايت کښې اقامت د اذان په شان شمار کړې شوې دې او اذان بالاتفاق تثنيه دې، حاصل دا چه په دې سلسله کښې اصل عبدالله بن زيد دې د هغه په يو روايت کښې هم ترجيع نشته، البته د اقامت په باره کښې د هغه روايات دواړه قسمه دی، د اقامت په باره کښې به دلائلو باندې کلام په وړاندې باب

کښې راځي، دلته د اذان متعلق خبره کيږي.

## په اذان کښې د ترجيع بحث

زمونږ علماء کرامو ليکلي دي چه د ملک منزل من السماء په اذان کښې هم ترجيع نشته. هم دغه شان د سعد قرظ مؤذن د مسجد قباء په اذان کښې هم ترجيع نشه، او د ټولو نه لويه خبره دا چه د سيد المؤذنين سيدنا بلال رضي الله عنه په اذان کښې هم ترجيع نشته[1] شوافع حضرات د ابومحذوره رضي الله عنه د حديث نه استدلال کوی چه د هغې تقريبا په ټولو طرق کښې ترجيع موجود دې، دې باره کښې زمونږ صاحب هدايه فرمائی چه ﴿وما رواه كان تعليما فظنه ترجيعا﴾ د دې وضاحت وړاندې د حديث ابومحذوره رضي الله عنه د لاندې راروان دې، هغه حضرات د ابومحذوره رضي الله عنه د حديث نه ترجيع ثابتوی، پس امام نووی رحمه الله فرمائی چه حديث د ابومحذوره رضي الله عنه د عبدالله بن زيد د حديث نه متاخر دې ځکه چه د ابو محذوره رضي الله عنه د اذان قصه د هجرت په اتم کال باندې پيښه شوې ده او د عبدالله بن زيد حديث ابتداء د امر دې ددې جواب حضرت په بذل المجهود کښې دا ورکړې دې چه چا د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه هم دا سوال اوکړو چه ايا حديث د ابومحذوره رضي الله عنه د عبدالله بن زيد رضي الله عنه د حديث نه متاخر نه دې؟ هغه ورته سمدستی جواب ورکړو چه: اليس قد رجع رسول الله صلى الله عليه وسلم الى المدينة فاقر بلالا على اذان عبدالله بن زيد؟ يعنی اگر چه دا صحيح ده چه د ابومحذوره رضي الله عنه حديث د عبدالله بن زيد د حديث نه مؤخر دې خو دا سوچ خو اوکړئ چه د ابومحذوره رضي الله عنه د اذان واقعه نه پس ايا رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپل سفر نه په واپس کيدو باندې مدينې ته واپس شوې نه وو، او هلته تلو سره ئې بيا هم هغه د بلال رضي الله عنه اذان کوم چه د عبدالله بن زيد د اذان مطابق وو هغه ئې برقرار او نه ساتلو، نو بيا اوښايئ کړئ چه کوم اذان موخر شو.

## د شيخ ابن الهمام رائې

او شيخ ابن الهمام د حديث ابو محذوره رضي الله عنه يو بل جواب کړې دې چه د طبرانی په يو روايت کښې د ابومحذوره رضي الله عنه په حديث کښې ترجيع نشته، لهذا حديث د ابومحذوره رضي الله عنه مضطرب شو په خلاف د حديث د عبدالله بن زيد چه د هغې په يو طريق کښې هم ترجيع نشته.

**قوله**: ﴿قال ابوداود: هكذا رواية الزهرى الخ﴾ مصنف فرمائی چه د عبدالله بن زيد د حديث دوه طريق دی ۱: يو محمد بن ابراهيم عن محمد بن عبدالله بن زيد (كما تقدم)، او ۲: دويم طريق زهرى عن سعيد بن المسيب وقال: فيه ابن اسحاق عن الزهرى الخ... مصنف د محمد بن ابراهيم او د زهرى په روايت کښې چه کوم فرق دې هغه بيانوی.

---

[1] په دې باندې ونيلی شوې دی چه د طبرانی په يو روايت کښې د بلال رضي الله عنه په روايت کښې ترجيع موجود ده، زمونږ د طرف نه دا جواب ورکړې شوې دې چه د طبرانی په رواياتو کښې حديث ابومحذوره رضي الله عنه هم د ترجيع نه خالی دې، ماهو جوابكم فهو جوابنا)

## ابتداء په اذان کښې د تکبير په عدد کښې اختلاف دې

هغه دا چه د محمد بن ابراهيم په روايت کښې ترببع تکبير دې (د اذان په شروع کښې الله اکبر څلور کرته دې) او د زهري په روايت کښې د هغه شاګردان مختلف دی ابن اسحاق د زهري نه څلور کرته الله اکبر او معمر او يونس د هغه نه الله اکبر صرف دوه کرته نقل کړې دې، زه وائم چه دغه شان په حديث د ابو محذوره ﷺ کښې هم روايات مختلف دی د هغې په بعض طرق کښې تکبير څلور کرته دې او په بعض کښې دوه کرته، او پورته ذکر شوې دی چه مالکيان د دوه کرتو قائل دی. ﴿ لم يثنيا ﴾ معمر او يونس د زهري نه لفظ د الله اکبر په تثنيه سره نه دې ذکر کړې بلکه په افراد سره، دلته دا اشکال دې چه معمر او يونس خو الله اکبر دوه کرته ذکر کړې دې بيا د تثنيه نفي څنګه صحيح شوه، جواب دا دې چه دوه کرته الله اکبر يوځائې کيدو سره يو شمارلې کيږي، ځکه چه په يو ساه باندې دوه کرته وئيلې شي.

[۵۰۰](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا الْحَارِثُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي مَحْذُورَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، عَلِّمْنِي سُنَّةَ الْأَذَانِ، قَالَ: فَمَسَحَ مُقَدَّمَ رَأْسِي، وَقَالَ: "تَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، تَرْفَعُ بِهَا صَوْتَكَ، ثُمَّ تَقُولُ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، تَخْفِضُ بِهَا صَوْتَكَ، ثُمَّ تَرْفَعُ صَوْتَكَ بِالشَّهَادَةِ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، فَإِنْ كَانَ صَلَاةُ الصُّبْحِ، قُلْتَ: الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ، الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ".

**ترجمه:** د ابو محذوره نه روايت دې هغه وئيلی دی، ما ووېل ای د الله رسوله! مونږ ته سنت اذان راوښايه؟ هغه وايي: مسح ئې کړو مخکې حصه د سر زما، او ويې وئيل: ته به داسې وايې: الله اکبر الله اکبر، الله اکبر الله اکبر، ته به اوچتوی په دې باندې خپل اواز، اشهدُ ان لا اله الا الله، اشهد ان لا اله الا الله، اشهدُ ان محمدًا رسول الله، اشهدُ ان محمد رسول الله، ته به ځکته کوی اواز خپل، بيا به اوچتوی خپل اواز په شهادت باندې، اشهدُ ان لا اله الا الله، اشهد ان لا اله الا الله، اشهدُ ان محمدًا رسول الله، اشهدُ ان محمد رسول الله، حي على الصلاة، حي على الصلاة، حي على الفلاح حي على الفلاح، الله اكبر الله اكبر، لا اله الا الله. که چرې د سحر اذان وو ته به داسې وې: الصلاة خير من النوم، الصلاة خير من النوم، الله اکبر الله اکبر، لا اله الا الله.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا مسدد... عن ابيه عن جده ﴾ د ﴿ ابيه ﴾ نه مراد عبد الملک بن ابی محذوره دې، او د جد نه مراد ابومحذوره ﷺ دې، دا د باب دوېم حديث دې د ابومحذوره والا چه په هغې کښې ترجيع ده، مصنف دا مختصرا ذکر کړې دې.

(1): صحيح مسلم/الصلاة ۳ (۳۷۹)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۶ (۱۹۱)، سنن النسائي/الأذان ۳ (۶۳۰)، ۴ (۶۳۱)، سنن ابن ماجه/الأذان ۲ (۷۰۹)، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۶۹)، مسند احمد (۳/۴۰۸، ۴۰۹)، سنن الدارمي/الصلاة ۷ (۱۲۳۲) (صحيح)

## د اذان ابو محذوره واقعه

تفصيلي روايت په نسائي شريف كښې دې هغه دې اوكتلې شي، هم دغه شان د دارقطني په يو روايت كښې هم تفصيل دې كوم چه حضرت په بذل كښې ذكر كړې دې، چه د هغې مضمون دا دې، ابو محذوره رضي الله عنه فرمائي چه كله رسول الله ﷺ د فتح مكه نه روستو حنين ته روان شو نو مونږ لس خوانان هلكان د اهل مكه نه په هغه پسې شاته روان شو هغه فرمائي چه زمونږ ملاقات رسول الله ﷺ او د هغه ملګرو سره په لاره كښې هغه وخت اوشو چه كله هغوى د حنين نه واپس كيدل، چه د هغې صورت داسې جوړ شو چه په لاره كښې په يوځائې كښې د رسول الله ﷺ مؤذن اذان وركړو چه د هغې اواز مونږ د لرې نه واوريدلو تر دې وخته پورې چونكه مونږ د اسلام نه اعراض كولو، په دې وجه مونږ ټولو هلكانو هم د هغه مؤذن د اذان نقل شروع كړو (د ټوقو په طور) زمونږ د اذان اواز رسول الله ﷺ ته اورسيدو رسول الله ﷺ په مونږ پسې څه كسان راوليږل چه مونږ اونيسى، نو مونږ د هغه په خدمت كښې حاضر كړې شو، هغه رانه تپوس اوكړو چه په تاسو كښې هغه هلك څوك دې د چا اواز چه ما اوريدلې وو او د هغه اواز د ټولو نه زيات اوچت وو، نو زما ملګرو ورته زما په باره كښې اشاره اوكړه او د هغوى اشاره كول صحيح وو، رسول الله ﷺ زما ټول ملګرى خو پريښودل او زه ئې ايسار كړم او ماته ئې اوفرمائيل چه اوس زما په وړاندې اذان اوكړه، دغه وخت كښې زما په نزد د هغه نه څوك هم مكروه او مبغوض نه وو، زه د هغه مخكښې اودريدم او اذان كول مې شروع كړل، د كلمات اذان القاء خپله رسول الله ﷺ په ما باندې كوله په دې روايت كښې بيا دا دې چه رسول الله ﷺ د شهادتين القاء په هغه باندې مكرر اوكړه.

### د امام طحاوي رحمه الله رائې

امام طحاوي رحمه الله فرمائي چه كيدې شي ابومحذوره رضي الله عنه چه كله شهادتين ته رسيدلې وى نو هغه ئې كما حقه په شد او مد سره نه وى وئيلى په دې وجه به پرې رسول الله ﷺ مكرر كړې وى. زه وائم چه ددې وجه ظاهره ده چه يا خو ئې تر دې وخته پورې اسلام نه وو قبول كړې لكه چه د روايات د ظاهرى الفاظو نه معلوميږى،([1]) يا كم از كم اسلام د هغوى په زړونو كښې راسخ نه وو، په حديث د ابو مخذوره رضي الله عنه باندې كلام د وړاندې باب په اول حديث كښې تير شوې دې.

### د سحر په اذان كښې د الصلاة خير من النوم متعلق كلام

قوله:﴿ فان كان صلاة الصبح قلت : الصلاة خير من النوم ﴾ د دې نه معلومه شوه چه د سحر په اذان كښې ددې لفظ زيادت مرفوعا ثابت دې، ائمه ثلاثه چه په هغې كښې احناف هم دى د

[1] ) خو د بعض روايتونو نه معلوميږى چه رسول الله ﷺ ابو محذوره رضي الله عنه ته په اذان كښې اول شهادتين لږ په قلاره اواز باندې د وئيلو خپله فرمائيلې وو او بيا دوباره په اوچت اواز سره، ددې توجيه هم دا ده چه په شروع كښې ورته رسول الله ﷺ شهادتين لږه سرا د لوستلو حكم اوفرمائيلو او د ايمان او توحيد طرف ته راوستلو دپاره ئې په دويم ځل جهرا د اذان په نيت سره.

هغوی په نزد د سحر په اذان کښې ددې زيادت مستحب دې او د امام شافعي رحمه الله قول قديم هم دا دې او هم هغه د هغوی په نزد مفتی به دې، او د هغه په قول جديد کښې غير مستحب دې بعض علماء کرامو لکه ابن قدامه حنبلی او شيخ ابن حجر مکی په دې کښې د احنافو اختلاف هم ليکلې دې چه د هغوی په نزد هم دا غير مستحب دې خو دا صحيح نه دې. ملاعلی قاري رحمه الله ددې په رد کښې فرمائی ﴿لان ذلک نشاء من قلة الاطلاع علی مذهبنا﴾

دا پورته ذکر شو چه ددې جملې ثبوت مرفوعا دې، او د موطاء امام مالک د روايت نه معلومېږی چه مرفوعا نه دې بلکه د عمر رضي الله عنه د زمانې نه دې، پس امام مالک رحمه الله په مؤطاء کښې بلاغا روايت کړې دی، چه يو ځل د عمر رضي الله عنه مؤذن هغه ته د سحر د مونځ د خبر دپاره لاړو ﴿فوجده نائما فقال الصلاة خير من النوم فامره عمر يجعلها فی نداء الصبح﴾ حضرت شيخ په اوجز کښې فرمائی چه په دې کښې اشکال دا دې چه ددې کلمې د سحر په اذان کښې کيدل د روايت مرفوعه نه ثابت دی، لهذا دا وئيل خو ګران دی چه عمر رضي الله عنه ته به ددې علم نه وی ځکه چه علماء کرامو ددې توجيه دا کړې ده چه د عمر رضي الله عنه مراد دا دې چه ددې کلمې محل صرف د سحر اذان دې نه د امير په دروازه وئيل، ګويا هغوی په دې خبره باندې نکير اوفرمائيلو چه د امير په دروازه باندې تلو سره دا اووئيلې شی او وې فرمائيل چه دا صرف د سحر په اذان کښې وايه، او شاه ولی الله صاحب رحمه الله د موطاء په شرح مصفی کښې ليکی چه کيدې شی د عمر رضي الله عنه مؤذن دا د سحر په اذان کښې وئيل ترک کړې وی، او روستو ئې وئيلو په دې باندې سيدنا عمر رضي الله عنه هغه ته اوفرمائيل چه دا د اذان په وخت کښې وايه. (الفيض السمائی)

[٥٠١] حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، وَعَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عُثْمَانُ بْنُ السَّائِبِ، أَخْبَرَنِي أَبِي، وَأُمُّ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي مَحْذُورَةَ، عَنْ أَبِي مَحْذُورَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَ هَذَا الْخَبَرِ، وَفِيهِ: الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ، الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ فِي الْأُولَى مِنَ الصُّبْحِ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَحَدِيثُ مُسَدَّدٍ أَبْيَنُ، قَالَ فِيهِ: قَالَ: وَعَلَّمَنِي الْإِقَامَةَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَقَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ: وَإِذَا أَقَمْتَ الصَّلَاةَ، فَقُلْهَا مَرَّتَيْنِ: قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، أَسَمِعْتَ؟ قَالَ: فَكَانَ أَبُو مَحْذُورَةَ لَا يَجُزُّ نَاصِيَتَهُ وَلَا يَفْرُقُهَا، لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَسَحَ عَلَيْهَا.

ابو مخذورة رضي الله عنه روايت کوی د نبی ﷺ نه په شان ددې خبر. او په هغې کښې دا هم دی: الصلاة خير من النوم (دوه ځل) په اولنې کښې د سحر (يعنی په اذان کې) وئيلی دی ابوداود فرمائی: او حديث د مسدد ډير واضح دی، هغه وئيلی دی په هغې کې: هغه وايي: او ويې ښودلو ماته اقامت دوه دوه ځل: اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ، او وئيلی دی عبد الرزاق: او کله چې ته اقامت کوی نو وايه دوه ځل: قد قامت الصلاة قد قامت الصلاةُ، ايا تا واوريدل؟ هغه وايي: وو ابو محذورة نه به ئې کټ کول ويښته د تندی خپل، او نه به ئې

پکې لاره کوله، ځکه چه نبي ﷺ په هغې مسح کړې وه.

**قوله:** ﴿ حدثنا الحسن بن علي... في الاولى من الصبح ﴾ او په بعض نسخو کښې دی ﴿ في الاول﴾ يعنی ﴿ الصلاة خير من النوم ﴾ دې د سحر په اذان اول اووئيلې شی، اذان ته د اقامت په اعتبار سره اذان اول اووئيلې شو نو ګويا اقامت اذان ثانی دې.

**قوله:** ﴿ قال ابوداود : وحديث مسدد ابين ﴾ دا حديث د حسن بن علی دې او د حديث مسدد نه مراد ددې نه مخکښې حديث دې، حديث د مسدد د حديث حسن بن علی نه د اذان د الفاظو په اعتبار سره زيات واضح دې. په هغې کښې د اذان ټول الفاظ بالتفصيل مذکور دی اګر چه په حديث د مسدد کښې يو کمې دې هغه دا چه په هغې کښې اقامت نه دې ذکر شوې په خلاف د حديث حسن بن علی چه په هغې کښې د اقامت اضافه ده کومه چه مصنف وړاندې بيانوی ﴿ قال فيه وعلمني الاقامة مرتين﴾ دا قامت ذکر صرف د حسن بن علی په روايت کښې دې.

**قوله:** ﴿ قال ابوداود : وقال عبدالرزاق... ﴾ په دې حديث کښې د ابن جريج نه روايت کونکی دوه کسان دی، ابو عاصم او عبدالرزاق، مصنف ددې دواړو فرق بيانول غواړی، هغه دا چه د ابو عاصم بيان کړې شوې اقامت کښې لفظ ﴿ قد قامت الصلاة ﴾ نشته، په خلاف د عبدالرزاق چه د هغه په روايت کښې دا لفظ مذکور دې. ﴿ اسمعت ﴾ دا په دوه طريقو سره لوستلې شوې دې، د مجرد نه به په دې صورت کښې همزه د استفهام دپاره وی چه رسول الله ﷺ د ابومحذوره رضي الله عنه نه تپوس کوی، يا يو استاذ د خپل شاګرد نه چه تا د روايت الفاظ واوريدل؟ او دا هم امکان دې چه دا د اسماع نه وی نو په دې صورت کښې به همزه وصلی وی او مطلب به دا وی چه کله تا د اقامت کلمات اووئيل نو تا جماعت ته واورول، او د اقامت حق دې ادا کړو، او دا ممکنه ده چه دا مطلب ئې وی چه د اقامت الفاظ دومره په زور سره اووئيلې شی چه هغه حاضرين واوری زيات په زور سره نه.

خان پوهه کړه چه د حديث ابومحذوره رضي الله عنه د اقامت کلمات دوه دوه دی لکه چه د احنافو مسلک دې، نو دا که په حديث د ترجيع کښې د شوافعو دليل دې نو په اقامت کښې د احنافو دليل دې، د اقامت په سلسله کښې کلام به ان شاء الله د هغې په باب کښې راشی.

[۵۰۲] (١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ، وَسَعِيدُ بْنُ عَامِرٍ، وَحَجَّاجٌ، وَالْمَعْنَى وَاحِدٌ، قَالُوا: حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا عَامِرٌ الْأَحْوَلُ، حَدَّثَنِي مَكْحُولٌ، أَنَّ ابْنَ مُحَيْرِيزٍ حَدَّثَهُ، أَنَّ أَبَا مَحْذُورَةَ حَدَّثَهُ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَّمَهُ الْأَذَانَ تِسْعَ عَشْرَةَ كَلِمَةً وَالْإِقَامَةَ سَبْعَ عَشْرَةَ كَلِمَةً، الْأَذَانُ: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَالْإِقَامَةُ: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ". كَذَا فِي كِتَابِهِ فِي حَدِيثِ أَبِي مَحْذُورَةَ.

(١): انظر حديث رقم: ۵۰۰، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۶۹) (حسن صحيح)

**ترجمه:** ابو محذورة حديث بيان کړي دي، بيشکه نبی ﷺ هغه ته اذان ښودلی دی نولس ۱۹ کلمې، او اقامت ئې ورته اولس ۱۷ کلمې ښودلی دی، اذان دادی: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، او اقامت دادی: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ. همداسې د هغه په کتاب کښې دي په حديث د ابو محذوره کښې.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا الحسن بن علي... ان ابن محيريز حدثه ان ابا محذورة حدثه ﴾ د ابن محيريز نوم عبدالله دې، حديث د ابومحذوره د هغه نه کله عبدالله بن محيريز روايت کوی لکه چه دلته دی او کله د هغه ځوئي عبدالملک بن ابی محذوره روايت کوی لکه چه وړاندې به راشی، عبدالله بن محيريز ئې هم د ځوئی په شان دې ځکه چه هغه يتيم وو او د ابو محذوره رضي الله عنه په تربيت کښې پاتې شوې دې، دا خبره په دې وجه بيانولې شی چه دا به مو وړاندې په کار راځی.

**قوله:** ﴿ كذا فى كتابه فى حديث ابى محذوره ﴾ د ﴿ كتابه ﴾ ضمير د همام راوی طرف ته راجع دې، په سند کښې د همام ډير شاګردان تير شوې دی، عفان او سعيد او حجاج، دا ټول خلق دا وائی چه څنګه دا حديث مونږ ته همام د خپل حفظ نه بيان کړو هم دغه شان د هغه په کتاب کښې هم موجود دی، ددې خبرې ضرورت په دې وجه راپيښ شو چه د همام توثيق او تضعيف کښې د علماء کرامو اختلاف دې، بعض ورته ثقه وائی او بعض غير ثقه، او بعض وائی چه هغه سئ الحفظ دې او کوم روايت چه د خپلې حافظې نه بيان کړی نو هغه ضعيف دې او که د کتاب نه ئې بيان کړی نو صحيح دې، په دې وجه د همام شاګردانو دا خبره واضحه کړه چه څنګه هغه دا حديث مونږ ته حفظا بيان کړې وو هم هغه شان د هغه په کتاب کښې هم موجود وو، په دې حديث د ابو محذوره رضي الله عنه چه په کوم باندې کلام شروع دې، د اذان په شروع کښې تکبير څلور کرته دې او وړاندې بعض روايات داسې راروان دی چه په هغې کښې تکبير صرف دوه کرته دې.

[۵۰۳]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي مَحْذُورَةَ يَعْنِي عَبْدَ الْعَزِيزِ، عَنِ ابْنِ مُحَيْرِيزٍ، عَنْ أَبِي مَحْذُورَةَ، قَالَ: أَلْقَى عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التَّأْذِينَ هُوَ بِنَفْسِهِ، فَقَالَ: "قُلْ: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ، قَالَ: ثُمَّ ارْجِعْ فَمُدَّ مِنْ صَوْتِكَ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا

[1]: انظر حديث رقم: ۵۰۰، (تحفة الأشراف: ۱۲۱٦۹) (صحيح)

اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ".

**ترجمه:** د ابو محذورة ﷺ نه روايت دې، هغه وايي: وښودلو ماته رسول الله ﷺ اذان كول هغه پخپله، هغه وفرمائيل: ته وايه! اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ – دوه دوه خل – بيا ئي وويل: بيا را واپس شه اورد كره خپل اواز، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ "

[٥٠٤](١) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي مَحْذُورَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ جَدِّي عَبْدَ الْمَلِكِ بْنَ أَبِي مَحْذُورَةَ، يَذْكُرُ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا مَحْذُورَةَ، يَقُولُ: "أَلْقَى عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْأَذَانَ حَرْفًا حَرْفًا اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، قَالَ: وَكَانَ يَقُولُ فِي الْفَجْرِ: الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ".

**ترجمه:** ابو محذورة ﷺ به وئيل: وښودلو ماته رسول الله ﷺ اذان يو يو حرف: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ " هغه وايي: وو چې وئيل به ئې د سحر په اذان كې «الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ»

[٥٠٥](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ الْإِسْكَنْدَرَانِيُّ، حَدَّثَنَا زِيَادٌ يَعْنِي ابْنَ يُونُسَ، عَنْ نَافِعِ بْنِ عُمَرَ يَعْنِي الْجُمَحِيَّ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي مَحْذُورَةَ أَخْبَرَهُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَيْرِيزٍ الْجُمَحِيِّ، عَنْ أَبِي مَحْذُورَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَّمَهُ الْأَذَانَ، يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، ثُمَّ ذَكَرَ مِثْلَ أَذَانِ حَدِيثِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ، وَمَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَفِي حَدِيثِ مَالِكِ بْنِ دِينَارٍ، قَالَ: سَأَلْتُ ابْنَ أَبِي مَحْذُورَةَ، قُلْتُ: حَدِّثْنِي عَنْ أَذَانِ أَبِيكَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ، فَقَالَ: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، قَطُّ، وَكَذَلِكَ حَدِيثُ جَعْفَرِ بْنِ سُلَيْمَانَ، عَنْ ابْنِ أَبِي مَحْذُورَةَ، عَنْ عَمِّهِ، عَنْ جَدِّهِ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: ثُمَّ تَرْجِعُ فَتَرْفَعُ صَوْتَكَ: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ.

**ترجمه:** د ابو محذورة ﷺ نه روايت دې، بيشكه رسول الله ﷺ ورته ښودلې وو اذان، هغه به وئيل: الله اكبر الله اكبر، اشهدُ ان لا اله الا الله، اشهدُ ان لا اله الا الله، بيا ئې ذكر كړو پشان د

(١): انظر حديث رقم: ٥٠٠، (تحفة الأشراف: ١٢١٦٩) (صحيح)

(٢): انظر حديث رقم: ٥٠٠، (تحفة الأشراف: ١٢١٦٩) (صحيح) څلور خله د الله اكبر وئيلو خبره صحيح ده وَكَذَلِكَ حَدِيثُ جَعْفَرِ ابْنِ سُلَيْمَانَ عَنِ ابْنِ أَبِي مَحْذُورَةَ عَنْ عَمِّهِ عَنْ جَدِّهِ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: ثُمَّ تَرْجِعُ فَتَرْفَعُ صَوْتَكَ: اللَّهُ أَكْبَرُ، اللَّهُ أَكْبَرُ (منكر)

اذان د ابن جريج باندې، د عبد العزيز بن عبد الملک نه، او پشان د معنى د هغې. وئيلى دى ابوداود: او په حديث د مالک بن دينار کښې، هغه وايي: ما تپوس وکړو د ابو محذورة نه، ما وويل حديث بيان کړه ماته د اذان د ستا د پلار، چې د رسول الله ﷺ نه ئې نقل کوي، هغه ذکر کړل، ويې وئيل: الله اکبر الله اکبر، بس، او همدارنګه حديث د جعفر بن سليمان دى د ابن ابى محذورة نه، او هغه د خپل تره نه او هغه د نيکه نه، مګر هغه دا ويلى دي: چې ته به بيا واپس شى او اواز به اوچت کړې، الله اکبر، الله اکبر.

**تشريح**: **قوله**:﴿ حدثنا محمد بن داود الاسكندراني... يقول الله اكبر الله اكبر ﴾ په دې کښې تکبير صرف دوه کرته دې، فقال : الله اكبر الله اكبر قط... دا ﴿ قط ﴾ د سکون طاء سره دې، په دې روايت کښې هم تکبير صرف دوه کرته دې. ﴿ عن ابى محذورة عن عمه عن جده ﴾

## شرح السند

د سند دا ټکړه موجب اشکال دې ځکه چه په دې کښې دا دى چه د ابومحذوره رضي الله عنه ځوئې روايت کوى د خپل تره نه، د ابومحذوره رضي الله عنه د ځوئى نوم عبدالملک دې او د هغه د حقيقى تره نوم انيس دې کوم چه د ابو محذوره رضي الله عنه رور دې، د هغه اسلام ثابت نه دې ﴿ قتل يوم بدر كافرا ﴾، هم دغه شان وړاندې ﴿ عن جده ﴾ راروان دې، يعنى ﴿ عم عبدالملک دجد عبدالملک ﴾ نه روايت کوى او جد عبد الملک يعنى د ابومحذوره رضي الله عنه پلار چه د هغه نوم معير دې د هغه هم اسلام ثابت نه دې هم په دې وجه د سند توجيه کړې شوې ده هغه دا چه د ابن ابى محذوره نه مراد ابن ابن ابى محذوره دې يعنى د ابو محذوره پلار چه د هغه نوم معير دې د هغه هم اسلام ثابت نه دې هم په دې وجه د سند توجيه کړې شوې ده هغه دا چه د ابن ابى محذوره نه مراد ابن ابن ابى محذوره نمسي چه د هغه نوم عبدالعزيز بن عبدالملک دې او د ﴿ عمه ﴾ نه مراد عبدالعزيز مجازى تره دې، يعنى عبدالله بن محيريز لکه چه مخکښې تير شو چه هغه د ابو محذوره په منزله د ځوئى دې، حاصل دا چه عبدالعزيز بن عبدالملک روايت کوى د خپل تره عبدالله بن محيريز نه او عبدالله بن محريز روايت کوى، يعنى ابو محذوره.

او يا دا اووئيلې شى چه ابن ابى محذوره نه مراد ابن ابن ابن ابى محذوره دې يعنى ابراهيم بن اسماعيل بن عبدالملک بن ابى محذوره (چه د هغې ذکر پورته په سند کښې راغلې دې) او هغه روايت کوى د خپل تره عبدالعزيز نه او عبدالعزيز د خپل نيکه ابومحذوره نه.

[٥٠٦]([1]) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مَرْزُوقٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي لَيْلَى. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: أُحِيلَتِ الصَّلَاةُ ثَلَاثَةَ أَحْوَالٍ، قَالَ: وَحَدَّثَنَا أَصْحَابُنَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَقَدْ أَعْجَبَنِي أَنْ تَكُونَ صَلَاةُ الْمُسْلِمِينَ، أَوْ قَالَ: الْمُؤْمِنِينَ وَاحِدَةً، حَتَّى لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ أَبُثَّ رِجَالًا فِي الدُّورِ يُنَادُونَ النَّاسَ بِحِينِ الصَّلَاةِ، وَحَتَّى هَمَمْتُ أَنْ آمُرَ رِجَالًا يَقُومُونَ عَلَى الْآطَامِ يُنَادُونَ الْمُسْلِمِينَ بِحِينِ الصَّلَاةِ حَتَّى نَقَسُوا أَوْ كَادُوا أَنْ يَنْقُسُوا، قَالَ: فَجَاءَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي لَمَّا رَجَعْتُ لِمَا رَأَيْتُ مِنَ اهْتِمَامِكَ، رَأَيْتُ رَجُلًا كَأَنَّ عَلَيْهِ ثَوْبَيْنِ أَخْضَرَيْنِ

---

[1] تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٣٤٤، ١٥٦٢٧، ١٨٩٧٢)، مسند احمد (٥/٢٣٣، ٢٤٦) (صحيح)

فَقَامَ عَلَى الْمَسْجِدِ فَأَذَّنَ ثُمَّ قَعَدَ قَعْدَةً ثُمَّ قَامَ، فَقَالَ مِثْلَهَا، إِلَّا أَنَّهُ يَقُولُ: قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، وَلَوْلَا أَنْ يَقُولَ النَّاسُ، قَالَ ابْنُ الْمُثَنَّى: أَنْ تَقُولُوا، لَقُلْتُ: إِنِّي كُنْتُ يَقْظَانَ غَيْرَ نَائِمٍ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَقَالَ ابْنُ الْمُثَنَّى: لَقَدْ أَرَاكَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ خَيْرًا، وَلَمْ يَقُلْ عَمْرٌو: لَقَدْ أَرَاكَ اللَّهُ خَيْرًا، فَمُرْ بِلَالًا فَلْيُؤَذِّنْ، قَالَ: فَقَالَ عُمَرُ: أَمَا إِنِّي قَدْ رَأَيْتُ مِثْلَ الَّذِي رَأَى وَلَكِنِّي لَمَّا سُبِقْتُ اسْتَحْيَيْتُ، قَالَ: وَحَدَّثَنَا أَصْحَابُنَا، قَالَ: وَكَانَ الرَّجُلُ إِذَا جَاءَ يَسْأَلُ فَيُخْبَرُ بِمَا سُبِقَ مِنْ صَلَاتِهِ وَإِنَّهُمْ قَامُوا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَيْنِ قَائِمٍ وَرَاكِعٍ وَقَاعِدٍ وَمُصَلٍّ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ"، قَالَ ابْنُ الْمُثَنَّى: قَالَ عَمْرٌو: وَحَدَّثَنِي بِهَا حُصَيْنٌ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى حَتَّى جَاءَ مُعَاذٌ، قَالَ شُعْبَةُ: وَقَدْ سَمِعْتُهَا مِنْ حُصَيْنٍ، فَقَالَ: لَا أَرَاهُ عَلَى حَالٍ إِلَى قَوْلِهِ كَذَلِكَ فَافْعَلُوا، قَالَ أَبُو دَاوُد: ثُمَّ رَجَعْتُ إِلَى حَدِيثِ عَمْرِو بْنِ مَرْزُوقٍ، قَالَ: فَجَاءَ مُعَاذٌ فَأَشَارُوا إِلَيْهِ، قَالَ شُعْبَةُ: وَهَذِهِ سَمِعْتُهَا مِنْ حُصَيْنٍ، قَالَ: فَقَالَ مُعَاذٌ: لَا أَرَاهُ عَلَى حَالٍ إِلَّا كُنْتُ عَلَيْهَا. قَالَ: فَقَالَ: إِنَّ مُعَاذًا قَدْ سَنَّ لَكُمْ سُنَّةً كَذَلِكَ فَافْعَلُوا، قَالَ: وحَدَّثَنَا أَصْحَابُنَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا قَدِمَ الْمَدِينَةَ أَمَرَهُمْ بِصِيَامِ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ، ثُمَّ أُنْزِلَ رَمَضَانُ، وَكَانُوا قَوْمًا لَمْ يَتَعَوَّدُوا الصِّيَامَ وَكَانَ الصِّيَامُ عَلَيْهِمْ شَدِيدًا، فَكَانَ مَنْ لَمْ يَصُمْ أَطْعَمَ مِسْكِينًا، فَنَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ: فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ سورة البقرة آية ۱۸۵» فَكَانَتِ الرُّخْصَةُ لِلْمَرِيضِ وَالْمُسَافِرِ فَأُمِرُوا بِالصِّيَامِ، قَالَ: وحَدَّثَنَا أَصْحَابُنَا، قَالَ: وَكَانَ الرَّجُلُ إِذَا أَفْطَرَ فَنَامَ قَبْلَ أَنْ يَأْكُلَ لَمْ يَأْكُلْ حَتَّى يُصْبِحَ، قَالَ: فَجَاءَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَأَرَادَ امْرَأَتَهُ، فَقَالَتْ: إِنِّي قَدْ نِمْتُ، فَظَنَّ أَنَّهَا تَعْتَلُّ فَأَتَاهَا، فَجَاءَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فَأَرَادَ الطَّعَامَ، فَقَالُوا: حَتَّى نُسَخِّنَ لَكَ شَيْئًا، فَنَامَ، فَلَمَّا أَصْبَحُوا أُنْزِلَتْ عَلَيْهِ هَذِهِ الْآيَةُ: أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَى نِسَائِكُمْ سورة البقرة آية ۱۸۷.

**ترجمه:** عمرو بن مرة وايي: ما اوريدلی دی د ابن ابی ليلی نه، هغه وئيلی دي: بدل کړې شوې دی په مانځه کښې درې تبديلۍ، هغه وايي: او حديث بيان کړې دې اصحابو زمونږ، بيشکه رسول الله ﷺ وئيلی دي: په تعجب کښې اچولی دی ماله دې خبرې چې شی مونځ د مسلمانانو په جماعت سره، . ترديې چې ما قصد وکړو چې خواره کړم سړی په کورونو کښې چې اواز وکړی خلقو ته په وخت د مانځه، او ترديې چې ما قصد وکړو چې امر وکړم څه سړو ته چې ودريږی په اوچتو ځايونو چې اواز وکړی هغوی مسلمانانو ته په وخت د مانځه، ترديې چې هغوی ناقوس ووهلو اويا نزدې وو چې ناقوس ووهي. چه په دې کښ. راغي يو سړی د انصارو نه، هغه ووئيل: اې د الله رسوله! بيشکه زه چې کله واپس شوم، د وجې د اهتمام ستا نه ما وليدو يو سړی ګويا چې په هغه باندې دوه شنې جامې دې، ودريدو د جمات سره اذان ئې وکړو، بيا کيناستلو لږ شانته، بيا پاځيدلو پس ويې وئيله په مثل د هغې، مګر هغه دا وويله: قد قامت الصلاة، او که چرې نه وی دا خبره چې راته وبه وايي خلق دروغجن، (وئيلی دی ابن المثنى أن تقولوا: يعنى چه تاسو به راته دروغجن اووايئ) نو ما به ويلی وی بيشکه زه بيدار وم اوده نه وم، پس ووئيل رسول الله ﷺ: بيشکه وښودلو تاته الله عز وجل ښه خوب. او نه دې ويلی عمرو: (لقد اراک الله خيرًا). نو امر وکړه بلال ته هغه دې اذان وکړي. هغه وايي: پس ووئيل عمر: هر چې زه يم ما ليدلی دی پشان د هغې چې ده ليدلی دی، لکن زه چې کله مسبوق شوم نو حياء مې وکړه، هغه وايي: او حديث بيان کړې دې ملګرو زمونږ: هغه وايي: او وو سړی کله چې به راغې تپوس به ئې کولو نو خبرولی به شو په هغې سره چې د ده نه به تير شوی وو د مانځه د هغه نه، او دوی به ولاړ وو د رسول الله ﷺ څوک ولاړ څوک په رکوع کښې او څوک ناست او څوک مونځ کونکی د

رسول الله ﷺ سره. وئیلی دی ابن المثنی: وئیلی دی عمرو: او بیان کړې دی ماته په دې سره حصین د ابن ابی لیلی نه تردې چې راغې معاذ، وئیلی دی شعبة: یقینا ما اوریدلی دی هغې لره د حصین نه، پس هغه وویل: زه ګمان نه کوم په هغه په یو حال باندې، ترد قول د هغه پورې چې همداسې کوئ. وئیلی دی ابوداود: بیا ما رجوع وکړه حدیث د عمرو بن مرزوق ته، هغه وایي: راغې معاذ، نو هغوی اشاره وکړه هغه ته، وئیلی دی شعبة: او دا مې اوریدلې ده د حصین نه، هغه وایي: پس وویل معاذ: زه چه په کوم حال کښې تاسو اووینم هم هغه به کوم (یعني راتلو سره به په مونځ کښې شریکیږم)، هغه وایي: چې هغه وویل: بیشکه معاذ جوړه ئې کړه تاسو لره یوه طریقه همداسې کوئ. هغه وایي: او حدیث بیان کړې دې مونږ اصحابو زمونږ بیشکه رسول الله ﷺ چې هر کله مدینې ته راغې امریې وکړو دوی ته په روژه باندې د دریو ورځو، بیا نازل شو رمضان، او وو دوی یو قوم چې د روژې سره عادت نه وو، او وه روژه په دوی باندې سخته پس وو هغه څوک چې روژه به ئې نه نیوله نو طعام د یو مسکین به ئې ورکولو نو نازل شو دا ایت (فمن شهدَ منکم الشهرَ فلیصمهُ) چا چې میاشت د روژې ولیده نو روژه دې ونیسي. نو رخصت د مریض او مسافر لپاره شو، نو امر ورته وشو په روژه نیولو. هغه وایي: او حدیث بیان کړې دې مونږ ته ملګرو زمونږ: هغوی وایي: او وو به سړی کله چې به ئې روژه ماتی وکړو او اوده به شو مخکې د خوراک نه نو خوراک به ئې نه کولو تر صبا پورې، هغه وایي: راغې عمر بن الخطاب اراده ئې د خپلې ښځې لرله، هغې ورته وویل: بیشکه زه اوده شوې وم نو ګمان ئې وکړو چې هغه ورته بهانه کوی نو کوروالی ئې وکړو د هغې سره. پس راغې یو سړی د انصارو نه اراده ئې د طعام وه، هغوی ورته وویل: صبر وکړه چې ګرم کړو ستا لپاره څه شی، نو هغه اوده شو، هرکله چې دوی صبا کړو نو نازل شو په هغه باندې دا ایت (احل لکم لیلة الصیام الرفث الی نسائکم) حلال کړی شو ستاسو لپاره په شپه د روژه کښې کوروالی ستاسو د بیبیانو سره.

**تشریح: قوله:** ﴿ حدثنا عمرو بن مرزوق ﴾ د ابو محذوره رضی الله عنه د روایاتو سلسله ختمه شوه، اوس مصنف حدیث ثالث عبدالرحمن بن ابی لیلی حدیث بیانوی چه د هغې په شروع کښې ﴿احلت الصلاة ثلاثة احوال ﴾ کوم چه هغه د ډیرو صحابه کرامو نه بغیر د نوم د تصریح نه روایت کوی، پس هغه فرمائی ﴿ وحدثنا اصحابنا ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال الخ ﴾ د اصحابنا مراد صحابه کرام دی ځکه چه د طحاوی او ترمذی په روایت کښې اصحابنا په ځائې اصحاب محمد دې، لهذا دا حدیث مسند شو نه مرسل،[1] او! که اصحابنا نه د ابن

[1] په اصل کښې دا حدیث په تثنیة الاقامة کښې د احنافو دلیل دې ځکه چه په دې کښې یو لفظ راروان دې ﴿ ثم قعد قعدة ثم قال فقال مثلها ﴾ په دې کښې اقامت ته د اذان سره تشبیه ورکړې شوې ده، لهذا څنګه چه د اذان په کلماتو کښې تکرار دې هم دغه شان په اقامت کښې هم اوشو، جمهور وائی چه دا حدیث مرسل دې ددې جواب پورته راغلې دې چه د اصحاب نه مراد صحابه دی هغه دویم اشکال دا کړې دې چه دا حدیث منقطع دې، جواب دا دې چه وړاندې انقطاع ده نو صرف په بعض طرق کښې ﴿ وهو روایة ابن ابي لیلي عن عبدالله بن زید او عند معاذ بن جبل (کما سیاتي قریبا) واما روایة ابن ابي لیلي عن اصحاب محمد کما في روایة الطحاوي والترمذي وغیرهما فلا انقطاع فان عبدالرحمن بن ابي لیلي ادرک مائة وعشرین صحابیا ﴾

ابي ليلى اصحاب مراد وي نو بيشكه دا حديث به مرسل وي ځكه چه دا خپله تابعي دي او ظاهره ده چه د هغه ملګري به هم تابعي وي.

## احيلت الصلاة ثلاثة احوال

اوس تاسو ددې حديث په مفهوم باندې ځان پوهه کړئ، ابن ابي ليلى فرمائي چه په مانځه کښې درې تغيرات پيدا شو او د هغې نه په وړاندې روايت کښې دا هم راځي ﴿ واحيلت الصيام ثلاثة احوال ﴾ يعنى درې قسم تغيرات په صيام کښې اوشو، د مونځ اوله حصه تغير مشروعيت اذان او اقامت دې، چه په شرع کښې مونځ بغير د اذان او اقامت نه کيدلو او بيا د صحابه کرامو مشوره او د عبدالله بن زيد ﷺ د خوب نه روستو د مونځ دپاره اذان او اقامت مشروع شو، بل تغيير وړاندې راروان دې د صلاة مسبوق په باره کښې ﴿ ولولا ان يقول الناس الخ ﴾ عبدالله بن زيد فرمائي چه که ماته د خلقو د اعتراضاتو او ګنګسو ويره نه وې نو ما به وئيل چه ما په خوب کښې اذان نه دې ليدلې بلکه في الواقع د بيدارئ په حالت کښې مې ليدلې دې، تاسو ته به ياد وي چه ددې نه په وړاندې روايتونو کښې به راتلل ﴿انى لبين نائم ويقظان ﴾ په دې باندې کلام هلته تير شو.

## د مونځ دويم تغير

**قوله:**﴿ وحدثنا اصحابنا ﴾ د دې ځائې د مونځ تغير بيانوی هغه دا چه په ابتداء کښې د مسبوق د مونځ پوره کولو طريق هغه نه ده، جراب دې بلکه دا وه چه کوم سړې به مسجد ته رسيدلې وې نو هغه مدرکين په اشاره سره داسې بيانوی چه يو رکعت شو يا دوه، نو ددې د معلوميدو نه پس هغه هغه دا کول د په امام پسې نيت تړلو سره اول زر زر خپل فوت شوې رکعت کولو وې چه کله هغه پوره شو نو بيا به ئې باقي مونځ د امام سره د هغه موافق کولو. په دې صورت کښې به د ټولو مونځ د مدرک او مسبوق په يوځائې پوره کيدو. خو په شروع کښې په د جماعت کيفيت دا وو چه په يو وخت کښې څوک په قيام کښې دې څوک په رکوع کښې دې او څوک په سجود کښې، او څوک د امام سره د هغه موافق کونکي والا، هم دا خبره راوي کوي. ﴿ من بين قائم وراكع وقاعد ومصل مع رسول الله صلى الله عليه وسلم ﴾

**قوله:**﴿ حتى جاء معاذ ﴾ غرض دا چه د مسبوق د مونځ کيفيت داسې روان وو کوم چه پورته ذکر شو، د يوې ورځې خبره ده چه معاذ ﷺ اتفاقاً مسبوق شو، چه کله هغه مسجد ته داخل شو نو مونځ کونکو د مخکښې په شان هغه هم په اشارې سره پوهه کړو خو هغه اوفرمائيل ﴿ لا اراه على حال الا كنت عليها ﴾ چه زه امام په کوم حال باندې بيا مومم هم په هغې باندې به يم يعنى خپل فوت شوې رکعت به اول نه کوم. پس هغه په جماعت کښې شريکيدو سره د امام سره د هغه موافق مونځ اوکړو او د امام د فارغ کيدو نه پس ئې خپل باقي مونځ پوره کړو او سلام ئې واړولو، ظاهره ده چه سيدنا معاذ ﷺ داسې کار په خپل اجتهاد سره اوکړو چه د هغې رسول الله ﷺ تصويب اوفرمائيلو او وې فرمائيل : ﴿ ان معاذ قد سن لكم سنة كذلك فافعلوا ﴾ يعنى معاذ ﷺ ستاسو دپاره ښه طريقه راويستلې ده لهذا هم دغه شان کوئ.

## شرح السند

**قوله:**﴿ قال ابن المثنى قال عمرو : وحدثني بها حصين عن ابن ابي يعلى ﴾... مصنف ذکر شوې حديث په دوه سندونو سره روايت کوی په اول سند کښې د هغه استاذ عمرو بن مرزوق دې او په دويم سند کښې کوم چه د حاء تحويل نه شروع شوې دې، استاذ ابن المثنى دې او عمرو بن مره د دواړو سندونو مشترک راوی دې، په ﴿ قال ابن المثنى ﴾ سره مصنف چه کوم د راويانو اختلاف بيانوی چه ددې تعلق زما په نزد تغير ثانی کوم چه د صلاة مسبوق سره متعلق دې ددې سره،([1]) اختلاف مصنف دا بيان کړې دې چه د ابن المثنى په روايت کښې دی چه عمرو بن مره وائی چه څنګه دا روايت ما براه راست د ابن ابی ليلى نه اوريدلې دې هم دغه شان په واسطه د حصين بن ابی ليلى نه مې هم اوريدلې دې، په بذل کښې ددې عبارت هم دا مطلب ليکلې دې، او دا هم احتمال دې چه د عمرو بن مره مراد دا وی چه ددې حديث اوله حصه يعنی تغير اول خو ما د ابن ابی ليلى نه براه راست اوريدلې دې (لکه چه پورته په سند کښې ذکر شو) او د حديث دويمه حصه ما د هغه نه په واسطه د حصين اوريدلې دې ﴿ حتى جاء معاذ ﴾ د دې تعلق د ماقبل عبارت ﴿ كان الرجل اذا جاء يسال ﴾ سره دې

**قوله:**﴿ قال شعبة : وقد سمعتها من حصين ﴾ پورته په سند کښې اوګورئ تاسو ته به معلومه شی چه شعبه شاګرد دې د عمرو بن مره، نو دلته شعبه دا وائی چه د شروع حصه خو ما د عمرو بن مره نه اوريدلې وه، او دا دويمه حصه په حديث کښې ما چه څنګه د عمرو بن مره نه اوريدلې وه هم دغه شان مې د عمرو بن مره د استاذ نه هم واوريده، ددې عبارت په مطلب کښې هم دوه احتمالات جاری کيږی کوم چه مخکښې بيان کړې شوې دی، يعنی دا چه دا حصه ما صرف د حسين نه واوريده او د عمرو بن مره نه نه. والله تعالى اعلم.

**قوله:**﴿ ثم رجعت الى حديث عمرو بن مرزوق ﴾ په اصل کښې مصنف د شروع نه خپل استاذ عمرو بن مرزوق د حديث الفاظ رانقل کوی، په مينځ کښې په طور د جمله معترضه د ابن المثنى په روايت کښې چه کوم د راويانو اختلاف وو هغه ئې بيان کړې وو په دې وجه مصنف فرمائی چه اوس زه د خپل استاذ عمرو بن مرزوق د روايت الفاظ نقل کوم.

**قوله:**﴿ قال شعبة : وهذه سمعتها من حصين ﴾ د ﴿ هذه ﴾ اشاره د جمله سابقه ﴿ فاشار اليه ﴾

---

[1] ولي بعض التقارير هكذا، قوله قال ابن المثني قال عمرو الخ... زما په نزد ددې خاتې نه مصنف رحمه الله چه کوم د طرق اختلاف بيان کړې دې د هغې تعلق د پوره حديث سره نه دې بلکه صرف د تغيير ثانی سره دې کوم چه د صلاة مسبوق په باره کښې دې د هغې سره دې، پس د ابن المثني د بيان مطابق دا حديث عمرو بن مره څنګه چه د ابن ابی ليلى نه روايت کوی هم دغه شان په واسطه د حسين هم د ابن ابی ليلى نه روايت کوی، وراندې تلو سره شعبه هم داسې وائی چه دا حديث ما چه څنګه عمرو بن مره نه اوريدلې دې هم دغه شان مې د خپل شيخ الشيخ حصين نه هم اوريدلې دې او احتمال هم دا دې چه مطلب دا وی چه عمرو وائی چه دا روايت ما صرف د حصين نه واوريدلوو د ابن ابی ليلى نه نه، وهكذا قال شعبة والله اعلم واختار في البذل المعني الاول. عمرو بن مرزوق د طرق دا اختلاف نه دې بيان کړې صرف د يوې جملې په باره کښې ئې د شعبه قول نقل کړې دې چه دا ما د عمرو بن مره نه نه دې اوريدلې صرف د حصين نه مې اوريدلې دې)

طرف ته ده،شعبه فرمائي چه دا جمله ما صرف د حصين نه اوريدلې ده د خپل دويم استاذ عمرو بن مره نه نه، ددې کتاب دا مقام د مشکل ځايونونه دې کوم چه الحمد لله حل شو، خبره دا ده چه په دې کتاب کښې چه مصنف د راويانو کوم اختلاف بيانوي چه د هغې په شروع کښې کله ﴿ قال ابوداود ﴾ ليکي او کله نه، دا مواقع او د هغې حل په دې کتاب کښې خاص اهميت لري، کوم چه نن صبا د طالبانو او مدرسينو ترمينځه ﴿ قال ابوداود ﴾ په عنوان سره مشهور دي، هغوی وائي چه په دې کتاب کښې په ﴿ قال ابوداود ﴾ باندې ځان پوهه کول ډير ضروري دی.

**قوله**:﴿ وحدثنا اصحابنا الخ ﴾ د دې ځائې نه راوی د روژې متعلق تغيرات ثلاثه بيانوی، حال دا چه د مونځ لا يو تغير باقي دې، ددې نه معلومه شوه چه په دې روايت کښې اختصار دې، هغه دريم تغير په وړاندې روايت کښې راروان دې.

## د صوم تغيرات ثلاثه

د صوم تغيرات ثلاثه دا دی. ۱: چه کله مدينې ته تشريف راوړلو نو هغه وخت په هره مياشت کښې درې روژې او صوم عاشوراء فرض شوه (د صوم عاشوراء ذکر په وړاندې روايت کښې را روان دې) څو ورځې پس په دې حکم کښې تغير او تبديلي واقع شوه او د رمضان نزول اوشو يعنې صيام رمضان مشروع شو نو اولنې دا تغير واقع شو چه هر مياشت د درې روژو په ځائې په کال کښې د رمضان ديرش روژې فرض شوې خو په دې طريقه چه په روژه باندې د قدرت باوجود هر سړی ته اختيار دې که هغه روژه نيسي يا د هغې په ځائې فديه ادا کړی، څو ورځې پس په دې حکم کښې هم تغير واقع شو او آيت کريمه ﴿ فَمَنْ شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ﴾ نازل شو او د ﴿ فيه ﴾ حکم صرف مريض او مسافر دپاره باقي پاتې شو او د مستطيع دپاره صوم متعين شو، دا دويم تغير شو، يعنې په رخصت افطار کښې د تعميم نه پس تخصيص، بيا دريم تغير دا اوشو چه په شروع کښې دا حکم وو چه صائم به د افطار کولونه پس د اوده کيدو نه مخکښې مخکښې خوراک، څکاک او جماع کولې شي او که سترګې ئې ورغلې او اوده شو نو د هغې نه پس که بيدار شو نو خوراک څکاک او جماع ناجائز وه، ډيره زمانه داسې وه خو بيا په دې کښې تغير پيدا شو داسې چه، يو ځل عمر رضي الله عنه د شپې په وخت کښې د خپلې بي بي سره د صحبت اراده اوفرمائيله هغې اووې چه زه خو اوده شوې اوم، د عمر رضي الله عنه خيال راغلو چه هسې بهانه جوړوی خکه چه د هغې عادت دا قسم وو په دې وجه هغه ورسره صحبت اوکړو.

بله واقعه دا راپيښه شوه چه يو انصاری صحابی چه د هغه نوم صرمه بن قيس رضي الله عنه دې کوم چه زميندار قسم سړې وو هغه به د رمضان په مياشت کښې څو تولہ ورځ په پټی کښې وو، د روژې په حالت کښې به ئې د محنت او مشقت کار کولو او مابنام کښې چه کله کور ته راغلو، او د روژې د ماتولو وخت شو نو هغوی د کور د خلقو نه خوراک طلب کړو ﴿فقالوا حتى نسخن لک شيئا ﴾ د کور خلقو ورته اووې چه لږ ايسار شئ ستاسو دپاره ډوډئ ګرموو، په دومره وخت کښې چه هغه خوراک ګرميدو په دې کښې د هغه سترګې ورغلې،

د کور خلقو چه کله خوراک گرم کړو او هغه ئي راوړلو نو وي کتل چه د هغه سترگې ورغلې دی، اوس خوراک نه شی کولې، د خوار د ضعف د وجې نه بد حال شو نو ددې دوه واقعاتو نه روستو دا آيت کريمه نازل شو ﴿ أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَى نِسَائِكُمْ ﴾ او هم ددې په اخر کښې دی ﴿ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ﴾ او ددې آيت کريمه په نزول سره سابقه حکم منسوخ شو او د رمضان په شپو کښې مطلقا د خوراک څکاک او جماع اجازت اوشو، دا د روژې دريم تغير شو.

[۵۰۷]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، عَنْ أَبِي دَاوُدَ. ح وحَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ الْمُهَاجِرِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنِ الْمَسْعُودِيِّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: أُحِيلَتِ الصَّلَاةُ ثَلَاثَةَ أَحْوَالٍ، وَأُحِيلَ الصِّيَامُ ثَلَاثَةَ أَحْوَالٍ، وَسَاقَ نَصْرٌ الْحَدِيثَ بِطُولِهِ، وَاقْتَصَّ ابْنُ الْمُثَنَّى مِنْهُ قِصَّةَ صَلَاتِهِمْ نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ قَطْ، قَالَ: الْحَالُ الثَّالِثُ "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدِمَ الْمَدِينَةَ فَصَلَّى يَعْنِي نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ ثَلَاثَةَ عَشَرَ شَهْرًا، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى هَذِهِ الْآيَةَ: قَدْ نَرَى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ سورة البقرة آية ۱۴۴، فَوَجَّهَهُ اللَّهُ تَعَالَى إِلَى الْكَعْبَةِ، وَتَمَّ حَدِيثُهُ، وَسَمَّى نَصْرٌ صَاحِبَ الرُّؤْيَا، قَالَ: فَجَاءَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدٍ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ، وَقَالَ فِيهِ: فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ، قَالَ: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ مَرَّتَيْنِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ مَرَّتَيْنِ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، ثُمَّ أَمْهَلَ هُنَيَّةً ثُمَّ قَامَ، فَقَالَ مِثْلَهَا، إِلَّا أَنَّهُ، قَالَ: زَادَ بَعْدَ مَا قَالَ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ: قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَقِّنْهَا بِلَالًا، فَأَذَّنَ بِهَا بِلَالٌ، وَقَالَ فِي الصَّوْمِ: قَالَ: فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَصُومُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ وَيَصُومُ يَوْمَ عَاشُورَاءَ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ إِلَى قَوْلِهِ طَعَامُ مِسْكِينٍ سورة البقرة آية ۱۸۳-۱۸۴، فَكَانَ مَنْ شَاءَ أَنْ يَصُومَ صَامَ، وَمَنْ شَاءَ أَنْ يُفْطِرَ وَيُطْعِمَ كُلَّ يَوْمٍ مِسْكِينًا أَجْزَأَهُ ذَلِكَ وَهَذَا حَوْلٌ. فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْءَانُ إِلَى أَيَّامٍ أُخَرَ سورة البقرة آية ۱۸۵ فَثَبَتَ الصِّيَامُ عَلَى مَنْ شَهِدَ الشَّهْرَ، وَعَلَى الْمُسَافِرِ أَنْ يَقْضِيَ، وَثَبَتَ الطَّعَامُ لِلشَّيْخِ الْكَبِيرِ وَالْعَجُوزِ اللَّذَيْنِ لَا يَسْتَطِيعَانِ الصَّوْمَ، وَجَاءَ صِرْمَةُ وَقَدْ عَمِلَ يَوْمَهُ"، وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

**ترجمه:** د معاذ بن جبل نه روايت دې، هغه وئيلی دی تغير ورکړی شوی دی مونځ ته درې تغيرات، او تغير ورکړی شوی دی روژې ته درې تغيرات، او بيان کړی دی نصر حديث لره تول، او لرې کړې ده ابن المثنی د هغې نه قصه د مونځ د مونځ د دوی په طرف د بيت المقدس بس، هغه وايي: دريم حال دادی چې بيشکه رسول الله ﷺ راغې مدينې ته نو مونځ ئي وکړو (يعني طرف د بيت المقدس ته) ديارلس مياشتې، نو نازل کړو الله تعالی دا ايت (بيشکه وينو مونږ اوړيدل راواړيدل د مخ ستا طرف د اسمان ته، خامخا مونږ به اړوو تالره داسې قبلې ته چې ته خوښوی هغې لره، نو واړوه مخ خپل طرف د مسجد حرام ته، او په کوم ځائې کښې چې تاسو ئي نو واړوئ مخونه خپل) نو مخامخ کړو هغه لره الله قبلې ته، او پوره شو حديث د هغه. او مسمی کړو نصر بن مهاجر خاوند د خوب، هغه وئيلی دي: راغې عبد الله بن زيد چې دا يو سړی دی د انصارو نه، او هغه وئيلی دی په هغې کښې: مخ

[۱]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۳۴٤، ۱۵٦۲۷، ۱۸۹۷۲) (صحيح)

ئې کړو قبلې ته، ويې وئيل: الله اکبر الله اکبر، الله اکبر الله اکبر، اشهدُ ان لا اله الا الله اشهد ان لا اله الا الله، اشهد ان محمدًا رسول الله اشهدُ ان محمدًا رسول الله، حي علی الصلاة دوه ځل، حی علی الفلاح دوه ځل، الله اکبر الله اکبر لا اله الا الله. بيا ئې صبر وکړو لګ شانته، بيا پاځيدلو ويې وئيل په مثل د هغې، مګر هغه دا هم ووېل: زيات ئې کړو پس د هغې نه چې هغه ووېل: حي علی الفلاح، قد قامت الصلاة، قد قامت الصلاة، هغه وئيلی دي: چې ووېل رسول الله ﷺ ددې تلقين وکړه بلال ته، نو اذان وکړو په هغې سره بلال، او ويلی ئې دی په روژه کښې: هغه ووېل: بيشکه رسول الله ﷺ وو چې روژه ئې نيوله درې ورځې د هرې مياشت نه او روژه ئې نيوله د عاشوراء، نو نازل کړو الله تعالی (فرض شوې ده په تاسو باندې روژه لکه څرنګه چې فرض شوې وه په هغو خلقو چې ستاسو نه مخکې وو). دی قول د الله پورې (طعام مسکين) پس د چا چې خوښه وی روژه دې ونيسي، او د چا چې خوښه وی روژه افطار دې کوی او طعام دی ورکوی هره ورځ يو مسکين ته نو کافی ده هغه لره دا، پس د يو تغير وو، نو نازل کړو الله تعالی (مياشت د رمضان هغه ده چې نازل شوی دی په هغې کښې قرآن) تر (ايام اخر) پورې، نو لازم شوه روژه په هغه چا چې حاضر وې مياشت د روژی ته، او په مسافر باندې قضايي ده، او ثابت شو طعام د شيخ کبير او بوډئ هغه چې طاقت نه لری دواړه د روژې (يعنی فديه به ورکوی). او راغې صرمة ﷺ چې کاريې کړی وو تږله ورځ. او بيان ئې کړو حديث (تر آخره پورې).

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا محمد بن المثنی... عن ابن ابی ليلی عن معاذ بن جبل ﴾ تر اوسه پورې په سندونو کښې راوان دی چه ابن ابی ليلی فرمائی ﴿ حدثنا اصحابنا﴾ چه د هغې نه مراد صحابه کرام وو لکه چه مخکښې تير شو او دا روايت متعين د يو صحابی معاذ بن جبل ﷺ نه دې خو د محدثينو په نزد ابن ابی ليلی د معاذ نه د سماع نه ثابتيدو په وجه باندې روايت منقطع دې.

**قوله:** ﴿ الحال الثالث ان رسول الله صلی الله عليه وسلم قدم المدينة فصلی يعنی نحو بيت المدس ثلاثة عشر شهرا ﴾ د مونځ په تغيرات ثلاثه کښې کوم چه تغير ثالث په تير روايت کښې پاتې شوې وو، هغه دا دې.

## د مونځ دريم تغير

رسول الله ﷺ چه کله هجرت کولو سره مدينې منورې ته تشريف يوړلو نو تر ديارلسو مياشتو پورې ئې د بيت المقدس طرف ته مونځ کولو خو د هغه خواهش وو چه د هغه قبله هم هغه وی کومه چه د هغه د نيکه ابراهيم ﷺ وه لکه چه په دې آيت کښې ددې ذکر دې ﴿ قد نری تقلب وجهک فی السماء ﴾ (الاية) پس د هغه د خواهش مطابق د ذکر شوې حديث نه پس د قبلې تحويل اوشو او وې فرمائيل ﴿ فول وجهک شطر المسجد الحرام ﴾ وئيلې شوې دی چه تحويل قبله اول نسخ وقع فی شريعة.

## د تحويل قبله متعلق دوه بحثونه

ځان پوهه کړه چه دلته دوه بحثونه دي، بحث اول، تحويل قبله د هجرت نه څومره موده پس په دې کښې روايات مختلف دي، د بخاري په روايت کښې ﴿ستة عشر شهرا﴾ او ﴿سبعة عشر شهرا﴾ مذکور دې، او د ابو عوانه په روايت کښې شپاړس مياشتې دې او په مسند احمد کښې اولس مياشتې دې، او په ابن ماجه کښې، اتلس مياشتې دې او د ابوداود په دې روايت کښې ديارلس مياشتې دې ددې نه علاوه هم روايات دي، د رسول الله ﷺ قدوم مبارک مدينې منورې ته بالاتفاق د ربيع الاول په مياشت کښې اوشو او تحويل قبله د صحيح او مشهور قول په بناء باندې په رجب ۲ هجرى کښې اوشو، اوس که ابتداء او انتهاء دواړه مستقل شمار کړې شي نو اولس مياشتې جوړيږي او که دواړه يوځائې کولو سره يو کړې شي نو شپاړس مياشتې جوړيږي، په ظاهره کښې هم ددې پيش نظر د بخاري په روايت کښې شپاړس يا اولس مياشتې راغلې دې.

**بحث ثاني**: نبى کريم ﷺ د هجرت نه مخکښې په مکه مکرمه کښې کوم طرف ته استقبال فرمائيلو د بيت الله طرف ته يا د بيت المقدس طرف ته نو په دې کښې درې اقوال دي.

۱: په مکه کښې نبى کريم ﷺ په مونځ کښې د بيت الله استقبال کولو تردې چه هغه هجرت اوفرمائيلو.

۲: هغه په مکه مکرمه کښې په شروع کښې دکعبې استقبال فرمائيلو او بيا دمکې په قيام کښې ﴿قبل الهجرة﴾ د استقبال بيت المقدس مامور شو.

۳: هغه به په مکه مکرمه کښې د بيت المقدس استقبال کولو خو په داسې طريقه چه بيت الله ئې هم مخې ته وي، على القولين الاولين د قبلې په باره کښې تعدد نسخ منل وي لکه چه مشهور دي، او په قول ثالث باندې به په نسخ قبله کښې تعدد نه وي، څه احکامات داسې دي چه په هغې کښې تعدد نسخ شوې دې، او هغه څلور دي چه د هغې تعيين په باب الوضوء مما مست النار کښې تير شوې دې.

## بَابٌ فِي الْإِقَامَةِ

### باب دې په بيان د اقامت کښې

اقامت د فقهاء په اصطلاح کښې د هغه الفاظ مخصوصه نوم دې، کوم چه د اعلام حاضرين دپاره وئيلې شي.

[۵۰۸](۱)حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْمُبَارَكِ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ عَطِيَّةَ، ح وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، جَمِيعًا عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "أُمِرَ بِلَالٌ أَنْ يَشْفَعَ الْأَذَانَ وَيُوتِرَ الْإِقَامَةَ"، زَادَ حَمَّادٌ فِي حَدِيثِهِ: إِلَّا الْإِقَامَةَ.

۱): صحيح البخاري/الأذان ۱ (۶۰۳)، ۲ (۶۰۵)، ۳ (۶۰۶)، صحيح مسلم/الصلاة ۲ (۳۷۸)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۷ (۱۹۳)، سنن النسائي/الأذان ۲ (۶۲۸)، سنن ابن ماجه/الأذان ۶ (۷۳۰)، (تحفة الأشراف: ۹۴۳)، مسند احمد (۳/۱۰۳، ۱۸۹)، سنن الدارمي/الصلاة ۶ (۱۲۳۰، ۱۲۳۱) (صحيح)

**ترجمه:** د انس ﷜ نه روایت دې هغه وئیلی دي: امر وشو بلال ته چې جفت کړی اذان او وتر کړی اقامت. زیادت کړی دی حماد په خپل حدیث کښې لفظ د الا الاقامة.

**تشریح: قوله:** ﴿حدثنا سلیمان بن حرب... جمیعا عن ایوب﴾ مصنف دوه سندونه ذکر کړې دي، اولنې سند په سماک باندې پاتې شو او دویم په وهیب باندې او دا دواړه روایت کوی، د ایوب سختیانی نه، ایوب ملتقی السندین دې، د ابو قلابه نوم عبدالله بن زید دې.

**قوله:**﴿امر بلال ان یشفع الاذان ویوتر الاقامة﴾ یعنی بلال ﷜ په دې خبره باندې مامور وو چه کلمات اذان شفعا شفعا اوائی او کلمات اقامة مفرد یعنی یو یو ځل اوائی.

**قوله:**﴿زاد حماد فی حدیثه : الا الاقامة﴾ د دې لفظ زیادت د سماک په روایت کښې دې د وهیب په روایت کښې نشته ددې نه روستو تاسو په دې ځان پوهه کړئ چه مونږ سره دا مخکښې تیر شو چه ائمه ثلاثه په اقامة کښې د ایتار قائل دی او احناف د تثنیه.

## د ائمه اربعه په نزد د کلمات اقامت تعداد

د احنافو په نزد د اقامت کلمات اولس دی او د اذان کلمات د هغوی په نزد پنځلس دی د لفظ ﴿قد قامت الصلاة﴾ د وجې نه، دوه اضافی شو او امام شافعی او احمد په نزد ددې ټول کلمات یولس دی، تکبیر په شروع او اخر دواړو ځایونو کښې دوه کرته دې هم دغه شان لفظ ﴿قد قامت الصلاة﴾ دوه کرته او باقی ټول کلمات یو یو ځل دي، او د امام مالک په نزد کلمات اقامت لس دی د هغوی په نزد لفظ ﴿قد قامت الصلاة﴾ هم یو ځل دي، هغه وائی چه په روایت کښې ﴿الا الاقامة﴾ د ایوب سختیانی د طرف نه مدرج دې.

## حدیث الباب د جمهور دلیل دې

دا پورته حدیث متفق علیه دې او په دې لحاظ سره ډیر قوی دې او په افراد اقامة کښې د جمهورو مستدل دې... علامه شوکانی فرمائی چه د افراد اقامت احادیث اگر چه زیات صحیح دی په دې وجه چه هغه په صحیحین کښې دی خو احادیث تثنیه په یو زیادت باندې مشتمل دی لهذا د هغې طرف ته مصیر او رجوع لازم ده. (کذا فی البذل)

## د حدیث الباب خلاف نور روایات

د دې نه روستو تاسو په دې ځان پوهه کړئ چه د اقامت بلال په باره کښې روایات حدیثیه مختلف دی، په صحیحین کښې خو ایتار راغلې دې خو د احادیثو په نورو کتابونو کښې د هغه په اقامت کښې هم تثنیه ثابت ده، پس حاکم او بیهقی (فی الخلافیات) او طحاوی د سوید بن غفله نه روایت کړې دې چه ﴿ان بلالا یثنی الاذان ویثنی الاقامة﴾ خو حاکم په دې کښې د انقطاع دعوی کړې ده په دې باندې حافظ فرمائی چه د طحاوی په روایت کښې د سماع تصریح ده، سوید بن غفله وائی ﴿سمعت بلالا﴾ لهذا د انقطاع اشکال مرتفع شو هم دغه شان د طبرانی په یو روایت کښې وارد دی، اگر چه ضعیف دې ﴿عن بلال انه کان یجعل الاذان والاقامة مثنی مثنی﴾ اوس چه کوم صورت حال دې چه ددې روایاتو نه د اقامة بلال

مثنی کیدل معلومیږي نو بیا به د ﴿ امر بلال ان یوتر الاقامة ﴾ تاویل کولې شي ددې دپاره چه په روایاتو کښې تعارض رانشي.

## د حدیث الباب تاویل

د احنافو د طرف نه یو تاویل دا کولې شي لکه چه په شامي کښې دي چه د ایتار نه مراد ایتار الصوت دې یعنی دوه کلمات په یوه ساه باندې ادا کول او د هغې په حدر سره لوستل، په خلاف د اذان چه په هغې کښې ترسیل دې په قلاره قلاره باندې هر کلمې لره مستقل ساه کښې ادا کول، او حضرت شیخ به ددې حدیث داسې تاویل کولو چه زما په نزد ددې تعلق د هر یو اذان سره نه دې بلکه صرف د سحر د اذان سره دې، د رسول الله ﷺ په زمانه کښې به د سحر اذان دوه کرته کیدلو، یو د شپې په اخر کښې د تهجد دپاره او دویم د صبح صادق نه پس د مونځ دپاره، یو ځل به بلال کولو او یو ځل ابن ام مکتوم نو په دې حدیث کښې اوونیلې شو چه اذان خو دې شفعا اوونیلې شي خو اقامت صرف یو کرت، د کلمات اقامت ایتار مراد نه دې.

## په تثنیه اقامت کښې د احنافو مزید دلائل

هم دغه شان د احنافو دلیل د عبدالله بن زید رضي الله عنه حدیث دې ځکه چه د هغې د بعض طرق نه د اقامت مثنی کیدل معلومیږي،(1) جمهورو په دې باندې دا اعتراض کړې دې چه د عبدالله بن زید حدیث منقطع دې، جواب دا دې چه انقطاع ددې په بعض طرق کښې ده په ټولو کښې نه، په دې باندې تنبیه مونږ سره مخکښې هم تیره شوې ده. هم دغه شان امام ترمذی دا په دواړو طرقو سره ذکر کړې دې او طریق متصل ته ئې اصح وئیلې دې،(2) او دویم دلیل د سوید بن غفله رضي الله عنه حدیث دې ﴿ ان بلالا کان یثنی الاذان ویثنی الاقامة ﴾ دا حدیث هم مونږ سره وړاندې تیر شو، هم دغه شان حدیث د ابو محذوره رضي الله عنه پس ابن حجر لیکي. حدیث ابی محذوره فی تثنیة الاقامة مشهور.

په بذل المجهود کښې حافظ ابن القیم رحمه الله نقل کړې دی حاصل د اختلاف دا دی چه امام شافعي رحمه الله اذان ابو محذوره او اقامت بلال اختیار کړې دې او امام ابوحنیفه رحمه الله ددې برعکس یعنی اذان بلال او اقامت ابو محذوره رضي الله عنه لره خو زه وایم چه مونږ ته دا خبره تسلیم نه ده چه احنافو د بلال رضي الله عنه اذان واخستلو او اقامت بلال ئې وانخستلو، بلکه مونږ وایو چه احنافو د بلال اذان او اقامت دواړه اخستلې دی لکه چه اوس مونږ پورته دا ثابته کړه، او دا حدیث الباب مؤول دې، مولانا عبدالحئ صاحب فرمائی: قال النخعی اول من نقص الاقامة معاویة وقیل بنو امیة. یعنی دا د امراء بنو امیه حرکت دې چه هغوی اقامت ناقص

---

(1) لیکن صحیح داهم دې چه دهغوی د حدیث په بعضې طرق کښې افراد د اقامت دې.

(2) هغوی اول د روایت تخریج په طریقه د منقطع کړې دې: عن عبد الرحمن بن ابی لیلي عن عبدالله بن زید قال کان اذان رسول الله (ص) شفعًا شفعًا في الاذان والاقامة،، بیا وریسې د اختلاف طرق لاندې فرمائی: وقال شعبة عن عمرو بن مرة عن عبدالرحمن بن ابي ليلي قال حدثنا اصحاب رسول الله (ص) ان عبدالله بن زيد رأي الاذان في المنام، وهذا اصح من حديث ابن ابي ليلي، وعبدالرحمن بن ابي ليلي لم يسمع من عبدالله بن زيد،،

کړو او د هغې کلمات به نې پوره نه وئيل

[۵۰۹]([1])حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسٍ، مِثْلَ حَدِيثِ وُهَيْبٍ، قَالَ إِسْمَاعِيلُ: فَحَدَّثْتُ بِهِ أَيُّوبَ، فَقَالَ: إِلَّا الْإِقَامَةَ.

**ترجمه**: د انس رضي الله عنه نه روايت دې پشان د حديث د وهيب، وئيلى دى اسماعيل: ما ددې بيان وکړو ايوب ته، هغه ووئيل: (الا الاقامة) مګر اقامت نه

**تشريح**: **قوله**: ﴿ حدثنا حميد بن مسعدة... قال اسماعيل فحدثت به ايوب فقال : الا الاقامة ﴾ په اول سند کښې د ابو قلابه نه روايت کونکې ايوب وو او په دې کښې د هغه نه روايت کونکې خالد حذاء دې، اسماعيل فرمائى چه دا حديث ماته په شروع کښې د خالد نه رارسيدلې وو بيا دا حديث د هغه عديل ايوب ته واورولو نو هغه په دې حديث کښې د ﴿الاقامة ﴾ اضافه اوکړه.

د امام مالک رحمه الله په نزد په لفظ د ﴿ قد قامت الصلاة ﴾ کښې هم افراد دې لکه چه تير شو، هغه فرمائى چه ددې استثناء سره ايوب متفرددې لهذا ددې حديث په ثبوت کښې تردد دې.

[۵۱۰]([2])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، سَمِعْتُ أَبَا جَعْفَرٍ يُحَدِّثُ، عَنْ مُسْلِمٍ أَبِي الْمُثَنَّى، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "إِنَّمَا كَانَ الْأَذَانُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ، وَالْإِقَامَةُ مَرَّةً مَرَّةً، غَيْرَ أَنَّهُ، يَقُولُ: قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، فَإِذَا سَمِعْنَا الْإِقَامَةَ تَوَضَّأْنَا ثُمَّ خَرَجْنَا إِلَى الصَّلَاةِ"، قَالَ شُعْبَةُ: لَمْ أَسْمَعْ مِنْ أَبِي جَعْفَرٍ غَيْرَ هَذَا الْحَدِيثِ.

**ترجمه**: د ابن عمر نه روايت دې هغه وئيلى دي: بيشکه وو اذان په زمانه د رسول الله صلى الله عليه وسلم دوه دوه ځله، او اقامت يو يو ځل، مګر هغه به وئيل: قد قامت الصلاة قد قامت الصلاة کله چې به مونږ اقامت واوريدلو اودس به مو وکړو، بيا به ووتلو مونځ ته. وئيلى دى شعبة: ما د ابو جعفر نه نه دى اوريدلى غير ددې حديث نه.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ حدثنا محمد بن بشار..... سمعت ابا جعفر يحدث عن مسلم ﴾ د ابو جعفر نوم محمد بن ابراهيم بن مسلم دې د هغه ثقاهت د علماء کرامو ترمينځه مختلف فيه دې دا حديث هغه د خپل پلار مسلم نه روايت کوى ﴿ فاذا سمعنا الاقامة توضانا ثم خرجنا الى الصلاة ﴾ دا روايت د ابن عمر رضي الله عنه دې چه په دې کښې هغه فرمائى چه کله زمونږ په غوږ کښې د اقامت اواز پريوتلو نو مونږ به زر پاسيدو او اودس به مو اوکړو او د مونځ دپاره به لاړو.

## د حديث توجيه

دلته دا شک راځي چه کله د جماعت په اوريدو سره اودس کولې شى که مسبوق نه وى نو کم از کم تکبير اولى به خو فوت شى([3]) او دا ويونکې صحابى دې چه مونږ به داسې کول،

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۹۴۳) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/الأذان ۲ (۶۲۹)، ۲۸ (۶۶۹)، (تحفة الأشراف: ۷۴۵۵)، مسند احمد (۸۷/۲) (حسن)

[3]) زمونږ حضرت شيخ به د رفع يدين په بحث کښې فرمائيل چه د شوافعو په دې سلسله کښې انتهائى معروف او مشهور مستدل د ابن عمر حديث دې او د احنافو دليل د عدم رفع د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث دې کوم چه په کبار صحابه کرامو کښې دې او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ارشاد.....

په دې باندې شارح ابن رسلان فرمائي يعني في بعض الاوقات او بعض الصحابة يعني دا مطلب نه دې چه ټولو صحابه کرامو به دومره ناوخته کولو بلکه په هغوی کښې بعض، هم دغه شان احیانا (کله کله) نه دائما، د ابن رسلان په دې کلام سره په شبهه کښې کمې راغلو، او زما په ذهن کښې دا خبره راځي چه ددې کلام قائل ابن عمر رضي الله عنه دې کوم چه د عمر په اعتبار سره په صغار صحابه کرامو دې، د غزوه خندق والا کال د هغه د بلوغ کال دې او ظاهره ده چه د هجرت په شروع کښې به د هغه عمر يولس دولس کاله وو، هم دغه شان د هغه نور ملګرې کوم چه به د هغوی همزولي وی د هغوی په باره کښې دا خبره کولې شي، او د حضرت ګنګوهي رحمه الله په تقرير کښې يو بل تاويل کړې شوې دې هغه دا چه ﴿ فاذا سمعنا الاقامة ﴾ د دې شرط جزاء خو ﴿ توضانا ﴾ نه ده بلکه ﴿ خرجنا الى الصلاة ﴾ دې او په مينځ کښې خو ﴿ توضانا ﴾ جمله حاليه ده او د عبارت تقدير داسې دې ﴿ فاذا سمعنا الاقامة وقد توضانا خرجنا الى الصلاة ﴾ يعني کله چه به مونږ د اقامت اواز اوريدو او حال دا چه مخکښې به مو اودس کړې وو نو فوري به د مانځه دپاره لاړو او حضرت د بذل په حاشيه کښې ليکلې دی چه مولانا عبدالحئ صاحب په سعايه کښې د ابوداود روايت نقل کړې دې خو د هغه الفاظ د ﴿ توضانا ﴾ په ځائې ﴿ توخينا اى تهيّانا ﴾ دی يعني کله چه به مونږ د اقامت اواز واوريدو نو د مانځه دپاره به فورًا تيار شو.

[۵۱۱]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ يَعْنِي الْعَقَدِيَّ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ مُؤَذِّنِ مَسْجِدِ الْعُرْيَانِ قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا الْمُثَنَّى مُؤَذِّنَ مَسْجِدِ الْأَكْبَرِ، يَقُولُ: سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ، وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

**ترجمه:** مونږ ته حديث بيان کړې دې شعبة د ابو جعفر نه چې مؤذن د مسجد العُريان دې هغه وئيلي دي: ما اوريدلي دی د ابو المثنى نه مؤذن د مسجد اکبر هغه به وئيل: ما اوريدلي دی د ابن عمر نه، او بيان ئې کړو هم دا حديث.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا محمد بن يحيى.... عن ابى جعفر مؤذن مسجد العريان ﴾ دا هم هغه ابوجعفر دې کوم چه په وړاندې سند کښې راغلې وو دلته د هغه يو صفت زائد موجود دې ﴿ مؤذن مسجد العريان ﴾ او په بعض کتب حديث (طحاوي) کښې داسې دی ﴿ عن ابى جعفر الفراء ﴾ خو بعض علماء کرام فرمائي چه ابو جعفر الفراء جدا راوی دې او ابو جعفر مؤذن د مسجد العريان جدا راوی دې. والله اعلم

په بذل کښې ليکلې دی چه مسجد عريان کيدې شي چه د کوفې مسجد وی او ابن رسلان فرمائي چه کيدې شي دا مسجد په بصره کښې وی ځکه چه ابو جعفر راوی بصری

---

ـه ... مبارک ﴿ ليليني منکم اولوا الاحلام والنهي ﴾ مصداق دې، ظاهره ده چه هغه به په وړاندې صف کښې وی او ابن عمر رضي الله عنه د ځان په باره کښې ښپله فرمايي چه زه او زما ملګرې به د اقامت اواز اوريدلو سره د اودس دپاره پاسيدو اوس ظاهره ده چه هغه به په مونځ کښې په روستو صفونو کښې وی نو د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مانځه د کيفيت په باره کښې به وړاندې صف والا ډير خبر وی يا روستو صف والا؟!

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۷۴۵۵) (حسن)

دي، هم دغه شان ابن رسلان فرمائی ﴿ العريان ضد الكاسى ﴾ يعنى بربنډ... بس ددي نه وړاندې هغه هيڅ نه دی ليکلی، غالبا ددې ترجمه دا شوه، مسجد الفقراء والمساکين، لکه چه زمونږ په عرف کښې هم غريب بنده ته اوړې او په تن بربنډ وائی.

**تنبيه** : په نسائی کښې ﴿ باب التثويب فى اذان الفجر ﴾ کښې يو عبارت دې، وليس بابى جعفر الفراء، په دې باندې په ﴿ الفيض السمائى ﴾ کښې لږ شان کلام دې څوک چه کتل غواړی هلته دې اوګوری د مقام د مناسبت د وجې نه پرې مونږ تنبيه کړې ده.

﴿ مؤذن مسجد الاكبر ﴾ ليکلې دی چه په کوفه کښې يو مسجد دې.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُؤَذِّنُ وَيُقِيمُ آخَرُ

### باب دې په بيان د سړي کې چې اذان وکړي او اقامت بل وکړي

اذان يو اوکړی او بل اقامت دا مسئله اختلافی ده، د امام شافعی او امام احمد په نزد داسې کول مکروه دی، د امام مالک رحمه الله په نزد مطلقا مباح دی او د احنافو په نزد بغير د کراهت نه جائز ده په دې شرط چه مؤذن په دې باندې راضی وی، ګينې مکروه دې.

[۵۱۲](۱)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَمِّهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: "أَرَادَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْأَذَانِ أَشْيَاءَ لَمْ يَصْنَعْ مِنْهَا شَيْئًا، قَالَ: فَأُرِيَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدٍ الْأَذَانَ فِي الْمَنَامِ، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ، فَقَالَ: أَلْقِهِ عَلَى بِلَالٍ، فَأَلْقَاهُ عَلَيْهِ، فَأَذَّنَ بِلَالٌ، فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ: أَنَا رَأَيْتُهُ وَأَنَا كُنْتُ أُرِيدُهُ، قَالَ: فَأَقِمْ أَنْتَ".

**ترجمه**: د عبد الله بن زيد نه روايت دې هغه وئيلی دی، اراده وکړه نبی ﷺ په خبرولو د خلقو کښې د څه شيانو (مثلا ناقوس وغيره)، هيڅ شی ئې هم ونه کړل د هغې نه، هغه وئيلی دي: وښودلی شو عبد الله بن زيد ته اذان په خوب کښې نو راغې نبی ﷺ ته خبرې ورته وکړو، هغه ووئيل: دا وښايه بلال ته، ويې ښودلی هغه ته نو اذان وکړو بلال، نو ووئيل عبد الله چه ما ليدلې وو هغه (خوب داذان) نو زه غواړم چې اذان وکړم. نبی ﷺ وفرمائيل: پس ته اقامت وکړه.

### د سند تحقيق

**قوله**: ﴿ حدثنا عثمان بن ابى شيبة قوله عن محمد بن عبدالله عن عمه عبدالله بن زيد ﴾

دا محمد، د عبدالله بن زيد بن عبد ربه رضی الله عنه خوئې دې، لهذا په سند کښې په ځائې د ﴿ عن عمه ﴾ ﴿ عن ابيه ﴾ کيدل پکار وو[۲] لکه چه ظاهره ده. لهذا دا د يو راوی وهم دې او ددې نه په وړاندې سند کښې داسې دی ﴿ سمعت عبدالله بن محمد قال كان جدى عبدالله بن زيد ﴾ د دې نه معلومیږی چه راوی محمد بن عبدالله نه دې بلکه د هغه خوئې عبد الله بن محمد دې يعنی د عبدالله بن زيد نمسې.

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۳۱۰)، مسند احمد (۴۲/۴) (ضعيف)

(۲) دا زمونږ د سند په اعتبار سره دې ګينې د حافظ تحقيق وړاندې راروان دې چه دلته عن جده کيدل پکار وو) ۱۲ منه

د حافظ ابن حجرؒ په تحقيق کښې هم دا خبره صحيح ده، د باب ددې اولنی حديث مضمون واضح دې، ددې حديث نه معلوميږي چه اقامت غير مؤذن کولې شي.

[۵۱۳](١) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ الْقَوَارِيرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو شَيْخٌ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ مِنَ الْأَنْصَارِ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مُحَمَّدٍ، قَالَ: كَانَ جَدِّي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدٍ يُحَدِّثُ بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: فَأَقَامَ جَدِّي.

**ترجمه**: عبد الله بن محمد ويلی دي: وو نيکه زما عبد الله بن زيد چې بيانولويې دا حديث، هغه وئيلی دي: اقامت وکړو نيکه زما.

[۵۱۴](٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ غَانِمٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زِيَادٍ يَعْنِي الْأَفْرِيقِيَّ، أَنَّهُ سَمِعَ زِيَادَ بْنَ نُعَيْمٍ الْحَضْرَمِيَّ، أَنَّهُ سَمِعَ زِيَادَ بْنَ الْحَارِثِ الصُّدَائِيَّ، قَالَ: "لَمَّا كَانَ أَوَّلُ أَذَانِ الصُّبْحِ، أَمَرَنِي يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَذَّنْتُ، فَجَعَلْتُ أَقُولُ: أُقِيمُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَجَعَلَ يَنْظُرُ إِلَى نَاحِيَةِ الْمَشْرِقِ إِلَى الْفَجْرِ، فَيَقُولُ: لَا، حَتَّى إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ، نَزَلَ فَبَرَزَ ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَيَّ وَقَدْ تَلَاحَقَ أَصْحَابُهُ يَعْنِي فَتَوَضَّأَ، فَأَرَادَ بِلَالٌ أَنْ يُقِيمَ، فَقَالَ لَهُ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ أَخَا صُدَاءٍ هُوَ أَذَّنَ، وَمَنْ أَذَّنَ فَهُوَ يُقِيمُ، قَالَ: فَأَقَمْتُ".

**ترجمه**: زياد بن الصدائی ويلی دي: هرکله چې وخت شو داولنی اذان د سحر امر وکړو ماته نبی ﷺ ما اذان وکړو، نو مابه وئيل: زه اقامت وکړم ای د الله رسوله! هغه به کتل طرف د مشرق ته د صبا رڼا ته، هغه به وئيل: نه، تردې چې صبا به راوختلو، د سورلۍ نه به راکخته شو صحراء ته به (قضاء حاجت دپاره) لاړو، بيا به راغلو ماته، يقيناً ملګری (صحابه) به راغلی وو (يعنی نبی ﷺ اودس اوکړو) نو اراده وکړه بلال چې اقامت وکړی نو نبی ﷺ ورته ووېل: بيشکه صدائی رور اذان کړې دې او چا چې اذان وکړو هغه به اقامت هم کوي. هغه وايې: پس ما اقامت وکړو.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ حدثنا عبدالله بن مسلمة ﴾ د حديث مضمون دا دې، زياد بن الحارث صدائی فرمائی (کوم چه د رسول الله ﷺ سره په يو سفر کښې وو) چه کله د سحر د اذان اولنې وخت شو نو ماته ئې د اذان کولو دپاره اوفرمائيل پس ما اذان اوکړو او رسول الله ﷺ ته مې عرض اوکړو چه اقامت به هم زه کوم، رسول الله ﷺ روان وو او د اسمان مشرقی غاړو ته ئې کتل او ماته ئې فرمائيل چه لا اوس نه تردې چه صبا ښه روښانه شي نو هغه د سورلۍ نه راکوز شو او د استنجاء دپاره ئې تشريف يوړلو په دې کښې د هغه د سفر ټول ملګري هم راجمع شو کوم چه لږ شاته پاتې شوې وو، اوس چه کله جماعت اودريدلو نو بلال ؓ د اقامت د کولو اراده اوکړه په دې باندې ئې هغوی ته اوفرمائيل ﴿ ان اخا صداءٍ هو اذن ومن اذن فهو يقيم ﴾ چه رجل صدائی اذان کړې دې، لهذا هم هغه به اقامت کوی، زياد بن الحارث چونکه صدائی دې ځکه رسول الله ﷺ هغه ته ﴿ اخو الصداء ﴾ اوفرمائيل يعنی قبيله صداء والا سړې، پس اقامت هم هغه اوکړو.

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٣٦٥٣) (ضعيف)

(٢): سنن الترمذي/الصلاة ٣٢ (١٩٩)، سنن ابن ماجه/الأذان ٣ (٧١٧)، (تحفة الأشراف: ٣٦٥٣)، مسند احمد (١٦٩/٤) (ضعيف)

## د احنافو د طرف نه د حديث توجيه

د دې حديث نه شوافع او حنابله استدلال کوی چه د بل سړی اقامت کول مکروه دی، زمونږ د طرف نه جواب دا دې چه د ﴿ تاذی ﴾ په شکل کښې د کراهت قائل مونږ هم يو او دلته هم دغه شکل وو، بله دا چه دا حديث ضعيف دې ﴿ کما قال الترمذی فی جامعه ﴾ ځکه چه ددې په سند کښې عبدالرحمن بن زياد الافريقی دې کوم چه د اکثر محدثينو په نزد ضعيف دې، خو که دا اووئيلې شی چه دا حديث د مالکيانو خلاف دې ځکه چه هغوی مطلقا د اباحت قائل دی، بل دليل د احنافو دا دې، روايت دې چه ډير کرته به عبدالله بن ام مکتوم رضي الله عنه اذان کولو او بلال رضي الله عنه به اقامت کولو او کله به ددې برعکس معامله وه چه بلال رضي الله عنه به اذان کولو او ابن ام مکتوم رضي الله عنه به اقامت.

## بَابُ رَفْعِ الصَّوْتِ بِالأَذَانِ

### باب دې په بيان د اوچتولو د اواز سره په اذان کښې

[۵۱۵]() حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مُوسَى بْنِ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ أَبِي يَحْيَى، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمُؤَذِّنُ يُغْفَرُ لَهُ مَدَى صَوْتِهِ وَيَشْهَدُ لَهُ كُلُّ رَطْبٍ وَيَابِسٍ، وَشَاهِدُ الصَّلَاةِ يُكْتَبُ لَهُ خَمْسٌ وَعِشْرُونَ صَلَاةً وَيُكَفَّرُ عَنْهُ مَا بَيْنَهُمَا".

**ترجمه:** د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې، هغه روايت کوی د نبی ﷺ نه هغه وئيلی دي: مؤذن ته بښنه کيږی تر کوم ځائې چې ئې اواز رسيږي، او ګواهي کویَ د هغه لپاره هر لوند او وچ څيز، او ليکلی شی لپاره د حاضريدونکی مانځه ته د پنځه ويشت مونځونو ثواب، او کفاره کيږی د هغه نه هغه چې د دواړو په مينځ کښې دي.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا حفص بن عمر... عن موسى بن ابى عائشة ﴾ په بعض نسخو کښې موسى بن ابى عثمان دې، حضرت په بذل کښې ليکلې دی چه دويم صحيح دې او هم دغه شان په نسخه مجتبائيه کښې دی او په نسائی او ابن ماجه کښې هم.

## شرح حديث

**قوله:** ﴿ قال : المؤذن يغفر له مدى صوته ﴾ د اذان اواز چه چرته رسيږی هم د هغې برابر مؤذن ته بخښنه کولې شی لهذا هغه لره خپل اواز زيات نه زيات اوچتول پکار دی ددې دپاره چه د هغې برابر هغه ته بخښنه اوشی، د هغې برابر مغفرت نه مراد مغفرت تامه دې په طريقه د مبالغه فرمائی، بل مطلب ئې دا ليکلې دې چه که د مؤذن معاصی اجسام فرض کړې شی او ددې نه دا ټول ځائې د زمکې ډک شی چه د کوم ځائې پورې د هغه اواز ځی نو هغوی ټول هغه ته معاف کولې شی، د کوم ځائې پورې چه د اذان اواز ځی د زمکې په هغه حصه باندې چه مؤذن کوم ګناهونه کړې وی هغه ټول به معاف کولې شی، د اذان اواز چه چرته رسيږی په هغه حصه کښې چه څومره خلق اباد دی د مؤذن په شفاعت باندې به هغوی ټولو ته

() : سنن النسائي/الأذان ١٤ (٦٤٦)، سنن ابن ماجه/الأذان ٥ (٧٢٤)، (تحفة الأشراف: ١٥٤٦٦)، مسند احمد (٢/٤٢٩، ٤٥٨) (صحيح)

بخښنه کولې شي، ﴿ يغفر ﴾ په معنى د ﴿ يستغفر ﴾ دې، د مؤذن اواز چه چرته رسيږي د هغه ځائې پورې چه څومره ځيزونه دي هغه ټول د مؤذن دپاره استغفار (د مغفرت دعا) کوي ﴿ويشهد له كل رطب ويابس ﴾ د کوم ځائې پورې چه د اذان اواز رسيږي د زمکې په هغه حصه کښې چه څومره هم جسم نامي جن وانس او اشجار او جمادات دي، هغه ټول به د هغه په حق کښې د قيامت په ورځ باندې گواهي ورکوي يعنى د هغه د ايمان يا د هغه ددې عمل خير، او دا گواهي په خپل حقيقت باندې محمول کيدې شي چه الله پاک هغه ټولو ځيزونو ته گويائي ورکړي، او په مجاز باندې هم، دواړه اقوال مشهور دي يو صورت کښې گواهي په ژبه او په دويم صورت کښې به بلسان حال وي. بلسان قال[1] په دې وجه چه الله پاک په دې خبره باندې قادر دې چه په دې ټولو ځيزونو کښې حيات او د نطق قدرت پيدا کړي او بلسان حال داسې چه علماء کرامو ليکلې دي چه ټول کائنات او موجودات بلسان حال د خپل خالق د جلال او علو شان سره ناطق دي. ﴿ وشاهد الصلاة يكتب له ﴾ د جماعت په مونځ کښې د حاضريدونکي دپاره د پنځويشت مونځونو ثواب ليکلې شي او د دوه مونځونو ترمينځه گناهونه معاف کولې شي.

[۵۱۶][2] حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا نُودِيَ بِالصَّلَاةِ أَدْبَرَ الشَّيْطَانُ وَلَهُ ضُرَاطٌ حَتَّى لَا يَسْمَعَ التَّأْذِينَ، فَإِذَا قُضِيَ النِّدَاءُ أَقْبَلَ حَتَّى إِذَا ثُوِّبَ بِالصَّلَاةِ أَدْبَرَ، حَتَّى إِذَا قُضِيَ التَّثْوِيبُ أَقْبَلَ حَتَّى يَخْطُرَ بَيْنَ الْمَرْءِ وَنَفْسِهِ، وَيَقُولُ: اذْكُرْ كَذَا اذْكُرْ كَذَا لِمَا لَمْ يَكُنْ يَذْكُرُ حَتَّى يَضِلَّ الرَّجُلُ أَنْ يَدْرِيَ كَمْ صَلَّى".

**ترجمه:** د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې بيشکه رسول الله ﷺ ويلي دي: کله چې اذان وشي مانځه لپاره تختي شيطان او د هغه تېزونه اچوي چې اذان وانه وري، کله چې اذان پوره شي نو راشي تردې چې کله اقامت کېږي د مانځه لپاره نو بيا لاړ شي، تردې چې اقامت ختم شي نو راشي تردې چې حائل شي په مابين د سړي او د نفس د هغه کښې او وايي: ياد کړه فلانی شي ياد کړه فلانی شي هغه شيان چې ده ته ياد نه وو، تردې چې سړی پوهه نه شي چې څومره مونځ ئې وکړو

**تشريح: قوله:**﴿ حدثنا القعنبى... اذا نودى بالصلاة ادبر الشيطان وله ضراط ﴾ چه کله اذان کولې شي (کوم چه د مونځ دپاره اعلان دې) نو د هغه ځائې نه شيطان تختي او تيزونه اچوي ددې دپاره چه د اذان اواز وانورې، او يا دا مطلب دې چه دومره لرې اوتختي چرته چه د اذان اواز نه رسيږي.

---

[1] صاحب منهل ليکي صحيح دا ده چه بيشکه جمادات، نباتات او حيوانات دپاره علم او ادر[اک] هم دغه شان تسبيح او تقديس ثابت دې، كما يعلم من قوله تعالى ﴿وان منها لما يهبط من خشية الله﴾ وقو[له] ﴿وان من شئ الا يسبح بحمده﴾، قال النووي: وهذا مذهب اهل السنة ويدل عليه قضية كلام الذئب والبقر وغيرهما)

[2]: صحيح البخاري/الأذان ٤ (٦٠٨)، سنن النسائي/الأذان ٣٠ (٦٧١)، (تحفة الأشراف: ١٣٨١٨)، موطا امام مالك/الـ... ١ (١)، مسند احمد (٢/٣١٣، ٤٦٠، ٥٢٢)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الصلاة ٨ (٣٨٩)، سنن الترمذي/الصلاة ١٧٥ (٣٩٩)، سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ١٣٥ (١٢١٧)، ويأتي برقم (١٠٣٠) (صحيح)

## د حديث شرح

د دې حديث په شرح کښې دوه اقوال دی. ۱: په حقيقت باندې محمول دې، ۲: ضرط به فلان د قبيل نه دې يعنی کله چه څوک په چا پورې توقې کوی نو هغه وخت عرب خلق وائی (ضرط به فلان) چه هغه په فلانی سړی پورې توقې اوکړې په دې صورت کښې به (ضراط) په خپل حقيقت باندې محمول نه وی بلکه ددې نه مراد به استهزاء وی چه په اذان پورې توقې کول دی، او که په حقيقت باندې محمول شی نو هم صحيح ده، ځکه چه شيطان جسم دې خوراک څکاک هم کوی، په حقيقت باندې د محمول کيدو په صورت کښې احتمال دې چه هغه داسې قصداً کوی چه د اذان اواز وانوری که د اذان په وخت باندې د تنګ تکور څه اواز شروع شی نو ظاهره ده چه د اذان اواز به نه اوری او دا هم احتمال دې چه بغير د قصد نه داسې اوشی د منډو وهلو د وجې نه.

**قوله**:(فاذا قضى النداء اقبل) د اذان په پوره کيدو باندې بيا راشی او چه کله تثويب کولې شی نو بيا تختی د هغې په پوره کيدو باندې بيا راشی او په مونځ کونکو کښې وسوسې اچوی، او کله کله مختلف خبرې هغوی ته په مانځه کښې وريادوی.

## يو اشکال او جواب

دلته يو مشهور طالبعلمانه سوال دې چه شيطان د اذان نه خو دومره ويريږی او تختی او مونځ کوم چه اصل مقصود دې چه په هغې کښې د قران کريم تلاوت وی د هغې نه ولې په ويرې سره نه تختی؟ ددې جواب مونږ د استاذانو نه اوريدلې دې چه دا د تاثير بالخاصه د قبيل نه دې، الله پاک په څيزونو کښې اثار او خواص کيخودلی دی د هر يو څيز يو تاثير وی، الله پاک په اذان کښې دا تاثير پيدا کړې دې چه ددې نه شيطان ويريږی، هم په دې وجه باندې علماء کرامو ليکلې دی چه په کوم کور کښې د جناتو اثر وی هلته دې په کثرت سره اذان اوکړې شی ددې دپاره چه هغوی اوتختی، الحاصل دا تاثير بالخاصه دې. لهذا ددې نه دې په قران کريم باندې د اذان د افضليت شبهه اونکړې شی، او ددې يوه وجه دا هم کيدې شی چه د مؤذن په باره کښې دا راغلې دی چه کوم څيز هم د هغه اواز اوری هغه به د قيامت په ورځ باندې د مؤذن په حق کښې ګواهی ورکوی او ظاهره خبره ده چه شيطان ګواه جوړيدل نه غواړی په دې وجه هغه داسې کوی.

## بَابُ مَا يَجِبُ عَلَى الْمُؤَذِّنِ مِنْ تَعَاهُدِ الْوَقْتِ

**باب دې په بيان د هغې کې چې لازم دی په مؤذن باندې د خيال ساتلو د وقت**

تعاهد يعنی اهتمام او نګرانی او د هغې خيال ساتل

[۵۱۷] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْإِمَامُ ضَامِنٌ وَالْمُؤَذِّنُ مُؤْتَمَنٌ، اللَّهُمَّ أَرْشِدِ الْأَئِمَّةَ وَاغْفِرْ لِلْمُؤَذِّنِينَ".

---

[۱]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۴۲۹)، مسند احمد (۲/۲۳۲، ۳۸۲، ۴۱۹، ۵۲۴)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ۳۹ (۲۰۷) (صحيح)

**ترجمه**: د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلى دى چې وئيلى دى رسول الله صلى الله وسلم امام ضامن دى او مؤذن امانتدار دى، اى الله ته هدايت وكړى امامانو ته او بخښنه وكړى مؤذنينو ته۔

**تشريح**: **قوله**:﴿ الامام ضامن والمؤذن مؤتمن ﴾ يعنى امام د خپلو مقتديانو د مونځ د صحت او فساد ذمه دار دې، هغه د مقتديانو مونځ راتينګ كړې دې د مقتديانو مونځ د هغه د مونځ تابع دې، ملا علي قاري رحمه الله فرمائى چه ضمان دلته د غرامت او تاوان په معنى كښې نه دې بلكه ددې نه مراد صرف حفظ او رعايت دې او بعض شارحينو ليكلې دى چه امام متكفل وى د مقتديانو د مونځونو د امورو، پس د هغوى د طرف نه د قرأت متحمل وى (دا د هغه خلقو په نزد دې كوم چه د قرأت خلف الامام قائل نه دى) خصوصا د مسبوق په حق كښې، هم دغه شان سنن او مستحبات او عدد ركعات.

**قوله**:﴿ اللهم ارشد الائمة واغفر للمؤذنين ﴾ د مسجدونو امامانو او مؤذنينو ته رسول الله ﷺ دعا كوى، د ائمه كرامو دپاره ئې دا دعا كړې ده چه هغوى ته د رشد وهدايت اعلى مقام وركړه، او د مؤذنينو دپاره ئې د بخښنې او مغفرت دعا فرمائيلې ده، د ائمه كرامو په حق كښې دعا د هغوى د شان موافق رشد او هدايت اوفرمائيله او د مؤذنينو په حق كښې د هغوى مناسب يعنى د هغوى د خطايانو معافى، ځكه چه مؤذن اوچت ځائې ته ختلو سره اذان وركوى، كيدې شى چه بې محله د هغه نظر پريوځى يا ددې په شان بل څه قسم كمې او كوتاهى ترې اوشى.

## د امامت او اذان مرتبه

د دې نه معلومه شوه چه امامت افضل دې د اذان نه لكه چه د احنافو او شوافعو د يو جماعت مسلك دې،[1] امام شافعى رحمه الله په كتاب الام كښې تصريح فرمائيلې ده، د اذان د افضليت، او ابن قدامه ليكى چه د امام احمد رحمه الله نه په دې كښې دوه روايتونه دى، او وئيلې شوې دى چه دواړه برابر دى او يو قول دا دې چه كه انسان ته په خپل ځان باندې د حقوق امامت د ادا كولو اعتماد وى نو د هغوى په حق كښې امامت افضل دې ګينې اذان، دلته دا اشكال راځى چه د خليفه ثانى سيدنا عمر رضي الله عنه نه نقل دى ﴿ لولا الخلافة لاذنت ﴾ كه دا د خلافت ذمه دارى په ما نه وې نو ما به اذان كولو، ددې جواب دا وركړې شوې دې چه د هغوى مراد دا دې چه ﴿ لاذنت اى مع الامامة ﴾، او دا مطلب نه دې چه امامت به مې پريخودلې وې او اذان به مې كولو. (طحطاوى).

[1] ځكه چه دامام ذمه دارئ زياتې او اوچتې دئ هغه د مونځ د بعضې اركانو متكفل وى په خلاف د مؤذن، چه هغه صرف د مونځ د وختونو متكفل وى او بله داچه امام د رسول الله (ص) خليفه دې او مؤذن خليفه دبلال دې، خو شارح ابن رسلان ددې حديث نه د اذان په افضليت باندې استدلال كړې دې او وئيلې ئې دى چه امين افضل وى د ضمين نه، ليكن ددې جواب دادې چه دا قاعده كليه نه ده بلكه كتلې به شى چه دا ضمين د كوم قسم كارونو ضامن دې كه هغه څيزونه اهم وى لكه څنګه چه دلته په امامت كښې، نو بيا به هم دا افضل وى.

[۵۱۸]() حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، قَالَ: نُبِّئْتُ عَنْ أَبِي صَالِحٍ، قَالَ: وَلَا أُرَانِي إِلَّا قَدْ سَمِعْتُهُ مِنْهُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ.

**ترجمه**: دابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دې هغه وايي چې وئيلي دي رسول الله ﷺ، پشان دهغه حديث.

## بَابُ الْأَذَانِ فَوْقَ الْمَنَارَةِ

### باب دې په بيان داذان کې دپاسه د منارې نه

مناره او منار هغه اوچتې ابادئ ته وئيلې شي چه کوم په مسجد کښې د اذان دپاره جوړولې شي، په اصل کښې دا مَنُوَرَه وو يعنې موضع النور يعنې د رڼړا ځائې او دا رڼړا به د مسافرو دپاره په لوړو ځايونو باندې کولې شوه دې ته ميدنه هم وئيلې شي.

د ترجمة الباب غرض دا دې چه اذان په اوچت ځائې باندې کيدل پکار دی، د رسول الله ﷺ په زمانه کښې په مسجد کښې دا مينار متعارف نه وو، په دې باب کښې مصنف يو حديث ذکر کړې دې، د حديث مضمون دا دې چه يوه صحابيه (نامعلوم الاسم) فرمائي چه د مسجد نبوی نه چه چاپيره کوم کورونه وو په هغې کښې زما کور د ټولو نه اوچت وو په دې وجه به بلال رضي الله عنه د سحر اذان د هغې په چهت باندې ادا کولو.

[۵۱۹]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنِ امْرَأَةٍ مِنْ بَنِي النَّجَّارِ، قَالَتْ: "كَانَ بَيْتِي مِنْ أَطْوَلِ بَيْتٍ حَوْلَ الْمَسْجِدِ وَكَانَ بِلَالٌ يُؤَذِّنُ عَلَيْهِ الْفَجْرَ، فَيَأْتِي بِسَحَرٍ فَيَجْلِسُ عَلَى الْبَيْتِ يَنْظُرُ إِلَى الْفَجْرِ، فَإِذَا رَآهُ تَمَطَّى، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَحْمَدُكَ وَأَسْتَعِينُكَ عَلَى قُرَيْشٍ أَنْ يُقِيمُوا دِينَكَ، قَالَتْ: ثُمَّ يُؤَذِّنُ"، قَالَتْ: وَاللَّهِ مَا عَلِمْتُهُ كَانَ تَرَكَهَا لَيْلَةً وَاحِدَةً تَعْنِي هَذِهِ الْكَلِمَاتِ.

**ترجمه**: عروة بن الزبير روايت کوی د يوې ښځې د بنو النجار نه هغې ويلي دي: وو کور زما د اوچتو کورونو نه کوم چې گرد چاپير د جمات نه وو، او وو بلال چې اذان به ئې کولو په هغې باندې د سحر، راتلو به سحر کيناستلو به په کور (چت) باندې، کتل به ئې صبا ته، کله چې به ئې وليدلو صبا صادق، نو ستوماني به ئې ويستله، بيا هغه وفرمائيل: اې الله زه ستا حمد وايم او ستا نه مدد غوارم په قريشو چې قائم کړی ستا دين. هغې وويل: بيا به ئې اذان وکړو، هغې وويل: قسم په الله ماته پته نشته چې هغه دا يوه شپه هم پريخودی وي، مطلب ئې دا کلمات دي.

### د بلال رضي الله عنه اهتمام کول

د مخکښې نه به ئې ځان هلته رسولو او د صبح صادق په انتظار کښې به ناست وو چه کله به د سحر رڼړا ښکاره شوه نو بيا به اودريدو او ستوماني به ئې ويستله او بيا به ئې د اذان نه مخکښې دا کلمات لوستل ﴿ اللهم انی احمدک واستعينک علی قريش الخ ﴾ د هغې نه روستو به ئې بيا اذان کولو . هغه په قسم سره وائي چه بلال رضي الله عنه کله هم دا کلمات د اذان نه مخکښې نه دی ترک کړی، دا څيز قابل عبرت دې ددې نه دې اندازه اولګولې شي چه د هغه دا عمل د

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۲۴۲۹) (صحيح)
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۳۷۸) (حسن)

اذان په کوم درد او فکر سره وو، همیشه د اذان نه مخکښې د قریشو دپاره چه د رسول الله ﷺ قبیله ده د هدایت دعا کول چه هغوی په څه طریقې ددې دین دپاره اودریږي.

د ډیرې مودې نه زما دا معمول دې چه د سبق د شروع کولو نه مخکښې د بلال رضي الله عنه والا کلمات ﴿اللهم انی احمدک واستعینک علی الدرس﴾ لولم.

## بَابٌ فِي الْمُؤَذِّنِ يَسْتَدِيرُ فِي أَذَانِهِ

### باب دی بیان د مؤذن کښې چې تاوېږي په اذان کښې

په اذان کښې د ﴿حیعلتین﴾ په وخت کښې کوم چه کوم ښي او ګس طرف ته مؤذن تاوېږي هغه بیانوي، په دې کښې هم مصنف رحمه الله یو حدیث ذکر کړې دې. چه د هغې مضمون دا دې:

[۵۲۰]([1])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا قَيْسٌ يَعْنِي ابْنَ الرَّبِيعِ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، جَمِيعًا عَنْ عَوْنِ بْنِ أَبِي جُحَيْفَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ وَهُوَ فِي قُبَّةٍ حَمْرَاءَ مِنْ أَدَمٍ، فَخَرَجَ بِلَالٌ فَأَذَّنَ، فَكُنْتُ أَتَتَبَّعُ فَمَهُ هَاهُنَا وَهَاهُنَا، قَالَ: ثُمَّ خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ حُلَّةٌ حَمْرَاءُ بُرُودٌ يَمَانِيَةٌ قِطْرِيٌّ، وَقَالَ مُوسَى: قَالَ: رَأَيْتُ بِلَالًا خَرَجَ إِلَى الْأَبْطَحِ فَأَذَّنَ، فَلَمَّا بَلَغَ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، لَوَى عُنُقَهُ يَمِينًا وَشِمَالًا وَلَمْ يَسْتَدِرْ، ثُمَّ دَخَلَ فَأَخْرَجَ الْعَنَزَةَ"، وَسَاقَ حَدِيثَهُ.

**ترجمه**: عون بن ابی جحیفة د خپل پلار نه روایت کوي، هغه وئیلی دي: زه راغلم نبي ﷺ ته په مکه کښې او هغه په څپنه سره کښې د څرمې نه، راووتلو بلال نو اذان ئې وکړو او وم زه چې وریسې وم د هغه خوله پسې دې طرف ته او هغه طرف ته، هغه وايي: بیا راووتلو رسول الله ﷺ او په هغه باندې جوړه وه سره، څادرونه یمنی قطري. او وئیلی دی موسی: وایي هغه: ما ولیدلو بلال چې راووتلو ابطح ته نو اذان ئې وکړو هرکله چې ورسیدو حی علی الصلاة او حی علی الفلاح ته نو تاو ئې کړو څټ خپل ښي او چپ طرف ته، او ټول تاو نه شو، بیا داخل شو خیمې ته راویې وېستله عنزة او بیان کړو راوی آخر پورې حدیث.

### د حدیث مضمون

ابوجحیفه رضي الله عنه فرمائی چه زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې مکې ته حاضر شوم نو هغه دغه وخت د څرمنې په یوه سره خیمه کښې ناست وو (د سفر واقعه ده)، د خیمې نه سیدنا بلال رضي الله عنه بهر راووتلو او راغلو اذان ئې اوکړو نو ما د هغه مخ ته کتل دې طرف ته او هغه طرف ته یعنی چه کله به ئې په حیعلتین کښې ښي او ګس طرف ته مخ تاوهلو نو ما د هغه دې عمل ته کتل او خپله مې هم د هغه په تابعدارئ کښې داسې کول، بیا رسول الله ﷺ خپله هم د خیمې نه بهر تشریف راوړلو دې وخت کښې د هغه په بدن مبارک باندې سره کرښو والا یمنی جوړه وه، د مقام قطر.

﴿ثم دخل فاخرج العنزة﴾ بیا سیدنا بلال رضي الله عنه د خیمې نه یوه وړه نیزه راوړله د سترې قائمولو دپاره، د حدیث الباب نه معلومه شوه چه ﴿حی علی الصلاة﴾ او ﴿حی علی الفلاح﴾

---

[1]): صحیح مسلم/الصلاة ۴۷ (۵۰۳)، سنن الترمذي/الصلاة ۳۰ (۱۹۷)، سنن النسائي/الأذان ۱۳ (۶۴۴)، والزینة ۱۲۳ (۵۳۸۰)، (تحفة الأشراف: ۱۱۸۰۶، ۱۱۸۱۷)، مسند احمد (۳۰۸/۴)، سنن الدارمي/الصلاة ۸ (۱۲۳۴)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الأذان ۱۵ (۶۳۴)، سنن ابن ماجه/الأذان ۳ (۷۱۱) (صحیح)

په وخت باندې ښي او ګس طرف ته التفات کول پکار دي.

د نفس التفات خو ټول قائل دي سوا د ابن سيرين چه هغه دې ته مکروه وائي، خو اختلاف په استدار کښې دې يعنې بالکل تاويدل.

## د استدار په سلسله کښې رواياتو کښې اختلاف

اصل کښې په دې سلسله کښې روايات مختلف دي په بعض کښې اثبات دې او په بعض کښې نفي، اوس يا خو دې دا اووئيلې شي چه د اثبات روايات صرف په تحويل راس باندې محمول دي او د نفي په استدار بجميع البدن باندې، او يوه بله توجيه دا هم ده چه د اثبات روايات دې محمول کړې شي په عند الضرورت باندې او د نفي روايات محمول کړې شي په عند عدم الحاجة باندې، يعنې که بغير د سينې تاوهلو نه کار اوشي او مقصود حاصل شي نو بيا خو به هلته د سينې تاوهلو حاجت نه وي ځکه چه د هغې کهړکۍ به مؤذن ته نزدې وي او اواز به د بهر طرف ته اورسيږي، او که مناره وسيع وي نو په دې صورت کښې به چونکه ددې کهړکۍ په فاصله باندې وي په دې وجه به هلته د ګرځيدو ضرورت راپيښيږي ددې دپاره چه اواز ئې بهر لاړ شي فقهاء کرامو ئې هم دا تفصيل ليکلې دې بيا ځان پوهه کړه چه په دې حديث کښې دي ﴿ لوى عنقه يمينا وشمالا ﴾

## د تحويل په کيفيت کښې اقوال

امام نووي رحمه الله ليکي چه د تحويل په کيفيت کښې درې اقوال دي. ۱: اول دا چه ﴿حي على الصلاة ﴾ سره دې مخ ښي طرف ته واړوي او دوه کرته دې هغه اوائي، ثانيا دې خپل مخ ګس طرف ته واړوي او دوه کرته دې ﴿ حي على الفلاح ﴾ وائي. ۲: اول دې يو ځل ﴿ حي على الصلاة ﴾ ښي طرف ته وئيلو سره مخ د قبلې طرف ته واړوي او بيا دې په دويم ځل باندې داسې اوکړي، په دويم ځل دې ګس طرف ته مخ واړوي او ﴿حي على الفلاح ﴾ دې اوائي بيا دې مخ د قبلې طرف ته راولي او دوباره دې هم دغه شان اوکړي. ۳: اولا دې خپل مخ ښي طرف ته واړوي او يو ځل دې دا کلمه اوائي او بيا دې ګس طرف ته واړوي او هم دا کلمات دې بيا وائي، چه د دواړو طرفونو په حصې کښې دا دواړه کلمات راشي، هم دغه شان امام نووي رحمه الله ليکلي دي چه زمونږ په نزد اوله طريقه اصح ده، او زه وايم چه د احنافو په نزد دويمه طريقه مختار ده.

# بَاب مَا جَاءَ فِي الدُّعَاءِ بَيْنَ الْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ

### باب دې په هغې کښې چې راغلي دي په دعاء کښې په مينځ د اذان او اقامت کښې

[٥٢١]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ زَيْدٍ الْعَمِّيِّ، عَنْ أَبِي إِيَاسٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يُرَدُّ الدُّعَاءُ بَيْنَ الْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ".

[1]): سنن الترمذي/الصلاة ٤٤ (٢١٢)، الدعوات ١٢٩ (٣٥٩٤، ٣٥٩٥)، سنن النسائي/اليوم الليلة (٦٨، ٦٩، ٧٠)، (تحفة الأشراف: ١٥٩٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٩/٣) (صحيح)

**ترجمه:** د انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې هغه وئيلی دی، چې وئيلی دی رسول الله ﷺ نه رد کېږی دعاء په مينځ د اذان او اقامت کښې.

**تشريح:** د اذان او اقامت ترمينځه وخت ډير مبارک او د قبوليت دې په هغې کښې دعا نه رد کيږی لکه چه په حديث کښې راغلې دی. ﴿ لا يرد الدعاء بين الاذان والاقامة ﴾ د دې په مطلب کښې بذل کښې دوه احتمالات ليکلې دی.

۱: د اذان دوران کښې دعا نه رد کيږی يعنی د اذان د شروع نه د اذان ختميدو پورې او هم دغه شان د اقامت دوران.

۲: داذان د شروع کيدو نه تر داقامت د انتهاء پورې په دې پوره وخت کښې دعا نه رد کيږی،

۳: دريم مطلب ئې دا هم کيدې شی چه د اذان د ختميدو نه پس تر د اقامت د شروع کولو پورې چه کوم درميانی وخت دې په هغې کښې دعا نه رد کيږی، د اول احتمال تائيد د هغه روايت نه کيږی کوم چه علامه زرقانی د ديلمی نه نقل کړې دې چه د هغې الفاظ دا دی ﴿وحين يؤذن المؤذن حتی يسکت ﴾

# بَابُ مَا يَقُولُ إِذَا سَمِعَ الْمُؤَذِّنَ

## باب دې په بيان د هغې کې چې ويلی شې کله چې واوري مؤذن (اذان)

[۵۲۲] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا سَمِعْتُمُ النِّدَاءَ فَقُولُوا مِثْلَ مَا يَقُولُ الْمُؤَذِّنُ".

**ترجمه:** د ابو سعيد الخدری رضی الله عنه نه روايت دې بيشکه رسو ل الله ﷺ ويلی دي. کله چې تاسو اذان واورئ نو (ووايې تاسو) پشان د هغې چې مؤذن ئې وايې.

**تشريح: قوله:** ﴿ اذا سمعتم النداء فقولوا مثل ما يقول المؤذن ﴾ په دې حديث کښې د اذان د اجابت حکم کړې شوې دې (۲)

### د اجابت اذان حکم

د اجابت دوه قسمونه دی، اجابة بالقول اجابة بالاقدام، اجابة بالقول د جمهورو علماء کرامو په نزد مستحب دې او د مشائخ حنفيه په دې کښې دوه قوله دی څنګه چه په شامی کښې دی، وجوب او استحباب خو راجح عدم وجوب دې څکه چه متون ددې د ذکر نه خالی دی، وقيل الواجب الاجابة بالاقدام... بلکه زه وائم چه د اجابت بالاقدام واجب کيدل خو ظاهر دی، البته اجابت بالقول د اهل ظواهر په نزد واجب دې او امام طحاوی رحمه الله هم د بعض سلفو نه ددې وجوب نقل کړې دې.

---

(۱): صحيح البخاري/الأذان ۷ (۶۱۱)، صحيح مسلم/الصلاة ۷ (۳۸۳)، سنن الترمذي/الصلاة ۴۰ (۲۰۸)، سنن النسائي/الأذان ۳۳ (۶۷۴)، سنن ابن ماجه/الأذان ۴ (۷۲۰)، (تحفة الأشراف: ۴۱۵۰)، موطا امام مالك/الصلاة ۱(۲)، مسند احمد (۳/۶، ۵۳، ۷۸)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۰ (۱۲۳۷) (صحيح)

(۲): ابن رسلان ليکی چه د ظاهر الحديث نه معلوميږی چه اجابة اذان موقوف دې په سماع باندې لهذا که يو سړې مؤذن د لرې نه اوينې او د هغه اواز نه اورې، د لرې والی د وجې نه يا د کڼيدو د وجې نه نو په هغه باندې د اذان اجابت نشته.

جمهور علماء کرامو په عدم وجوب باندې د مسلم روایت پیش کړې دې چه رسول الله ﷺ د یو مؤذن اذان واوریدو چه کله هغه ﴿ الله اکبر ﴾ اووې نو وې فرمائیل ﴿ علی الفطرة ﴾ او چه کله شهادتین ته اورسیدو نو وې فرمائیل ﴿ خرج من النار ﴾ او په روایت کښې د اجابة اذان ذکر نشته دې نو معلومه شوه چه اجابة اذان واجب نه دې.

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه په دې روایت کښې خو ﴿ مثل ما یقول المؤذن ﴾ دې چه د هغې نه معلومیږي چه ﴿ حی علی الصلاة ﴾ او ﴿ حی علی الفلاح ﴾ هم دغه شان اوویلې شي او په بعض روایاتو کښې ددې تصریح هم ده. خو ددې باب په اخرې حدیث کښې ددې خبرې تصریح ده چه د ﴿ حیعلة ﴾ په وخت کښې ﴿ حوقله ﴾ یعنی ﴿ لا حول ولا قوة الا بالله ﴾ اوویلې شي او د مسلم په یو روایت کښې هم ددې تصریح ده او هم دا د جمهورو په نزد مختار قول دې، ددې وجه دا ده چه په حیعله کښې اګر چه دا لفظ اوویلې شي نو د استهزاء شبهه به وی او زمونږ د بعض مشائخو رائې دا ده چه دواړه جمع کول اولی دی ددې دپاره چه په دواړو قسم روایتونو باندې عمل اوشی او ﴿ حی علی الصلاة والفلاح ﴾ کښې دې خپل نفس ته د خطاب نیت اوکړی.

## د اذان خطبه اجابت

دلته یوه خبره پاتې شوه او هغه دا چه د اذان خطبه هم اجابت مستحب دې یا نه، په در مختار کښې لیکلې شوې دی چه ﴿ لا یجیب ﴾ او علامه شامی لیکی. ﴿ یجیب بقلبه عند الامام وبعد الفراغ عند محمد ولا یرد مطلقا عند ابی یوسف، وهو الصحیح ﴾.

[۵۲۳]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنِ ابْنِ لَهِيعَةَ، وَحَيْوَةَ، وَسَعِيدِ بْنِ أَبِي أَيُّوبَ، عَنْ كَعْبِ بْنِ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا سَمِعْتُمُ الْمُؤَذِّنَ فَقُولُوا مِثْلَ مَا يَقُولُ، ثُمَّ صَلُّوا عَلَيَّ، فَإِنَّهُ مَنْ صَلَّى عَلَيَّ صَلَاةً، صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ بِهَا عَشْرًا، ثُمَّ سَلُوا اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ لِيَ الْوَسِيلَةَ، فَإِنَّهَا مَنْزِلَةٌ فِي الْجَنَّةِ لَا تَنْبَغِي إِلَّا لِعَبْدٍ مِنْ عِبَادِ اللَّهِ تَعَالَى، وَأَرْجُو أَنْ أَكُونَ أَنَا هُوَ، فَمَنْ سَأَلَ اللَّهَ لِيَ الْوَسِيلَةَ، حَلَّتْ عَلَيْهِ الشَّفَاعَةُ".

**ترجمه**: د عبد الله بن عمرو بن العاص نه روایت دې، بیشکه هغه اوریدلی دی د رسول الله ﷺ نه چې هغه وئیل: کله چې واورئ تاسو مؤذن لره نو وایی تاسو پشان د هغې چې مؤذن ئې وائي، بیا درود وایی په ما باندې، بیشکه هغه څوک چې درود وایی په ما باندې نو رحمت لیږي الله په هغه باندې لس ځل، بیا سوال وکړئ د الله عز و جل نه زما لپاره د وسیلې، بیشکه دا یوه منزله ده په جنت کښې چې مناسب نه ده مګر د یو بنده لپاره د الله بندګانو نه، او زما امید دی چې هغه به زه یم، چا چې زما لپاره سوال د وسیلی وکړو نو زما شفاعت ورته واجب شو.

**تشریح**: **قوله**: ﴿ صلوا علی فانه من صلی علی صلاة صلی الله علیه بها عشرا ﴾ دا حدیث د

(): صحیح مسلم/الصلاة ۷ (۳۸۴)، سنن الترمذي/المناقب ۱ (۳۶۱۴)، سنن النسائي/الأذان ۳۷ (۶۷۹)، (تحفة الأشراف: ۸۸۷۱)، مسند احمد (۲/۱۶۸) (صحیح)

مخکښې نه زیات جامع دې په دې کښې د اجابت اذان نه علاوه د اذان نه روستو صلاة او سلام او د دعاې وسیله تلقین هم ذکر دې.[1]

**(اشکال)** په دې روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه څوک په ما باندې یو ځل درود وائی نو الله پاک په هغه باندې لس کرته رحمت کوی، اشکال دا دې چه په دې کښې د صلاة څه خصوصیت دې دتولو نیکو دپاره هم داقاعده ده **(من جاء بالحسنة فله عشر امثالها)**

**(جواب)** د دې جواب ابن العربی دا ورکړې دې چه اشکال په هغه صورت کښې وو چه که په حدیث کښې دا وو چه یو ځل درود لیږلو والا ته د لس درود لیږلو ثواب ملاویږی، بلکه په حدیث کښې دی چه یو ځل صلاة لیږلو باندې الله پاک لس صلوات نازلوی، د الله پاک خو یو صلاة د بنده د صلاة نه بدرجها افضل او اکمل دې پاتې لا لس درود.

او حافظ عراقی رحمه الله دا جواب کړې دې چه د الله پاک د طرف نه لس صلوات نه علاوه د لسو درجاتو اوچتیدل او د لس ګناهونو معاف کیدل دې نه علاوه دی، لکه چه په بعض روایاتو کښې راغلي دی.

## د وسیلې تفسیر

**قوله:** **( فانها منزلة فی الجنة )** په دې حدیث کښې د وسیلې تفسیر کړې شوې دې چه هغه د جنت یوه خاص درجه ده کوم چه د ټولو درجاتو نه اعلی دې، او وئیلې شوې دی چه د وسیلې نه مراد شفاعت کبری د کوم چه به د قیامت په ورځ باندې رسول الله ﷺ ته حاصل وی. او یو قول دا دې چه **( اعلی علیین )** کښې دوه قبې دی په یو کښې به رسول الله ﷺ استوګنه اختیاروی او په بل کښې به ابراهیم علیه السلام.

**قوله:** **( وارجو ان اکون انا هو )** دا خبره رسول الله ﷺ یا خو هغه وخت اوفرمائیله چه ترڅو رسول الله ﷺ ته دې باره کښې وحی نه وه نازله شوې چه دا هم د هغه حق دې، او کیدې شی چه د وحی نه روستو ئې فرمائیلې وی تواضعا. **( قوله حلت علیه الشفاعة )** شارحینو لیکلې دی چه **( حلت )** په معنی د **( وجبت )** دې[2] او **( علی )** د لام په معنی دې **( ای وجبت له )** لکه چه د طحاوی په روایت کښې دی، یا داسې اووئیلې شی چه دا **(حلت)** د حلول نه دې چه د هغې معنی د نزول ده یعنی په هغه باندې زما شفاعت نازلیږی او واقع کیږی.

---

[1] ابن رسلان فرمائی چه ددې نه معلومه شوه چه افراد الصلاة عن السلام جائز دې یعنی صرف صلاة بغیر د سلام نه، خو امام نووی رحمه الله په کتاب الاذکار کښې لیکلې دی چه دا مکروه ده، زه وائم چه امام مسلم هم د مسلم په خطبه کښې صرف صلاة بغیر د سلام نه ذکر فرمائیلې دې په دې باندې هم امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم کښې اعتراض کړې دې خو نورو حضراتو د امام نووی رحمه الله په قول رد کړې دې چه د جمهورو په نزد دا کار بغیر د کراهت نه جائز دې.

[2] وفی بعض التقاریر هکذا، د حلت معنی حلال نه ده ځکه چه حرام کله وو، چه اوس حلال شو خو زه وائم چه حلال په خپله معنی کښې هم اخستلې شی هغه په داسې طریقه چه ددې معنی استحقاق ده، چه شفاعت خو به مونږ کوو خو تاسو به خپل ځان کښې استحقاق پیدا کړئ، نمک حرامی مه کوئ او ددې معنی تائید د هغه روایاتو نه کیدې شی چه په هغې کښې په ترک صلاة باندې وعیدونه راغلي دی او داسې سړی ته بخیل وئیلې شوې دې.

[٥٢٤] (¹) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ حُيَيٍّ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ يَعْنِي الْحُبُلِيَّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ رَجُلًا، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ الْمُؤَذِّنِينَ يَفْضُلُونَنَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قُلْ كَمَا يَقُولُونَ، فَإِذَا انْتَهَيْتَ فَسَلْ تُعْطَهْ".

**ترجمه**: د عبد الله بن عمرو نه روایت دي بیشکه یو سړی ووېل: اې د الله رسوله! بیشکه مؤذنین غوره کېږي په مونږ، نو ووېل رسول الله ﷺ: ته وایه څنګه چې هغوی وائي، کله چې ته فارغ شې نو سوال کوه ته درکول کېږي به.

**تشریح**: **قوله**: ﴿ قل كما يقولون ﴾ د دې حدیث نه د اجابت اذان ډېر فضیلت معلومېږي او دا چه د اجابت اذان په وجه باندې انسان تقریبا د اذان ثواب حاصلوی، او د اذان کولو ثواب ظاهر دې چه ډېر لوئې دې لهذا د اجابة اذان اهتمام پکار دی، والله الموفق.

[٥٢٥] (²) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ الْحُكَيْمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ قَالَ حِينَ يَسْمَعُ الْمُؤَذِّنَ: وَأَنَا أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، رَضِيتُ بِاللَّهِ رَبًّا وَبِمُحَمَّدٍ رَسُولًا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا، غُفِرَ لَهُ".

**ترجمه**: د سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه نه روایت دې، هغه روایت کوی د رسو الله ﷺ نه هغه فرمائیلی دي: هغه څوک چې ووایي کله چې واوری مؤذن لره: او زه هم ګواهي کوم چې نشته مستحق د عبادت مګر الله دی یواځې شریک نه لري، او زه ګواهي کوم چې محمد ﷺ د الله بنده او رسول دی، زه راضي یم په الله باندې د حیثیته د رب او په محمد باندې د حیثیته د رسول او په اسلام باندې د حیثیته د دین نه. نو هغه ته به بخښنه وشي

**تشریح**: **قوله**: ﴿ من قال : حين يسمع المؤذن وانا اشهد الخ ﴾ د دې حدیث شرح کښې دوه اقوال دی. یو دا چه څه دلته مذکور دی دا به د اذان په ختمیدو باندې وئیلی شی، او دویم قول دا دې چه د اذان ترمینځه چه کله مؤذن شهادتین ته اورسیږی نو بیا دې دا اووائی په بذل کښې ئې احتمال ثانی اختیار کړې دې او نور شارحینو دواړه اقوال لیکلو سره قول اول ته ترجیح ورکړې ده ځکه چه که په مینځ کښې وئیل مراد وی نو د اذان د بعض کلماتو په اجابت کښې به خلل واقع شی.

[٥٢٦] (³) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا سَمِعَ الْمُؤَذِّنَ يَتَشَهَّدُ، قَالَ: وَأَنَا وَأَنَا".

**ترجمه**: د عائشې رضی الله عنها نه روایت دې بیشکه رسول الله ﷺ وو کله چې به ئې د مؤذن اواز واورېدو نو تشهد به ئې ویلو، هغه به وئیل: او زه هم، او زه هم په دې ګواه یم

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٨٥٤)، مسند احمد (١٧٢/٢) (حسن صحيح)

²): صحيح مسلم/الصلاة ٧ (٣٨٦)، سنن الترمذي/الصلاة ٤٢ (٢١٠)، سنن النسائي/الأذان ٣٨ (٦٨٠)، سنن ابن ماجه/الأذان ٤ (٧٢١)، (تحفة الأشراف: ٣٨٧٧)، مسند احمد (١٨١/١) (صحيح)

³): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧١٢٢) (صحيح)

## شرح حديث

قوله:﴿ قال : وانا وانا ﴾ د اولنی ﴿ انا ﴾ تعلق د اول تشهد يعنی ﴿ اشهد ان لا اله الا الله ﴾ سره دي او د دويم ﴿ انا ﴾ تعلق د ﴿ محمد رسول الله ﴾ سره دي، د عبارت تقدير به داسې وی ﴿أنت تشهد أن لا اله الا الله وأنا أشهد أن لا اله الا الله ، أنت تشهد ان محمد رسول الله وأنا أشهد أن محمد رسول الله ﴾ غرض دا چه د ﴿ أنا ﴾ خبر محذوف دی دا خو په هغه صورت کښې دی چه کله په حديث کښې د﴿ يتشهد ﴾ نه شهادتين مراد وی او که د ﴿ يتشهد ﴾ نه مراد ﴿ يؤذن﴾ وی نو دا هم محتمل دی او په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه په پوره اذان کښې د اول نه اخر پورې د مؤذن په جواب کښې ﴿ وانا ﴾ ئی فرمائيل، چه کله هغه ﴿ الله اکبر ﴾ اووې نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل يعنی ﴿ وانا اقول الله اکبر وهکذا الی اخر الاذان ﴾

## يو اشکال او د هغې جواب

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه دلته دا سوال راځی چه د حديث د ظاهر نه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ صرف په لفظ د ﴿ انا ﴾ باندې اکتفاء اوفرمائيله، پوره کلمات ئې په ژبې سره ادا نه کړل،([1]) خو دا صورت د ﴿ قولوا مثل ما يقول ﴾ خلاف دی نو اوس يا خو به دا وئيلې شی چه دا واقعه ﴿ قولوا مثل ما يقول المؤذن ﴾ نه مخکښې ده يا دا اووئيلې شی چه په ﴿ قولوا مثل ما يقول ﴾ کښې امر د وجوب دپاره نه دې او يا دا اووئيلې شی چه کيدې شی چه رسول الله ﷺ خو پوره کلمه ادا کړې وی يعنی ﴿ وانا اقول الله اکبر وانا اقول اشهد ان لا اله الا الله الی اخر الاذان ﴾، خو راوی پوره نه دې نقل کړې خو دې احتمال ته شارحينو بعيد وئيلې دی، ددې ټولو د ليکلو نه روستو د بخاری شريف يو روايت په کتاب الجمعه کښې د نظر نه تير شو کوم چه د سيدنا معاويه بن ابی سفيان رضی الله عنه نه نقل دې چه د هغې نه دا خبره صراحةً معلوميږی چه رسول الله ﷺ د شهادتين په جواب کښې خو صرف ﴿ وانا ﴾ اوفرمائيل او په باقی کلماتو کښې ئې پوره الفاظ په ژبې سره ادا کړل.

[٥٢٧]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ جَهْضَمٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ غَزِيَّةَ، عَنْ خُبَيْبِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسَافٍ، عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا قَالَ الْمُؤَذِّنُ: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، فَقَالَ أَحَدُكُمْ: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، فَإِذَا قَالَ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، قَالَ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، فَإِذَا قَالَ: أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، قَالَ: أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، ثُمَّ قَالَ: حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، قَالَ: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ، ثُمَّ قَالَ: حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، قَالَ: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، قَالَ: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، ثُمَّ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ مِنْ قَلْبِهِ، دَخَلَ الْجَنَّةَ".

[1] ) پس ابن حبان په دې حديث باندې باب قائم کړې دی باب اباحة الاقتصار للمرأ عند سماعة الاذان علي قوله وانا وانا

[2] ): صحيح مسلم/الصلاة ٧ (٣٨٥)، سنن النسائي/اليوم والليلة (٤٠)، (تحفة الأشراف: ١٠٤٧٥) (صحيح)

**ترجمه**: د عمر بن الخطاب رضي الله عنه نه روایت دې، بیشکه رسول الله ﷺ ویلی دي: کله چې ووایي مؤذن: الله اکبر الله اکبر، نو او دې وایي یو کس ستاسو نه: الله اکبر الله اکبر، کله چې هغه ووایي: اشهد ان لا اله الا الله، هغه دې ووایي: اشهد ان لا اله الا الله، کله چې هغه ووایي: اشهد ان محمدًا رسول الله، هغه دې ووائی: اشهد ان محمدًا رسول الله، بیا هغه ووایي: حي علی الصلاة، نو هغه دې وایي: لا حولَ و لا قوةَ الا بالله، بیا دې ووایي: حي علی الفلاح، هغه ووایي: لا حولَ و لا قوةَ الا بالله، بیا هغه ووایي: الله اکبر الله اکبر، هغه دې هم ووایي: الله اکبر الله اکبر، بیا چه هغه ووایي: لا اله الا الله، هغه دې هم ووایي: لا اله الا الله، د زړه نه نو داخل به شي جنت ته.

**تشریح: قوله**:﴿ قوله دخل الجنة ﴾ معلومه شوه چه د اجابة اذان جزاء جنت دې.

# بَابُ مَا يَقُولُ إِذَا سَمِعَ الإِقَامَةَ

**باب دی، په بیان د هغې کې چې وایي به یې چې کله اقامت واوري**

[۵۲۸](1)حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ ثَابِتٍ، حَدَّثَنِي رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، أَوْ عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَنَّ بِلَالًا أَخَذَ فِي الْإِقَامَةِ، فَلَمَّا أَنْ، قَالَ: قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَقَامَهَا اللَّهُ وَأَدَامَهَا"، وَقَالَ فِي سَائِرِ الْإِقَامَةِ كَنَحْوِ حَدِيثِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فِي الْأَذَانِ.

**ترجمه**: د ابو امامة نه روایت دې او د بعضو اصحابو د نبی ﷺ نه، بیشکه بلال شروع کړو اقامت، هرکله نې چې وې وئیل قد قامت الصلاة وویل نبی ﷺ: (اقامها الله و ادامها) الله دې قائم او دائم کړي، او هغه وویل: په ټول اقامت کښې پشان د حدیث د عمر رضي الله عنه په اذان کښې

**تشریح**: د حدیث الباب نه اجابت اقامة مستفاد کیږی او دا چه ﴿ قد قامت الصلاة ﴾ کښې ددې په ځائې ﴿ اقامها الله وادامها ﴾ اوئیلې شی، ملا علی قاری رحمه الله لیکی چه ﴿ واجعلني من صالحي اهلها ﴾ زیادت هم په دې کښې مشهور دې.

## اجابت اقامت کښې اختلاف

صاحب منهل لیکی چه د حکایت اقامت شوافع او حنابله قائل دی او مالکیان د اجابت اقامت قائل نه دی، خو دا حدیث د هغوی خلاف دې اگر چه حدیث ضعیف دې د محمد بن ثابت د وجې نه کوم چه ضعیف دی او د شهر بن حوشب د وجې نه چه د هغه عدالت مختلف فیه دې، خو په فضائل اعمال کښې په ضعیف باندې عمل کیږی زه وایم چه د احنافو په نزد هم په دې کښې دوه اقوال دی پس په در مختار کښې لیکلې دی ﴿ ویجیب الاقامة کالاذان وقیل لا ﴾ او که د اقامت جواب نه ورکوی نو بیا به څه کوی؟ په شامی کښې لیکلې دی ﴿ولا باس ان یشغل بالدعاء ﴾

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٨٨٨) (ضعيف)

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الدُّعَاءِ عِنْدَ الْأَذَانِ

باب دې په بيان د هغې کې چې راغلی دی په دعاء کې په وخت د اذان کې

[۵۲۹] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَيَّاشٍ، حَدَّثَنَا شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَالَ حِينَ يَسْمَعُ النِّدَاءَ: اللَّهُمَّ رَبَّ هَذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلَاةِ الْقَائِمَةِ، آتِ مُحَمَّدًا الْوَسِيلَةَ وَالْفَضِيلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَحْمُودًا الَّذِي وَعَدْتَهُ، إِلَّا حَلَّتْ لَهُ الشَّفَاعَةُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ".

**ترجمه**: د جابر بن عبد الله نه روايت دې هغه وئيلی دی، چې وئيلی دی رسول الله ﷺ: هغه څوک چې ووايي کله چې اذان واوري: (اې الله رب ددې پوره دعوت، او د مونځ قائميدونکي، ورکړی محمد ته وسيله او فضيلت، او اورسوې هغه مقام محمود ته هغه چې تا ورسره وعده کړې ده، مګر واجبيږي هغه لپاره شفاعت په ورځ د قيامت کښې.

**تشريح**: د اذان نه روستو دعا مشهوره ده لکه چه په کتاب کښې مذکور دی، د دعا الفاظ کوم چه په حديث الباب کښې منقول دی بعينه هم دغه شان په بخاری کښې هم دی او په دې کښې هم ﴿ والدرجة الرفيعة ﴾ نشته، حافظ ابن حجر په تلخيص الحبير او علامه سخاوی په مقاصد حسنه کښې ليکلې دی چه دا زيادت ثابت نه دی، خو د ابن السنی د عمل اليوم والليلة چه مونږ سره کومه مطبوعه نسخه ده په هغې کښې دا زيادت موجود دې،(٢) په سنن نسائی کښې دا زيادت نه دې موندلې شوې حال دا چه سند د دواړو يو دې. (الفيض السمائی)

**فائده** : مولانا يوسف بنوری رحمه الله په معارف السنن کښې ليکلې دی چه حضرت شاه ولی الله صاحب په حجة الله البالغة کښې دا زيادت ذکر کړې دې وهو مثبت فی النقل، هغه ليکی چه په نورو رواياتو کښې ددې قسم مضمون موندلې شی هم دغه شان هغه ليکی چه ددې دعا په اخر کښې د الفاظو شرح په بذل کښې ذکر ده، د دعا ابتداء ﴿ اللهم رب هذه الدعوة التامة ﴾ نه ده چه د هغې نه معلوميږی چه اذان ډير لوئې دعوت او تبليغ دې، او په دې کښې څه شک دې.

## بَابُ مَا يَقُولُ عِنْدَ أَذَانِ الْمَغْرِبِ

باب دې په بيان د هغې چې وايي به يې په وخت د اذان د ماښام کې

[۵۳۰] (٣) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ إِهَابٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْوَلِيدِ الْعَدَنِيُّ، حَدَّثَنَا الْقَاسِمُ بْنُ مَعْنٍ، حَدَّثَنَا الْمَسْعُودِيُّ، عَنْ أَبِي كَثِيرٍ مَوْلَى أُمِّ سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: "عَلَّمَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَقُولَ عِنْدَ أَذَانِ الْمَغْرِبِ: اللَّهُمَّ إِنَّ هَذَا إِقْبَالُ لَيْلِكَ وَإِدْبَارُ نَهَارِكَ وَأَصْوَاتُ دُعَاتِكَ فَاغْفِرْ لِي".

---

١): صحيح البخاري/الأذان ٨ (٦١٤)، تفسير الإسراء ١١ (٤٧١٩)، سنن الترمذي/الصلاة ٤٣ (٢١١)، سنن النسائي/الأذان ٣٨ (٦٨١)، سنن ابن ماجه/الأذان ٤ (٧٢٢)، (تحفة الأشراف: ٣٠٤٦)، مسند احمد (٣٥٤/٣) (صحيح)

٢) وليست هذه الزيادة في النسخة التي حققها وعلق عليها عبد الرحمن الكوثر نجل الشيخ مولانا محمد عاشق الهي البرني، ويستفاد من تعليقه أن هذه الزيادة ليست في النسخة الهندية، نعم توجد في النسخة الحيدر لبادية)

٣): سنن الترمذي/الدعوات ١٢٧ (٣٥٨٩)، (تحفة الأشراف: ١٨٢٤٦) (ضعيف)

**ترجمه**: د ام سلمة نه روايت دې هغې وئيلي دي: ماته رسول الله ﷺ راوښوده چې زه وايم په وخت د اذان د ماښام کښې (اې الله بيشکه دا مخامخ کيدل د شپې ستا دې، او تلل د ورځ ستا دې، او اوازونه د داعيانو ستا دې) ماته بخښنه وکړې.

**تشريح**: خاص د ماښام د اذان په وخت دعا په حديث الباب کښې ذکر ده، ملا علي قاري رحمه الله ليکي چه دا دعا د سحر د اذان په وخت منقول نه ده خو هم په دې باندې قياس کولو سره وئيلې کيدې شي چه هر کله د ماښام د اذان په وخت ﴿ اللهم هذا اقبال ليلک وادبار نهارک ﴾ وئيلي شي نو ددې بالمقابل د سحر د اذان په وخت دې دا اووئيلي شي : ﴿ اللهم هذا ادبار ليلک واقبال نهارک الى اخره ﴾ خو د شيخ ابن حجر مکي رائې دا نه ده هغه وائي چه د امور توقيفي دى په دې کښې قياس نه چليږي، خو ملا علي قاري دا خبره رد کړې ده.

## بَاب أَخْذِ الأَجْرِ عَلَى التَّأْذِينِ

### باب دې په بيان دا خستلو د اجرت کې په اذان باندې

[ ۵۳۱ ] (۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا سَعِيدٌ الْجُرَيْرِيُّ، عَنْ أَبِي الْعَلَاءِ، عَنْ مُطَرِّفِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ، قَالَ: قُلْتُ: وَقَالَ مُوسَى فِي مَوْضِعٍ آخَرَ: إِنَّ عُثْمَانَ بْنَ أَبِي الْعَاصِ، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، اجْعَلْنِي إِمَامَ قَوْمِي، قَالَ: "أَنْتَ إِمَامُهُمْ وَاقْتَدِ بِأَضْعَفِهِمْ وَاتَّخِذْ مُؤَذِّنًا لَا يَأْخُذُ عَلَى أَذَانِهِ أَجْرًا".

**ترجمه**: وئيلي دي موسى بيشکه عثمان بن ابى العاص وئيلي دي، اى د الله رسوله! ما وګرځوه امام د خپل قوم، هغه وايي: ته د هغوى امام شوى خيال ساته د کمزورو د هغوى، ونيسه مؤذن او نه دې اخلي مزدوري په خپل اذان.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ ان عثمان بن ابى العاص قال يا رسول الله ﴾ دا عثمان بن ابى العاص طائفي دې د وفد ثقيف سره په يکم هجرى کښې د هغه ﷺ په خدمت کښې حاضر شوې وو، د ده روايت په ابواب المساجد کښې د تولو نه وړاندې باب کښې تير شوې دې چه په هغې کښې دى ﴿ امره ان يجعل مسجد الطائف حيث كان طواغيتهم ﴾ هغه رسول الله ﷺ د طائف عامل جوړ کړې وو هغه رسول الله ﷺ ته درخواست کړې وو چه ما د خپل قوم امام جوړ کړئ نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل ﴿ انت امامهم ﴾ او صحيح ده، ما ته د هغوى امام جوړ کړې، د هغه د قوم مصداق اهل طائف دى.

### د خپل ځان دپاره د امامت او توليت طلب

په دې حديث کښې د هغه صحابى د طرف نه د امامت طلب موندلې شوې دې چونکه هغه د خپل قوم دحال نه زيات خبر وو په ظاهره باندې هغوى خپل توليت او امامت کښې د هغوى خير او مصلحت ګڼړلې وى، په دې وجه ئې د رسول الله ﷺ نه دا څيز طلب کړو، ابن رسلان ليکى چه ددې نه معلومه شوه چه امامت طلب کول او طلب باندې هغه ته ورکول دا مناسب ده او طلب کولو والا واقعى د هغې اهل وى، زما په ذهن کښې يوه بله خبره هم ده چه هغه د

(۱): سنن النسائي/الأذان ۳۲ (۶۷۳)، سنن ابن ماجه/الأذان ۳ (۹۸۷)، (تحفة الأشراف: ۹۷۷۰)، مسند احمد (۴/۲۱۷)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الصلاة ۳۷ (۴۶۸)، سنن الترمذي/الصلاة ۴۱ (۲۰۹) (صحيح)

سر نه د عهدې په طلب کولو کښې مخکښې شوې نه دي بلکه څنګه چه هغه د رسول الله ﷺ نه خپل قوم ته د مونځ ورکولو اجازت طلب کړو او هغه ورته بغير د څه وخت اړولو نه اجازت ورکړو د خصوصيت مقام د وجې نه ګيني حقيقت دا دي چه رسول الله ﷺ به د عهدې طلب کول نه خوښول او نه به ئې چاته په طلب باندې څه عهده ورکوله ﴿ واقد باضعفهم ﴾ يعنى په مونځ کونکو کښې چه څوک زيات ضعيف او کمزورې وى د هغوى د اقتداء لحاظ سره مونځ ورکوه، لهذا نه خو دې ډير اوږد مونځ ورکړې شى او نه دې ډير مختصر، او نه په تيزئ سره، ځکه چه کمزورې انسان په رکوع او سجده کښې وخت اخلى هغوى ته په زيات اختصار او جلتئ کښې هم وخت لګى، او دويم مطلب ددې خبرې دا هم کيدې شى چه اګر چه ته مونږ ستا د قوم امام جوړ کړې ئې خو ددې باوجود په خپلو مقتديانو کښې د بوډاګانو او مشرانو د تعظيم او تکريم خيال ساته او په هغوى پسې شاته څه او په هغوى باندې پيش قدمى مه کوه، په يو روايت کښې راځى چه الله پاک د سپين ګيرى مسلمان نه حياء کوى، هم دغه شان په يو روايت کښې دى چه ﴿ ان من اجلال الله اکرام ذى الشيبة المسلم ﴾ چه د بوډا سړى تعظيم ګويا د الله تعظيم دې، د ﴿ اضعف ﴾ په تفسير کښې دوه اقوال دى، د قوت بدنيه په اعتبار سره ضعيف او کمزورې او دويم تفسير ئې دې ﴿ اکثرهم خشوعا وتذللا لله تعالى ﴾.

**قوله:** ﴿ واتخذ مؤذنا لا ياخذ على اذانه اجرا ﴾ د حديث دا حصه د ترجمة الباب سره متعلق ده.

## په استيجار على الطاعات کښې د علماء کرامو اختلاف

مسئله مختلف فيه ده هسې طاعة مجرده مثلا د قران کريم په تلاوت باندې اجرت اخستل خو د چا په نزد هم جائز نه دى[1] البته د ضرورت په ځيزونو کښې اختلاف دې، د امام مالک په نزد په اذان، اقامت او تعليم القران وغيره امور دينيه باندې اجرت اخستل جائز دى، د شوافعو اصح قول هم دا دې او د احنافو او حنابله په نزد جائز نه دې، خو متاخرين احنافو ضرورة استيجار على الطاعات جائز کړې دې، په کوکب الدرى کښې ليکى چه په تراويح کښې د قران کريم په قرأت باندې اجرت اخستل جائز نه دى، هم دغه شان ايصال ثواب للميت باندې د ختم قران اجرت هم جائز نه دې، ځکه چه طاعات باندې اخذ اجرت لره متاخرينو د دينى ضرورت او مصلحت په بناء جائز کړې دې او دلته هيڅ ضرورت او مجبورى نشته ځکه چه په تراويح کښې ختم قران هيڅ ضرورى نه دې، غير حافظ هم بغير د اجرت نه تراويح ورکولې شى او په عرف الشذى کښې ليکى چه په فتاوى قاضى خان کښې دى چه په زړه زمانه کښې په اسلامى حکومت او علماء کرامو کښې د مؤذنينو دپاره د بيت المال نه وظائف مقرر وو په خلاف ددې زمانې، لهذا په اذان وغيره باندې اجرت جائز دې او په دې کښې د مذهب نه خروج هم نشته په خلاف د صاحب هدايه

[1] په دې کښې زمونږ د بعض فقهاء کرامو نه خطائى شوې ده چه هغوى په تلاوت مجرد او تعليم قران کښې فرق نه دې کړې هم دا وجه ده چه روستو علماء کرامو نه په دې باندې د تنبيه ضرورت راغلو. ينظر شرح عقود رسم المفتي ۱۲)

چه د هغه د کلام نه معلوميږي چه په جواز باندې کلام د مذهب نه خروج دې، صاحب عرف الشذي فرمائي چه زياته قابل اعتماد خبره د قاضيخان ده، ددې نه پس ځان پوهه کړه چه په دې مسئله کښې د حديث الباب نه د احنافو تائيد کيږي، هم دغه شان د احنافو استدلال د هغه روايت نه دې کوم چه په ابوداود کښې په كتاب الاجارة باب كسب المعلم د لاندې راغې، عبادة بن الصامت رضي الله عنه بعض اهل الصفه ته د قران کريم تعليم ورکړو هغوی هغه ته په دې باندې يو غشې او لينده ورکول اوغوښتل، عباده ددې اجازت د رسول الله ﷺ نه اوغوښتلو، رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل چه که د اور لينده په غاړه کښې اچول غواړې نو هغه قبول کړه،(۱) د دې په مقابله کښې شوافعو د ابو سعيد خدری رضي الله عنه (۲) د واقعې نه استدلال کړې دې، هغه دا چه هغه يو ځل په يو لړم خوړلی باندې سورة فاتحه درې کرته لوستلو سره دم کړه چه په هغې سره هغه روغ شو نو هغه د هغه خلقو نه ددې معقول اجرت واخستلو ديرش بيزې، دا قصه هم په ابوداود كتاب الاجارة کښې موجود ده. خو دا استدلال صحيح نه دې ځکه چه دا خو د دم او علاج او دوايئ د قبيل نه دی نه د تعليم د قبيل نه، او د اخذ الاجر على الرقية مونږ هم قائل يو هم په دې وجه باندې امام ابوداود په دې باندې باب قائم کړې دې، باب اجر الطبيب، هم دغه شان په عرف الشذى کښې ليکي چه ختم قران او ختم بخاری که د خپل څه دنيوی غرض دپاره وی نو بيا خو پرې اجرت اخستل جائز دی البته که ختم د دين د امورو دپاره وی لکه ايصال ثواب وغيره نو بيا اجرت اخستل جائز نه دی.

## بَابٌ فِي الْأَذَانِ قَبْلَ دُخُولِ الْوَقْتِ

### باب دې په بيان د اذان کولو کې مخکې د داخليدو د وقت نه

اذان چونکه د مانځه د وخت د خبر ورکولو نوم دې په دې وجه قبل دخول وخت جائز کيدل نه دی پکار او مسئله هم دا ده.

### په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه

پس د علماء کرامو په دې باندې اتفاق دې چه د سحر نه علاوه په يو وخت کښې هم اذان قبل الوقت جائز نه دې، البته په صلاة فجر کښې اختلاف دې، د امام ابوحنيفه او محمد رائې خو په دې کښې هم دا ده چه دا ناجائز دې، البته د ائمه ثلاثه او ابويوسف په نزد د سحر اذان د صبا راختلو نه مخکښې د شپې په آخری شپږمه حصه کښې ورکول جائز دی.

[۵۳۲](۳)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، وَدَاوُدُ بْنُ شَبِيبٍ المعنى، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ بِلَالًا أَذَّنَ قَبْلَ طُلُوعِ الْفَجْرِ، فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَرْجِعَ فَيُنَادِيَ: أَلَا إِنَّ الْعَبْدَ قَدْ نَامَ أَلَا إِنَّ الْعَبْدَ قَدْ نَامَ، زَادَ مُوسَى: فَرَجَعَ فَنَادَى: أَلَا إِنَّ الْعَبْدَ قَدْ نَامَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا الْحَدِيثُ لَمْ يَرْوِهِ عَنْ

---

(۱) د حديث الفاظ دا دی: ان كنت تحب ان تطوق طوقا من النار فاقبلها)

(۲) ابن العربی د مالکيانو د طرف نه ددې حديث نه استدلال کړې دې: ما تركت بعد نفقة نسائي ومؤنة عاملي فهو صدقة)

(۳): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۵۸۷) (صحيح)

أَيُّوبَ إِلَّا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ.

**ترجمه**: د ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دي، بیشکه بلال رضي الله عنه اذان وکړو مخکښې د ختلو د صبا نه، نو نبي ﷺ ورته امر وکړو چې واپس شي او اذان وکړي: بیشکه بنده اوده شوی وو، بیشکه بنده اوده شوی وو. زیادت کړی دی مسلم: واپس شو هغه او اواز ئې وکړو: خبردار بیشکه بنده اوده شوی وو. وئیلي دي ابوداود: او دا حدیث نه دی روایت کړی د ایوب نه مګر حماد بن سلمة.

**تشریح: قوله**: ﴿ عن ابن عمر ان بلالا اذن قبل طلوع الفجر الخ ﴾ یعنی بلال رضي الله عنه یو ځل د صبا راختلو نه مخکښې اذان ورکړو نو رسول الله ﷺ هغه ته حکم اوکړو چه واپس شه او اعلان اوکړه ﴿ الا ان العبد قد نام ﴾ د نوم نه مراد دلته غفلت او خطاء ده چه زما نه غلطي اوشوه او اذان مې د صبا راختلو نه مخکښې اوکړو، یا دې نوم په خپل حقیقت باندې محمول کړې شي چه زما بې وخته سترګې ورغلې وې، په بیدارېدو باندې په دې سوچ چه چرته ناوخته شوې نه وی د وخت نه مخکښې مې اذان اوکړو. دا حدیث د احنافو واضح دلیل دې.

## په حدیث الباب باندې د محدثینو نقد

خو محدثین حضرات دا روایت صحیح نه مني چه په هغوی کښې امام احمد، ابو حاتم رازی، امام بخاری، علی بن المدینی، امام ترمذی او خپله مصنف شامل دی، ددې حضراتو نقد په دې حدیث باندې دا دې کوم چه مصنف بیان کړې دې. ﴿ قال ابوداود: وهذا الحدیث لم یروه عن ایوب الا حماد بن سلمة ﴾ د نقد حاصل دا دې چه دا حدیث مرفوعا ثابت نه دې بلکه موقوف دې یعنی دا واقعه د رسول الله ﷺ د زمانې نه ده بلکه د عمر رضي الله عنه د زمانې ده چه د هغه یو مؤذن وو چه د هغه نوم مسروح وو یا مسعود وو چه هغه یو ځل د وخت نه مخکښې د سحر اذان اوکړو نو په دې باندې ورته عمر رضي الله عنه فرمائیلي وو چه لاړ شه او اعلان اوکړه ﴿ الا ان العبد قد نام ﴾ پس دا واقعه هم دغه شان مصنف ددې باب په دویم حدیث کښې بیان کړې ده او فرمائي ﴿ وهذا اصح من ذاک ﴾

امام ترمذی رحمه الله په جامع ترمذی کښې لیکلي دی چه په صحیح حدیث کښې راغلي دی ﴿ ان بلالا یؤذن بلیل فکلوا واشربوا حتی یؤذن ابن ام مکتوم ﴾ دا حدیث متفق علیه دې په دې کښې دا خبره بیان کړې شوې ده چه بلال رضي الله عنه د شپې په اخر کښې د صبا راختلو نه مخکښې اذان کوی، روژه دار دې د هغه په اذان باندې خوراک څکاک نه بندوی چه ترڅو ابن ام مکتوم بل اذان نه وی کړې او چه کله هغه اذان اوکړی نو په هغې باندې خوراک څکاک پریږدئ، په دې صحیح حدیث کښې رسول الله ﷺ خپله فرمائي چه بلال د شپې اذان کوی، نو بیا د ابن عمر رضي الله عنه روایت څنګه صحیح کیدې شي.

## د احنافو د طرف نه د دې نقد جواب

زمونږ د طرف نه ددې جواب دا دې چه بلال او ابن ام مکتوم به په نمبر نمبر باندې اذان کولو یعنی کله به د تهجد دپاره اذان بلال کولو، او دویم اذان به ابن ام مکتوم او کله ددې برعکس

چه د تهجد دپاره به ابن ام مکتوم او د سحر دپاره به اذان بلال کولو کوم چه د صبا راختلو نه پس پکار وو خو هغه د غلطۍ د وجې نه د صبا راختلو نه مخکښې اوکړو په دې وجه اعلان ته ضرورت راغلو لهذا په دواړو احاديثو کښې هيڅ تعارض پاتې نه شو او خبره بالکل صفا او واضحه شوه. فالحمد لله على ذلك. د دې نه علاوه ددې دوه جوابونه نور دی. ۱: دا خو صحيح ده چه د رسول الله ﷺ په اخر زمانه کښې به د سحر په وخت دوه اذانونه کيدل خو دا د هيڅ صحيح حديث نه ثابته ندی چه د هجرت د ابتداء نه تر اخره پورې به هميشه هم داسې کيدل، ممکنه ده چه په شروع کښې يو اذان کيدلو د صبا راختلو نه روستو او يوه ورځ په غلطۍ سره هغه د وخت نه مخکښې اذان اوکړو چه په هغې باندې تنبيه اوکړې شوه. ۲: ممکنه ده چه بلال رضي الله عنه د مقرر وخت نه ډير مخکښې اذان کړې وی په دې وجه تنبيه اوکړې شوه، که دا توجيهات اونکړې شی بلکه هم دا اووئيلې شی چه دا واقعه د عمر رضي الله عنه د زمانې ده او د رسول الله ﷺ په زمانه کښې به اذان قبل الوقت کيدلو نو دا اشکال به راشی چه هر کله عمر رضي الله عنه ته دا معلومه وه چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې به هميشه قبل الوقت اذان کيدلو نو بيا پرې هغه دوباره اذان ولې اوکړو دا ئې غير معتبر ولې کړو، لهذا خير هم په دې کښې دې چه دا واقعه مرفوع اومنلې شی ددې توجيه دې اوکړې شی. والله اعلم

## د جمهورو د استدلال رد

د دې نه روستو په دې باندې ځان پوهه کړئ چه جمهور علماء کرام کوم چه د وخت نه مخکښې د اذان د جواز قائل دی هغه پورته ذکر شوې حديث ﴿ ان بلالا يؤذن بليل ﴾ نه استدلال کوی چه اوګورئ سيدنا بلال رضي الله عنه د سحر راختلو نه مخکښې اذان کولو، زمونږ علماء کرامو ئې جواب کړې دې چه دا خو غور اوکړئ چه هغه اولنې اذان به د څه دپاره کيدلو يا د سحر د مونځ دپاره به کيدلو يا د بل څه غرض دپاره ددې تصريح خپله په رواياتو کښې موجود ده ﴿ ليوقظ نائمكم ويرد قائمكم ﴾ يعنی دا اولنې اذان به په دې وجه کيدلو چه کوم خلق د اول نه بيدار دی او تهجد کوی هغوی لږ شان ارام اوکړی او څوک چه تر اوسه پورې اوده وو هغوی بيداريدو سره څو رکعتونه تهجد اوکړی، بيا دا وئيل څنګه صحيح کيدې شی چه د سحر اذان د وخت نه مخکښې جائز دې ځکه چه اول خو دا خبره ددې تصريح خلاف ده، دويم په دې وجه که اومنلې شی چه دا به د سحر د مانځه دپاره کيدلو نو کله به په هغې باندې اکتفاء کولې شوه، اخر دا څه خبره ده چه هميشه به د صبا راختلو نه پس دويم اذان کيدلو، معلومه شوه چه هغه اول اذان به نه د سحر د مونځ دپاره کيدلو او نه د هغه دپاره کافی وو.

[۵۳۳] (۱) حَدَّثَنَا أَيُّوبُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا شُعَيْبُ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي رَوَّادٍ، أَخْبَرَنَا نَافِعٌ، عَنْ مُؤَذِّنٍ لِعُمَرَ يُقَالُ لَهُ: مَسْرُوحٌ، أَذَّنَ قَبْلَ الصُّبْحِ فَأَمَرَهُ عُمَرُ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد وَقَدْ رَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ أَوْ غَيْرِهِ، أَنَّ مُؤَذِّنًا لِعُمَرَ يُقَالُ لَهُ: مَسْرُوحٌ أَوْ غَيْرُهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد، وَرَوَاهُ الدَّرَاوَرْدِيُّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كَانَ لِعُمَرَ مُؤَذِّنٌ يُقَالُ لَهُ: مَسْعُودٌ، وَذَكَرَ نَحْوَهُ. وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ ذَاكَ

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۷۵۸۷) (صحيح)

**ترجمه:** خبر راکړی دی مونږ ته نافع د مؤذن د عمر نه چې وئیل کیده ورته مسروح، اذان ئې وکړو مخکې د صبا نه نو عمر ورته امر وکړو، بیائی دمخکښې حدیث پشان ذکر کړو. وئیلی دی ابوداود: په تحقیق سره نقل کړی دی دې لره حماد بن زید د عبید الله بن عمر نه او هغه د نافع نه او یا د بل چانه، د عمر رضي الله عنه مؤذن چې مسروح وو یا بل څوک وو. وئیلی دی ابوداود: نقل کړی دی دې لره دَرَاوَردی د عبید الله نه او هغه د نافع نه او هغه د ابن عمر نه، هغه وائی چه د عمر یو مؤذن وو چه دهغه نوم مسعود وو، بیا ئې دهغې په شان بیان کړو او دا دهغې نه زیات صحیح دې.

**تشریح: قوله:** ﴿ لا تؤذن حتی یستبین لک الفجر الخ ﴾ دا حدیث هم د احنافو دلیل دې په دې کښې دا دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم بلال رضي الله عنه ته فرمائی چه د سحر اذان هغه وخته پورې مه کوه چه ترڅو پورې صبا ښه روښانه نه شی او هغه خپل دواړه لاسونه عرضا خواره کړل یعنی ترڅو پورې چه د سحر رنړا د اسمان په غاړو باندې عرضا ظاهر شی تر هغه وخته پورې دې د سحر اذان اونکړې شی، د صبا راختلو علامت دا دې چه هغه په افق کښې عرضا وی او خوریږی او د صبح کاذب ظهور په اسمان کښې طولا وی او بیا لږ ساعت پس هغه رنړا غائبه شی، د ابوداود په بعض نسخو کښې یو زیادت دې. ﴿ قال ابوداود : شداد لم یدرک بلالا ﴾ مصنف په دې حدیث باندې نقد فرمائی چه دا منقطع دې، شداد کوم چه د سند راوی دې د هغه سماع د بلال نه ثابته نه ده، ابن رسلان ددې حدیث په باره کښې وائی چه زمونږ اصحابو دا په اقامت باندې محمول کړې دې، عجیبه خبره دا ده چه اذان په اقامت باندې محمول کوی، په بذل المجهود کښې حضرت د مصنف ابن ابی شیبة نه د عائشې رضي الله عنها حدیث نقل کړې دې ﴿ ما کانوا یؤذنون حتی ینفجر الفجر ﴾ دا حدیث مرسل یا منقطع نه دې بلکه مسند او صحیح دې.

## بَابُ الْأَذَانِ لِلْأَعْمَى

### باب دې په بیان د اذان کې لپاره د روند

په اذان اعمیٰ کښې د احنافو درې اقوال دی، جائز دې بغیر د کراهت نه صرح به الشامي، مکروه دې ذکر في المحیط، خلاف اولی دې ذکره صاحب البدائع، او د امام شافعی مذهب کما قال النووی دا دې چه که د اعمیٰ سره بصیر وی کوم چه د هغه رهنمائی اوکړی نو بیا مکروه نه دې لکه چه د ابن ام مکتوم سره به بلال وو ګینې مکروه دې، په منهل کښې د ابن عبد البر مالکی نه هم هغه نقل کړې دې، کوم چه امام نووی رحمه الله فرمائی.

[٥٣٥](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، وَسَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ ابْنَ أُمِّ مَكْتُومٍ كَانَ مُؤَذِّنًا لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ أَعْمَى".

**ترجمه:** د عائشی رضي الله عنها نه روایت دی: بیشکه ابن ام مکتوم د رسول الله صلی الله علیه وسلم مؤذن وو او هغه روند وو.

(١): صحیح مسلم/الصلاة ٥ (٣٨١)، (تحفة الأشراف: ١٦٩٠٧) (صحیح)

**تشریح:** ابن ام مکتوم کوم چه د مسجد نبوی مؤذن وو د هغوی په نوم کښې اختلاف دې، (قیل عبدالله، قیل عمرو) او ابن ام مکتوم دهغه مور ده چه د هغې نوم عاتکه دې، دا د مهاجرین اولین نه وو، چا چا چه د رسول الله ﷺ نه مخکښې مدینې ته هجرت کړې وو، په روایاتو کښې راځی چه رسول الله ﷺ د غزواتو د سفر په وخت هغه دیارلس کرته د خپل ځان نه روستو د مونځونو نائب جوړ کړې دې او هم دا هغه صحابی دې چه د چا په باره کښې (عبس وتولی) آیتونه نازل شوې دی رضی الله تعالی عنه.

## باب الْخُرُوجِ مِنَ الْمَسْجِدِ بَعْدَ الأَذَانِ

### باب دې په بیان د وتلو کې د جمات نه وروسته د اذان نه

[٥٣٦] ([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ الْمُهَاجِرِ، عَنْ أَبِي الشَّعْثَاءِ، قَالَ: كُنَّا مَعَ أَبِي هُرَيْرَةَ فِي الْمَسْجِدِ فَخَرَجَ رَجُلٌ حِينَ أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ لِلْعَصْرِ، فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: "أَمَّا هَذَا فَقَدْ عَصَى أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه:** د ابو الشعثاء نه روایت دې، هغه وئیلی دې: وو مونږ د ابوهریره رضی الله عنه په مسجد کښې نو ووتلو یو سړی کله چې اذان وکړو مؤذن د مازیګر، نو وویل ابو هریرة: هر چې دا سړی دی بیشکه نافرمانی ئې وکړه د ابو القاسم ﷺ.

**تشریح: قوله:** (کنا مع ابی هریرة فی المسجد فخرج رجل حین اذن المؤذن للعصر) یعنی یو سړې کوم چه د مخکښې نه په مسجد کښې وو د اذان د شروع کیدو نه پس د مسجد نه بهر لاړو نو په دې باندې ابوهریره رضی الله عنه اوفرمائیل چه دې سړی د رسول الله ﷺ نافرمانی اوکړه، لفظ (اما) د تفصیل دپاره راځی، د تفصیل دپاره کم از کم دوه څیزونه کیدل پکار دی او دلته په عبارت کښې صرف یوه خبره ذکر شوې ده لهذا ددې مقابل به محذوف منلې شی یعنی (اما من ثبت فی المسجد فقد اطاع ابا القاسم) او ددې مقابل جزء ثانی په روایت کښې مذکور دې، د ابن ماجه وغیره په بعض روایتونو کښې د اذان نه روستو د مسجد نه وتونکو ته منافقان وئیلې شوې دی خو په هغه روایت کښې ددې خبرې تصریح ده چه هغه بغیر د څه حاجت نه وتلې وی او بیا ئې د واپسئ هم څه اراده نه وی، هم دغه شان فقهاء کرامو نور هم بعض څیزونه مستثنی کړې دی، مثلاً هغه سړې په بل مسجد کښې امامت یا اذان یا د جماعت د نظم ذمه دار وی د هغه دپاره خروج جائز دې.

### په مسئلة الباب کښې د اختلاف تفصیل

د دې تفصیل نه پس یو بل تفصیل باندې ځان پوهه کړئ کوم چه د ائمه کرامو ترمینځه اختلافی دې، هغه دا چه خارج من المسجد بعد الاذان په درې قسمه دې. ۱: (من لم یصل) چا چه تر اوسه پورې مونځ نه دې کړې. ۲: (من صلی منفردا) چا چه مونځ منفردا کړې دې،

[1]: صحيح مسلم/المساجد ٤٥ (٦٥٥)، سنن الترمذي/الصلاة ٣٦ (٢٠٤)، سنن النسائي/الأذان ٤٠ (٦٨٥)، سنن ابن ماجه/الأذان ٧ (٧٣٣)، (تحفة الأشراف: ١٣٤٧٧)، مسند أحمد (٢/٤١٠، ٤١٦، ٤١٧، ٥٠٦، ٥٣٧)، سنن الدارمي/الصلاة ١٢ (١٢٤١) (صحيح)

۳: من صلی بجماعة هغه سړې چا چه باجماعت مونځ کړې وی، اوس د هر يو حکم واورئ، د احنافو په نزد دا ممانعت صرف د اول قسم دپاره دې، د ﴿ قسمين اخرين ﴾ دپاره نه دې، البته که د سړی په مسجد کښې د موجود کيدو په وخت اقامت صلاة هم شروع شی نو بيا به د مونځ کولو نه پس هم د مسجد نه خروج کول مکروه وی، خو صرف په ماسپخين او ماسخوتن کښې ځکه چه ددې دوه مونځونو نه روستو نفل مونځ کول جائز دی او په باقی درې مونځونو کښې نه، په سحر او مازيگر کښې په دې وجه نه چه په دې دوه وختونو کښې نفل کول مکروه دی او په ماښام کښې په دې وجه نه چه د نفلو درې رکعتونه نه وی. دا مذهب خو شو د احنافو، او د شوافعو او مالکيانو په نزد د کراهة خروج حکم قسم اول او ثانی دواړو دپاره دې او د امام احمدرحمه الله په نزد دا حکم اول د ثانی او ثالث درې واړو دپاره دې، بل اختلاف دلته دا دې چه د اعاده په شکل کښې د شوافعو او حنابله په نزد اعاده به د ټولو مونځونو وی، البته امام احمدرحمه الله فرمائی چه په ماښام کښې دې د يو رکعت اضافه اوکړی او د امام مالکرحمه الله په نزد اعاده د ماښام نه علاوه د باقی څلورو مونځونو ده.

## د اعاده صلاة متعلق متعدد ابواب او تراجم

هم دغه شان د اعاده صلاة مسئله يو بل نوع په ابواب المواقيت کښې په باب ﴿ باب اذا اخر الامام الصلاة عن الوقت ﴾ د لاندې هم تير شوې دې هم دغه شان وړاندې هم راروان دې ﴿ باب من صلی فی منزله ثم ادرک الجماعة ﴾ لهذا ددې مسئلې متعلق به څه کلام هلته هم راشی هغه درې واړه مواقع هم په ذهن کښې ساتل پکار دی او د هر ځائې د مسئلې نوعيت هم.

## د حديث الباب محمل د احنافو په نزد

د پورته ذکر شوې مذاهب ائمه په وجه به دا وئيلې شی چه حديث الباب د احنافو په نزد (چونکه ددې تعلق د مازيگر سره دې) به په هغه سړی باندې محمول کولې شی چا چه مونځ نه وی کړې، او د نورو ائمه کرامو په نزد عام دې يعنی اگر مونځ ئې کړې وی، ځکه چه حديث په ظاهره مطلق دې، او احناف دا وائی چه حديث لره په مطلق منلو کښې په دې حديث او په احاديث النهی عن الصلاة بعد العصر کښې تعارض راځی په دې وجه دا مقيد منل ضروری دی او که دا مطلق اومنلې شی نو بيا به د حديث جواب دا وی چه قاعده دا ده چه کله په محرم او مبيح کښې تعارض راشی نو محرم ته به ترجيح وی.

## بَابٌ فِي الْمُؤَذِّنِ يَنْتَظِرُ الإِمَامَ

باب دې په بيان د مؤذن کې چې انتظار کوي د امام

[۵۳۷] (1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا شَبَابَةُ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: "كَانَ بِلَالٌ يُؤَذِّنُ ثُمَّ يُمْهِلُ، فَإِذَا رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ خَرَجَ، أَقَامَ الصَّلَاةَ".

(1): سنن الترمذي/الصلاة ۳٤ (۲۰۲)، (تحفة الأشراف: ۲۱۳۷)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المساجد ۲۹ (۶۰۶)، مسند احمد (۵/۷۷، ۷۸، ۹۵، ۱۰٤، ۱۰۵) (صحيح)

**ترجمه:** د جابر بن سمرة نه روايت دې هغه وئيلى دي: وو بلال چې اذان به ئې كولو، بيا به ئې انتظاركولو، كله چې به ئې نبى ﷺ وليدلو چې راووتلونو اقامت به ئې وكړو دمانځه دپاره.

**تشريح:** امام ترمذى ددې مقصد دپاره داسې ترجمه قائم كړې ده، باب ما جاء ان الامام احق بالاقامة. او ددې د لاندې هغه حديث هم هغه ذكر كړې دې كوم چه امام ابوداود دلته راوړې دې، مطلب دا دې چه مؤذن لره د اذان كولو خو پوره اختيار دې چه كله وخت راشى نو اودې كړى خو په اقامت كښې به هغه د امام انتظار كوى، چه كله امام د مونځ كولو دپاره مسجد ته داخل شى نو بيا هغه لره اقامت كول پكار دى، پس په حديث الباب كښې دى چه بلال رضي الله عنه به د اذان كولو نه روستو ايساريدو بيا چه به ئې كله رسول الله ﷺ اوليدو چه هغه مسجد ته تشريف راوړى نو بيا به ئې اقامت كولو، مسئله اجماعى ده د چا هم په كښې اختلاف نشته. امام ترمذى رحمه الله فرمائى: قال بعض اهل العلم ان المؤذن املک بالاذان والامام املک بالاقامة. چه په اذان كولو كښې خو مؤذن ته اختيار دې او د اقامت مدار په امام باندې دې، د ترمذى په شرح كښې ليكى چه دا د يو حديث مرفوع الفاظ دى چه د هغې راوى ابوهريره رضي الله عنه دې دا ابن عدى په خپل كتاب كښې روايت كړې دې. كذا في بلوغ المرام للحافظ.

## بَابٌ فِي التَّثْوِيبِ

### باب دې په بيان د تثويب كې (اوازكول د مانځه دپاره)

**(لغوى تحقيق):** د تثويب په مأخذ اشتقاق كښې دوه قوله دى، وئيلې شوې دى چه دا د ثوب نه مشتق دې چه د هغې اصل دا دې چه كله يو فرياد كونكې سرې چغې وهى او فرياد كوى نو هغه خپله كپړه اوچتوى او خوزوى ئې لكه چه جهنډه خوزولې شى ددې دپاره چه خلق د هغه طرف ته متوجه شى، بل قول دا دې چه دا د ﴿ ثاب يثوب ﴾ نه ماخوذ دې چه د هغې معنى ده رجوع كول په تثويب كښې هم چونكه رجوع الى الاعلان وى په دې وجه دې ته تثويب وئيلې شى.

### د تثويب معانى

د شريعت په عرف كښې د تثويب اطلاق په درې معانى باندې كيږى، ۱: اقامت، لكه چه اوس نزدې په حديث كښې تير شو چه په هغې كښې د ﴿ ضراط الشيطان ﴾ ذكر دې حتى اذا ثوب بالصلاة ادبر. ۲: د سحر په آذان كښې ﴿ الصلاة خير من النوم ﴾ وئيل، ۳: د اذان او اقامت ترمينځه خلق مونځ طرف ته دوباره متوجه كول كه د قول په ذريعه وى لكه: ﴿ حى على الصلاة، حى على الصلاة ﴾ وغيره الفاظ، يا د فعل په ذريعه لكه ﴿ تنحنح ﴾ يا دروازه ټكول، او د مصنف مراد په ترجمة الباب كښې دا دريمه معنى ده.

[۵۳۸] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا أَبُو يَحْيَى الْقَتَّاتُ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: كُنْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ، فَثَوَّبَ رَجُلٌ فِي الظُّهْرِ أَوِ الْعَصْرِ، قَالَ: "اخْرُجْ بِنَا فَإِنَّ هَذِهِ بِدْعَةٌ".

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۳۹۵) (حسن)

**ترجمه**: د مجاهد نه روايت دې هغه وئيلي دي: وم زه د ابن عمر سره نو تثويب وکړو يو سړی د ماسپخين او يا د مازيګر دپاره دراوی شک دی، ابن عمر ووېل: اوکاږه مونږ يقيناً دا خو بدعت دی.

**تشريح**: **قوله**:﴿عن مجاهد قال : كنت مع ابن عمر فثوب رجل الخ﴾ ابن عمر رضي الله عنهما يو مسجد ته د مونځ دپاره لاړو د ماسپخين يا د مازيګر وخت وو، په مسجد کښې کيناستلو يو سړی تثويب اوکړو نو د ابن عمر رضي الله عنهما نه برداشت او نه شو او هغه خپل شاګرد مجاهد ته اووې چه ما دې مسجد نه بوځه دلته بدعت کيږي، ما بوځه ئې په دې وجه اووې چه هغه په اخرې عمر کښې نابينا شوې وو.

## د تثويب په حکم کښې د علماء کرامو اختلاف

د تثويب بالمعنى الثالث جمهور علماء کرام قائل نه دی هغوی دا بدعت منی، پس امام ترمذی رحمه الله فرمائی ﴿هذا هو التثويب الذى كرهه اهل العلم واحدثه (الناس) بعد النبى صلى الله عليه وسلم﴾ او احناف ددې قائل دی خو صرف د سحر په مونځ کښې (قاله محمد فى الجامع الصغير) او په هدايه کښې ليکلي دی چه متقدمين احناف خو دا خاص کوی د سحر د مونځ سره ځکه چه هغه د نوم او غفلت وخت دې خو متاخرينو په باقی مونځونو کښې هم ددې اجازت ورکړې دې، لظهور التكاسل فى الامور الدينية... البته په متقدمينو کښې د امام ابويوسف رحمه الله رائې دا ده چه تثويب د فجر په مونځ کښې خو على العموم عوام او خواص د ټولو دپاره او په باقی مونځونو کښې هغوی ددې اجازت ورکړې دې صرف د خواص دپاره لکه اميران او قضاة او مفتيان کرام ځکه چه دا حضرات په امور مسلمين کښې مشغول وی. (زيلعى شرح الكنز)

دا اختلاف او تفصيل متعلق وو په تثويب بالمعنى الثالث پورې، او تثويب بالمعنى الاول او والثانى تثويب قديم ته وئيلې شی او دواړه خو ټول منی، البته تثويب بالمعنى الثانى کښې لږ شان اختلاف دې هغه دا چه جمهور علماء ائمه ثلاث نو ددې د استحباب قائل دی او د امام شافعی قول قديم هم دا دې او هم دا خبره د هغوی په نزد مفتى به ده او قول جديد کښې هغه ددې نه انکار کړې دې.

## بَابٌ فِي الصَّلَاةِ تُقَامُ وَلَمْ يَأْتِ الْإِمَامُ يَنْتَظِرُونَهُ قُعُودًا

**باب دې په بيان د مانځه کښې چې ودرولی شي او امام له وي راغلی خلق يې انتظار کوي په ناسته**

يعنى که د مونځ دپاره اقامت شروع شی او حال دا وی چه امام لا مسجد ته نه وی رارسيدلې نو مقتديانو لره پکار دی چه نه اودريږی بلکه د امام انتظار دې په ناسته باندې اوکړی، دا مسئله اجماعی دې خو دلته دا اشکال دې چه د اقامت خو قاعده دا ده چه هغه دې صرف د امام په راتلو باندې اوکړې شی لکه چه د تير باب په حديث جابر کښې تير شوې دی، لهذا دا ترجمة الباب د هغې خلاف شو، جواب دا دې چه مصنف دا ترجمه د ظاهر الفاظ حديث مطابق تړلې ده ځکه چه په حديث الباب کښې هم دغه شان دې لهذا

اصل اشکال په حدیث باندې شو چه د هغې جواب اوس راروان دی.

[۵۳۹] [¹] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، وَمُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبَانُ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ، فَلَا تَقُومُوا حَتَّى تَرَوْنِي"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَكَذَا رَوَاهُ أَيُّوبُ، وَحَجَّاجٌ الصَّوَّافُ، عَنْ يَحْيَى، وَهِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، قَالَ: كَتَبَ إِلَيَّ يَحْيَى، وَرَوَاهُ مُعَاوِيَةُ بْنُ سَلَّامٍ، وَعَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يَحْيَى، وَقَالَا فِيهِ: حَتَّى تَرَوْنِي وَعَلَيْكُمُ السَّكِينَةُ.

**ترجمه:** عبد الله بن ابی قتادة د خپل پلار نه روایت کوی او هغه د نبی ﷺ نه، هغه وفرمائیل: کله چې اقامت وشی د مانځه لپاره نو مه پاځئ تردې چې ما وینئ. وئیلی دی ابوداود: داسې روایت کړی دی ایوب او حجاج الصواف د یحیی او هشام الدستوائی نه، هغه وایی: ولیکل ماته یحیی، او روایت کړی دی ددې معاویة بن سلام او علی بن المبارک د یحیی نه، او هغوی دواړو ویلی دی: تردې چې ما وینئ او لازم دی په تاسو باندې اطمینان.

**تشریح: قوله:** ﴿ حدثنا مسلم بن ابراهيم... اذا اقيمت الصلاة فلا تقوموا حتى تروني ﴾ د حدیث مطلب واضح دې دا حدیث هم دغه شان په بخاری شریف کښې هم دې، دلته اشکال هم هغه دې کوم چه پورته مذکور شو

## دفع تعارض بين الحديثين

د دې اشکال جواب علماء کرامو دا ورکړې دې چه دسیدنا بلال رضی الله عنه نظر به په حجره شریفه باندې وو، هغه به په غور سره رسول الله ﷺ ته کتل او چه کله به هغوی اولیدو چه رسول الله ﷺ مسجد ته د راتلو دپاره د خپل ځائې نه را روان شو نو سیدنا بلال رضی الله عنه به فورا اقامت شروع کړو حال دا چه تر اوسه پورې به تول د مسجد خلقو رسول الله ﷺ نه وو لیدلې، نو د هغه خلقو په باره کښې رسول الله ﷺ فرمائی چه کله تاسو خلق مسجد ته راورسیږئ نو هغه وخته پورې مه اودریږئ. فارتفع التعارض من البين.

ترجمة الباب او د حدیث تشریح وغیره خو اوشوه خو دلته اوس یوه مسئله بله باقی ده بلکه دوه، اول دا چه مقتدیان به مونځ ته کله اودریږی، د اقامت په شروع کښې یا د پوره کیدو نه روستو، او بله مسئله دا ده ﴿ متى يكبر الامام للتحريمة؟ ﴾ دواړه مسئلې مختلف فيه دی.

## متى يقوم الناس في الصف؟

په اوله مسئله کښې تفصیل دا دې چه د امام شافعی او امام ابویوسف رائې دا ده چه ﴿ يقومون بعد الفراغ من الاقامة ﴾ د امام مالک او اکثر علماء کرامو رائې دا ده چه مقتدیانو لره د اقامت په شروع کښې اودریدل پکار دی (نن صبا زمونږ عمل هم په دې دې) او د امام احمد رحمه الله په نزدیک ﴿ قد قامت الصلاة ﴾ باندې اودریدل پکار دی او د امام ابوحنیفه او امام محمد په نزد ﴿ حي على الصلاة ﴾ باندې، او دا تول تفصیل په هغه صورت کښې دې

[¹]: صحيح البخاري/الأذان ٢٢ (٦٣٧)، ٢٣ (٦٣٨)، والجمعة ١٨ (٩٠٩)، صحيح مسلم/المساجد ٢٩ (٦٠٤)، سنن الترمذي/الصلاة ٢٩٨ (٥٩٢)، سنن النسائي/الأذان ٤٢ (٦٨٨)، والإمامة ١٢ (٧٩١)، (تحفة الأشراف: ١٢١٠٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠٤/٥، ٣٠٧، ٣٠٨)، سنن الدارمي/الصلاة ٤٧ (١٢٩٦) (صحيح)

چه کله امام د مخکښې نه په مسجد کښې وی او که بالفرض هغه وخته پورې امام مسجد ته نه وی رارسیدلې نو بیا ددې حکم په ترجمة الباب کښې راغلې دې.

## متى يكبر الامام للصلوة؟

او په مسئله ثانيه کښې اختلاف دا دې چه جمهور علماء ائمه ثلاث او د امام ابویوسف رحمه الله په نزد امام له پکار دی چه هغه مونځ د اقامت په پوره کیدو باندې شروع کړی او د امام ابوحنیفه او امام محمد په نزد ﴿ قد قامت الصلاة ﴾ باندې مونځ شروع کول پکار دی، دا اختلاف حضرت سهارنپوری په بذل کښې او امام نووی په شرح د مسلم کښې لیکلې دی : ﴿ قال ابوداود: هکذا رواه ایوب الخ ﴾ پورته په سند کښې د یحیی نه روایت کونکې ابان دې هغه دا حدیث لره د یحیی نه په طریقه د عنعنه روایت کوی، مصنف فرمائی چه ایوب او حجاج هم د یحیی نه داسې روایت کړې دې او د یحیی یو دریم شاګرد هشام دستوائی دې هغه دا د یحیی نه داسې نه روایت کوی بلکه په طریق د کتابت، پس هغه ﴿ کتب الی یحیی ﴾، او روایت په طریق د کتابت ظاهرا مقتضی دا ده چه ﴿ انه لم یسمعه منه ﴾، هم دغه شان ځان پوهه کړه چه د هشام دستوائی لفظ مرفوع دې بناء په مبتدا کیدو باندې او جمله ﴿ قال کتب الی یحیی ﴾ د دې خبر دې.

[ ٥٤٠ ](1) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عِيسَى، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ يَحْيَى، بِإِسْنَادِهِ مِثْلَهُ، قَالَ: حَتَّى تَرَوْنِي قَدْ خَرَجْتُ، قَالَ أَبُودَاوُد: لَمْ يَذْكُرْ قَدْ خَرَجْتُ إِلَّا مَعْمَرٌ، وَرَوَاهُ ابْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ مَعْمَرٍ، لَمْ يَقُلْ فِيهِ: قَدْ خَرَجْتُ.

**ترجمه**: د یحیی نه روایت دې د مخکښې حدیث د سند پشان، هغه وئیلی دي: تردې چې ما وینئ چې زه راووتلم. وئیلی دی ابوداود: نه دی ذکر کړی لفظ د (قَدْ خَرَجْتُ) مګر معمر، او نقل کړی دی ابن عیینة د معمر نه هغه پکې هم (قَدْ خَرَجْتُ) نه دی ذکر کړی.

[ ٥٤١ ](2) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، قَالَ: قَالَ أَبُو عَمْرٍو. ح وحَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ رُشَيْدٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، وَهَذَا لَفْظُهُ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ تُقَامُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَيَأْخُذُ النَّاسُ مَقَامَهُمْ قَبْلَ أَنْ يَأْخُذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه**: د ابو هريرة رضي الله عنه نه روایت دې بیشکه مونځ به ودرولی شو د رسول الله ﷺ لپاره (یعنی تکبیر به اوشو)، نو د رسول الله ﷺ د راتلو په وخت به خلقو خپل ځایونه نیول مخکې د دینه چې ځائې اونیسی (کینې) رسول الله ﷺ.

## شرح السند

**قوله**: ﴿ حدثنا محمود بن خالد الخ ﴾ دا سند خو تشریح ته محتاج دې مصنف دوه سندونه بیان کړل، یو د حاء تحویل نه مخکښې یو ددې نه روستو، په سند اول کښې د مصنف استاذ محمود بن خالد دې او سند ثانی کښې داؤد بن رشید، او د دوی دواړو استاذ ولید بن مسلم دې او د ولید استاذ اوزاعی دې چه د هغه کنیت ابو عمرو دې، دلته دا سوال دې

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٢١٠٦) (صحيح)

(2): انظر حديث رقم: ٢٣٥، (تحفة الأشراف: ١٥٢٠٠) (صحيح)

چه په دې سند کښې حاء د تحويل ته څه حاجت دې د مصنف دوه استاذان دی، محمود او داؤد، دا دواړه روايت کوی د وليد نه او وليد روايت کوی د اوزاعي نه، لهذا سند به ئې داسې بيان کړې وې ﴿ حدثنا محمود بن خالد وداؤد بن رشيد قالا حدثنا الوليد عن الاوزاعي ﴾ جواب دا دې چه د تحويل وجه فرق تعبير دې د مصنف مخکښې استاذ محمود بن خالد دا د اوزاعي نه تعبير کړې دې، هم دغه شان يو ﴿ قال عمرو ﴾ اووې او بل ﴿ عن الاوزاعي ﴾. مصنف بعض وخت صرف د تعبير د فرق د وجې نه حاء د تحويل راوړې ، دا د غايت اهتمام خبره ده، زمونږ ددې تشريح نه دا هم معلومه شوه چه دلته په سند کښې ملتقى السندين وليد بن مسلم دی.

قوله:﴿ ان الصلاة كانت تقام لرسول الله صلى الله عليه وسلم فياخذ الناس مقامهم الخ ﴾ د دې حديث نه مستفاد کيږی چه تسوية الصفوف د اقامت په وخت کيدل پکار دی، چه کوم وخت اقامت شروع شو هغه وخت ټول خلق پاسی او صفونه برابر کړی. ﴿ قبل ان ياخذ النبي صلى الله عليه وسلم ﴾ مخکښې ددې نه چه رسول اللهﷺ د خپل مونځ کولو ځائې ته اورسی، په ظاهره کښې هغه په خپل مقام باندې روستو ځکه رارسيدلی وو چه هغه به په تعديل صفوف کښې مشغول وو، پس په رواياتو کښې راځی چه رسول اللهﷺ به خلق د اوګو نه نيول او وړاندې روستو به ئې صف برابرولو، هذا ما عندی والله تعالى اعلم. او يا دې دا اووئيلې شی چه اقامت خو به د رسول اللهﷺ مسجد کښې قدم کيخودلو سره شروع کيدو او هم هغه وخت به ټول مقتديان اودريدل او په خپل خپل ځائې به برابر شو، رسول اللهﷺ ته به خپل ځائې ته رسيدو کښې وخت لګيدو.

[۵۴۲](1) حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، عَنْ حُمَيْدٍ، قَالَ: سَأَلْتُ ثَابِتًا الْبُنَانِيَّ عَنِ الرَّجُلِ يَتَكَلَّمُ بَعْدَ مَا تُقَامُ الصَّلَاةُ، فَحَدَّثَنِي، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ، فَعَرَضَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ فَحَبَسَهُ بَعْدَ مَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ".

ترجمه: د حميد رحمه الله نه روايت دې هغه وئيلی دي: ما تپوس وکړو د ثابت البنانی نه په باره د يو سړی کښې چې خبرې کوی پس د اقامت نه نو ماته ئې حديث بيان کړو د انس رضي الله عنه نه، هغه وئيلی دې: ودرولی شو مونځ نو راغې رسول اللهﷺ ته يو سړی د هغه سره حصار شو وروسته د اقامت نه.

تشريح: قوله:﴿ سالت ثابتا البناني عن الرجل يتكلم بعد ما تقام الصلاة الخ ﴾ د سوال حاصل دا دې چه د اقامت او تکبير تحريمه ترمينځه د فصل ګنجائش شته يا نه په دې باندې ثابت بنانی يوه واقعه بيان کړې ده چه يو ځل په داسې حال کښې چه اقامت شوې وو يو سړې د رسول اللهﷺ په وړاندې اودريدو او د يو مسئلې په باره کښې ئې ورسره ډير ساعته پورې خبرې کولې.

(1): صحيح البخاري/الأذان ۲۷ (٦٤٢)، ۲۸ (٦٤٣)، والاستئذان ٤٨ (٦٢٩٢)، (تحفة الأشراف: ۳۹۵)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحيض ۳۳ (۳۷٦)، سنن النسائي/الإمامة ۱۳ (۷۹۲)، مسند احمد (۱۰۱/۳، ۱۱٤، ۱۸۲) (صحيح)

## د اقامت او تکبیر تحریمه ترمینځه فصل

مسئله دا ده چه د اقامت صلاة او مونځ شروع کولو ترمینځه بغیر د حاجت او ضرورت نه فصل مکروه دي که ضرورت وی نو جائز ده هم دا مذهب د احنافو دي او هم دا د جمهورو، بعض شوافع شارحینو وئیلي دی چه دا حدیث د احنافو خلاف دي د هغوی په نزد دلته د اقامت نه فورا پس مونځ شروع کول واجب دی خو په بذل کښې لیکلي دی چه دا زمونږ د بعض فقهاء کرامو قول دي، قول راجح نه دي، لهذا حدیث زمونږ خلاف نه دي، باقی دا صحیح ده لکه چه مخکښې تیر شو چه د طرفینو رائي دا ده چه په ﴿قد قامت الصلاة﴾ باندې امام لره مونځ شروع کول پکار دی او جمهور دا وائی چه د دومره تندئ ضرورت نشته، بلکه بعد الفراغ عن الاقامة.

[٥٤٣](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ سُوَيْدِ بْنِ مَنْجُوفٍ السَّدُوسِيُّ، حَدَّثَنَا عَوْنُ بْنُ كَهْمَسٍ، عَنْ أَبِيهِ كَهْمَسٍ، قَالَ: قُمْنَا إِلَى الصَّلَاةِ بِمِنًى وَالْإِمَامُ لَمْ يَخْرُجْ فَقَعَدَ بَعْضُنَا، فَقَالَ لِي شَيْخٌ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ: مَا يُقْعِدُكَ؟ قُلْتُ: ابْنُ بُرَيْدَةَ، قَالَ: هَذَا السُّمُودُ؟ فَقَالَ لِي الشَّيْخُ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْسَجَةَ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: كُنَّا نَقُومُ فِي الصُّفُوفِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَوِيلًا قَبْلَ أَنْ يُكَبِّرَ، قَالَ: وَقَالَ: "إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى الَّذِينَ يَلُونَ الصُّفُوفَ الْأُوَلَ، وَمَا مِنْ خُطْوَةٍ أَحَبُّ إِلَى اللَّهِ مِنْ خُطْوَةٍ يَمْشِيهَا يَصِلُ بِهَا صَفًّا".

**ترجمه:** د کهمس نه روایت دې هغه وئیلی دی چې مونږ ودریدلو مانځۀ په منی کښې او امام نه وو راوتلی نو کیناستل بعضی زمونږ نه، نو وویل ماته یو شیخ د کوفې: ته څه شی کینولې؟ ما وویل. ابن بریدة، هغه وویل دا سمود دی (انتظار لپاره د راوتلو د امام) وویل ماته هغه شیخ: حدیث بیان کړې دې ماته عبد الرحمن بن عوسجة د براء بن عازب نه هغه وئیلی دي: وو مونږ چې ودریدلو به په صفونو کښې په زمانه د رسول الله ﷺ کښې ډیر مخکې د تکبیر نه، هغه وایې: چې هغه وفرمائیل: بیشکه الله او د هغه ملائک رحمتونه لیږی په هغه کسانو چې نژدې وی اولنو صفونو ته، او نه دی هېڅ یو قدم چې الله ته ډیر خوښ دی د دېنه چې سړی ئې ږدی او صفت ته پرې ځان رسوي.

### شرح حدیث

**قوله:** قمنا الي الصلاة بمنى والامام لم يخرج فقعد بعضنا... د حدیث مضمون دا دې چه کهمس وائی چه یو ځل مونږ مسجد منی ته د مونځ دپاره لاړو نو مونږ هلته د مونځ دپاره اودریدو حال دا چه امام صاحب لا مسجد ته نه وو راغلې نو چه کله مونږ اولیدل چه لا امام صاحب نه دې راغلې نو مونږ په ځائې ددې چه په ولاړه د هغه انتظار اوکړو کیناستو ﴿ کهمس ﴾ وائی چه ماته د اهل کوفه یو شیخ اووې چه ته ولې کیناستلې، ما ورته اووئیل چه ابن بریده نه ماته دا خبره رارسیدلې ده چه د امام انتظار په ولاړه باندې کول سمود دې، د سمود معنی ده سینه راویستلو سره اودریدل، روایت دې چه یو ځل د علی رضی الله عنه په زمانه کښې خلقو په مسجد کښې د هغه انتظار کولو سره اودریدل، چه کله علی رضی الله عنه تشریف

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٧٧) (ضعيف)

راوړلو نو هغه خلقو لره په ولاړ ليدو باندې اوفرمائيل ﴿ ما لي اراكم سامدين ﴾ د کهمس خبره اوريدلو سره د اهل کوفه شيخ د هغه رد کولو سره يو حديث واوړولو چه د هغې مضمون دا دې.

سيدنا براء بن عازب رضي الله عنه فرمائي چه بعض وخت به مونږ د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د ډير وخته پورې په صفونو کښې ولاړ وو د امام د تکبير تحريمه په انتظار کښې، د شيخ اهل کوفه دا خبره فضول شان ده ددې نه د کهمس د قول ترديد بالکل نه کيږي ځکه چه دلته خو خبره په دې باندې ده چه د امام د خروج نه مخکښې دې د هغه انتظار په ناسته باندې اوکړې شي، او شيخ کوفي چه کوم حديث بيان کړې دې په هغې کښې اگر چه تر ډير ساعته پورې د اودريدو ذکر دې خو د خروج الامام نه مخکښې نه پس د خروج نه، لکه چه د کلام د سياق نه معلوميږي.

[٥٤٤] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَجِيٌّ فِي جَانِبِ الْمَسْجِدِ، فَمَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ حَتَّى نَامَ الْقَوْمُ".

**ترجمه**: د انس رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلي دي: قائم کړې شو مونځ او رسول الله ﷺ د چاسره خبرې کولې په طرف د مسجد کښې، مانځه ته ونه دريدو ترديې چې قوم اوده شو.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ اقيمت الصلاة ورسول الله صلى الله عليه وسلم نجي في جانب المسجد فما قام الى الصلاة ﴾ يعنى يو ځل چه کله د مونځ دپاره اقامت شوې وو هغه د مسجد په يو اړخ کښې د يو صاحب سره د ډير ساعته پورې پټې خبرې کولې ترديې چه بعض خلقو ته خوب هم ورغلو، معلومه شوه چه د اقامت او تحريمه ترمينځه د څه خاص ضرورت د وجې نه خصوصا چه کله څه ديني ضرورت وی فصل کولې شې، خو دا خبره جدا ده چه که فصل زائد وی نو مسئله دا ده چه د اقامت اعاده پکار ده.

[٥٤٥] (٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِسْحَاقَ الْجَوْهَرِيُّ، أَخْبَرَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ سَالِمٍ أَبِي النَّضْرِ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ تُقَامُ الصَّلَاةُ فِي الْمَسْجِدِ، إِذَا رَآهُمْ قَلِيلًا جَلَسَ لَمْ يُصَلِّ، وَإِذَا رَآهُمْ جَمَاعَةً صَلَّى".

**ترجمه**: د سالم ابو النصر نه روايت دې هغه وئيلي دي: وو رسول الله ﷺ کله چې به مونځ ودرولې شو او هغوی به لږ وو نو کيناستلو به مونځ به ئې نه شروع کولو، او چې کله به ئې وليدل راجمع شوی نو مونځ به ئې شروع وکړو.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ اذا راهم قليلا جلس ﴾ يعنى د اقامت د کيدو نه روستو به که رسول الله ﷺ دا محسوس کړه چه لا ټول مونځ کونکی نه دی رارسيدلی نو لږ ساعت کيناستلو سره به ئې د هغوی انتظار کولو، معلومه شوه چه د رسول الله ﷺ د زمانې مونځ د تندئ مونځ نه وو لکه چه زمونږ. حضرت شيخ به فرمائيل

(١): صحيح البخاري/الأذان ٢٧ (٦٤٢)، صحيح مسلم/الحيض ٣٣ (٣٧٦)، (تحفة الأشراف: ١٠٣٥) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٣٣٤، ١٨٦٦٨) (ضعيف)

## تکثير جماعت مطلوب دې

بلکه مونځ کونکو ته به کتلې شو، معلومه شوه چه تکثير جماعت مطلوب دې احناف چه دسحر په مونځ کښې د اسفار قائل دی ددې يوه وجه دا هم ده چه په غلس کښې تقليل جماعت دې.

[٥٤٦] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِسْحَاقَ، أَخْبَرَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الزُّرَقِيِّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، مِثْلَ ذَٰلِكَ.

**ترجمه**: د علی رضی الله عنه نه روايت دې په مثل د هغې.

## بَابٌ فِي التَّشْدِيدِ فِي تَرْكِ الْجَمَاعَةِ

### باب دې په بيان د سختۍ کې په پرېخودلو د جمعې باندې

د جماعت په سلسله کښې بعض روايات خو داسې دی چه د هغې ددې په ظاهره کښې وجوب مستفاد کېږی او بعض داسې دی کوم چه صرف ددې په فضيلت باندې دلالت کوی او د هغې نه په ظاهره کښې عدم وجوب معلومېږی، هم په دې اعتبار سره مصنف د جماعت په باره کښې دوه بابونه قائم کړې دی، په اول باب کښې ئې د اول نوع روايات راوړې دی، او په دويم باب کښې ئې دويم قسم روايات.

## د جماعت په حکم کښې د علماء کرامو مذاهب

د جماعت په حکم کښې د علماء کرامو مختلف مذاهب دی، د امام احمد رحمه الله په نزد فرض عين دې او هم دا مذهب دې د عطاء او اوزاعی، او د ظاهريه په نزد د فرض کېدو سره سره د صحت صلاة دپاره شرط هم دې، او د جمهور علماء ثلاثه په نزد سنت مؤکده دې او د بعض شوافعو او مالکيانو، او په احنافو کښې د امام طحاوی او امام کرخی په نزد فرض کفايه دې، امام نووی رحمه الله هم دا فرمائی ﴿المختار انها فرض كفاية﴾ او د بعض فقهاء کرامو رائې دا ده چه د پوره ښهر په اعتبار سره فرض علی الکفاية دې او د هر يو مسجد په اعتبار سره سنت او د هر يو سړی په لحاظ سره مستحب.

[٥٤٧] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ، حَدَّثَنَا السَّائِبُ بْنُ حُبَيْشٍ، عَنْ مَعْدَانَ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ الْيَعْمُرِيِّ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَا مِنْ ثَلَاثَةٍ فِي قَرْيَةٍ وَلَا بَدْوٍ لَا تُقَامُ فِيهِمُ الصَّلَاةُ إِلَّا قَدِ اسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطَانُ، فَعَلَيْكَ بِالْجَمَاعَةِ، فَإِنَّمَا يَأْكُلُ الذِّئْبُ الْقَاصِيَةَ"، قَالَ زَائِدَةُ: قَالَ السَّائِبُ: يَعْنِي بِالْجَمَاعَةِ: الصَّلَاةَ فِي الْجَمَاعَةِ.

**ترجمه**: د ابو الدرداء رضی الله عنه نه روايت دې، هغه وئيلی دې: ما اورېدلی دی د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه چې هغه به وئيل: نشته دی درې کسان په کلی کښې او نه په بانډه کښې، او نه قائمېږی په دوی کښې مونځ مګر مسلط کېږی په دوی باندې شيطان، لازم دی په تا باندې جمع کول، بيشکه شرمخ هغه چېلۍ خورې کومه چې ځانله وي. وئيلی دی زائدة: وئيلی دی سائب: چې

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٣٣٤، ١٨٦٦٨) (ضعيف)

(٢): سنن النسائي/الإمامة ٤٨ (٨٤٨)، مسند احمد (١٩٦/٥، ٤٤٦/٦)، (تحفة الأشراف: ١٠٩٦٧) (حسن)

مراد ئې په جماعت سره مونځ کول دی د جمعې سره.

**تشريح: قوله:** ﴿ ما من ثلاثة في قرية ولا بدو الخ ﴾ که په يو کلي او ځنګل کښې درې کسان موجود دی او هغه په جماعت سره مونځ نه ادا کوی نو په هغوی باندې د شيطان غلبه وی، وړاندې په روايت کښې دی چه جماعت لازم اونيسئ ځکه چه ليوه هغه بيزه خوری، کومه چه د خپل کنډک او شپونکی نه لرې وی. ﴿ قال السائب : يعني بالجماعة الصلاة في الجماعة ﴾ سائب کوم چه د حديث راوی دې هغه فرمائی چه په حديث کښې د جماعت نه مراد د جماعت مونځ دې، دا تفسير په دې وجه چه بعض وخت د جماعت نه جماعت اهل حق په اعتبار د عقائدو مراد وی کوم چه په عقائدو کښې متفق وی، سائب وائی چه دلته په حديث کښې هغه مراد نه دې.

[٥٤٨] (۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ آمُرَ بِالصَّلَاةِ فَتُقَامَ، ثُمَّ آمُرَ رَجُلًا فَيُصَلِّيَ بِالنَّاسِ، ثُمَّ أَنْطَلِقَ مَعِي بِرِجَالٍ مَعَهُمْ حُزَمٌ مِنْ حَطَبٍ إِلَى قَوْمٍ لَا يَشْهَدُونَ الصَّلَاةَ، فَأُحَرِّقَ عَلَيْهِمْ بُيُوتَهُمْ بِالنَّارِ".

**ترجمه:** د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلی دی، وئيلی دی رسول الله ﷺ: يقيناً ما قصد وکړو چې امر وکړم په مونځ باندې او هغه ودرولی شي، بيا امر وکړم يو سړی ته چې مونځ وکړی خلقو ته، بيا بوځم د ځان سره سړی او د هغوی سره ګېډې وی د لرګو هغه قوم ته چې مانځه ته نه حاضريږي، چې وسوزوم د هغوی کورونه په اور باندې

**تشريح: قوله:** ﴿ لقد هممت ان امر بالصلاة فتقام الخ ﴾ فرمائی چه زه کله اراده کوم ددې خبرې چه د مونځ کولو حکم ورکړم يعنی خلقو ته اوايم چه تاسو په مسجد کښې مونځ کوئ او بيا د څو کسانو سره لرګی يوسم او د هغه خلقو کورونو ته اورسيږم کوم چه د مونځ دپاره مسجد ته نه راځی او بيا هغوی سره د اهل وعيال اوسيزم، دا د ترک جماعت په باره کښې سخت وعيد دې.

## د حديث نه د جماعت په فرضيت باندې استدلال او د هغې جواب

د دې نه بعض علماء کرامو د جماعت په فرضيت باندې استدلال کړې دې چه دومره لوئې وعيد صرف د ترک سنت په وجه باندې نه شی کيدې، او بعض علماء کرامو دا په منافقانو باندې محمول کړې دې ځکه چه وړاندې په حديث کښې راځی چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې به د جماعت د مونځ نه څوک هم روستو نه پاتې کيدو سوا د هغه سړی نه چه هغه به منافق وو او منافقت ئې ښکاره وی، بلکه د هغه زمانې د خلقو عام حال دا وو چه که يو سړې به د څه مرض وغيره د وجې نه مسجد ته په تلو باندې قادر نه وو نو د دوه کسانو په اوږو باندې ئې لاس اچولو او مسجد ته به ئې ځان رسولو، خو د بعض رواياتو نه

(۱): سنن ابن ماجه/المساجد ۱۷ (۷۹۱)، موطا امام مالك/صلاة الجماعة ۱ (۳)، (تحفة الأشراف: ۱۲۵۲۷)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأذان ۲۹ (٦٤٤)، ۳٤ (٦٥٧)، والخصومات ٥ (۲٤۲۰)، والأحكام ٥۲ (۷۲۲٤)، صحيح مسلم/المساجد ٤۲ (٦٥۱)، سنن الترمذي/الصلاة ٤۸ (۲۱۷)، سنن النسائي/الإمامة ٤۹ (۸٤۹)، مسند احمد (۲/۲٤٤، ۳۷٦، ٤۸۹، ٥۳۱)، سنن الدارمي/الصلاة ٥٤ (۱۳۱۰) (صحيح)

معلومیږي چه دا وعید د منافقانو سره خاص نه دې، ځکه چه په دې روایت کښې دي چه د هغه خلقو کورونه اوسیزم، کوم چه په کورونو کښې مونځ کوي، ظاهره ده چه منافق په کور کښې کله مونځ کوي هغوی که مونځ کولې نو په مسجد کښې به ئې کړې وې د خلقو د ښودنې دپاره، او یو جواب دا ورکړې شوې دې چه دا د زجر او توبیخ د قبیل نه دې په دې سره ویرول مقصود دي د کلام حقیقت مراد نه دې، او بعض وائي چه خپله دا حدیث په دې خبره باندې دلالت کوي چه جماعت واجب نه دې ځکه چه که د جماعت مونځ واجب وې نو د جماعت په پریخودلو باندې به د خلقو کورونو ته ولې تلو، خو دا خبره صحیح نه ده ځکه چه د احکاماتو تبلیغ او د هغې تکمیل د رسول الله ﷺ منصبي فرض وو او هم دغه شان به د هغه دا ورتلل د جماعت د معاملاتو د تکمیل دپاره وو، هسې هم هغه اراده داسې کړې ده چه څو کسان د ځان سره بوځي نو هر کله چه خلق ورسره وي نو بیا هغوی سره جماعت کولې شي، یو جواب دا هم کړې شوې دې چه هغه خو صرف اراده ظاهر کړې ده په هغې باندې عمل خو ئې نه دې کړې خو دا خبره کمزورې ده ځکه چه رسول الله ﷺ صرف د هغه کار اراده کولې شي چه په هغې باندې عمل کول هم جائز وي.

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه شارحینو لیکلې دي چه د دوه کسانو نه علاوه د یو مسلمان د مال او سامان سیزل جائز نه دي بلکه ددې په عدم جواز باندې اتفاق دې خو د دوو په باره کښې اختلاف دې، یو هغه کوم چه په دې حدیث کښې ذکر دې یعنی مستخلف عن الجماعة، دویم هغه چه د هغه ذکر په کتاب الجهاد کښې د مغانم د لاندې راځي یعنی غال (په مال غنیمت کښې غلول کونکې) خو د جمهورو په نزد په دې کښې هم تحریق متاع جائز نه دې البته امام احمد د تحریق متاع غال قائل دې، زه وائم چه د متخلف عن الجماعة په باره کښې د تحریق متاع د جواز قائل څوک دې؟ دا زما په علم کښې نشته.

[۵۴۹]( )حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو الْمَلِيحِ، حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ الْأَصَمِّ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ آمُرَ فِتْيَتِي فَيَجْمَعُوا حُزَمًا مِنْ حَطَبٍ، ثُمَّ آتِيَ قَوْمًا يُصَلُّونَ فِي بُيُوتِهِمْ لَيْسَتْ بِهِمْ عِلَّةٌ فَأُحَرِّقَهَا عَلَيْهِمْ"، قُلْتُ لِيَزِيدَ بْنِ الْأَصَمِّ: يَا أَبَا عَوْفٍ، الْجُمُعَةَ عَنَى أَوْ غَيْرَهَا، قَالَ: صُمَّتَا أُذُنَايَ إِنْ لَمْ أَكُنْ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَأْثُرُهُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مَا ذَكَرَ جُمُعَةً وَلَا غَيْرَهَا.

**ترجمه:** ابو هریرة رضي الله عنه به وئیل: چې وئیلی دی رسول الله ﷺ: بیشکه ما قصد وکړو چې امر وکړم خپلو ځوانانو ته چې راجمع کړی ګیډی د لرګو، بیا راشم داسې قوم ته چې مونځ کوی په کورونو کښې چې څه علت ورته نه وی او کورونه ئې وسوزوم، ما ووئیل: یزید بن الاصم ته: اې ابو عوف! جمعه ئې مراد وه او که عام جماعت؟ هغه ووئیل: کانړه دې شی زما غوږونه که ما نه وې اوریدلی د ابو هریرة نه چې نقل کړی ئې دی د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه، هغۀ نۀ جمعه ذکر کړې ده او نۀ غیر د جمعې نه.

**تشریح: قوله:** ﴿ یا ابا عوف الجمعة عنی او غیرها ﴾ دا وعید شدید اوریدلو سره شاګرد د استاد نه تپوس اوکړو چه ایا د جمعې مونځ مراد دې؟ په دې باندې ورته استاذ اووې چه ﴿ صمتا

( ): صحيح مسلم/المساجد ٤٢ (٦٥١)، سنن الترمذي/الطهارة ٤٨ (٢٧١)، (تحفة الأشراف: ١٤٨١٩) (صحيح)

اذناي الخ ﴾ چه زما غوږونه دې كاڼه شي كه ما په دې حديث كښې د مطلق مونځ ذكر نه وي اوريدلې يعنى ما د مطلق مونځ په باره كښې دا حديث اوريدلې دې زما استاذ د جمعې وغيره هيڅ تخصيص نه دې كړې، زه وايم خو د مسلم شريف په يو روايت كښې د جمعې قيد دې چه د هغې الفاظ دا دى : ﴿ انه قال لقوم يتخلفون عن الجمعة ﴾ امام نووي رحمه الله ددې په شرح كښې ليكى چه په بعض رواياتو كښې د ماسخوتن د مونځ ذكر دې او په بعض كښې د جمعې د مونځ او په بعض رواياتو كښې مطلق صلاة راغلې دې هغه فرمائى : وكله صحيح لا منافاة بين ذلك.

[٥٥٠](١) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبَّادٍ الْأَزْدِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الْمَسْعُودِيِّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْأَقْمَرِ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: "حَافِظُوا عَلَى هَؤُلَاءِ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ حَيْثُ يُنَادَى بِهِنَّ، فَإِنَّهُنَّ مِنْ سُنَنِ الْهُدَى، وَإِنَّ اللَّهَ شَرَعَ لِنَبِيِّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُنَنَ الْهُدَى، وَلَقَدْ رَأَيْتُنَا وَمَا يَتَخَلَّفُ عَنْهَا إِلَّا مُنَافِقٌ بَيِّنُ النِّفَاقِ، وَلَقَدْ رَأَيْتُنَا وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيُهَادَى بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ حَتَّى يُقَامَ فِي الصَّفِّ، وَمَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا وَلَهُ مَسْجِدٌ فِي بَيْتِهِ، وَلَوْ صَلَّيْتُمْ فِي بُيُوتِكُمْ وَتَرَكْتُمْ مَسَاجِدَكُمْ تَرَكْتُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَوْ تَرَكْتُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَكَفَرْتُمْ".

**ترجمه**: د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلى دي: تاسو حفاظت كوئ د دى مونځونو پنځو، كوم ځائې كښې چې ددې لپاره اذان كېږي، ځكه دا د سنتو د هدايت نه دي، او الله تعالى مشروع كړې دى د خپل نبي لپاره سنت د هدايت، او مونږ به ليدل چې نه به وروسته كيدلو ددې نه مګر ښكاره منافق، او مونږ به ليدل چې بيشكه يوسړى به راخكلى شو په مينځ د دوه سړو كښې تردې چې په مانځه كښې به ودرولى شو، او تاسو نه يو كس هم داسې نشته مګر د هغه مسجد ته وى په كور كښې، كه چرې تاسو مونځ شروع كړو په خپلو كورونو كښې او جماتونه مو پريخودل نو تاسو د نبي سنت پريخودل، او كه تاسو د نبي سنت پريخودل نو كافر به شئ.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ حافظوا على هؤلاء الصلوات الخمس حيث ينادى بهن ﴾ يعنى دا پنځه مونځونه په اهتمام سره هغه ځائې كښې كوئ چرته چه ددې دپاره اذان كولې شى او ظاهره ده چه اذان په مسجد كښې وركولې شى چه د مسجد جماعت ته خاص اهميت حاصل دي، وړاندې روايت كښې دى چه د جماعت مونځ د سنن هدى نه دي،

## سنن هدى او سنن زوائد

د سنن دوه قسمونه دى، سنن هدى، سنن زوائد، چه د كومو څيزونو صدور د هغه صلى الله عليه وسلم نه د عادت په طور وى هغې ته سنن زوائد وئيلې شى، او كوم كار چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د عبادت په طور اوكړل هغې ته سنن هدى وئيلې شى، هغې ته سنن هدى په دې وجه وئيلې شى چه ددې ترک ضلالت او ګمراهى ده په خلاف د اول قسم

(١): صحيح مسلم/المساجد ٤٤ (٦٥٤) بلفظ: «ضللتم»، سنن النسائي/الإمامة ٥٠ (٨٥٠)، (تحفة الأشراف: ٩٥٠٢)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المساجد والجماعات ١٤ (٧٨١)، مسند احمد (١/٣٨٢، ٤١٤) (صحيح)

**قوله:** ﴿ ولو تركتم سنة نبيكم صلى الله عليه وسلم لكفرتم ﴾ دا فرمائي چه که تاسو مونځونه د مسجد په ځائې په کورونو کښې کوئ نو د سنتو تارک به جوړ شئ او چه کله د سنتو تارک جوړ شئ نو کافر به شئ.

## حديث تاويل ته محتاج دی

يا خو داسې اوويلې شی چه د کفر نه مراد مطلق ضلالت او ګمراهی ده، لکه چه د مسلم په روايت کښې دی ﴿ لضللتم ﴾ او که د کفر نه مراد کفر واخستلې شی نو مراد به دا وی چه د ترک سنت په وبال کښې په قلاره قلاره نور سنتونه به هم پاتې کيږی او بيا ددې په نحوست سره واجبات او فرائض پاتې کيږی، او بيا وړاندې خطره ددې ده چه چرته بالکليه د اسلام نه بهر نه شی، حاصل ددې تاويل دا دې چه د کفر نه کفر بالفعل مراد نه دې بلکه بالقوة هم هغه کوم ته چه مفضی الی الکفر نه هم تعبير کولې شی، د صوفياء مقوله مشهوره ده ﴿ من تهاون بالاداب عوقب بحرمان السنن ومن تهاون بالسنن عوقب بحرمان الواجبات ومن تهاون بالواجبات عوقب بحرمان الفرائض ومن تهاون بالفرائض ﴾ د دې نه وړاندې څه دی؟ هغه ظاهر ده کوم چه په حديث کښې مذکور دی.

[٥٥١] ([1]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ أَبِي جَنَابٍ، عَنْ مَغْرَاءَ الْعَبْدِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ سَمِعَ الْمُنَادِيَ فَلَمْ يَمْنَعْهُ مِنِ اتِّبَاعِهِ عُذْرٌ، قَالُوا: وَمَا الْعُذْرُ؟ قَالَ: خَوْفٌ أَوْ مَرَضٌ، لَمْ تُقْبَلْ مِنْهُ الصَّلَاةُ الَّتِي صَلَّى"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى عَنْ مَغْرَاءَ أَبُو إِسْحَاقَ.

**ترجمه:** د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې هغه وئيلی دی، وئيلی دی رسول الله صلى الله عليه وسلم: چې واوريدلو اذان کونکی لره منع نه کړو هغه لره عذر. هغوی ووېل: عذر څه شی دی؟ هغه وفرمائيل: ويره او مرض، نو قبول به نه کړی شی د هغه نه مونځ هغه مونځ چې دی کړی دی. وئيلی دی ابوداود: روايت کړی دی د مغراء نه ابو اسحاق.

[٥٥٢] ([2]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ بَهْدَلَةَ، عَنْ أَبِي رَزِينٍ، عَنِ ابْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ، أَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي رَجُلٌ ضَرِيرُ الْبَصَرِ، شَاسِعُ الدَّارِ، وَلِي قَائِدٌ لَا يُلَائِمُنِي، فَهَلْ لِي رُخْصَةٌ أَنْ أُصَلِّيَ فِي بَيْتِي؟ قَالَ: هَلْ تَسْمَعُ النِّدَاءَ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: لَا أَجِدُ لَكَ رُخْصَةً".

**ترجمه:** د ابن ام مکتوم رضي الله عنه نه روايت دې، بيشکه هغه تپوس وکړو د نبی صلى الله عليه وسلم نه، هغه ووېل: اې د الله رسوله! بيشکه زه يو سړی يم ړوند کور مې لرې دی، او زما راهنما شته خو زما سره مناسب نه دی، نو ايا شته دی مالره رخصت چې زه مونځ وکړم په کور کې؟ هغه ورته وفرمائيل: ايا ته اذان اورې؟ هغه صلى الله عليه وسلم ووېل: آو، هغه ووېل: زه نه بيا موخم تالره رخصت.

**تشريح: قوله:** ﴿ عن ابن ام مكتوم انه سال النبی صلى الله عليه وسلم الخ ﴾ ابن ام مکتوم رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې عرض اوکړو چه زه نابينا يم او کور مې د مسجد نه په فاصله باندې دې او کوم چه زما قائد دې (لاس نيولو والا) هغه زما پوره پوره موافقت نه کوی، نو

[1]: سنن ابن ماجه/المساجد والجماعات ١٧ (٧٩٣)، (تحفة الأشراف: ٥٥٦٠) (صحيح)
[2]: سنن ابن ماجه/المساجد والجماعات ١٧ (٧٥٢)، (تحفة الأشراف: ١٠٧٨٨)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الإمامة ٥٠ (٨٥١)، مسند احمد (٣/٤٢٣) (حسن صحيح)

ايا زما دپاره ددې خبرې رخصت او اجازت شته چه زه مونځ په خپل کور کښې اوکړم، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ايا ته د اذان اواز اورې نو هغه عرض اوکړو چه او جي! رسول الله ﷺ اوفرمائيل بيا ستا دپاره هيڅ ګنجائش نشته.

## د اعمى دپاره د ترک جماعت اجازت

دلته يو اشکال دې او هغه دا چه عمى (ړوند والې) شرعا عذر دې کما فى قوله تعالى ﴿ ليس على الاعمى حرج ﴾ نو رسول الله ﷺ هغه ته اجازت ولې ورنکړو، حال دا چه يو بل صحابى چه د هغه نوم عتبان بن مالک دې هغه هم رسول الله ﷺ ته هم دا قسم عذرونه بيان کړې وو او په کور کښې ئې ترې د مونځ کولو اجازت طلب کړې وو او هغه ته رسول الله ﷺ اجازت ورکړې وو چه د هغه قصه په مسلم (ص ٢٣٣) کښې مذکور ده ددې ډير جوابونه ورکړې شوې دى. ١: دا واقعه د آيت عذر د نزول نه مخکښې ده.

٢: واقعة حال لا عموم لها د قبيل نه ده يعنى دا هم دې صحابى سره مخصوص ده.

٣: د رسول الله ﷺ مراد په نفى رخصت سره نفى جواز نه دې بلکه مقصود د احراز افضليت نفى ده، يعنى د هغه صحابى مقصود دا وو چه د خپلو عذرونو په وجه باندې د مسجد جماعت ترک کړم نو چونکه دا ترک کول د عذر په وجه باندې وو نو ايا په دې صورت کښې به بغير د جماعت نه د جماعت فضيلت حاصليږى يا نه، رسول الله ﷺ ورته انکار اوفرمائيلو، دا اخرى جواب امام نووى رحمه الله د مسلم په شرح کښې اختيار کړې دې.

هم دغه شان پوهه شه چه جماعت که فرض اومنلې شى کما عند الحنابلة او که سنت مؤکده کما عند الجمهور د دې ترک بغير د عذر نه د چا په نزد جائز نه دې، په اول قول باندې په ترک معصيت لازميږى کوم چه به د عذر د وجې نه ساقط شى او على القول الثانى د عذر د وجې نه به کراهت ساقط شى، خو د جماعت فضيلت او د هغې ثواب به ورته بهرحال نه حاصليږى، نقله ابن رسلان عن النووى.

خپله ابن رسلان دا ليکى چه که يو سړې هميشه په جماعت سره د مونځ کولو عادى وى او بيا د څه عذر د وجې نه او نه کړى شى نو هغه وخت هغه ته د جماعت ثواب حاصليدل پکار دى. والله اعلم

## الاعذار المسقطة للجماعة

هم دغه شان څان پوهه کړئ چه فقهاء کرامو دا عذرونه کوم چه مسقط جماعت دى شمار کړې دى[1] يو د هغې نه ړوند هم دې، په بذل کښې ليکى چه که د اعمى دپاره څوک قائد نه وى نو دا به بالاتفاق عذر وى، او که د هغه دپاره قائد وى نو په دې صورت کښې د امام صاحب او صاحبينو اختلاف دې، د امام صاحب په نزد په دې صورت کښې به هم عذر وى او د صاحبين په نزد نه دې.

[1] ) علامه شامى شل عذرونه شمار کړې دى او هغه ټول ئې په نظم کښې جمع کړې دى او حضرت شيخ دا نظم په حاشيه د لامع کښې نقل کړې دې)

[٥٥٣]()حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَبِي الزَّرْقَاءِ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَابِسٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ ابْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ، قَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ الْمَدِينَةَ كَثِيرَةُ الْهَوَامِّ وَالسِّبَاعِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَتَسْمَعُ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، فَحَيَّ: هَلًا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَا رَوَاهُ الْقَاسِمُ الْجَرْمِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، لَيْسَ فِي حَدِيثِهِ: حَيَّ هَلًا.

**ترجمه**: د ابن ام مكتوم نه روايت دي هغه وويل: اې د الله رسوله! بېشكه مدينه د ډېرو حشراتو ماتونكو ځناورو والا ده، وفرمائيل نبي ﷺ: ته اورې حي على الصلاة حي على الفلاح؟ نو رازه په جلتئ سره. وئيلي دي ابوداود: او همداسې روايت كړى دى قاسم الجرمي د سفيان نه د هغه په حديث كښې (حي هلا) الفاظ نشته دى.

## بَابٌ فِي فَضْلِ صَلَاةِ الْجَمَاعَةِ

### باب دې په بيان د فضيلت د جمعې په مونځ كې

[٥٥٤]()حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَصِيرٍ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا الصُّبْحَ، فَقَالَ: "أَشَاهِدٌ فُلَانٌ؟ قَالُوا: لَا، قَالَ: أَشَاهِدٌ فُلَانٌ؟ قَالُوا: لَا، قَالَ: إِنَّ هَاتَيْنِ الصَّلَاتَيْنِ أَثْقَلُ الصَّلَوَاتِ عَلَى الْمُنَافِقِينَ، وَلَوْ تَعْلَمُونَ مَا فِيهِمَا لَأَتَيْتُمُوهُمَا وَلَوْ حَبْوًا عَلَى الرُّكَبِ، وَإِنَّ الصَّفَّ الْأَوَّلَ عَلَى مِثْلِ صَفِّ الْمَلَائِكَةِ، وَلَوْ عَلِمْتُمْ مَا فَضِيلَتُهُ لَابْتَدَرْتُمُوهُ، وَإِنَّ صَلَاةَ الرَّجُلِ مَعَ الرَّجُلِ أَزْكَى مِنْ صَلَاتِهِ وَحْدَهُ، وَصَلَاتُهُ مَعَ الرَّجُلَيْنِ أَزْكَى مِنْ صَلَاتِهِ مَعَ الرَّجُلِ، وَمَا كَثُرَ فَهُوَ أَحَبُّ إِلَى اللَّهِ تَعَالَى".

**ترجمه**: د ابي بن كعب ؓ نه روايت دي، هغه وئيلي دي: مونځ وكړو مونږ ته رسول الله ﷺ يوه ورځ د سحر، نو هغه وويل: ايا فلانكى حاضر دى، هغوى وويل: نه، بيا هغه وويل: ايا فلانى حاضر دى، هغوى وويل: نه، هغه وفرمائيل: بېشكه دا دواړه مونځونه ډېر درانه مونځونه دي په منافقانو، او كه چيرې پوهيدئ تاسو په هغه څه چې په دې كښې دي نو تاسو به راتلل كړى وى دېته اګر كه په خاپوړو وى، او بېشكه اولنى صف پشان د صف د ملائكو دى كه چېرى تاسو ته پته وه د هغې د فضيلت نو تاسو به مخكښوالى كړى وى هغې ته، او بېشكه مونځ د سړى د سړى سره دا ډېر پاكېزه دى د مونځ د هغه نه يواځې، او مونځ د هغه د دوه سړو سره ډېر پاكيزه دى د مونځ د هغه نه د يو سړى سره، او هغه مونځ چې كسان پكې زيات وى الله ته ډېر غوره دى.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ ان هاتين الصلاتين ﴾ واقعه خو د سحر د مونځ ده خو رسول الله ﷺ د تثنيه صيغه استعمال اوفرمائيله، اوس په دې كښې دوه احتماله دى، يو دا چه ددې نه مراد د سحر او ماسخوتن مونځ دې، ځكه چه دا دواړه وختونه داسې دى كوم چه د خوب او غفلت دى، يو د خوب د ابتداء په وخت او يو د انتهاء نوم، او يا دا اووئيلې شي چه د صلاتين نه مراد د سحر د مونځ دوه ركعتونه دى، يا صلاة فجر او سنت فجر مراد دې، اول احتمال زيات ظاهر دې بلكه د صحيحين په يو روايت كښې د ماسخوتن او د سحر تصريح ده. ﴿ ولو تعلمون ما فيهما ﴾ د كلام د سياق تقاضه دا ده چه د خطاب په ځائې د غائب په صيغه

(): سنن النسائي/الإمامة ٥٠ (٨٥٢)، (تحفة الأشراف: ١٠٧٨٧) (صحيح)

(): سنن النسائي/الإمامة ٤٥ (٨٤٤)، ق الصلاة ١٧ (٧٩٠)، (تحفة الأشراف: ٣٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/١٣٩، ١٤١) (حسن)

﴿يعلمون﴾ سره وی، اوس یا خو دې دا اووئیلې شی چه منافقان خو مراد دی، ځکه چه کلام هم د هغوی په باره کښې دې، مومنین او مخاطبین لره شاملولو دپاره د خطاب صیغه راوړله، او یا دا اووئیلې شی چه په دې عدول عن الغيبة الى الخطاب کښې دې طرف ته اشاره ده چه د منافقانو نه ددې ځیز توقع کمه ده.

﴿ولو حبوا﴾ د ماشومانو په شان په ځړپوسو باندې تلل، یا په کناتو تولیدل لکه چه بعض وخت ماشوم داسې ځی، خو دلته دا دویمه معنی مراد نه ده ځکه چه وړاندې په حدیث کښې د ﴿على الركب﴾ قید دې. ﴿وان الصف الاول على مثل صف الملائكة﴾ د صف اول مرتبه او فضیلت بیانولې شی چه هغه د ملائکو د صف په شان دې لکه چه د ملائکو صف په اسمان کښې اوچتې مرتبې والا دې د قرب رحمان د وجې نه، هم دغه شان د انسانانو د مونځ اولنې صف دې، د امام د قرب په اعتبار سره ﴿وان صلاة الرجل مع الرجل ازكى من صلاته وحده﴾ ﴿ازكى﴾ يعنی اكثر ثوابا دا د زکاة نه ماخوذ دې په معنی د کثرت او زیادت، یعنی د یواځې مونځ کولو نه د هغه مونځ ثواب ډیر زیات دې کوم چه صرف یو سړی لره شاملولو سره اوکړې شی، او یو سره د کولو په مقابله کښې دوه سړو سره د کولو ثواب ددې نه زائد دې. وهكذا.

غرض دا دې چه تعداد څومره زیاتیږی هومره به افضلیت او ثواب زیات وی.

## په کثرت جماعت باندې د فضیلت زیادت

د جمهورو علماء کرامو رائې دا ده چه د جماعت په کثرت باندې ثواب زیاتیږی، خو علامه شعرانی په دې کښې د مالکیانو اختلاف لیکلې دې د هغوی په نزد د منفرد د مونځ په مقابله کښې چه د جماعت د مونځ کوم ثواب راغلې دې هغه به ورته په هر حال کښې ملاویږی، د جماعت کثرة او قلت ته په دې کښې هیڅ دخل نشته ځکه چه په حدیث کښې مطلق راغلې دی ﴿صلاة الرجل فى الجماعة تعدل خمسا وعشرين﴾ اوس که هغه جماعت کثیر وی یا قلیل وی، ابن رسلان د هغوی د طرف نه هم دا لیکلې دی، خو حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې لیکی چه په دې مسئله کښې د مالکیانو اختلاف کوم چه شارحینو لیکلې دې دا ماته د هغوی په کتابونو کښې ملاؤ نه شو، بلکه د مالکیانو په کتابونو کښې تصریح ده د کثرت جماعت په افضلیت باندې.

[٥٥٥](١)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي سَهْلٍ يَعْنِي عُثْمَانَ بْنَ حَكِيمٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي عَمْرَةَ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ صَلَّى الْعِشَاءَ فِي جَمَاعَةٍ، كَانَ كَقِيَامِ نِصْفِ لَيْلَةٍ، وَمَنْ صَلَّى الْعِشَاءَ وَالْفَجْرَ فِي جَمَاعَةٍ، كَانَ كَقِيَامِ لَيْلَةٍ".

**ترجمه:** د عثمان بن عفان رضي الله عنه روایت دې هغه ویلي، چې فرمائیلی دی رسول الله صلى الله عليه وسلم: چا چې د ماسخوتن مونځ په د جمعی سره وکړه داسې دی لکه قیام د نیمی شپې، او چا چې

(١): صحيح مسلم/المساجد ٤٦ (٦٥٦)، سنن الترمذي/الصلاة ٥١ (٢٢١)، (تحفة الأشراف: ٩٨٢٣)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/صلاة الجماعة ٢ (٧)، مسند احمد (٥٨/١، ٦٨) (صحيح)

مونځ وکړو د ماسخوتن او د سحر په جمع باندې داسې دی لکه قیام د ټولې شپې.

**تشریح: قوله:** ﴿ ومن صلی العشاء والفجر فی جماعة کان کقیام لیلة ﴾ هم دا لفظ د ترمذی په روایت کښې دې، یعنی کوم انسان چه د ماسخوتن مونځ په جماعت سره اوکړی نو هغه ته د نیمې شپې د قیام او عبادت ثواب ملاویږی، او څوک چه د ماسخوتن او سحر دواړو مونځونه په جماعت سره اوکړی نو هغه ته د پوره شپې د قیام ثواب ملاویږی په دې صورت کښې د دواړو مونځونو ثواب برابر شو، او د مسلم شریف د روایت الفاظ ددې نه لږ شان مختلف دی، په هغې کښې داسې دی چه ﴿ من صلی العشاء فی جماعة کان کقیام نصف لیلة ومن صلی الفجر فی جماعة کان کقیام لیلة ﴾

## شرح حدیث کښې دوه اقوال

په دې کښې په جمله ثانیه کښې صرف فجر مذکور دې چه په هغې کښې دوه احتماله دی چه د ماسخوتن او سحر دواړو مجموعه مراد وی، دویم دا چه ددې نه صرف د سحر مونځ مراد وی، په دې دویم صورت کښې د فجر د مونځ ثواب د ماسخوتن د مونځ په مقابله کښې دوچند کیږی، خو د ابوداود او ترمذی د روایت نه د اول احتمال تائید کیږی لهذا هم دا احتمال به راجح وی بلکه متعین، خو د امام ابن خزیمه رحمه الله رائې ددې په خلاف ده[1] هغه دویم احتمال اختیار کړې دې په دې وجه هغه د فجر دپاره مستقل ترجمه قائم کړې ده.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْمَشْيِ إِلَى الصَّلَاةِ

### باب دې په بیان د فضیلت د پیدل تلو کې مانځه ته

[٥٥٦](٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مِهْرَانَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْأَبْعَدُ فَالْأَبْعَدُ مِنَ الْمَسْجِدِ، أَعْظَمُ أَجْرًا".

**ترجمه:** ابو هریرة رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي، هغه فرمائیلی دي: ډېر لرې بیا وریسې لرې د جمات نه ډېر اوچت دی په اعتبار د اجر سره.

**تشریح: قوله:** ﴿ الابعد فالابعد من المسجد اعظم اجرا ﴾ یعنی د کوم سړی کور چه د مسجد نه څومره لرې وی، دومره به ئې ثواب زائد وی، ځکه چه وړاندې په حدیث کښې دی، مسجد ته تلونکی دپاره په هر قدم باندې یوه درجه اوچتیږی او یوه خطاء ئې معاف کیږی، او یو بل روایت کوم چه په مسلم او ترمذی وغیره کښې دې چه په هغې کښې دا دی ﴿ الا ادلکم علی ما یمحو الله به الخطایا ویرفع به الدرجات ﴾ او په دې کښې دی چه ﴿ وکثرة الخطاء الی المساجد ﴾ د دې دواړو احادیثو نه د مشی الی الصلاة فضیلت معلومیږی لکه چه مصنف ترجمه قائم کړې ده هم دغه شان یو بل حدیث مشهور دې چه یو خل قبیله بنو سلمه کوم چه د مدینې په اطرافو کښې اوسیدل د هغه ځائې نه منتقل کیدو سره د مسجد نبوی په قرب

---

[1] او د حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې دی چه ددې بالمقابل ابن عبدالبر بسنده عن عثمان دا مرفوع روایت نقل کړې دې: ﴿ صلاة العشاء فی جماعة تعدل قیام لیلة وصلاة الفجر فی جماعة تعدل قیام نصف لیلة ﴾ (ابن رسلان)

[2] تخریج: سنن ابن ماجه/المساجد والجماعات ١٥ (٧٨٢)، (تحفة الأشراف: ١٣٥٩٧)، وقد أخرجه: حم (٢/٣٥١، ٤٢٨) (صحیح)

کښې د سکونت اختيارولو اراده اوکړه نو هغه ﷺ اوفرمائيل ﴿الا تحتسبون اثاركم﴾ [1] دا لفظ خو د بخاری دي او د مسلم الفاظ دا دی ﴿دياركم تكتب اثاركم﴾ يعنی رسول الله ﷺ د منتقل کيدو نه منع کړل او مصلحت ئې دا بيان اوفرمائيلو چه د لرې راتلو په صورت کښې هغه فضيلت دې کوم چه د نزدې اوسيدو په صورت کښې نه دې حاصل، يعنی کثرة اقدام.

## ايا مسجد ته نزدې کور افضل دې يا لرې؟

خو ددې نه دا نه لازميږی چه د مسجد نه لرې کور دې افضل وی د نزدې نه، ځکه چه دا دواړه ځيزونه جدا جدا دی، په هر يو قدم باندې نيکی ملاويدل بيله خبره ده او د کور مسجد ته نزدې کيدل دا د هغه مکان دپاره موجب شرف دې پس په يو روايت کښې دی ﴿شؤم الدار بعده عن المسجد﴾ او هم دغه شان په جمع الفوائد کښې د مسند احمد يو روايت مرفوعه نقل دې ﴿فضل الدار القريبة من المسجد على الدار الشاسعة كفضل الغازى على القاعد﴾ اگر چه دا حديث ضعيف دې، حافظ ابن حجر د بنو سلمه والا حديث د لاندې ليکی چه ددې نه د ﴿سكنى بقرب المسجد﴾ استحباب معلوميږی خو که بل يو مصلحت يا عارض وی نو بيا جدا خبره ده، لکه چه د بنو سلمه په منتقل کيدو کښې دا مصلحت وو چه اطراف مدينه د ابادئ نه خالی نه شی او د مدينې حفاظت اوکړې شی هم په دې وجه باندې رسول الله ﷺ هغوی ته د مسجد خواته د راتلو مشوره ورنکړه، صحيح او تحقيقی خبره خو دا ده چه بعض علماء لکه ابن العماد وغيره محدثينو ددې احاديثو په وجه باندې دا وئيلې دی چه دار بعيده أفضل دې د دار قريبه نه

[۵۵۷] ([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ، أَنَّ أَبَا عُثْمَانَ حَدَّثَهُ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: "كَانَ رَجُلٌ لَا أَعْلَمُ أَحَدًا مِنَ النَّاسِ مِمَّنْ يُصَلِّي الْقِبْلَةَ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ أَبْعَدَ مَنْزِلًا مِنَ الْمَسْجِدِ مِنْ ذَلِكَ الرَّجُلِ وَكَانَ لَا تُخْطِئُهُ صَلَاةٌ فِي الْمَسْجِدِ، فَقُلْتُ: لَوِ اشْتَرَيْتَ حِمَارًا تَرْكَبُهُ فِي الرَّمْضَاءِ وَالظُّلْمَةِ، فَقَالَ: مَا أُحِبُّ أَنَّ مَنْزِلِي إِلَى جَنْبِ الْمَسْجِدِ، فَنُمِيَ الْحَدِيثُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَأَلَهُ عَنْ قَوْلِهِ ذَلِكَ، فَقَالَ: أَرَدْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنْ يُكْتَبَ لِي إِقْبَالِي إِلَى الْمَسْجِدِ وَرُجُوعِي إِلَى أَهْلِي إِذَا رَجَعْتُ، فَقَالَ: أَعْطَاكَ اللَّهُ ذَلِكَ كُلَّهُ، أَنْطَاكَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ مَا احْتَسَبْتَ كُلَّهُ أَجْمَعَ".

**ترجمه**: د ابی بن کعب رضی الله عنه نه روايت دې هغه وئيلی دي. وو يو سړی د خلقو نه چې د مدينې والا وو ماته پته نشته چې په مونځ کونکو کښې د هغه نه د چا کور لرې وی د مسجد نه، او وو چې نه فوت کيده د هغه نه مونځ د جماعت، نو ما وويل. که چېرته دې خر واخلی سورلې پرې کوی په گرمئ کښې او په تياره کښې، نو هغه سړی وويل. زه نه خوښوم چې زما کور دې د مسجد خواته شي، نو رسول الله ﷺ ته دا خبره ورسيده، نو تپوس ئې وکړو د هغه سړی نه د قول د هغه، هغه وويل زما اراده دا وه ای د الله رسوله! چې وليکل شی زما لپاره زما راتلل مسجد ته او زما تلل خپل اهل ته، هغه ﷺ وفرمائيل. الله دې درکړی تالره تول

[1]) امام بخاری په دې باندې باب ترلې دې احتساب الاثار)
[2]): صحيح مسلم/المساجد ۴۹ (۶۶۳)، سنن ابن ماجه/المساجد والجماعات ۱۶ (۷۸۳)، (تحفة الأشراف: ۶۴)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الصلاة ۶۰ (۱۳۲۱) (صحيح)

هغه چې ته ئې اجر حسابوي.
**تشریح: قوله:** ﴿عن ابی بن کعب قال : کان رجل لا اعلم احدا من الناس... ابعد منزلا من المسجد من ذلک الرجل الخ﴾ د حدیث مضمون دا دې چه سیدنا ابی بن کعب رضي الله عنه فرمائي چه په اهل مدینه کښې یو داسې سړې وو چه د هغه کور د مسجد نبوی نه په څومره فاصله باندې وو زما په علم کښې د چا کور هم دومره لرې نه وو، هغه به د خپل کور نه روزانه مسجد ته پیدل راتلو خو د هغې باوجود به د هغه نه یو جماعت هم نه فوت کیدلو (زه د هغه په حال خفه شوم) نو ما هغه ته اووې چه که ته یو خر واخلې چه په هغې باندې سوریدو سره د خپل کور نه مسجد ته څې راځې نو هغه زما خبره اوریدو سره اووې: ﴿ما احب ان منزلی الی جنب المسجد﴾ چه زما دا خبره خوښه نه ده چه زما کور د مسجد برابر دې، د هغه صحابی خو مطلب دا وو چه زما هم دا خوښه ده چه زه د مونځ دپاره د لرې نه راشم، خو ظاهره الفاظ د هغه موهم وو چه هغه د مسجد نبوی قرب نه غواړي. ﴿فنمی الحدیث الی رسول الله صلی الله علیه وسلم﴾ پس د هغه دا خبره رسول الله ﷺ ته اورسیده په دې باندې هغه صحابی لره راغوښتلو سره تپوس اوکړو چه تا دا خبره څنګه اوکړه په دې باندې هغه عرض اوکړو ﴿اردت یا رسول الله صلی الله علیه وسلم ان یکتب لی اقبالی الی المسجد ورجوعی الی اهلی﴾ یا رسول الله ﷺ زه غواړم چه زما دا قدمونه د مسجد پورې او بیا په واپسئ باندې د مسجد نه تر کوره پورې اولیکلې شی، په دې باندې رسول الله ﷺ ډیر خوشحاله شو او وې فرمائیل: الله پاک دې تاته ستا د نیت او امید موافق پوره پوره اجر او ثواب درکړی.

## په حدیث الباب کښې یو نوې خبره

د هغه صحابی د کلام نه معلومیږی چه د هغه ذهن بلکه په نیت کښې دا وه چه هغوی ته مسجد ته د تلو او د هغه ځائې نه د کور طرف ته واپس کیدو دواړو ثواب په هر قدم باندې ملاؤ شی، هغه ﷺ د هغوی دپاره دعا اوفرمائیله چه الله پاک دې تا ته ستا د نیت مطابق پوره پوره اجر درکړی لهذا د هغه صحابی په حق کښې خو دا متعین دې چه ان شاء الله هغوی ته مسجد ته د تلو راتلو، د دواړو ثواب به ورته ملاویږی، خو ددې سلسلې د احادیث نه صراحة صرف مسجد ته د تلو ثواب معلومیږی د واپسئ نه، البته د غازی په باره کښې راځی ﴿قفلة کغزوة﴾.

## د بخاری د ترجمة الباب توجیه

حضرت شیخ یوه خاص خبره اوفرمائیله هغه دا چه امام بخاری رحمه الله هم د خپل ترجمة الباب نه د ابوداود دې حدیث طرف ته اشاره اوفرمائیله هغه په داسې طور چه امام بخاری رحمه الله یو ترجمه قائم کړه "باب من خرج الی المسجد وراح" حال دا چه ددې باب د لاندې هغه حدیث راوړې دې په دې کښې لفظ ﴿خرج﴾ نشته بلکه داسې ده ﴿من غدا الی المسجد او راح﴾ خو دلته دا سوال پیدا کیږی چه امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب لفظ ولې بدلوې، په دې باندې حافظ فرمائی چه امام بخاری اشاره اوکړه ددې خبرې طرف ته چه په حدیث کښې

لفظ ﴿ غدا ﴾ نه مراد مطلق ذهاب او خروج دې، په سحر كښې تلل مراد نه دی، او د ﴿ راح ﴾ نه مراد رجوع ده، لهذا د امام بخاری په ترجمه كښې مسجد طرف ته تلل او د مسجد نه واپسی دواړه مراد دی.

په دې باندې حضرت شيخ اوفرمائيل چه ګويا د امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب نه د ابوداود دې حديث د ابی بن كعب رضي الله عنه طرف ته اشاره كړې ده چه په هغې كښې تلل او راتلل دواړه مذكور دی. والله تعالى اعلم

[۵۵۸](¹)حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ، حَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ بْنُ حُمَيْدٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ الْحَارِثِ، عَنِ الْقَاسِمِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ خَرَجَ مِنْ بَيْتِهِ مُتَطَهِّرًا إِلَى صَلَاةٍ مَكْتُوبَةٍ فَأَجْرُهُ كَأَجْرِ الْحَاجِّ الْمُحْرِمِ، وَمَنْ خَرَجَ إِلَى تَسْبِيحِ الضُّحَى لَا يَنْصِبُهُ إِلَّا إِيَّاهُ فَأَجْرُهُ كَأَجْرِ الْمُعْتَمِرِ، وَصَلَاةٌ عَلَى أَثَرِ صَلَاةٍ لَا لَغْوَ بَيْنَهُمَا كِتَابٌ فِي عِلِّيِّينَ".

**ترجمه:** د ابو امامة رضي الله عنه نه روايت دې بيشكه رسول الله صلى الله عليه وسلم ويلى دي: څوک چې ووتلو د خپل كور نه په حالت د اودس كښې فرض مونځ ته د هغه اجر پشان د اجر د محرم حاجى دی، او هغه څوک چې ووتلو نفلو د ځاښت ته نه وی ستړی كړی هغه لره مګر هم دې، نو د هغه اجر پشان د اجر د عمرې والا دی، او مونځ كول وروسته د بل مونځ نه چې په مينځ كښې ئې لغوه اوبې هوده كار نه وی كړی نو دا ليكلې شی په عليين كښې.

**تشريح: قوله:**﴿ من خرج من بيته متطهرا الى صلاة مكتوبة فاجره كاجر الحاج المحرم ﴾ كوم سړې چه د خپل كور نه اودس كولو سره د فرض مونځ دپاره مسجد ته لاړ شی نو ددې ثواب د هغه سړی ثواب برابر دې كوم چه د كور نه احرام تړلو سره د حج دپاره لاړو، احرام د صحة حج دپاره هم دغه شان شرط دې لكه چه طهارت د مونځ دپاره شرط دې، د تقابل تقاضه دا ده چه د محرم نه مراد محرم من دويرة اهله وی.

## ذكر ما يستفاد من الحديث

د دې حديث نه دوه خبرې معلومې شوې، يو دا چه د كور نه اودس كولو سره د مونځ دپاره تلل د فضيلت سبب دې، بله خبره دا معلومه شوه چه تقديم الاحرام افضل دې په ميقات باندې احرام تړلو سره، دا دويمه مسئله مختلف فيه ده، دظاهريه په نزد تقديم الاحرام على المواقيت بالكل جائز نه دې، او د ائمه اربعه په نزد جائز دې، خو په افضليت كښې اختلاف دې، د احنافو او شوافعو په نزد تقديم افضل دې او د مالكيانو او حنابله په نزد د ميقات نه احرام تړل دا فعل تسهيلا للامة وو، هسې د امام شافعی په دې كښې دوه قوله دی خو په ترجيح كښې اختلاف دې، رافعی د تقديم قول ته ترجيح وركړې ده، او امام نووی د عدم تقديم قول ته، وړاندې په حديث كښې د صلاة الضحى فضيلت ذكر شوې دې او دا چه د هغې ثواب د عمرې برابر دې، صلاة الضحى زيات نه زيات سنت دې لهذا دا وئيلې كيدې شی چه په دې حديث كښې اشاره ده د عمرې د سنت كيدو طرف ته، مسئله

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٨٩٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢٦٣، ٢٦٨) (حسن)

اختلافي ده، د امام شافعي او امام احمد په نزد عمره واجب ده او د امام مالک په نزد سنت، د احنافو په دې کښې دوه قوله دي وجوب او سنتيت.

**قوله:**﴿ وصلاة على اثر صلاة لا لغوبينهما كتاب في عليين ﴾ د يو مونځ نه روستو بل مونځ داسې کول چه د دواړو ترمينځه څه لغو حرکت قول يا فعل نه وی، د الله پاک په نزد مقبول دې په عليين کښې ليکلې شی.

## شرح حديث

د عليين نه مراد د نيکو اعمالو دفتر دې چه په هغې کښې د ابرار او صالحينو اعمال ليکلې شی، د صاحب منهل د کلام نه معلوميږی چه مکتوب في عليين کيدل د بل مونځ په باره کښې وئيلې شی يعنی د کوم مونځ په باره کښې چه دوه صفات اوموندلې شی، اول دا چه هغه على اثر الصلاة وی، دويم دا چه په مينځ کښې ئې څه لغو کار نه وی، خو زه وائم چه دا د دواړو مونځونو په باره کښې وئيلې شی، چه کوم سړې دوه مونځونه په داسې طريقه اوکړی چه د هغې ترمينځه څه لغو حرکت اونکړی نو دا دواړه مونځونه د الله پاک په نزد مقبول دی.

د دې نه معلومه شوه چه د عمل صالح نه روستو او د هغې نه هم مخکښې لغو حرکت او معصيت نه احتراز ددې عمل صالح په حق کښې باعث قبول او موجب حفاظت دې.

[۵۵۹] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُومُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَلَاةُ الرَّجُلِ فِي جَمَاعَةٍ تَزِيدُ عَلَى صَلَاتِهِ فِي بَيْتِهِ، وَصَلَاتِهِ فِي سُوقِهِ خَمْسًا وَعِشْرِينَ دَرَجَةً، وَذَلِكَ بِأَنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ وَأَتَى الْمَسْجِدَ لَا يُرِيدُ إِلَّا الصَّلَاةَ وَلَا يَنْهَزُهُ إِلَّا الصَّلَاةُ، لَمْ يَخْطُ خُطْوَةً إِلَّا رُفِعَ لَهُ بِهَا دَرَجَةٌ وَحُطَّ عَنْهُ بِهَا خَطِيئَةٌ حَتَّى يَدْخُلَ الْمَسْجِدَ، فَإِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ كَانَ فِي صَلَاةٍ مَا كَانَتِ الصَّلَاةُ هِيَ تَحْبِسُهُ، وَالْمَلَائِكَةُ يُصَلُّونَ عَلَى أَحَدِكُمْ مَا دَامَ فِي مَجْلِسِهِ الَّذِي صَلَّى فِيهِ، وَيَقُولُونَ: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ، اللَّهُمَّ ارْحَمْهُ، اللَّهُمَّ تُبْ عَلَيْهِ، مَا لَمْ يُؤْذِ فِيهِ أَوْ يُحْدِثْ فِيهِ".

**ترجمه:** د ابو هريرة ﷛ نه روايت دې هغه وئيلی دی، چې فرمائيلی دی رسول الله ﷺ: د سړی مونځ د جمعی سره زياتيږی د هغه په مونځ باندې چې په کور کښې وی او په بازار کښې وی په پنځه وېشت درجو، او دا ځکه چې بيشکه يو کس ستاسو نه کله چې اودس وکړی او ښائسته اودس وکړی او مسجد ته راشی اراده ئې نه وی مګر مونځ، او نه وی رااوچت کړی ده لره مګر مونځ، نه اخلی يو قدم مګر اوچتوی ده لره په هغې يوه درجه او لرې کوی د هغه نه يوه ګناه، تردې چې مسجد ته داخل شی کله چې مسجد ته داخل شی نو دا په مانځه کښې حساب دی، ترکومه چې مانځه دا بند کړی وي، او ملائکی د رحمت دعاګانی کوی يو کس ستاسو ته تر کومه چې په هغه مجلس کښې وی په کوم کی ئې چې

---

(۱): صحيح مسلم/المساجد ۴۹ (۶۴۹)، سنن الترمذي/الصلاة ۴۷ (۳۳۰)، سنن النسائي/الإمامة ۴۲ (۸۳۹)، سنن ابن ماجه/المساجد ۱۶ (۷۸۶)، موطا امام مالك/صلاة الجماعة ۱ (۱، ۲)، (تحفة الأشراف: ۱۲۵۰۲)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلاة ۸۷ (۴۷۷)، مسند احمد (۲/۲۵۲، ۲۶۴، ۲۶۶، ۲۷۳، ۳۲۸، ۳۹۶، ۴۵۴، ۴۷۳، ۴۷۵، ۴۸۵، ۴۸۶، ۵۲۰، ۵۲۵، ۵۲۹)، سنن الدارمي/الصلاة ۵۶ (۱۳۱۲، ۱۳۱۳) (صحيح)

مونځ کړی دی، او وايي: اې الله ته ورته بخښنه وکړې، ای الله ته وربانديې رحم وکړې، ای الله ته ئې توبه قبوله کړه، ترکومه چې ئې چاته ضرر نه وی رسولی او يا ئې اودس نه وی مات شوی.

**تشريح: قوله:** ﴿ صلاة الرجل في جماعة تزيد[1] على صلاته في بيته وصلاته في سوقه ﴾ په دې حديث کښې د جماعت د مونځ فضيلت بيان کړې شوې دې د منفرد په مونځ باندې، چه کوم مونځ په کور يا بازار کښې اوکړی شی، د جماعت په مونځ کښې ددې نه پنځويشت چنده ثواب لري، د صلاة في السوق په تفسير کښې اختلاف دې، د اکثر شارحينو رائې دا ده چه ددې نه هغه مونځ مراد دې کوم چه په بازار کښې منفردا اوکړی شی، او ابن التين کوم چه په مشهور شارحينو کښې دې هغه وائی چه ددې نه د بازار د جماعت والا مونځ مراد دې ﴿ لان السوق ماوی الشياطين كما جاء في الحديث ﴾، خو امام نووی رحمه الله دا خبره رد کړې ده.

**فائده:** د جماعت فضيلت د مسجد سره خاص دې يا عام ﴿ ولو صلى في بيته؟ ﴾ حضرت شيخ په حاشيه د بذل کښې ليکلې دی چه په کبيری شرح منيه کښې دی چه که فرض مونځ جماعت سره په کور کښې اوکړی نو د جماعت ثواب خو به حاصل شی خو د مسجد فضيلت حاصل نه شو، او در مختار او طحطاوی على المراقی کښې دی چه جماعت سنت مؤکده دې او وراندې تلو سره ليکی. ﴿ في مسجد او في غيره ﴾ (چه د هغې نه په ظاهره معلومه شوه چه د مسجد نه خارج جماعت کولو سره سنت ادا کيږي) خو د حافظ ابن حجر ميلان په فتح الباري کښې دې طرف ته دې چه تضعيف مذكور في الحديث د مسجد سره خاص دې.

﴿ وذلک بان احدكم اذا توضا فاحسن الوضوء واتى المسجد الخ ﴾ يعنی دا ثواب مذکور په دې وجه ملاويږي چه کله په تاسو کښې يو سړې اودس اوکړی او په ښه طريقه اودس کوی او د اودس کولو نه پس بيا مسجد ته اورسيږی حال دا چه د هغه اراده د مونځ نه علاوه نوره هيڅ نه وی ﴿ ولا ينهزه الا الصلاة ﴾ او هغه ئې صرف د مونځ دپاره اودرولې وو نو دا سې سړې چه کوم قدم هم اوچتوی مسجد طرف ته نو ددې په ذريعه د هغه يوه درجه اوچتولې شی او يوه خطاء معاف کولې شی.

## شرح حديث کښې دوه اقوال

ځان پوهه کړئ چه په دې حديث کښې د جماعت د مونځ په باره کښې دوه څيزونه مذکور دی، په شروع حديث کښې يعنی پنځويشت درجې ثواب ملاويدل، او په اخر حديث کښې يعنی په هر قدم باندې ئې درجه اوچتيږی او د خطاء معاف کيدل، د بخاری بعض شارحين چه په هغوی کښې علامه کرمانی هم دې او هم دغه شان حضرت گنگوهی هم د هغوی رائې دا ده چه دا چه په اخر حديث کښې قيدونه ذکر کړې شوې دی، د کور نه اودس کولو سره

[1] په بعض رواياتو کښې لفظ د تعدل دې چه د هغې معنی برابر ده او په بعض کښې تزيد او تضاعف راغلې دې، بعض شارحينو تول په يوه معنی باندې محمول کړې دې او بعض د تضاعف معنی دا ليکلې ده چه د جماعت د مونځ ثواب پنځويشت کرته پورې ﴿ المضاعف ﴾ يعنی دوچند کيږی نو په دې صورت کښې د يو مونځ ثواب درې کروړه او پنځه ديرش لاکهه څلور پنځوس زره څلور سوه او دوه ديرش کيږی.

وتل وغيره وغيره ددې تعلق د هغه ثواب سره دې کوم چه د حديث په اخر کښې ذکر شوې دې او هغه ثواب کوم چه په اول حديث کښې ذکر شوې دې هغه مطلق دې ددې قيدونو ددې سره هيڅ تعلق نشته، لهذا ددې حضراتو په نزد ﴿ وذلک بان ﴾ کښې حرف باء د الصاق دپاره ده سببيه نه ده، او ددې بالمقابل د بعض شارحينو رائې دا ده چه دا باء سببيه ده او ددې تعلق د ماقبل سره دې او مطلب دا دې چه په اول حديث کښې چه کوم ثواب ذکر شوې دې هغه ددې قيدونو سره مقيد دې لهذا که دا قيود بيا موندلې شي نو بيا خو به تضعيف مذکور حاصل وی ګينې نه، زما په خيال اول قول زيات صحيح دې او ددې قيدونو تعلق صرف د هغه ثواب سره دې کوم چه د حديث په اخر کښې ذکر کړې شوې دې ځکه چه اکثر په احاديثو کښې پنځويشت چنده ثواب سره دا قيدونه نه دی ذکر شوی.

## د جماعت د ثواب په باره کښې د رواياتو اختلاف

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه د جماعت د ثواب په باره کښې روايات په دوه قسمه دی، اکثر په رواياتو کښې ﴿ بخمس وعشرين درجة ﴾ مذکور دې او حديث د ابن عمر کوم چه بخاری روايت کړې دې په هغې کښې ﴿ بسبع وعشرين درجة ﴾ ذکر شوې دې، جمع بين الروايتين مختلف طور کړې شوې ده. ۱: ذکر القليل لا ينفی الکثير... يا داسې اوايئ چه مفهوم العدد غير معتبر. ۲: چونکه د الله پاک انعام او فضل په دې امت باندې زيات دې په دې وجه رسول الله ﷺ ته په شروع کښې د پنځويشت درجاتو علم ورکړې شو نو رسول الله ﷺ د هغې خبر ورکړو، او روستو ورته د اويشتو درجاتو علم اوشو نو امت ته ئې د هغې خبر ورکړو. ۳: دا په اجر کښې د کمی او زيادت اختلاف د مونځ کونکو يا د هغوی د مونځ د احوالو په اختلاف باندې محمول دې يعنی د بعض مصلين په حق کښې پنځويشت او د بعض په حق کښې اويشت درجې ثواب دې د خشوع او خضوع د کمی او زيادت د وجې نه، يا د مونځونو د اختلاف د وجې نه، يعنی په بعض مونځونو کښې لکه مازيګر، سحر يا ماسخوتن او په سحر يا جهری مونځونو کښې اويشت درجې ثواب دې او په باقی کښې پنځويشت درجې دې، دا درې جوابونه امام نووی رحمه الله ذکر فرمائيلې دی او حافظ ابن حجر تقريبا لس وجوه جمع بيان کړې دی يو د هغې نه دا دې چه دا اختلاف د مسجد د قرب او بعد په اعتبار سره دې، يا د مسجد او خارج مسجد د وجې نه، او يا به دا فرق محمول کولې شی منتظر صلاة او غير منتظر صلاة باندې، يا مسبوق او مدرک باندې، يا کثرت جماعت او قلت جماعت باندې، او راجح د حفاظو په نزد دا ده چه دا فرق دې محمول کړې شی په جهريه او سريه باندې.

[٥٦٠] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ هِلَالِ بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الصَّلَاةُ فِي جَمَاعَةٍ تَعْدِلُ خَمْسًا وَعِشْرِينَ صَلَاةً، فَإِذَا صَلَّاهَا فِي فَلَاةٍ فَأَتَمَّ رُكُوعَهَا وَسُجُودَهَا بَلَغَتْ خَمْسِينَ صَلَاةً"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ فِي هَذَا الْحَدِيثِ:

١): سنن ابن ماجه/المساجد ١٦ (٧٨٨)، مسند احمد (٥٥/٣) (كلهم إلى قوله: «خمسا وعشرين صلاة»)، (تحفة الأشراف: ٤١٥٧)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأذان ٣٠ (٦٤٦) (صحيح)

صَلَاةُ الرَّجُلِ فِي الْفَلَاةِ تُضَاعَفُ عَلَى صَلَاتِهِ فِي الْجَمَاعَةِ، وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

**ترجمه**: د ابو سعيد الخدري رضي الله عنه نه روايت دې، هغه وئيلى دي، چې فرمائيلى دی رسول الله ﷺ د جمعې مونځ برابربرې د څانله پنځه ويشت مونځونو سره، کله چې وکړی هغې لره په دشته کښې پوره ئې کړه رکوع او سجده د هغې نو هغه رسېږې پنځوسو مونځونو ته. وئيلي دی ابوداود: وئيلي دی عبد الواحد بن زياد په دی حديث کښې: مونځ د سړی په دشته کښې دوچند کېږی د هغه په مونځ باندې د جمعې سره. او بيان ئې کړو حديث.

**تشريح**: **قوله**:﴿ فَإِذَا صَلَّاهَا فِي فَلَاةٍ فَأَتَمَّ رُكُوعَهَا وَسُجُودَهَا بَلَغَتْ خَمْسِينَ صَلَاةً ﴾ د حديث مضمون دا دې چه د جماعت يو مونځ د پنځوس مونځونو برابر دې.

## مضمون حديث

او څوک چه مونځ په ځنګل کښې اوکړی په ښه طريقې سره رکوع او سجده کولو سره نو د هغه مونځ د پنځوس مونځونو برابر دې، په دې جزء ثانی يعنی اختلاف فی الفلاة کښې دواړه احتمالات دی، منفردا کوی يا جماعة، بعض شارحين دې طرف ته تلي دی او بعض هغه طرف ته، د حضرت سهارنپوری ميلان د منفردا کولو طرف ته دې، چه کوم سړې په ځنګل کښې چه د خوف او دهشت ځائې وی يواځې د مونځ فريضې لره د اتمام رکوع وسجود په اهتمام سره اوکړی نو هغه ته به د پنځوس مونځونو ثواب ملاوېږی، ګويا د ځنګل دا مونځ د جماعت د مونځ نه هم زيات شو. ﴿ قال ابوداود : صلاة الرجل فی الفلاة تضاعف علی صلاته فی الجماعة ﴾ په دې کښې اشاره ده دې خبرې طرف ته چه د صلاة فی فلاة نه مراد منفردا کول دی، د تقابل تقاضه هم دا ده.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَشْيِ إِلَى الصَّلَاةِ فِي الظُّلَمِ[1]

### باب دې په بيان د تلوکې ما نخه ته په تياره کې

[۵۶۱]([2]) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عُبَيْدَةَ الْحَدَّادُ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ أَبُو سُلَيْمَانَ الْكَحَّالُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَوْسٍ، عَنْ بُرَيْدَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "بَشِّرِ الْمَشَّائِينَ فِي الظُّلَمِ إِلَى الْمَسَاجِدِ بِالنُّورِ التَّامِّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ".

**ترجمه**: بريدة رضي الله عنه د نبی ﷺ نه روايت کوی هغه وئيلی دي: زيری ورکړه تلونکو ته په تياره کښې مسجد ته په پوره نور سره په ورځ د قيامت کښې.

**تشريح**: (الدر المنضود کښې او بعض درسی نسخو کښې دلته د باب دا عنوان موجود نه دې بلکه دا حديث په باب سابق کښې ذکر کړې شوې دې. ابو عمار عبد المالک)

**قوله**:﴿ بشر المشائين فی الظلم الخ ﴾ په تيرو کښې د مسجد طرف ته په کثرت سره تلونکو ته د قيامت په ورځ باندې د کامل نور زيرې ورکړه، د اعمالو بدله د الله پاک د طرف نه د

---

[1] په بعضو نسخوکښې دلته د باب عنوان نشته اوپه دې باب کښې موجوده حديث ئې ماقبل باب کښې ذکر کړې دې، ليکن د بيروت په نسخه کښې دلته باب موجود دې په دې وجه اوليکلې شو.

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ۵۳ (۲۲۳)، (تحفة الأشراف: ۱۹۴۶) (صحيح)

هغه اعمالو مناسب وي، پس په تياره كښې د مسجدونو طرف ته د تلونكو بدله په رڼړا سره وركړې شوه.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْهَدْيِ فِي الْمَشْيِ إِلَى الصَّلَاةِ

### باب دې په بيان د هغې كې چې راغلى دى په ارام سره تلوكې مانځه ته

مسجد طرف ته د مونځ دپاره تلل چونكه عبادت دې په دې وجه هغه هم په يو خاص انداز سره كيدل پكار دى په سكون او وقار سره، په هغې كښې يو داسې هيئت اختيارول كوم چه په غفلت او بې توجه كيدو باندې دلالت اوكړى مناسب نه ده مثلا مانځه ته د تلو په وخت تشبيک كول، د يو لاس ګوتې د بل لاس په ګوتو كښې ننباسل، دا يو فضول او لغو حركت دې، هم په دې وجه ترې حديث كښې منع كړې شوې ده.

[٥٦٢]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، أَنَّ عَبْدَ الْمَلِكِ بْنَ عَمْرٍو حَدَّثَهُمْ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ قَيْسٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي سَعْدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، حَدَّثَنِي أَبُو ثُمَامَةَ الْحَنَّاطُ، أَنَّ كَعْبَ بْنَ عُجْرَةَ أَدْرَكَهُ وَهُوَ يُرِيدُ الْمَسْجِدَ، أَدْرَكَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ، قَالَ: فَوَجَدَنِي وَأَنَا مُشَبِّكٌ بِيَدَيَّ فَنَهَانِي عَنْ ذَلِكَ، وَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا تَوَضَّأَ أَحَدُكُمْ فَأَحْسَنَ وُضُوءَهُ، ثُمَّ خَرَجَ عَامِدًا إِلَى الْمَسْجِدِ فَلَا يُشَبِّكَنَّ يَدَيْهِ فَإِنَّهُ فِي صَلَاةٍ".

**ترجمه**: حديث بيان كړې دې مونږ ته ثمامة الحناط بيشكه كعب بن عجرة بيامونډلو هغه لره او هغه روان وو مسجد ته، بيامونډلو يو د دواړو ملګرى خپل، هغه وايې: زه ئې بيامونډلم چې خپل د لاسونو ګوتې يو بل كښې سره وركړې وې، نو زه ئې منع كړم د دغې نه، او ويې وئيل: بيشكه رسول الله ﷺ ويلي دي: كله چې اودس كوى يو ستاسو نه ښائسته اودس وكړى بيا اوځى قصد كونكى مسجد ته نو تشبيک دې نه كوى د لاسونو خپلو، بيشكه دا د مانځه په حالت كښې دې.

## د تشبيک په حكم كښې اختلاف

**قوله**:﴿ ثم خرج عامدا الى المسجد فلا يشبكن يديه ﴾ د تشبيک په حكم كښې اختلاف دې، د بعض صحابه او تابعين لكه ابن عمر رضي الله عنه او سالم رحمه الله په نزد مطلقا جائز دې تردې چه د مونځ په حالت كښې هم، او د امام مالک او ابراهيم نخعي په نزد كراهت خاص دې د مونځ د حالت سره، او د جمهور علماء او ائمه ثلاثه په نزد كراهت د صلاة سره مختص نه دې، بلكه د ﴿ من يمشي الى الصلاة ﴾ او منتظر الصلاة ټولو په حق كښې مكروه دې، البته د كراهت درجات متفاوت دى، خاص د صلاة په حالت كښې به كراهت شديد وى، او كوم سړې چه په مسجد كښې ناست منتظر صلاة دې د هغه په حق كښې به كراهت ددې نه كم وى، او څوک چه د مونځ دپاره مسجد ته روان دې د هغه په حق كښې به كراهت نور هم كم وى.

اول خو تشبيک فعل عبث دې او مونځ كونكى لره د فعل عبث نه ځان ساتل پكار دى، دويم دا چه علماء كرامو دا هم ليكلي دى چه دا د تشبيک كيفيت اختلاف او مناقشه لره مشعر دې.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١١١٩)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ١٦٧ (٣٨٦)، مسند احمد (٤/٢٤١)، سنن الدارمي/الصلاة ١٢١ (١٤٤٤) (صحيح)

[۵۶۳]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُعَاذِ بْنِ عَبَّادٍ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ مَعْبَدِ بْنِ هُرْمُزَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، قَالَ: حَضَرَ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ الْمَوْتُ، فَقَالَ: إِنِّي مُحَدِّثُكُمْ حَدِيثًا مَا أُحَدِّثُكُمُوهُ إِلَّا احْتِسَابًا، سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا تَوَضَّأَ أَحَدُكُمْ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الصَّلَاةِ لَمْ يَرْفَعْ قَدَمَهُ الْيُمْنَى، إِلَّا كَتَبَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ لَهُ حَسَنَةً، وَلَمْ يَضَعْ قَدَمَهُ الْيُسْرَى، إِلَّا حَطَّ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ عَنْهُ سَيِّئَةً، فَلْيُقَرِّبْ أَحَدُكُمْ أَوْ لِيُبَعِّدْ، فَإِنْ أَتَى الْمَسْجِدَ فَصَلَّى فِي جَمَاعَةٍ غُفِرَ لَهُ، فَإِنْ أَتَى الْمَسْجِدَ وَقَدْ صَلَّوْا بَعْضًا وَبَقِيَ بَعْضٌ صَلَّى مَا أَدْرَكَ وَأَتَمَّ مَا بَقِيَ كَانَ كَذَلِكَ، فَإِنْ أَتَى الْمَسْجِدَ وَقَدْ صَلَّوْا فَأَتَمَّ الصَّلَاةَ كَانَ كَذَلِكَ".

**ترجمه**: د سعيد بن المسيب نه روايت دي هغه وئيلي دي چې راغي مرګ يو سړي ته د انصارو نه، هغه ووېل: زه تاسو ته بيانوم يو حديث، تاسو ته ئي نه بيانوم مګر د وجي د ثواب حسابولو نه، ما اوريدلي دی د رسول الله ﷺ نه هغه به وئيل: کله چې اودس وکړي يو ستاسو نه ښائسته اودس وکړي، بيا اوځي مانځه ته نه اوچتوی خپله ښي خپه مګر ليکي ورله الله پاک يوه نيکي، او نه ږدي چپه خپه مګر کموی الله عز وجل د هغه يوه ګناه، نو که نزدې وی يو کس ستاسو نه او يا لرې وی، که چرې راشي جمات ته مونځ وکړی د جمعې سره نو بخښنه وشي هغه ته، که چرې راشي جمات ته او خلقو بعضې مونځ کړی وی او بعضي پاتې وی نو کوم ئي چې ګير کړو هغه وکړی او پوره کړی باقې، نو همدغسي به وي، که چرې جمات ته راغي او خلقو مونځ کړې وو نو پوره ئي کړو مونځ نو همدغسي به وي (يعني بخښنه به ئي اوشي).

**تشريح**: **قوله**:﴿ فليقرب احدكم او ليعد ﴾ يا خو د قدمونو په باره کښې وئيلې شی چه تاسو ته اختيار دې، که نزدې نزدې يئ ږدئ يا لرې لرې، ظاهره ده چه د نزدې نزدې کيخودلو په صورت کښې به قدمونه واړه وی او په تعداد کښې به زيات وی، او د لرې کيخودلو په صورت کښې به د هغې په تعداد کښې کمې راځی چه هغې سره به په ثواب کښې هم نقصان وی نو ګويا د تقريب اقدام ترغيب ورکول مقصود دی تخيير مقصود نه دې، او دويم مطلب ددې حديث دا هم کيدې شی چه اشاره ده دار قريبه او دار بعيده طرف ته، که غواړې نو دا اختيار کړه يا هغه، د دار قريبه او بعيده د افضليت بحث اوس نزدې تير شوې دې.

**قوله**:﴿ فان اتى المسجد وقد صلوا الخ ﴾ د حديث حاصل دا دې چه کوم سړې د کور نه په اهتمام سره په اودس کښې اوځی نو په هر ښی قدم باندې يوه نيکی او ګس قدم باندې د يوې ګناه معافی کولې شی، بيا که مسجد ته رسيدو سره جماعت سره مونځ ادا کړی نو ددې مغفرت کولې شی او که پوره مونځ ورته په جماعت سره ملاؤ نه شو بلکه مسبوق شو يا ئې تول بغير د جماعت نه اوکړو نو بيا به هم ورته اجر ملاويږی، په ظاهره دا په هغه صورت کښې ده کومه چه په حديث کښې مذکور ده چه انسان د کور نه په اهتمام سره په اودس کښې اوځی او اراده ئې صرف د مونځ وی او اتفاقی مونځ شوې وی. والله تعالى اعلم

چه هر کله په حديث کښې راغلل چه په دې صورت کښې ورته الله پاک د جماعت ثواب ورکوی نو بيا په دې کښې تامل او شک نه دې پکار، علامه سندی هم د نسائی په

(): تفرد به أبو داود،(تحفة الأشراف: ۱۵۵۸۳) (صحيح)

حاشیه باندې دا خبره لیکلې ده او دا چه څوک ددې خلاف وائی هغه معتبر نه ده، وړاندې په مستقل باب کښې دا مضمون راروان دې.

## بَابُ فِيمَنْ خَرَجَ يُرِيدُ الصَّلَاةَ فَسُبِقَ بِهَا

### باب دې په بیان د هغه چا کې چې اراده لرې د مونځ او د هغه څه حصه فوت شوه

[٥٦٤]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ مُحَمَّدٍ يَعْنِي ابْنَ طَحْلَاءَ، عَنْ مُحْصِنِ بْنِ عَلِيٍّ، عَنْ عَوْفِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ وُضُوءَهُ ثُمَّ رَاحَ فَوَجَدَ النَّاسَ قَدْ صَلَّوْا، أَعْطَاهُ اللَّهُ جَلَّ وَعَزَّ مِثْلَ أَجْرِ مَنْ صَلَّاهَا وَحَضَرَهَا لَا يَنْقُصُ ذَلِكَ مِنْ أَجْرِهِمْ شَيْئًا".

**ترجمه**: د ابو هریرة رضی الله عنه نه روایت دې هغه ویلې، چې فرمائیلی دی رسول الله ﷺ چا چې اودس وکړو او ښائسته اودس ئې وکړو، بیا لاړلو بیا ئې موندل خلک چې مونځ ئې کړی دی وربه کړی ورته الله تعالی پشان د اجر د هغه چا چې مونځ ته حاضر شوی دی او نه به کموی دا کار د دوی د اجر نه هیڅ شی.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي خُرُوجِ النِّسَاءِ إِلَى الْمَسْجِدِ

### باب دې په بیان د تلو د ښځوکې مسجد ته

[٥٦٥]([2]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَمْنَعُوا إِمَاءَ اللَّهِ مَسَاجِدَ اللَّهِ، وَلَكِنْ لِيَخْرُجْنَ وَهُنَّ تَفِلَاتٌ".

**ترجمه**: د ابو هریرة رضی الله عنه نه روایت دې بیشکه رسول الله ﷺ ویلی دي: تاسو مه منع کوئ بندګاني د الله د جماتونو د الله نه، لکن ودې وځي او دوی دې پټې وی په پړونو کښې.

**تشریح**: **قوله**: ﴿ ولكن ليخرجن وهن تفلات ﴾ یعنی زنانه مسجد ته د مونځ دپاره تلې شی خو هغوی له پکار دی چه په داسې حال کښې لاړې شی چه هغوی ساده حالت کښې وی ډول او زینت کښې دې نه وي، د رسول الله ﷺ په زمانه کښې زنانه د مانځه دپاره مسجد ته تلې د رسول الله ﷺ د طرف نه اجازت وو، خو هغه د خیر زمانه وه روستو فقهاء کرامو دا د څو قیودو سره مقید کړې دې. ۱: بشرط عدم الاختلاط بين الرجال والنساء، ۲: عدم التزيين، ۳: عدم التطيب ۴: عدم خوف الفتنة (نووی). خپله سیده عائشه رضی الله عنها فرمائی لکه چه وړاندې په متن کښې راځی چه که رسول الله ﷺ د زنانو موجوده حالت لیدلې وې نو هغوی به ئې د مسجد نه منع کړې وې.

### په مسئلة الباب کښې د ائمه کرامو مذاهب

بهرحال د ائمه ثلاثه په نزد اوس مسئله دا ده چه د هغوی په نزد خروج د عجائز (بوډۍ زنانه) سره خاص دې د ځوانې په حق کښې مکروه دې او د حنابله په نزد اعتبار خائیست او بدرنګ والی لره دې. پس د هغوی په نزد د جمیله خروج د مونځ دپاره مکروه او د غیر

[1]: سنن النسائي/الإمامة ٥٢ (٨٥٦)، (تحفة الأشراف: ١٤٢٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٨٠) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٠١٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٤٣٨، ٤٧٥)، سنن الدارمي/الصلاة ٥٧ (١٣١٥) (حسن صحيح)

جميله دپاره جائز دي، بيا د عجوز دپاره جواز د صاحبين په نزد خو په ټولو مونځونو کښې دې، او د امام صاحب په نزد صرف د ورځې په مونځونو ماسپخين او مازيګر کښې دې او په صلوات ليليه کښې د عجوز دپاره هم اجازت نشته.

[٥٦٦](١)حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَمْنَعُوا إِمَاءَ اللَّهِ مَسَاجِدَ اللَّهِ".

**ترجمه:** د ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلي دي، چې فرمائيلي دي رسول الله ﷺ: تاسو مه منع کوئ بندګاني د الله د جماتونو د الله نه.

[٥٦٧](٢)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا الْعَوَّامُ بْنُ حَوْشَبٍ، حَدَّثَنِي حَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَمْنَعُوا نِسَاءَكُمُ الْمَسَاجِدَ وَبُيُوتُهُنَّ خَيْرٌ لَهُنَّ".

**ترجمه:** د ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دې هغه وايي، چې فرمائيلي دي رسول الله ﷺ: تاسو مه منع کوئ خپلې زنانه د جماتونو نه، او کورونه د دوی ډير غوره دي دوی لره (چه په خپلو کورونو کښې مونځ اوکړي).

[٥٦٨](٣)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، وَأَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ائْذَنُوا لِلنِّسَاءِ إِلَى الْمَسَاجِدِ بِاللَّيْلِ، فَقَالَ ابْنٌ لَهُ: وَاللَّهِ لَا نَأْذَنُ لَهُنَّ فَيَتَّخِذْنَهُ دَغَلًا، وَاللَّهِ لَا نَأْذَنُ لَهُنَّ، قَالَ: فَسَبَّهُ وَغَضِبَ، وَقَالَ: أَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ائْذَنُوا لَهُنَّ، وَتَقُولُ: لَا نَأْذَنُ لَهُنَّ".

**ترجمه:** عبد الله بن عمر رضي الله عنه وئيلي دي، چې رسول الله ﷺ ويلي دي: اجازت وکړئ ښځو ته جماتونو ته دشپې. نو وويل يو ځوی هغه ته: قسم په الله مونږ به اجازت نه ورکوو دوی ته، دوی به جوړه کړي دا بهانه، قسم په الله مونږ به اجازت نه کوو هغوی ته، هغه وايي: بدې ردې ئې ورته اووئيلې او غصه شو، او ويې وئيل: زه وايم چې وئيلي دي رسول الله ﷺ: چې اجازت ورته وکړئ، او ته وايې چې اجازت ورته نه کوو.

**تشريح: قوله:** ﴿ فقال ابن له ﴾ د هغه نوم بلال دې يا واقد، لکه چه د مسلم شريف په روايت کښې دي ﴿ فيتخذنه دغلا ﴾ هغه به دا د فساد ذريعه جوړوی، د خوئې په کلام کښې چونکه صورة د حديث معارضه بيا موندلې شوه په دې وجه ابن عمر رضي الله عنه د هغوی نه دومره ناراضه شو، د مسند احمد په روايت کښې دي ﴿ فما کلمه عبد الله حتى مات ﴾ دغل هغه کورې اونې ته وئيلې شي چه په هغې کښې غل ډاکو پټ کيني.

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٥٨٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجمعة ١٦٦ (٩٠٠)، والنكاح ١١٦ (٥٢٣٨)، صحيح مسلم/الصلاة ٣٠ (٤٤٢)، سنن النسائي/المساجد ١٥ (٧٠٥)، سنن ابن ماجه/المقدمة ٢ (١٦)، موطا امام مالك/القبلة ٦ (١٢)، مسند احمد (١٦/٢، ٣٦، ٤٣، ٣٩، ٩٠، ١٢٧، ١٤٠، ١٤٣، ١٤٥، ١٥١)، سنن الدارمي/الصلاة ٥٧ (١٣١٤) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٦٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٧٦/٢) (صحيح)

(٣): صحيح البخاري/الجمعة ١٣(٨٩٩)، صحيح مسلم/الصلاة ٣٠(٤٤٢)، سنن الترمذي/الصلاة ٤٨ (٥٧٠)، (تحفة الأشراف: ٧٣٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦/٢، ٤٣، ٤٩، ٩٨، ١٢٧، ١٤٣، ١٤٥) (صحيح)

## بَابُ التَّشْدِيدِ فِي ذَلِكَ

### باب دې په بيان د تشديد (سختي کولو) په دغې کې

[۵۶۹] (¹) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُ، أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: "لَوْ أَدْرَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَحْدَثَ النِّسَاءُ، لَمَنَعَهُنَّ الْمَسْجِدَ كَمَا مُنِعَهُ نِسَاءُ بَنِي إِسْرَائِيلَ"، قَالَ يَحْيَى: فَقُلْتُ لِعَمْرَةَ: أَمُنِعَهُ نِسَاءُ بَنِي إِسْرَائِيلَ؟ قَالَتْ: نَعَمْ.

**ترجمه**: عائشې چې د نبي ﷺ بي بي ده هغې ويلي دي: که چرې موندلي وی رسول الله ﷺ هغه چې جوړ کړی دی ښځو نو دوی به ئې د مسجد نه منع کړې وې لکه څنګه چې ښځې د بني اسرائيلو منع کړی شوې وې. وئيلي دی يحيی: ما وويل عمره ته: آيا منع کړې شوې وې ښځې د بني اسرائيلو لره؟ هغې وويل: او.

[۵۷۰] (²) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، أَنَّ عَمْرَو بْنَ عَاصِمٍ حَدَّثَهُمْ، قَالَ: حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ مُوَرِّقٍ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "صَلَاةُ الْمَرْأَةِ فِي بَيْتِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي حُجْرَتِهَا، وَصَلَاتُهَا فِي مَخْدَعِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي بَيْتِهَا".

**ترجمه**: عبد الله بن مسعود رضي الله عنه روايت کوی د نبي ﷺ نه هغه فرمائيلي دي: مونځ د ښځې په کوټه کښې ډېر غوره دی د مونځ د هغې نه په حجره د هغې کښې، او مونځ د هغې په هغه پټ ځائې د هغې کښې ډېر غوره دی د مونځ د هغې نه په کوټه د هغې کښې.

**تشريح**: (په الدر المنضود کښې او په بعض درسی نسخو کښې دلته د باب دا عنوان موجود نه دې بلکه دا احاديث په باب سابق کښې ذکر کړې شوې دي. ابو عمار عبدالمالک)

**قوله**: ﴿ صلاة المرأة فی بيتها افضل الخ ﴾ د زنانه مونځ کول د کمرې په کوټ کښې غوره دی د کمرې په انګتړ کښې د کولو نه، او وړه کوټه کښې لوستل غوره دی په لويه کوټه کښې د کولو نه، مخدع په لويه کمره کښې دننه چه کومه مختصر شان کمره وی چه په هغې کښې د کور قيمتي څيزونه ږدی.

[۵۷۱] (³) حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ تَرَكْنَا هَذَا الْبَابَ لِلنِّسَاءِ"، قَالَ نَافِعٌ: فَلَمْ يَدْخُلْ مِنْهُ ابْنُ عُمَرَ حَتَّى مَاتَ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَاهُ إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: قَالَ عُمَرُ: وَهَذَا أَصَحُّ.

**ترجمه**: د ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې هغه وايي چې وئيلي دی رسول الله ﷺ: ښه به وو که چرې مونږ دا دروازه ښځو لپاره پريخودې وی. وئيلي دی نافع: ابن عمر داخل نه شو د هغې نه تردې چې مړ شو. وئيلي دی ابوداود: نقل کړی دی دې لره اسماعيل بن ابراهيم د ايوب او هغه د نافع نه، هغه وئيلي دي: وويل عمر: او هم دا صحيح ده.

---

¹): صحيح البخاري/الأذان ۱۶۳ (۸۶۹)، صحيح مسلم/الصلاة ۳۰ (۴۴۵)، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۳۴)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/القبلة ۶ (۱۵)، مسند احمد (۹۱/۶، ۱۹۳، ۲۳۵، ۲۳۲) (صحيح)

²): سنن الترمذي/الرضاع ۱۸ (۱۱۷۳ ببعضه)، (تحفة الأشراف: ۹۵۲۹) (صحيح)

³): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۵۸۸) (صحيح)

# باب السَّعْيِ إِلَى الصَّلَاةِ

## باب دې په بيان د كوشش كې ما نځه ته

[۵۷۲]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ، وَأَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَلَا تَأْتُوهَا تَسْعَوْنَ وَأْتُوهَا تَمْشُونَ وَعَلَيْكُمُ السَّكِينَةُ، فَمَا أَدْرَكْتُمْ فَصَلُّوا وَمَا فَاتَكُمْ فَأَتِمُّوا"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: كَذَا قَالَ الزُّبَيْدِيُّ، وَابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، وَمَعْمَرٌ، وَشُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ: وَمَا فَاتَكُمْ فَأَتِمُّوا، وَقَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ: عَنِ الزُّهْرِيِّ، وَحْدَهُ، فَاقْضُوا، وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو: عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَجَعْفَرُ بْنُ رَبِيعَةَ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، فَأَتِمُّوا، وَابْنُ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبُو قَتَادَةَ، وَأَنَسٌ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كُلُّهُمْ، قَالُوا: فَأَتِمُّوا.

**ترجمه:** بيشكه ابوهريرة رضي الله عنه وئيلي دي، چې ما اوريدلي دي د رسول الله ﷺ نه، هغه به وئيل: كله چې ودريږي مونځ تاسو په جلتئ سره مه راځي، تاسو راشئ چې تاسو عادي روان ئي، او په تاسو باندې اطمينان لازم دي كوم مونځ چې مو بيامونډلو هغه وكړئ او كوم مونځ چې درنه فوت شو نو هغه پوره كړئ. وئيلي دي ابوداود: همداسې وئيلي دي زبيدي او ابن ابی ذئب او ابراهيم بن سعد او معمر او شعيب بن ابی حمزة د زهري نه، او هغه چې فوت شو د تاسو نه نو هغه پوره كړئ، او وئيلي دي ابن عيينة يواځې د زهري نه (فاقضوا) پوره كړئ، او وئيلي دي محمد بن عمرو د ابو سلمة نه او هغه د ابو هريرة او جعفر بن ربيعة نه، او هغوی د اعرج نه او هغه د ابو هريرة نه (فأتموا) پوره كړئ، او ابن مسعود د نبی ﷺ نه، او ابو قتادة او انس د نبی ﷺ نه ټولو وئيلي دی (فأتموا) پوره كړئ.

**تشريح: قوله:** ﴿ اذا اقيمت الصلاة فلا تاتوها تسعون الخ ﴾ چه كله مونځ اودريږي نو تاسو د هغې طرف ته منډې مه وهئ، بلكه سكون او وقار سره راځئ، ددې وجه په دويم حديث كښې بيان شوې ده چه د مونځ طرف ته تلونكې د مانځه په حكم كښې دې، لهذا منډه وهل فضول دی، او هم دغه شان د مسجد د احترام هم خلاف دی، په دې حديث كښې د سعی ممانعت دې، د سعی معنی د عمل او كوشش هم راځی. ﴿ فاسعوا الى ذكر الله وذروا البيع، وان ليس للانسان الا ما سعى ﴾ دا معنی دلته نه ده مراد، د سعی معنی د منډې وهلو هم راځی ﴿ وجاء رجل من اقصى المدينة يسعى ﴾ هم ددې نفی دلته مقصود ده. كه جماعت اودريدلو نو څه به كوی په دې كښې درې اقوال دی كوم چه امام ترمذی بيان كړې دی

۱: په قلاره منډه پكار دی خو دا قول د حديث خلاف دې ۲: يسرع المشي، تيز رفتار دې ځی د وقار رعايت كولو سره. ۳: بغير د اسراع نه دې په اطمينان سره په خپل عام چال ځی، په دې كښې راجح دويم قول دې چه په هغې كښې د جانبين رعايت دې

(): صحيح مسلم/المساجد ۲۸ (۶۰۲)، (تحفة الأشراف: ۱۳۳۷۱، ۱۵۳۲۳)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجمعة ۱۸ (۹۰۸)، سنن الترمذي/الصلاة ۱۳۲ (۳۲۷)، سنن ابن ماجه/المساجد ۱۴ (۷۷۵)، موطا امام مالك/الصلاة ۱(۴)، مسند احمد (۲/۲۷۰، ۲۸۲، ۳۱۸، ۳۸۷، ۴۲۷، ۴۵۲، ۴۶۰، ۴۷۳، ۴۸۹، ۵۲۹، ۵۳۲، ۵۳۳)، سنن الدارمي/الصلاة ۵۹ (۱۳۱۹) (حسن صحيح)

﴿ فما ادركتم فصلوا وما فاتكم فاتموا ﴾ څومره مونځ چه د امام سره ملاؤ شي هغه د امام سره اوکړه او چه کومه حصه د مونځ فوت شي هغه روستو پوره کړئ.

﴿ قال ابوداود كذا قال الزبيدى الخ ﴾ د زهري نه روايت کونکي ډير دي اکثرو ﴿فاتموا﴾ وئيلي دي او ابن عيينه ﴿ فاقضوا ﴾ وئيلي دي، دا خو په ظاهره صرف لفظي اختلاف دي خو في الواقع يو اهم فقهي اختلاف په دې باندې متفرع دې.

## مسبوق امام سره اول مونځ رالاندې کوي که اخر

هغه دا چه مسبوق چه کوم مونځ د امام سره کوي هغه د هغه اول مونځ دې يا اخري، يعني د امام خو ظاهر دې اخر صلاة دې اوس دده د تابع کيدو په حيثيت سره د مسبوق هم اخري مونځ دې يا د هغه اول صلاة دې.

د امام شافعي او امام احمد په نزد دا د هغه اول مونځ دې، د امام ابوحنيفه او امام ابويوسف په نزد اخر مونځ دې، د اختلاف ثمره به دا وي چه که د امام سره په څلورو کښې دوه رکعتونه ملاؤ شوې دي نو د امام شافعي او احمد په نزد دا سړې د امام د فارغ کيدو نه پس چه کوم دوه رکعتونه کوي په هغې کښې به صرف سورة فاتحه لولي ځکه چه د هغه دا شفعه اخيره ده چه په هغې کښې سورت نه شي ضم کولې، او د شيخين (ابوحنيفه وابويوسف) په نزد به په دې دواړو رکعتونو کښې قرأت کامله يعني فاتحه سره سورت ضم کوي ځکه چه دا د هغه شفعه اولي ده.

د امام شافعي رحمه الله استدلال د ﴿ فاتموا ﴾ نه دې، د اتمام تعلق د ما بقي سره وي يا داسې اوايه چه د څيز اتمام د هغې په اخر کښې وي، معلومه شوه چه ددې سړي د مونځ اخري حصه پاتې شوه، او د شيخينو استدلال د ﴿ فاقضوا ﴾ نه دې د قضاء تعلق د ﴿ ما سبق وما مضى ﴾ سره دې، معلومه شوه چه د هغه د مونځ د شروع حصه پاتې شوې ده، اخري حصه مونځ خو هغه د امام سره اوکړو د امام د فارغ کيدو نه پس اوس به هغه د خپلې شروع مونځ کوي، او په شفعه اولي کښې قرأت مکمل کيږي، دريم قول دلته د امام مالک او امام محمد دې، هغه فرمائي چه په افعالو کښې به اتمام وي او په قرأت کښې قضاء، اوس ددې دپاره يو مثال داسې پکار دې چه په هغې کښې درې واړه مذاهب مخې ته راشي هغه دا دې چه د يو سړي نه د امام سره صرف يو رکعت ملاؤ شو، اوس دا سړې د امام د فارغ کيدو نه پس، د شوافعو او حنابله په نزد يو رکعت کولو نه پس د تشهد دپاره قعده کوي او صرف هم په دې رکعت کښې به قرأت پوره کوي د هغه سړي اولنۍ شفعه پوره شوه، اوس دا سړې به په باقي دوه رکعتونو کښې صرف فاتحه لولي، او د شيخين په نزد به دا سړې مسلسل دوه رکعتونه کولو نه پس کيني او په دواړو کښې به قرأت کامله کوي، او د امام مالک او امام محمد رحمه الله په نزد د اتمام والو پشان به يو رکعت کولو نه پس کيني چه په هغې کښې به قرأت پوره کيږي او د هغې نه په روستو رکعت کښې به هم قرأت کامله کوي ځنګه چه د شيخينو په نزد کوي.

زمونږ عمل هم په دې قول باندې دې مفتي به قول هم دا دې، دا اختلاف مذاهب په

بذل المجهود کښې د علامه عینی په حوالې سره هم دغه شان ذکر کړې شوې دی، خو ابن قدامه چه په مغنی کښې کوم مذاهب ذکر کړي دی هغه ددې نه لږ شان مختلف دی. (افاده الشیخ فی الاوجز)

[۵۷۳]()حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "ائْتُوا الصَّلَاةَ وَعَلَيْكُمُ السَّكِينَةُ فَصَلُّوا مَا أَدْرَكْتُمْ وَاقْضُوا مَا سَبَقَكُمْ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَكَذَا قَالَ ابْنُ سِيرِينَ: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَلْيَقْضِ، وَكَذَا قَالَ أَبُو رَافِعٍ: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبُو ذَرٍّ رَوَى عَنْهُ، فَأَتِمُّوا وَاقْضُوا، وَاخْتُلِفَ عَنْهُ.

**ترجمه:** ابو هریرة رضی الله عنه روایت کوی د رسول الله ﷺ نه هغه فرمائیلی دي: راشئ مانځه ته په داسې حال کښې چې تاسو ته وقار وي، نو وکړئ هغه مو چې بیاموندلو او پوره کړئ هغه چې درنه تیر شوی دی. وئیلی دی ابوداود: او همداسې روایت کړې دې ابن سیرین د ابو هریرة نه (و لیقض) او همدارنګه وئیلی دی ابو رافع: روایت دې د ابوهریرة نه، او د ابوذر نه (فأتموا، واقضُوا) دواړه نقل دی او اختلاف شوې دې دهغه نه (یعنی د ابوذر دطرفه په دې لفظ کښې اختلاف شوې دې).

# بَابٌ فِي الْجَمْعِ فِي الْمَسْجِدِ مَرَّتَيْنِ

**باب دې په بیان د جمع کې په مسجد کې دوه ځل**

دا باب د تکرار جماعت فی المسجد په باره کښې دې.

## په جماعت ثانیه فی المسجد کښې اختلاف علماء

مسئله مختلف فیه ده، د امام احمد او اسحاق بن راهویه په نزد جائز دې، د جمهور علماء او ائمه ثلاثه باقیه په نزد مکروه دې. (ذکره الشعرانی فی المیزان ومثله فی العینی) امام ترمذی هم، د امام احمد او امام اسحاق د جواز مذهب او د امام شافعي او امام مالک مسلک د عدم تکرار جماعت لیکلې دې خو دا کراهت د محلې په مسجد کښې دې چه په هغې کښې امام او مؤذن مقرر وی په مسجد شارع کښې بالاتفاق جائز دې، هم دغه شان زمونږ بعض فقهاء کرامو لیکلي دی چه کراهة په هغه صورت کښې دې چه کله باقاعده اذان او اقامت سره جماعت ثانیه اوکړې شی او بغیر د اذان او اقامت نه جائز دې خو صحیح او مفتی به قول زمونږ په نزد دلته مطلقا کراهت دې، د حضرت اقدس ګنګوهی رحمه الله په دې مسئله باندې یو مستقل تالیف دې په فارسئ کښې، القطوف الدانیة فی تحقیق الجماعة الثانیة. د هغې بعض اهل حدیثو رد هم لیکلې دې.

[۵۷۴]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنْ سُلَيْمَانَ الْأَسْوَدِ، عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبْصَرَ رَجُلًا يُصَلِّي وَحْدَهُ، فَقَالَ: "أَلَا رَجُلٌ يَتَصَدَّقُ عَلَى هَذَا فَيُصَلِّيَ مَعَهُ".

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۴۹۵۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۳۸۲، ۳۸۶) (صحیح)

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ۵۰ (۲۲۰)، (تحفة الأشراف: ۴۲۵۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۶۴، ۸۵)، سنن الدارمي/الصلاة ۹۸ (۱۴۰۸) (صحیح)

**ترجمه**: د ابو سعيد الخدري رضي الله عنه نه روايت دې، بيشکه رسول الله ﷺ وليدلو يو سړی چې مونځ ئې کولو يواځې، نو هغه وفرمائيل: ايا نشته يو سړی چې صدقه وکړی په ده باندې، چې مونځ وکړی د هغه سره

**تشريح**: **قوله**:﴿ عن ابی سعيد الخدری ان رسول الله صلی الله عليه وسلم الخ ﴾ يو سړې رسول الله ﷺ اوليدو چه هغه په مسجد کښې يواځې مونځ کولو، جماعت شوې وو، نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په تاسو کښې څوک داسې شته چه په دې سړی باندې صدقه اوکړی يعنی د هغه په ثواب کښې اضافه اوکړی؟ د ترمذی په روايت کښې دی چه ﴿ فقام رجل فصلی معه ﴾ او په مصنف ابن ابی شيبة کښې دی چه هغه سړې چا چه د هغه سره مونځ کړې وو ابوبکر صديق رضي الله عنه وو.

## د حديث الباب نه استدلال او د هغې جواب

د مجوزينو استدلال ددې حديث نه دې، زمونږ د طرف نه دا جواب ورکړې شوې دې چه په دې کښې جماعت ثانيه د فرض مونځ والا چرته موندلې شوې دې په دې کښې فرض مونځ کونکې خو صرف يو سړې دې، دويم سړې متنفل دې ددې نه علاوه دويمه خبره دا ده چه د احاديثو په ذخيره کښې د جماعت ثانيه په سلسله کښې صرف دا يوه واقعه ملاويږی، حال دا چه په دې کښې عموم بلوی ده، مسجد نبوی مرکزی مسجد وو هلته راتلونکی په کثرت سره راتلل، سرايا او لښکرې به د خپلو سفرونو نه واپس راتلې، که جماعت ثانيه جائز يا مستحب وې نو يقينا ډير په کثرت سره به دې ته ضرورت راتلو او دلته صرف يو روايت دې هغه هم داسې چه په دعوی باندې منطبق کيږی نه، بلکه دا چه که د جماعت ثانيه دروازه پرانستلې شی نو يقينا دا به د تقليل جماعت باعث وی، او جماعت کوم چه د شعائر اسلام نه دې چه په هغې کښې د مسلمانانو اجتماع مقصود ده هغه به فوت شی، خلق به په مونځ کښې سستی کول شروع کړی، په خپلو خپلو کارونو کښې به اولګی ځکه چه په ذهن کښې په ئې دا وی چه خپل جماعت به ځانله اوکړی.

د رسول الله ﷺ نه جماعت ثانيه د مسجد نه خارج ثابت دې، روايت مشهور دې په بذل المجهود کښې مذکور دې [1] په دې باندې اهل حديث اشکالات کوی کوم چه د جولا د جالې نه هم زيات کمزوری دی په تحفة الاحوذی شرح ترمذی کښې ذکر دی.

## بَابٌ فِيمَنْ صَلَّى فِي مَنْزِلِهِ ثُمَّ أَدْرَكَ الْجَمَاعَةَ يُصَلِّي مَعَهُمْ

**باب دې په بيان د هغه چا کښې چې مونځ وکړي په کور کښې بيا مونځې جمع او مونځ وکړي د هغوی سره**

که يوسړې په کور کښې منفردا مونځ اوکړی بيا ورته مسجد ته تلو سره معلومه شی چه لا مونځ نه دې شوې نو داسې سړی لره لکه چه په حديث الباب کښې دی دوباره مونځ په جماعت سره کول پکار دی.

[1] هغه دا چه يو ځل رسول الله ﷺ د يو قوم خپل مينځ کښې د مصالحت دپاره تشريف يوړلو چه کله واپس راغلو نو وې کتل چه په مسجد کښې مونځ شوې دې ﴿ فرجع الي منزله فجمع اهله وصلي ﴾

د اعاده صلاة روايات او باب مخکښې هم تير شوې دې، متعلقه مسائل هلته تير شوې دى، په پورته ذکر شوې صورت کښې د شافعيه او حنابله په نزد د پنځو وارو مونځونو اعاده شته،[1] د مالکيانو په نزد ﴿ الا المغرب ﴾ او د احنافو په نزد صرف د ماسپخين او ماسخوتن دوارو مونځونو اعاده کيدې شي.

**(د حديث الباب نه جوابات)**

دا حديث په ظاهره کښې د احناف خلاف دې ددې ډير جوابونه کړې شوې دى.

۱: احاديث النهي عن النفل بعد العصر والفجر اقوى.

۲: مقدمة على الاباحة،

۳: محمول على ما قبل النهي،

۴: په بعض کتب حديث کښې لکه په مسند ابى حنيفه او کتاب الاثار لمحمد نه معلوميږى چه دا واقعه د سحر د مونځ نه ده بلکه د ماسپخين د مونځ ده،

۵: پنځم جواب دا دې چه رسول الله ﷺ د هغه دوارو کسانو نه تپوس اوکړو چه تاسو دواړه مونځ کښې ولې شامل نه شوئ نو هغوى ورته جواب ورکړو چه مونږ مونځ کړې وو، د هغوى ددې جواب نه په ظاهره کښې معلوميږى چه د مونځ کولو نه پس بيا د هغې اعاده مطلقا نشته، حال دا چه مسئله دا نه ده بلکه په مونځونو کښې اعاده بالاتفاق مستحب ده په دې وجه هغه اوفرمائيل چه داسې خو نه ده چه يو ځل د مونځ کولو نه پس بيا اعاده بالکل شته نه بلکه اعاده شته، يعنى د قاعدې او ضابطې مطابق، او د قاعدې تقاضه دا ده چه د اوقات نهى نه علاوه کښې دې اعاده وى چه يو ځل د مونځ کولو نه پس بيا اعاده نشته بلکه اعاده شته، يعنى د قاعدې او ضابطې مطابق، او د قاعدې تقاضه دا ده چه د اوقات نهى نه علاوه کښې اعاده پکار ده په اوقات نهى کښې اعاده نه ده پکار (افاده في الکوکب) او شپږم جواب دا دې چه د دارقطنى په روايت کښې تصريح ده د فجر او مغرب د عدم اعادې او هم په دې حکم کښې دې مازيگر هم، والله تعالى اعلم

[۵۷۵] (۲)حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، أَخْبَرَنِي يَعْلَى بْنُ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ غُلَامٌ شَابٌّ، فَلَمَّا صَلَّى إِذَا رَجُلَانِ لَمْ يُصَلِّيَا فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ، فَدَعَا بِهِمَا فَجِيءَ بِهِمَا تُرْعَدُ فَرَائِصُهُمَا، فَقَالَ: "مَا مَنَعَكُمَا أَنْ تُصَلِّيَا مَعَنَا؟" قَالَا: قَدْ صَلَّيْنَا فِي رِحَالِنَا، فَقَالَ: "لَا تَفْعَلُوا إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فِي رَحْلِهِ ثُمَّ أَدْرَكَ الْإِمَامَ وَلَمْ يُصَلِّ فَلْيُصَلِّ مَعَهُ، فَإِنَّهَا لَهُ نَافِلَةٌ".

---

[1] مشهوره خو هم دا ده خو په الشرح الکبير (للحنابلة) کښې داسې دى چه که يو سړى مونځ کړې وى که منفردا وى يا جماعت سره او د هغه په موجودګئ کښې په مسجد کښې اقامت شروع شى نو د داسې سړى دپاره اعاده مستحب ده بغير د مغرب نه وفي المغرب روايتان احداهما يستحب ويشفعها بالرابعة، والثانية لا. او که هغه د اقامة صلاة په وخت د مسجد نه خارج وى نو په دې صورت کښې دې هغه په اوقات نهى کښې مسجد ته نه داخليږى او غير اوقات نهى کښې مونځ کول مستحب دى)

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ۴۹ (۲۱۹)، سنن النسائي/الإمامة ۵۴ (۸۵۹)، (تحفة الأشراف: ۱۱۸۲۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۶۰/۴، ۱۶۱)، سنن الدارمي/الصلاة ۹۷ (۱۴۰۷) (صحيح)

**ترجمه**: جابر بن يزيد بن الاسود د خپل پلار نه روايت کوي، بيشکه هغه مونځ وکړو د رسول الله ﷺ سره او هغه هلک وو ځوان، هر کله چې ئې مونځ وکړو نو دوه سړي وو په گوټ د جمات کښې چې مونځ ئې نه وو کړی، نو هغه دواړه ئې راوغوښتل رپيدل اړخونه د هغوی، هغه ورته وفرمائيل: تاسو څه شی منع کړئ چې مونځ وکړئ مونږ سره؟ دواړو وويل: مونږ په کورونو خپلو کښې مونځ کړی وو، هغه ورته وفرمائيل: داسې مه کوئ، کله چې يو کس د ستاسو نه مونځ وکړي په کور خپل بيا امام ته راشي په داسې حال کښې چه امام مونځ نه وی کړي، نو مونځ دې وکړي د هغه سره بيشکه دا به د هغه نفل شي.

[۵۷٦]([1])حَدَّثَنَا ابْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصُّبْحَ بِمِنًى، بِمَعْنَاهُ.

**ترجمه**: د جابر بن يزيد نه روايت کوی د خپل پلار نه، هغه وايي: ما مونځ وکړو د رسول الله ﷺ سره د صباح په منی کښې، په معنی د هغه حديث سره.

[۵۷۷]([2])حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا مَعْنُ بْنُ عِيسَى، عَنْ سَعِيدِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ نُوحِ بْنِ صَعْصَعَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: "جِئْتُ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلَاةِ فَجَلَسْتُ وَلَمْ أَدْخُلْ مَعَهُمْ فِي الصَّلَاةِ، قَالَ: فَانْصَرَفَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَأَى يَزِيدَ جَالِسًا، فَقَالَ: أَلَمْ تُسْلِمْ يَا يَزِيدُ؟ قَالَ: بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَدْ أَسْلَمْتُ، قَالَ: فَمَا مَنَعَكَ أَنْ تَدْخُلَ مَعَ النَّاسِ فِي صَلَاتِهِمْ؟ قَالَ: إِنِّي كُنْتُ قَدْ صَلَّيْتُ فِي مَنْزِلِي، وَأَنَا أَحْسَبُ أَنْ قَدْ صَلَّيْتُمْ، فَقَالَ: إِذَا جِئْتَ إِلَى الصَّلَاةِ فَوَجَدْتَ النَّاسَ فَصَلِّ مَعَهُمْ، وَإِنْ كُنْتَ قَدْ صَلَّيْتَ تَكُنْ لَكَ نَافِلَةً وَهَذِهِ مَكْتُوبَةٌ".

**ترجمه**: د يزيد بن عامر نه روايت دې هغه وئيلی دي: زه راغلم او نبی ﷺ په مانځه کښې وو نو زه کيناستلم او د هغوی سره مانځه کښې شريک نه شوم، هغه وايي: راغي مونږ ته رسول الله ﷺ ويې ليدلو يزيد ناست، هغه وويل: ايا تا اسلام نه دی راوړی ای يزيد! هغه وويل: ولې نه ای د الله رسوله ما اسلام راوړی دی، هغه وفرمائيل: ته څه شي منع کړی چې د خلقو سره مانځه کښې شريک شې؟ هغه وويل: بيشکه ما مونځ کړی وو په خپل کور کښې او زما دا گمان وو چې تاسو به مونځ کړی وي، هغه وفرمائيل: کله چې ته راشې مانځه ته او تا وموندل خلق نو مونځ وکړه د هغوی سره، او که چرې تا مونځ کړی وو نو شي به هغه نفل او دا به فرض شي.

**تشريح: قوله:**﴿ تكن لک نافلة وهذه مكتوبة ﴾ دا د امام اوزاعی دليل دې چه اولنی مونځ به نفل شمارلې شی او دوييم فرض، ددې جواب مونږ سره په تير باب کښې تير شوي دي (ابواب المواقيت کښې).

**قوله:**﴿ فذلک له سهم جمع ﴾ يعنی ددې سړي دپاره د دواړو مونځونو مجموعه ثواب دې (يو د فرض او بل د نفل) او يو قول ددې په شرح ([3]) کښې دا دې چه د جمع نه مراد جيش او

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۸۲۲) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۸۳۱) (ضعيف)

[3] دلته د بذل المجهود په عبارت کښې تحريف شوي دي، صحيح عبارت داسې دي (وقيل اراد بالجمع الجيش اي كسهم الجيش من الغنيمة)

لښکر دې اى له سهم كسهم الجيش»، يعنى ډير لوئې سهم د غنيمت ورته حاصل شو.

[۵۷۸](¹)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، قَالَ: قَرَأْتُ عَلَى ابْنِ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، عَنْ بُكَيْرٍ، أَنَّهُ سَمِعَ عَفِيفَ بْنَ عَمْرِو بْنِ الْمُسَيَّبِ، يَقُولُ: حَدَّثَنِي رَجُلٌ مِنْ بَنِي أَسَدِ بْنِ خُزَيْمَةَ، أَنَّهُ سَأَلَ أَبَا أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيَّ، فَقَالَ: يُصَلِّي أَحَدُنَا فِي مَنْزِلِهِ الصَّلَاةَ ثُمَّ يَأْتِي الْمَسْجِدَ وَتُقَامُ الصَّلَاةُ، فَأُصَلِّي مَعَهُمْ فَأَجِدُ فِي نَفْسِي مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا، فَقَالَ أَبُو أَيُّوبَ: سَأَلْنَا عَنْ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "ذَلِكَ لَهُ سَهْمُ جَمْعٍ".

**ترجمه**: يو سړي د ابو ايوب الانصارى نه تپوس وكړو، ويې وئيل: يو كس زمونږ نه مونځ وكړى په خپل كور كښې بيا راشى جمات ته او مونځ ودرولى شى نو زه مونځ وكړم د هغوى سره، زه وينم په خپل نفس كښې د دېنه څه شى، نو ووئيل ابو ايوب: مونږ تپوس كړى وو د دغې په باره كښې د رسول الله ﷺ نه، هغه وفرمائيل: دا د هغه لپاره حصه د جمعې ده (يعنى دوباره په مونځ كښې شريكيدل هم ثواب دې).

## باب إِذَا صَلَّى ثُمَّ أَدْرَكَ جَمَاعَةً أَيُعِيدُ

**باب دى، كله چې مونځ د جمع سره وكړي بيا بله جمع ومومي ايا واپس به يې كوي**

[۵۷۹](²)حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ يَعْنِي مَوْلَى مَيْمُونَةَ، قَالَ: أَتَيْتُ ابْنَ عُمَرَ عَلَى الْبَلَاطِ وَهُمْ يُصَلُّونَ، فَقُلْتُ: أَلَا تُصَلِّي مَعَهُمْ؟ قَالَ: قَدْ صَلَّيْتُ، إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا تُصَلُّوا صَلَاةً فِي يَوْمٍ مَرَّتَيْنِ".

**ترجمه**: سليمان بن يسار چې مولى د ميمونې دى هغه وايې: زه راغلم ابن عمر ته په بلاط كښې او هغوى مونځ كولو، نو ما ووئيل: ايا تا د هغوى سره مونځ نه كوې، هغه وفرمائيل: بيشكه ما مونځ كړى دى، ما اوريدلى دى د رسول الله ﷺ نه چې هغه به وئيل: تاسو مونځ مه كوئ يو مونځ په يوه ورځ كښې دوه ځل.

**تشريح**: **قوله**: لَا تُصَلُّوا صَلَاةً فِي يَوْمٍ مَرَّتَيْنِ: دا حديث د تيرشوى باب د رواياتو خلاف دې چه په هغې كښې د مونځ دوباره كولو ذكردې.

### په ترجمة الباب كښې د مصنف غرض

مصنف د ترجمة الباب په ذريعه جمع بين الروايتين فرمائيلې دى هغه دا چه باب سابق والا روايات د هغه سړى په حق كښې دى چا چه اولا مونځ منفردا كړې وى، او كوم سړى چه په جماعت سره مونځ كړې وى اوس هغه لره دوباره مونځ كول نه دى پكار (فاندفع التعارض من البين) دا تطبيق د جمهورو د مسلک مطابق خو دې خو د امام احمد د مسلک خلاف دې ځکه چه د هغه مسلک مخکښې تير شو چه كوم سړى مونځ كړې وى اگر چه په جماعت سره وى او د هغه په وړاندې په مسجد كښې مونځ كيږى نو د هغې اعاده مستحب ده.

لهذا د امام احمد رحمه الله په نزد به د ددې حديث مطلب دا وى چه په يو ورځ كښې دې يو مونځ دوه كرته د فرض په نيت سره اونكړې شى، لهذا د دفع تعارض شكل د جمهورو په

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۵۰۱)، وقد أخرجه: موطا امام مالك /صلاة الجماعة ۳(۱۱) (ضعيف)

²): سنن النسائي /الإمامة ۵٦ (۸٦۱)، (تحفة الأشراف: ۷۰۹۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۹/۲، ۴۱) (حسن صحيح)

نزد جدا دي او د امام احمدرحمه الله په نزد جدا دي.

# باب في جماع الإمامة وفضلها

## باب دې په بیان د ابوابو د امامت کې او د هغې په فضیلت کې

### (د جماع لغوی تحقیق)

﴿ جماع ﴾ په وزن د کتاب او په وزن د رمان دواړه صحیح دی، جماع په معنی د جامع، د امام مالک رحمه الله عادت شریفه دې چه هغه په مؤطاء کښې لفظ جامع سره باب تړی، جامع الصلاة، جامع البیوع، نو ګویا د جماع الامامة مطلب دا شو، د امامت د احکامو او مسائلو متعلق د ابوابو مجموعه یعنی ددې ځائې نه ابواب الامامة شروع کیږی او د امام بخاری رحمه الله طرز دا دې چه هغه کله د ابواب سره ترجمه قائموی، ابواب التهجد، ابواب المساجد هغه لفظ ابوآب جمع لره د کتاب په معنی کښې استعمالوی ځکه چه کتاب هم په ډیرو بابونو باندې مشتمل وی، د امام ابوداود رحمه الله عادت د لفظ تفریع د استعمال هم دې تفریع افتتاح الصلاة، تفریع په معنی د تجزیه او تفصیل فروع په معنی د جزئیات او مسائل، د فقهاء کرامو تعبیر دې، او یا په دې ځان پوهه کړئ چه د هر یو مصنف په ذهن کښې د ابواب او مضامین یو خاص ترتیب وی چه د هغې په لحاظ وئیلې کیدې شی چه راتلونکی ابواب په تیرو شوو ابوابو باندې متفرع کیږی هم په دې وجه باندې مصنف کله کله د باب په شروع کښې لفظ تفریع راوړی.

[۵۸۰] ()حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حَرْمَلَةَ، عَنْ أَبِي عَلِيٍّ الْهَمْدَانِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ أَمَّ النَّاسَ فَأَصَابَ الْوَقْتَ فَلَهُ وَلَهُمْ، وَمَنِ انْتَقَصَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا فَعَلَيْهِ وَلَا عَلَيْهِمْ".

**ترجمه**: عقبة بن عامر وایي ما اوریدلی دی د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه هغه به وئیل: چا چې امامت وکړو خلقو ته او ورسیدو وخت ته نو د هغه ثواب هم دې او د قوم فائده هم ده، او چا چې نقصان وکړو په دې کښې د څه شی نو په هغه باندې ګناه ده نه په قوم باندې.

**تشریح: قوله**:﴿ من ام الناس فاصاب الوقت الخ ﴾ څوک چه د خلقو امامت کوی او په صحیح وخت باندې هغوی ته مونځ ورکړی نو دا د هغه په حق کښې هم بهتره ده او د مقتدیانو په حق کښې هم، او څوک چه ددې خلاف کوی بې وخته مونځ کوی نو په دې کښې د مقتدیانو هیڅ نقصان نشته ددې وبال هم په هغه امام باندې دې.

.......

(): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٤٧ (٩٨٣)، (تحفة الأشراف: ٩٩١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٥/٤، ١٥٤، ١٥٦) (حسن صحيح)

# بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ التَّدَافُعِ عَلَى الإِمَامَةِ

## باب دې په کراهیت د غورځولو د امامت کې د ځان نه

[۵۸۱]()حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبَّادٍ الْأَزْدِيُّ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ، حَدَّثَتْنِي طَلْحَةُ أُمُّ غُرَابٍ، عَنْ عَقِيلَةَ امْرَأَةٍ مِنْ بَنِي فَزَارَةَ مَوْلَاةٍ لَهُمْ، عَنْ سَلَامَةَ بِنْتِ الْحُرِّ أُخْتِ خَرَشَةَ بْنِ الْحُرِّ الْفَزَارِيِّ، قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ: أَنْ يَتَدَافَعَ أَهْلُ الْمَسْجِدِ لَا يَجِدُونَ إِمَامًا يُصَلِّي بِهِمْ".

**ترجمه:** خور د خرشة بن الحر الفزاری وئیلی دی، چې ما اوریدلی دی د رسول الله ﷺ نه هغه به وئیل: بیشکه د نښو د قیامت نه دا خبره چې دیکه کوی به اهل د مسجد امامت لره، نه به بیاموځی امام چې دوی ته مونځ وکړي.

**تشریح: قوله:**﴿ ان من اشراط الساعة الخ ﴾ د قیامت د علاماتو نه دا ده چه خلق به امامت د ځانه لرې کوی، هر یو به د مونځ ورکولو نه ځان ساتی، د جهالت د غلبې د وجې نه، یا داسې ترجمه اوکړئ چه دیکه به ورکوی یو سرې بل ته د مسجد یا محراب طرف ته ددې دپاره چه هغه بل مونځ ورکړی، دا دواړه مطلبونه خو نژدې نژدې دی یو دریم مطلب دا هم کیدې شی چه خلق به خپل مینځ کښې د اختلافاتو په وجه باندې امام د امامت نه لرې کوی یو به وائی مونږ وریسې مونځ نه کوو، بل به وائی مونږ وریسې مونځ نه کوو، خپل مینځ کښې د اختلاف د وجې نه.

# بَابُ مَنْ أَحَقُّ بِالإِمَامَةِ

## باب دی چې څوک ډیر حقدار د امامت دی

### د امامت اوصاف:

د امامت دپاره چه د کومو صفاتو ضرورت دې هغه ډیر دی. قرأت، علم، ورع او تقوی، عمر (کبیر السن کیدل) قدم فی الهجرة (قدیم الهجرة کیدل) په دې ټولو کښې زیاته ترجیح قرأت او علم ته ده، لهذا ددې دواړو صفتونو والا ته به په نورو صفاتو والا باندې ترجیح ورکولې شی، خو خبله په دې دواړو کښې چاته ترجیح ده؟ دا مسئله مختلف فیه ده، د جمهورو په نزد ترجیح علم ته ده په قرأت باندې، او د امام احمد او ابویوسف په نزد ددې برعکس ده، د هغوی په نزد قاری په عالم باندې مقدم دې.

[۵۸۲]()حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، أَخْبَرَنِي إِسْمَاعِيلُ بْنُ رَجَاءٍ، سَمِعْتُ أَوْسَ بْنَ ضَمْعَجٍ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْبَدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَؤُمُّ الْقَوْمَ أَقْرَؤُهُمْ لِكِتَابِ اللَّهِ وَأَقْدَمُهُمْ قِرَاءَةً، فَإِنْ كَانُوا فِي الْقِرَاءَةِ سَوَاءً فَلْيَؤُمَّهُمْ أَقْدَمُهُمْ هِجْرَةً، فَإِنْ كَانُوا فِي الْهِجْرَةِ سَوَاءً فَلْيَؤُمَّهُمْ أَكْبَرُهُمْ سِنًّا، وَلَا يُؤَمُّ الرَّجُلُ فِي بَيْتِهِ وَلَا فِي سُلْطَانِهِ وَلَا يُجْلَسُ عَلَى تَكْرِمَتِهِ إِلَّا بِإِذْنِهِ"، قَالَ شُعْبَةُ: فَقُلْتُ لِإِسْمَاعِيلَ: مَا تَكْرِمَتُهُ؟ قَالَ: فِرَاشُهُ.

[1]: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٤٨ (٩٨٢)، (تحفة الأشراف: ١٥٨٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٨١) (ضعيف)

[2]: صحيح مسلم/المساجد ٥٣ (٦٧٣)، سنن الترمذي/الصلاة ٦٢ (٢٣٥)، سنن النسائي/الإمامة ٣، (٧٨١)، ٦ (٧٨٤)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٤٦ (٩٨٠)، (تحفة الأشراف: ٩٩٧٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/١١٨، ١٢١، ١٢٢) (صحيح)

**ترجمه**: د ابو مسعود البدری نه روایت دې هغه وئیلی دی، چې وئیلی دی رسول الله ﷺ: امامت به کوی د قوم د هر ښه لوستونکی د الله د کتاب، او مخکې د دوی نه په قرأت کښې، که چرې وو دوی په قرأت کښې برابر نو امامت دې وکړی د دوی هغه کس چې مخکې دی په هجرت کښې، که چرې وو دی په هجرت کښې برابر، نو امامت دې وکړی د دوی مشر د دوی نه په عمرکښې، او امامت دې نه کوې سړی په کور د هغه کښې او نه په بادشاهئ د هغه کښې، اونه به کینې په ځائې دعزت د هغه مګر په اجازت دهغه سره. شعبه وائی ما اسماعیل نه تپوس اوکړوچه تکرمه (دعزت ځائې) نه څه مراددی؟ نوهغوی اووئیل دهغه بستره.

**تشریح: قوله**:﴿ يؤم القوم اقرؤهم لكتاب الله ﴾ دا د امام احمد او ابو یوسف دلیل دې.

## د جمهورو دلیل او په هغې باندې اشکال او جواب :

د جمهورو دلیل د امامت ابی بکر قصه ده چه هغه اعلم الصحابة وو، هم دا وجه ده چه ابو سعید خدری ﷺ په یوه موقع باندې فرمائیلې وو لکه چه په بخاری کښې دی ﴿وكان ابوبكر اعلمنا ﴾ که تقدیم اقراء ته وو نو هغه ابی بن کعب وو، او د حدیث الباب جواب جمهور دا ورکوی چه د هغه زمانې اقراء به اعلم وو ځکه چه هغه حضراتو به قران کریم تفقه او د فهم معنی سره لوستلو اوس چه به هر خومره لوئې حافظ او قاری وی هومره به لوئې عالم وی، او دلیل عقلی دا دې چه قرأت صرف یو رکن صلاة دې او د علم طرف ته ټول أرکان صلاة محتاج دی.

دلته دوه اشکالات دی، اول دا چه ممکنه ده تقدیم ابی بکر په دې حیثیت سره نه وی چه هغه اعلم وو[1] بلکه د یو خاص مصلحت د وجې نه یعنی اشاره ده استخلاف طرفته (چه زما نه روستو دې هغه خلیفه جوړ کړې شی) بل اشکال دا دې چه که د هغه زمانې ﴿ اقراء ﴾ به ﴿ اعلم ﴾ وو نو بیا ئې وړاندې په حدیث کښې د ﴿ اقراء ﴾ مقابل ﴿ اعلم ﴾ ولې جوړ کړې دې ﴿ فان كانوا فى القراءة سواء فاعلمهم بالسنة ﴾ د دې جواب حضرت ګنګوهی دا ورکړې دې کما فی الحل المفهم چه دلته د اقراء مقابل مطلق اعلم نه دې بلکه اعلم بالسنة نو ګویا اقراء ته خو علم بالقران حاصل دې او ددې په مقابل کښې ئې په حدیث کښې اعلم بالسنة ذکر کړو، الحاصل په حدیث کښې مطلقا په اعلم او اقراء کښې تقابل نه دې ظاهر کړې شوې، نو اوس ترتیب دا شو چه د اعلم بالقران نه روستو درجه ده د اعلم بالسنة، دریم اشکال د جمهورو په مسلک باندې دا کړې شوې دې چه که دا اومنلې شی چه د هغه زمانې اقراء به اعلم وو نو لازم به شی چه ابی بن کعب دې اعلم وی ځکه چه هغه اقراء وو ددې جواب دا کیدې شی چه د جمهورو مراد دا دې چه بالعموم په هغه زمانه کښې اقراء اعلم وو، که د یو نیم په هغې کښې استثناء اوشی نو هیڅ باک نشته، ځکه چه مهشوره ده "ما من عام الا قد خص منه البعض". (دویم جواب ددې دا کیدې شی چه د اقراء دوه مطلبونه دی ۱: اکثرهم

[1] ددې جواب دا کیدې شی چه په دواړو مصلحتونو کښې څه منافات دې، د مونځ امام هم هغه وی کوم چه خلیفه وی او کیدې شی چه استخلاف هم په دې وجه وی چه هم هغه اعلم وو. والله اعلم)

حفظا، يعنى چاته چه د قران کريم زيات مقدار ياد وى مثلا يو ته صرف پنځه پارې يادې دى هغه صرف پنځه لوستلې دى او بل لس پارې لوستلې دى او ددې پارو حافظ دې. ۲: بل مطلب ئې دا دې چه "اتقنهم حفظا" يعنى چاته چه ښه ياد وى پس دلته په حديث الباب کښې اوله معنى مراد ده او د ابى بن کعب په باره کښې چه راغلى چه هغه اقراء وو، هلته دويمه معنى مراد ده، د اول معنى په لحاظ سره هغه اقراء نه وو ځکه چه ابوبکر او ډير صحابه کرام ظاهره ده چه د پوره قران کريم حافظان وو په دې کښې د ابى بن کعب هيڅ تخصيص نشته، هذا ما عندى والله اعلم)

## تکمله:

بعض حضرات داسې دى چه هغوى ته على الاطلاق ترجيح حاصله ده که هغه اعلم يا اقراء وى يا نه وى هو الاول السلطان ثم نائبه ثم القاضى ثم صاحب البيت، ثم الاعلم ثم الاقراء. هم دغه شان ځان پوهه کړئ چه د باب په اول حديث کښې اختصار واقع شوې دې په دې کښې د ﴿ اقراء ﴾ نه روستو ﴿ اقدمهم هجرة ﴾ ذکر کړې شوې دې حال دا چه د ﴿ اقراء ﴾ نه روستو ﴿ اعلم بالسنة ﴾ کيدل پکار وو لکه چه په بل حديث کښې را روان دى.

[۵۸۳]() حَدَّثَنَا ابْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ فِيهِ وَلَا يَؤُمُّ الرَّجُلُ الرَّجُلَ فِي سُلْطَانِهِ. قَالَ أَبُو دَاوُد وَكَذَا قَالَ يَحْيَى الْقَطَّانُ، عَنْ شُعْبَةَ، أَقْدَمُهُمْ قِرَاءَةً.

**ترجمه**: حديث بيان کړې دې مونږ ته شعبة په دې حديث سره هغه وئيلى دي: او امامت دې نه کوى سړى سړى ته د هغه په بادشاهئ کښې. وئيلى دى ابوداود: او همدارنګه وئيلى دى يحيى القطان، روايت کوى د شعبه نه (اقدمهم قراءة).

[۵۸۴]() حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ رَجَاءٍ، عَنْ أَوْسِ بْنِ ضَمْعَجٍ الْحَضْرَمِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: فَإِنْ كَانُوا فِي الْقِرَاءَةِ سَوَاءً فَأَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ، فَإِنْ كَانُوا فِي السُّنَّةِ سَوَاءً فَأَقْدَمُهُمْ هِجْرَةً، وَلَمْ يَقُلْ: فَأَقْدَمُهُمْ قِرَاءَةً. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ حَجَّاجُ بْنُ أَرْطَاةَ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: وَلَا تَقْعُدْ عَلَى تَكْرِمَةِ أَحَدٍ إِلَّا بِإِذْنِهِ.

**ترجمه**: اوس بن ضمعج الحضرمى وئيلى دى، ما اوريدلى دى د ابو مسعود نه هغه روايت کوى د نبى ﷺ نه ددې حديث، هغه ووئيل: که چرې وو دوى برابر په قرأت کښې نو بيا به اعلم بالسنة امامت کوې، که چرې په سنتو کښې برابر وو نو بيا به اقدم فى الهجرة وې. او هغه ونه وئيل: چې مخکې وى په قرات کښې. وئيلى دى ابوداود: نقل کړى دى هغې لره حجاج بن ارطاة د اسماعيل نه هغه وئيلى دي: او مه کينه په ځائې د عزت د هيچا مګر په اذن د هغه.

**تشريح**: **قوله**:﴿ ولا يؤم الرجل فى بيته ولا فى سلطانه ولا يجلس على تکرمته الا باذنه ﴾ د چا کور ته تلو سره ميلمه له پکار دى چه د صاحب خانه امام دې جوړ نه شى هم دغه شان دې د چا په

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۹۹۷۶) (صحيح)
(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۹۹۷۶) (صحيح)

محل سلطنت او حکومت کښې یعنی د محلې د امیر په موجودګئ کښې بل چاته د امامت حق نه رسیږی، او نه د چا کور ته تلو سره صدر مقام او د هغه په مسند باندې کیناستل پکار دی، الا باذنه د دې استثناء تعلق د اکثر شارحینو په نزد د تمام سره دې او د اسحاق بن راهویه په نزد اول ددې نه مستثننی دې، یعنی ﴿ لا یؤم الرجل فی بیته ﴾ سره ددې تعلق نشته، د اسحاق په نزد د یو میلمه دپاره د صاحب خانه د اجازت نه پس هم جائز نه دی. (کذا قال الترمذی فی جامعه)

[۵۸۵]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا أَيُّوبُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سَلَمَةَ، قَالَ: كُنَّا بِحَاضِرٍ يَمُرُّ بِنَا النَّاسُ إِذَا أَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَكَانُوا إِذَا رَجَعُوا مَرُّوا بِنَا فَأَخْبَرُونَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: كَذَا وَكَذَا، وَكُنْتُ غُلَامًا حَافِظًا فَحَفِظْتُ مِنْ ذَلِكَ قُرْآنًا كَثِيرًا، فَانْطَلَقَ أَبِي وَافِدًا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نَفَرٍ مِنْ قَوْمِهِ فَعَلَّمَهُمُ الصَّلَاةَ، فَقَالَ: "يَؤُمُّكُمْ أَقْرَؤُكُمْ"، وَكُنْتُ أَقْرَأَهُمْ لِمَا كُنْتُ أَحْفَظُ، فَقَدَّمُونِي فَكُنْتُ أَؤُمُّهُمْ وَعَلَيَّ بُرْدَةٌ لِي صَغِيرَةٌ صَفْرَاءُ فَكُنْتُ إِذَا سَجَدْتُ تَكَشَّفَتْ عَنِّي، فَقَالَتِ امْرَأَةٌ مِنَ النِّسَاءِ: وَارُوا عَنَّا عَوْرَةَ قَارِئِكُمْ، فَاشْتَرَوْا لِي قَمِيصًا عُمَانِيًّا فَمَا فَرِحْتُ بِشَيْءٍ بَعْدَ الْإِسْلَامِ فَرَحِي بِهِ، فَكُنْتُ أَؤُمُّهُمْ وَأَنَا ابْنُ سَبْعِ سِنِينَ أَوْ ثَمَانِ سِنِينَ.

**ترجمه**: د عمرو بن سلمة نه روایت دې هغه وایي: وو مونږ په حاضر کښې چې تېریدل به په مونږ باندې خلک کله چې به راتلل نبی ﷺ ته، نو وو چې کله به واپس کیدل نو تېریدل به په مونږ، مونږ ته به ئې خبر راکولو چې رسول الله ﷺ داسې داسې ووېل، او زه هلک وم حافظ، ما یاد کړې وو د قرآن ډېره حصه، لاړلو زما پلار د وفد په شکل رسول الله ﷺ ته سره د څه نفرو د خپل قوم نه، نو ویې ښودلو هغوی ته مونځ، نو هغه وفرمائیل: امامت دې وکړي ستاسو ډېر قاری ستاسو نه. او وم زه ډېر قاری په دوی کښې ددې وجې نه چې ما یادولو، نو زه ئې مخکې کړم نو وم زه چې ما امتی کوله دوی ته او په ما باندې زما یو څادر وو ورکوټی زیړ، وم زه چې کله به مې سجده وکړه هغه به لرې شو مانه، نو ووئیله یوې زنانه د ز نانو نه: پټ کړئ زمونږ نه عورت د قاری ستاسو، هغوی واخستو زما لپاره یو قمیص عماني، زه نه یم خوشحاله شوی په هېڅ شی باندې وروسته د اسلام نه پشان د خوشحالئ زما په دې باندې، او ما به امامتی کوله د دوی او زه د اوه کالویا د اتو کالو وم.

**تشریح**: **قوله**: ﴿ عن عمرو بن سلمة قال : کنا بحاضر ﴾ دا سلمه بکسر اللام دې.

## امامت صبی او په هغې کښې اختلاف

په دې حدیث کښې د امامت صبی فی الفرض مسئله ذکر شوې ده. کوم چه د امام شافعی په نزد جائز دې، د جمهور علماء او ائمه ثلاثه په نزد جائز نه دې ځکه چه صبی متنفل دې او او صلاة المفترض خلف المتنفل جائز نه دې، ځکه چه په حدیث کښې ﴿ الامام ضامن ﴾، یعنی د امام مونځ په اعتبار صحت او فساد متضمن وی د مقتدی مونځ لره، او ظاهره ده چه څېز خپل مادون لره متضمن کیدې شی ما فوق لره متضمن نه شی کیدې، لهذا فرض مونځ خو

(): صحيح البخاري/المغازي ٥٣ (٤٣٠٢)، سنن النسائي/الأذان ٨ (٦٣٧)، والقبلة ١٦ (٧٦٨)، والإمامة ١١ (٧٩٠)، (تحفة الأشراف: ٤٥٦٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٧٥/٣، ٢٩/٥، ٧١) (صحيح)

نفل ته متمضن کیدې شي خو ددې برعکس نه شي کیدې.(١)

**(دحدیث الباب جواب)**

او ددې حدیث جواب دا دې چه دې خلقو داسې په خپل اجتهاد سره کړي دی او ظاهره دا ده چه ددې خبر هم رسول الله ﷺ ته نه دې شوې، ځکه چه رسول الله ﷺ خو دا فرمائیلي وو چه ﴿ یؤمکم اقرؤکم ﴾ او خطاب ئې حاضرینو ته وو کوم چه رجال بالغین وو، هغوی داسې اوکړل چه په پوره خاندان کښې چه د هغوی کوم ﴿ اقراء ﴾ وو هغه ئې واخستلو اګر چه هغه صبی ولې نه وو، او د اکابر صحابه کرامو نه هم ددې خلاف منقول دې ﴿ فعن ابن عباس لا یؤم الغلام حتی یحتلم وعن ابن مسعود لا یؤم الغلام الذی لا تجب علیه الحدود ﴾ رواهما الاثرم فی سننه. کذا فی البذل. بله خبره دا ده چه په دې حدیث کښې دا دی چه عمرو بن سلمه چه به کوم څادر کښې مونځ ورکولو هغه ﴿ موصلة ﴾ (پیوندونه والا) وو.

﴿ فیهما فتق ﴾ یعنی هغه شلیدلې وو چه د هغې په وجه باندې به ئې کوناټې ښکاره شو، نو ایا د کشف عورت سره مونځ جائز کیدې شي؟ ظاهره دا ده چه دا هم د هغوی په اجتهاد باندې بناء ده، په مغنی کښې لیکلي دی چه ﴿ کان احمد یضعف هذا الحدیث وفی البذل قال الخطابی کان الحسن یضعف حدیث عمرو بن سلمة ﴾ امام ابوداود هم ددې په سند کښې د راویانو اختلاف او اضطراب بیان کړې دې، عن عمرو بن سلمة نه پس بعض راویانو د عن ابیه اضافه کړې ده او بعض نه ده کړې ﴿ واروا عنا عورة قارئکم ﴾ چه د قاری صاحب او امام صاحب عورت خو زمونږ نه پټ کړئ.

[٥٨٦](٢) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عَاصِمٌ الْأَحْوَلُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سَلَمَةَ، بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: فَكُنْتُ أَؤُمُّهُمْ فِي بُرْدَةٍ مُوَصَّلَةٍ فِيهَا فَتْقٌ، فَكُنْتُ إِذَا سَجَدْتُ خَرَجَتِ اسْتِي.

**ترجمه**: د عمرو بن سلمة نه نقل دې دا حدیث، هغه وایي: زه وم چې امامت مې کولو د دوی په یو څادر کښې چې جوخت وو په هغې کښې سوری وو، کله چې به ما سجده وکړه نو وبه وتلو کوناټې زما (خلقو ته به ښکاره شو).

[٥٨٧](٣) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ مِسْعَرِ بْنِ حَبِيبٍ الْجَرْمِيِّ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُمْ وَفَدُوا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا أَرَادُوا أَنْ يَنْصَرِفُوا، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، "مَنْ يَؤُمُّنَا؟ قَالَ: أَكْثَرُكُمْ جَمْعًا لِلْقُرْآنِ، أَوْ أَخْذًا لِلْقُرْآنِ"، قَالَ: فَلَمْ يَكُنْ أَحَدٌ مِنَ الْقَوْمِ جَمَعَ مَا جَمَعْتُهُ، قَالَ: فَقَدَّمُونِي وَأَنَا غُلَامٌ وَعَلَيَّ شَمْلَةٌ لِي فَمَا شَهِدْتُ مَجْمَعًا مِنْ جَرْمٍ إِلَّا كُنْتُ إِمَامَهُمْ، وَكُنْتُ أُصَلِّي عَلَى جَنَائِزِهِمْ إِلَى يَوْمِي هَذَا، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ مِسْعَرِ بْنِ حَبِيبٍ الْجَرْمِيِّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سَلَمَةَ، قَالَ: لَمَّا وَفَدَ قَوْمِي إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَمْ يَقُلْ: عَنْ أَبِيهِ.

---

(١) دلته دا سوال کیدې شي چه ځنګه څیز خپل ما فوق لره متضمن نه شي کیدې هم دغه شان مساوی لره هم متضمن نه شي کیدې لکه دوه برابر ګلاسونه په یو بل کښې نه شي راتلې، لهذا د مفترض په اقتداء کښې د مفترض اقتداء هم صحیح کیدل نه دی پکار. جواب دا دې چه دا شکل ترې د اجماع علماء د وجې نه مستثنی دې.

(٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٥٦٥) (صحیح)

(٣): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٥٦٥) (صحیح)

**ترجمه**: عمرو بن سلمة د خپل پلار نه روایت کوي: بیشکه دوی په وفد کښې لاړل رسول الله ﷺ ته، هرکله چې دوی اراده د واپسئ وکړه هغوی وویل: اې د الله رسوله! څوک به امامت کوی مونږ ته، هغه وفرمائیل: په تاسو کښې ډېر جمع کونکی قرآن لره. او یا: اخستونکی قرآن لره. هغه وایي: په قوم کښې هېڅوک نه وو چې جمع کړی ئې وو څومره چې ما جمع کړی وو، هغه وایي: زه ئې مخکې کړم او زه هلک وم او ما څادر نه لنګ وهلې وو، ما نه دي کتلي کوم تولګی د قبیله جرم نه، مګر زه به د هغوی امام وم، او ما به مونځ کولو د هغوی په جنازو باندې تر نن ورځ پورې. وئیلی دی ابوداود: او نقل کړی دی هغې لره یزید بن هارون د مسعر نه بن حبیب الجرمی نه او هغه د عمرو بن سلمة نه هغه وئیلی دي: هرکله چې زما قوم لاړلو رسول الله ﷺ ته، هغه عن أبیه نه دی وئیلی

[۵۸۸]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا أَنَسٌ يَعْنِي ابْنَ عِيَاضٍ. ح وحَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ بْنُ خَالِدٍ الْجُهَنِيُّ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ قَالَ: لَمَّا قَدِمَ الْمُهَاجِرُونَ الْأَوَّلُونَ نَزَلُوا الْعُصْبَةَ قَبْلَ مَقْدَمِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "فَكَانَ يَؤُمُّهُمْ سَالِمٌ مَوْلَى أَبِي حُذَيْفَةَ وَكَانَ أَكْثَرَهُمْ قُرْآنًا"، زَادَ الْهَيْثَمُ: وَفِيهِمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، وَأَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الْأَسَدِ.

**ترجمه**: د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دي بیشکه هغه وئیلی دي: هرکله چې راغلل اولنی مهاجرین هغوی اباد شول په عصبه کښې، مخکې د راتلو د نبی ﷺ نه، نو امامت به کولو هغوی ته سالم چې مولی د ابو حذیفه دی، او وو هغه ډېر زیات په اعتبار د قرآن سره. زیادت کړی دی هیثم: او په هغوی کښې عمر بن الخطاب او ابو سلمة بن عبد الاسد هم وو.

**تشریح: قوله**:﴿ عن ابن عمر انه قال : لما قدم المهاجرون الاولون الخ ﴾ عصبه قباء ته نزدې د یو ځائې نوم دې، په دې حدیث کښې یو صحابی چه د هغه نوم سالم بن معقل دې کوم چه د قراء صحابه کرامو نه وو د هغوی په باره کښې دا دی چه هغه په مقام عصبه کښې چه کوم مهاجرین مقیم شوي وو چه په هغوی کښې عمر رضی الله عنه هم وو هغوی ته به ئې مونځ ورکولو، په ظاهره کښې به ئې په دې وجه باندې امامت کولو چه په هغوی ټولو کښې هغه اقرأ (یعنې لوستونکې د قرآن) وو، لهذا دا حدیث د امام احمد او ابویوسف دلیل شو چه اقراء ته په اعلم باندې ترجیح ده، د جمهورو د طرف نه ددې جواب دا کیدې شی چه زمونږ استدلال د فعل رسول ﷺ نه دې (یعنی تقدیم ابی بکر) او دا فعل دې د بعض صحابه کرامو، ا دا هم ممکنه ده چه عمر رضی الله عنه د څه عذر د وجې نه مونځ نه وی ورکړې. والله اعلم

[۵۸۹]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا مَسْلَمَةُ بْنُ مُحَمَّدٍ، الْمَعْنَى وَاحِدٌ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهُ أَوْ لِصَاحِبٍ لَهُ: "إِذَا

[۱]: صحيح البخاري/الأذان ٥٤ (٦٩٢)، (تحفة الأشراف: ٧٨٠٠، ٨٠٠٧) (صحيح)

[۲]: صحيح البخاري/الأذان ١٧ (٦٢٨)، ٣٥ (٦٥٨)، ٤٩ (٦٨٥)، ١٤٠ (٨١٩)، والجهاد ٤٢ (٢٨٤٨)، والأدب ٢٧ (٦٠٠٨)، وأخبار الآحاد ١ (٧٢٤٦)، صحيح مسلم/المساجد ٥٣ (٦٧٤)، سنن الترمذي/الصلاة ٣٧ (٢٠٥)، سنن النسائي/الأذان ٧ (٦٣٥)، ٨ (٦٣٦)، ٢٩ (٦٧٠)، والإمامة ٤ (٧٨٢)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٤٦ (٩٧٩)، (تحفة الأشراف: ١١١٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣٦/٣، ٥٣/٥)، سنن الدارمي/الصلاة ٤٢ (١٢٨٨) (صحيح)

حَضَرَتِ الصَّلَاةُ، فَأَذِّنَا ثُمَّ أَقِيمَا ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمَا أَكْبَرُكُمَا سِنًّا". وَفِي حَدِيثِ مَسْلَمَةَ، قَالَ: وَكُنَّا يَوْمَئِذٍ مُتَقَارِبَيْنِ فِي الْعِلْمِ، وَقَالَ فِي حَدِيثِ إِسْمَاعِيلَ: قَالَ خَالِدٌ: قُلْتُ لِأَبِي قِلَابَةَ: فَأَيْنَ الْقُرْآنُ؟ قَالَ: إِنَّهُمَا كَانَا مُتَقَارِبَيْنِ.

**ترجمه:** د مالک بن الحويرث رضي الله عنه نه روايت دې، بيشکه نبي ﷺ ووېل هغه ته: او يا د هغه ملګرى ته: کله چې دمونځ وخت شي نو اذان وکړئ او بيا اقامت وکړئ، بيا دې امامت وکړي ستاسو دواړو نه مشر په تاسو کښې. او په حديث د مسلمة کښې دي: هغه وايي: او وو مونږ په دغه وخت کښې دواړه برابر په علم کښې، او هغه وئيلى دى په حديث اسماعيل کښې: وئيلى دى خالد: ما ووېل ابو قلابة ته: قرآن څه شو؟ هغه ووېل: هغه دواړه (قرآن باندې پوهيدلو کښې) نزدې وو (يعنى برابر وو).

**تشريح: قوله:** ﴿ اذا حضرت الصلاة فاذنا ﴾ رسول الله ﷺ مالک بن الحويرث رضي الله عنه او د هغوى د سفر ملګرو ته چه کله هغوى د مدينې نه رخصت کيدل اوفرمائيل څو ورځې د قيام او تعليم د حصول نه پس چه د هغې قصه په بخارى شريف کښې ده) چه په لاره کښې په جماعت سره مونځونه کولو سره تلل، باقاعده اذان او اقامت سره، د تثنيه صيغه دلته د تخيير دپاره ده چه په تاسو دواړو کښې چه څوک غواړي هغه دې اذان اوکړي او اقامت، البته امامت دې په تاسو کښې هغه څوک اوکړي چه مشر وي.

## د حديث الباب نه د بعض علماء استدلال

ابو الحسن بن القصار ددې نه استدلال کړې دې په دې خبره باندې چه په سفر کښې که دوه کسان وي نو دواړه دې اذان اوکړي، دا د هغه شاذ قول دې، د مسلک جمهور او قياس خلاف دې، هغوى د حديث د ظاهر په وجه باندې داسې وئيلې دى، جمهورو د تثنيه د صيغې يوه توجيه دا کړې ده چه مراد دا دې چه يو دې اذان اوکړي، او دويم دې د هغه اجابت اوکړي، بله دا چه بعض وخت داسې کيږى چه عرب خلق تثنيه او جمع وئيلو سره واحد مراد اخلي لکه په دې دوه مثالونو کښې.

**قوله:** ﴿ يا حرسى اضربا عنقه ﴾ قاضى جلاد ته وائي چه ددې مجرم سټ اووهه او د تثنيه صيغه استعمالوى هم دغه شان وئيلې شى ﴿ فلان قتله بنو تميم ﴾ د قتل نسبت پوره قبيلې طرفته اوکړې شو حالانکه قاتل صرف يو سړې دې.

**قوله:** ﴿ فاين القران ﴾ يعنى نبي عليه السلام د امامت دپاره د تقديم اکبر حکم فرمائيلې دې، د تقديم اقراء حکم ئې ولې نه دې فرمائيلې، جواب دا ورکړې شوې دې چه هغوى دواړه په حفظ قران کښې برابر وو.

[۵۹۰] ([1])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عِيسَى الْحَنَفِيُّ، حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ أَبَانَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لِيُؤَذِّنْ لَكُمْ خِيَارُكُمْ، وَلْيَؤُمَّكُمْ قُرَّاؤُكُمْ".

**ترجمه:** د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې هغه وئيلى دي چې فرمائيلى دى رسول الله ﷺ: اذان دې وکړي ستاسو لپاره غوره په تاسو کښې، او امامت دې وکړي تاسو ته قاريان ستاسو.

[1]: سنن ابن ماجه/الأذان ٥ (٧٢٦)، (تحفة الأشراف: ٦٠٣٩) (ضعيف)

# باب إمامة النساء

## باب دې په بيان د امامت د زنانو کې

د زنانو مستقل خپل جدا جماعت سره مونځ کول.

## په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه

دا د شوافعو او حنابله په نزد مستحب دې، د احنافو او مالکیانو په نزد مکروه دې قاله الشعراني في الميزان. او په مغني کښې ليکلي دی چه د امام احمد رحمه الله نه په دې کښې دوه روايتونه دی، استحباب او عدم استحباب، او زمونږ د بعض فقهاء کرامو د کلام نه معلوميږي چه که زنانه بهر وتلو سره جماعت کوی نو بيا خو دې مکروه او که په کور کښې جماعت کوی نو جائز دې.

د بعض رواياتو نه د زنانو جماعت ثابت دې ابن الهمام د مستدرک او کتاب الاثار لمحمد نه هغه روايات نقل کړې دی، زمونږ فقهاء کرامو هغه منسوخ منلې دی کما في البدائع، وغيره ابن الهمام په نسخ باندې اورد کلام کړې دې او نسخ خو ئې اول منلې نه ده او فرمائی که نسخ اومنلې شي نو نسخ د سنية کراهت تحريميه لره مقتضى نه ده بلکه عدم استحباب او خلاف اولى لره، اوس پاتې شوه دا چه ناسخ څه دې، ناسخ هغه مشهور حديث دې چه د هغې تخريج ابوداود او ابن خزيمه کړې دې. ﴿صلاة المرأة في بيتها افضل من صلاتها في حجرتها وصلاتها في مخدعها افضل من صلاتها في بيتها﴾ ظاهره ده چه مخدع ډير مختصر ځائې وی او د جماعت دپاره وسيع ځائې پکار دې.

[۵۹۱](1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعُ بْنُ الْجَرَّاحِ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جُمَيْعٍ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي جَدَّتِي، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ خَلَّادٍ الْأَنْصَارِيُّ، عَنْ أُمِّ وَرَقَةَ بِنْتِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نَوْفَلٍ الْأَنْصَارِيَّةِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا غَزَا بَدْرًا، قَالَتْ: قُلْتُ لَهُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، ائْذَنْ لِي فِي الْغَزْوِ مَعَكَ أُمَرِّضُ مَرْضَاكُمْ، لَعَلَّ اللَّهَ أَنْ يَرْزُقَنِي شَهَادَةً، قَالَ: "قَرِّي فِي بَيْتِكِ، فَإِنَّ اللَّهَ تَعَالَى يَرْزُقُكِ الشَّهَادَةَ"، قَالَ: فَكَانَتْ تُسَمَّى الشَّهِيدَةُ، قَالَ: وَكَانَتْ قَدْ قَرَأَتِ الْقُرْآنَ، فَاسْتَأْذَنَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَتَّخِذَ فِي دَارِهَا مُؤَذِّنًا، فَأَذِنَ لَهَا"، قَالَ: وَكَانَتْ قَدْ دَبَّرَتْ غُلَامًا لَهَا وَجَارِيَةً، فَقَامَا إِلَيْهَا بِاللَّيْلِ فَغَمَّاهَا بِقَطِيفَةٍ لَهَا حَتَّى مَاتَتْ وَذَهَبَا، فَأَصْبَحَ عُمَرُ فَقَامَ فِي النَّاسِ، فَقَالَ: مَنْ كَانَ عِنْدَهُ مِنْ هَذَيْنِ عِلْمٌ أَوْ مَنْ رَآهُمَا فَلْيَجِئْ بِهِمَا، فَأَمَرَ بِهِمَا فَصُلِبَا فَكَانَا أَوَّلَ مَصْلُوبٍ بِالْمَدِينَةِ.

**ترجمه:** د ام ورقة بنت عبد الله بن نوفل الانصارية نه روايت دې، بيشکه نبي ﷺ چې هرکله د بدر غزا وکړه، هغه وايې: ما وويل هغه ته: اې د الله رسوله! ماته اجازت وکړه په غزا کولو کښې ستا سره زه به علاج کوم د مريضانو ستاسو، کيدی شي چې الله ماته شهادت رانصيب کړي، هغه وفرمائيل: کينه په خپل کور کښې بيشکه الله پاک به تاته شهادت درکړي. هغه وايې: نو هغه وه چې مسمى کولی به شوه په شهيدی سره، هغه وايې: او وه هغه چې قرآن ئې حفظ کړې وو نو اجازت ئې طلب کړو د رسول الله ﷺ نه چې ونيسي په خپل کور کښې مؤذن، نو اجازت ئې ورته وکړو، هغه وايې: او وه هغه چې مدبر کړی ئې وو

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۳۶۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۰۵/۶) (حسن)

یو غلام چې د هغې وو او یوه وینزه، نو هغوی دواړو دشپې هغه په یوه کمبله کښې بنده کړه، تردې چې مړه شوه او دواړه وتختیدل، نو سحر له عمر په خلقو کښې پاڅیدو او ویې وئیل: د چاسره چې د هغو دواړو په باره کښې معلومات وی او یا چا لیدلی وی نو دواړه دې راولی، نو امر ئې وکړو په سولئ کولو د دواړو باندې، نو شول دواړه اولنې په دار شوی په مدینه کښې.

## د حدیث مضمون

**تشریح: قوله:** ﴿ عن ام ورقة بنت عبدالله بن نوفل الخ ﴾ ام ورقه بنت نوفل د رسول اللهﷺ نه هغه وخت چه کله هغه جنګ بدر ته تشریف اوړلو درخواست اوکړو چه ما هم د ځان سره بوځه ددې دپاره چه زه هلته د مریضانو خیال اوساتم او د زخمیانو پټئ کوم کیدې شی چه الله پاک ماته هم د شهادت درجه رانصیب کړی، رسول اللهﷺ هغې ته اوفرمائیل چه ته په خپل کور کښې اوسیږه، ممکنه ده چه الله پاک به تاته په خپل کور کښې شهادت درنصیب کړی، دا د قران کریم حافظه هم وه په دې وجه هغې رسول اللهﷺ ته درخواست اوکړو چه زه دا غواړم چه په کور کښې د زنانو د جماعت امامت اوکړم او د مؤذن د ساتلو اجازت ئې هم اوغوښتلو، رسول اللهﷺ هغې ته ددې اجازت ورکړو، وړاندې په روایت کښې راوی وائی چه ما د هغې مؤذن لیدلې دې چه هغه یو بوډا سړې وو، هم دغه شان په روایت کښې دی چه د هغه زنانه یو غلام او یوه وینزه وه هغې دا دواړه مدبر جوړ کړې وو (مدبر د مولی د مرګ په انتظار وی) هغوی دواړو دا حرکت اوکړو چه یوه شپه هغوی دواړه د هغې په مرئ غلې شو چه په هغې سره هغه وفات شوه، دا د عمرؓ د زمانې خبره ده نو هغه په معلومولو باندې دواړه په صولئ کړل. ددې حدیث او د بعض نور قسم روایاتو نه شوافعو د جماعت النساء په استحباب باندې استدلال کړې دې، ددې بحث د باب په شروع کښې تیر شوې دې.

## تکمله :

ځان پوهه کړه چه د شوافعو وغیره اختلاف په امامة النساء للنساء کښې دې، او امامة النساء للرجال په اتفاق د ائمه اربعه جائز نه دې، لحدیث اخروهن من حیث اخرهن الله... اخرجه ابن ماجة من حدیث جابر مرفوعا وروی عن ابن مسعود موقوفا. البته د بعض علماء کرامو لکه مزنی، ابوثور، طبری او داؤد ظاهری په نزد امامة النساء للرجال جائز دې. (ابن رسلان، ابن قدامة، منهل)

[۵۹۲](۱) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ حَمَّادٍ الْحَضْرَمِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ جُمَيْعٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ خَلَّادٍ، عَنْ أُمِّ وَرَقَةَ بِنْتِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، وَالْأَوَّلُ أَتَمُّ، قَالَ: وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَزُورُهَا فِي بَيْتِهَا، وَجَعَلَ لَهَا مُؤَذِّنًا يُؤَذِّنُ لَهَا، وَأَمَرَهَا أَنْ تَؤُمَّ أَهْلَ دَارِهَا، قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ: فَأَنَا رَأَيْتُ مُؤَذِّنَهَا شَيْخًا كَبِيرًا.

**ترجمه:** د ام ورقة نه روایت دې ددې حدیث، او اولنی ډیر پوره دی، هغه وئیلی دي: او وو رسول اللهﷺ چې د هغې ملاقات به ئې کولو د هغې په کور کښې او ګرځولی ئې وو د هغې لپاره مؤذن چې اذان به ئې کولو د هغې دپاره، او امرئې ورته کړی وو چې امامت کوه د خپل کور والا. وئیلی دی عبد الرحمن: ما لیدلی وو مؤذن د هغې چې وو ډیر بوډا.

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۸۳٦٤) (حسن)

## بَابُ الرَّجُلِ يَؤُمُّ الْقَوْمَ وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ

### باب دې په بيان د سړي کې چې امامت د يو قوم کوي او هغوی هغه بد ګڼي

[۵۹۳]() حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ غَانِمٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ عَبْدٍ الْمَعَافِرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كَانَ يَقُولُ: "ثَلَاثَةٌ لَا يَقْبَلُ اللَّهُ مِنْهُمْ صَلَاةً: مَنْ تَقَدَّمَ قَوْمًا وَهُمْ لَهُ كَارِهُونَ، وَرَجُلٌ أَتَى الصَّلَاةَ دِبَارًا وَالدِّبَارُ أَنْ يَأْتِيَهَا بَعْدَ أَنْ تَفُوتَهُ، وَرَجُلٌ اعْتَبَدَ مُحَرَّرَهُ".

**ترجمه:** د عبد الله بن عمرو نه روايت دې، بيشکه رسول الله ﷺ وو چې وئيل به يې: درې کسان دي چې الله د هغوی مونځ نه قبلوي، څوک چې يو قوم ته مخکې شو او هغوی ده لره بد ګڼرونکې وو، او هغه سړی چې مونځ کوی په حالت د دبار کښې. او دبار دادی چې دايې وکړی ورروسته د فوت کيدو نه، او بل سړی دی چې د ازاد شده نه غلام جوړوي.

### د حديث شرح

په حديث الباب کښې دی چه د درې کسانو مونځ قبول نه دې هغه درې سړی دا دی:

۱: يو هغه سړې کوم چه د خلقو امامت کوی حال دا چه هغوی ئې امامت نه خوښوی. ۲: هغه سړې چه مونځ ډير ناوخته کوی ترديې چه هغه قضاء کړی يا جماعت فوت کړی. ۳: کوم سړې چه د ازاد نه غلام جوړ کړی يعنی يو مسافر ازاد سړې راونيسی او هغه ته اوائی چه ته زما اخستلې شوې غلام ئې، يا مطلب دا دې چه خپل غلام لره د ازادولو نه پس د هغه نه هم دغه شان خدمت اخلی څنګه چه ئې مخکښې اخستلو، يعنی په زبردستئ باندې، يا دا چه غلام لره ازادولو سره د هغه ازادول پټ کړی او خدمت وغيره تري اخلی.

﴿ وهم له کارهون ﴾ د لاندې شارحينو ليکلې دی چه د ديندارو خلقو د کراهت په اعتبار سره، د دنيادارو کراهت معتبر نه دې، بلکه دا چه اکثريت ته به کتلې شی چه د اکثر خلقو خيال څه دې، د يو دوه کسانو ناخوښئ لره به هم اعتبار نه وی.

## بَابُ إِمَامَةِ الْبَرِّ وَالْفَاجِرِ

### باب دې په بيان د امامت د نيک او د فاجر کې

### د فاسق د امامت مسئله

د فاسق د امامت مسئله مختلف فيه ده، د فاسق دوه قسمونه دی من حيث الاعتقاد لکه مبتدع الداعي الى بدعة او فاسق من حيث الافعال، د امام مالک رحمه الله په نزد مطلقا د دواړو قسمو امامت فاسد دې (۲) مونځ به صحيح نه وی. او د امام احمد رحمه الله په نزد د اول قسم

[1]: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۴۳ (۹۷۰)، (تحفة الأشراف: ۸۹۰۳) (ضعيف)

[2] پس د امام مالک رحمه الله په حالاتو کښې ليکلې دی چه په شروع کښې خو به هغه مسجد نبوی ته د فرض مونځونو دپاره تشريف اوړلو او په مسجد کښې به کيناستلو هم، په جنازو کښې به ئې شرکت هم کولو، بيا ئې په فلار فلاره مسجد ته راتلل بالکل پريخودل، د پنځويشتو کالو پورې ئې په مسجد کښې مونځ اونکړو، حضرت شيخ په مقدمه د اوجز کښې ليکی چه په ظاهره کښې د امام مالک مسلک دا وو چه صلاة خلف الفاسق صحيح نه دې ممکنه ده چه د مسجد مونځ ئې په دې قسم خبرو باندې پريخودلې وی.

امامت خو فاسد دي او په قسم ثاني کښې د هغوی دوه روايتونه دی يو د جواز او بل د عدم جواز، او د احنافو او شوافعو په نزد دواړه صحيح دی مع الکراهة (حاشيه لامع ص ۱۶۹) او علامه شعراني ليکلي دی چه د امام مالک رحمه الله مذهب او د امام احمد مشهور قول دا دي چه د فاسق فسق که په تاويل سره وی نو بيا خو د مونځ اعاده في الوقت ضروری ده يعنی بعدالوقت د اعاده کولو حاجت نشته او که هغه فاسق بلا تاويل دي نو اعاده مطلقا واجب ده.

[۵۹۴]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الصَّلَاةُ الْمَكْتُوبَةُ وَاجِبَةٌ خَلْفَ كُلِّ مُسْلِمٍ بَرًّا كَانَ أَوْ فَاجِرًا وَإِنْ عَمِلَ الْكَبَائِرَ".

**ترجمه:** د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دي هغه وئيلي چې فرمائيلی دی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرض مونځ لازم دی وروسته د هر مسلمان نه نيک وی او کا فاجر وي، اګر که مرتکب د کبائرو وي.

## د فاسق د امامت مسئله

خو ښان پوهه کړه چه حديث الباب بجميع طرقه ضعيف دي، کما قال الحافظ ابن حجر، او ددې حديث بالمقابل يو بل حديث دي ﴿ لايؤمنكم ذو جرئة في دينه ﴾ خو دا حديث ضعيف دي. په سبل السلام (شرح بلوغ المرام) کښې ليکلي دی چه کله په احاديثو کښې تعارض پيدا شو نو مونږ به اصل طرف ته رجوع کوو او اصل دا دي چه من صحت صلاة صحت امامة.

## بَابُ إِمَامَةِ الْأَعْمَى

### باب دي په بيان د امامت د ړوندکي

[۵۹۵]([2])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْعَنْبَرِيُّ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا عِمْرَانُ الْقَطَّانُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَخْلَفَ ابْنَ أُمِّ مَكْتُومٍ يَؤُمُّ النَّاسَ وَهُوَ أَعْمَى".

**ترجمه:** د انس رضي الله عنه نه روايت دي بيشکه نبی صلی الله علیه وسلم خليفه ئې جوړ کړو ابن ام مکتوم چې امامت ئې کولو خلقو ته او هغه ړوند وو.

**تشريح: قوله:**﴿ ان النبي صلى الله عليه وسلم استخلف ابن ام مكتوم ﴾ وئيلې شوې دی چه هغه ئې دوه کرته خپل نائب جوړ کړې دې په ټولو امورو کښې او وئيلې شوې دی چه صرف په امامت صلاة کښې، او يو قول دا دې چه هغه ئې ديارلس کرته خپل نائب جوړ کړې دې يعنی کله چه به ئې غزواتو ته تشريف اوړلو.

### په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه

د شوافعو په نزد اعمٰی او بصير په دې مسئله کښې برابر دی ځکه چه په اعمٰی کښې که دا وصف دې چه هغه په مبصرات کښې نه مشغوليږی نو په بصير کښې دويم صفت دې چه هغه نجاست ته کتلو سره د هغې نه په ښه طريقې سره بچ کيدلې شی، او د جمهور علماء او ائمه ثلاثه په نزد د بصير امامت افضل دې د امامت اعمٰی نه ځکه چه بصير اقدر دې د اجتناب

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٦١٩) (ضعيف)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩٢/٣) (حسن صحيح)

عن النجاسة نه او په استقبال قبله باندې، ملا علی قاری لیکی چه امامت اعمیٰ زمونږ په نزد هغه وخت مکروه دې چه کله داسې بصیر موجود وی کوم چه په علم کښې د اعمیٰ نه زیات یا د هغه برابر وی، ګینې نه، ددې ټولو خبرو په خلاف د ابو اسحاق مروزی او امام غزالی په نزد د روند امامت افضل دې د بصیر د امامت نه ځکه چه د اعمیٰ مونځ اقرب الی الخشوع دې په نسبت د بصیر چه هغه په مبصرات کښې مشغول کیږی. (کذا فی البذل والمنهل)

## بَابُ إِمَامَةِ الزَّائِرِ

### باب دې په بیان د امامت د ملاقات کونکې کې

[۵۹۶] (¹) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، عَنْ بُدَيْلٍ، حَدَّثَنِي أَبُو عَطِيَّةَ مَوْلًى مِنَّا، قَالَ: كَانَ مَالِكُ بْنُ حُوَيْرِثٍ يَأْتِينَا إِلَى مُصَلَّانَا هَذَا فَأُقِيمَتِ الصَّلَاةُ، فَقُلْنَا لَهُ: تَقَدَّمْ فَصَلِّهْ، فَقَالَ لَنَا: قَدِّمُوا رَجُلًا مِنْكُمْ يُصَلِّي بِكُمْ، وَسَأُحَدِّثُكُمْ لِمَ لَا أُصَلِّي بِكُمْ، سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ زَارَ قَوْمًا فَلَا يَؤُمَّهُمْ وَلْيَؤُمَّهُمْ رَجُلٌ مِنْهُمْ".

**ترجمه**: حدیث بیان کړې دې ابو عطیة، چې مولی دی زمونږ نه، هغه وئیلی دي: وو مالک بن حویرث راتللو به زمونږ دې مصلی ته، نو قائم شو مونځ نو مونږ ووېل هغه ته: ته مخکې شه او مونځ ورکړه، هغه ووېل مونږ ته: مخکې کړئ يو سړی ستاسو نه چې مونځ درته درکړي، او زه به تاسو ته حدیث بیان کړم چې زه تاسو ته ولې مونځ نه کوم، ما اوریدلی د رسول الله ﷺ نه هغه به وئیل: چا چې ملاقات وکړو د يو قوم نو د هغوی امامت دې نه کوي، او امامت دې وکړي يو سړی د هغوی نه

### هغه حضرات چاته چه مطلقا تقدم حاصل دې

په دې مسئله کښې اسحاق بن راهویه متشدد دې د هغه په نزد د میلمه امامت کوروالو (یعنی صاحب البیت) ته جائز نه دې اګر چه هغه اجازت ورکړی دا مخکښې تیر شو چه بعض کسان داسې دی چه هغوی ته حق تقدم حاصل دې اګر چه اعلم او اقراء نه هم وی، يو د هغوی نه صاحب البیت هم دې.

## بَابُ الْإِمَامِ يَقُومُ مَكَانًا أَرْفَعَ مِنْ مَكَانِ الْقَوْمِ

### باب دی، چې امام ودریږي په اوچت ځای کې د ځای د قوم نه

### په مسئلة الباب کښې د ائمه کرامو مذاهب

د امام ارتفاع په مقتدی باندې د ائمه اربعه په نزد مکروه ده، البته د مسئلې په قیود او تفصیلاتو کښې اختلاف دې، د حنابله په نزد مطلقا مکروه دې او د شوافعو او مالکیانو په نزد که ارتفاع ضرورة وی نو جائز دې، مثلا د تعلیم د ضرورت په وجه باندې، لکه چه د صحیحین په روایاتو کښې دی چه يو ځل هغه په منبر باندې اودریدو سره خلقو ته مونځ ورکړو، قیام او رکوع ئې په منبر باندې اوکړه او د سجدو دپاره به لاندې راکوزیدو ﴿ ثم

¹): سنن الترمذي/الصلاة ۱۴۸ (۳۵۶)، سنن النسائي/الإمامة ۹ (۷۸۸)، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۸۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۳۶/۳)، (صحيح)

قال انما فعلت هذا لتأتموا بي ولتعلموا صلاتي ﴾ حنابله وائي چه دا ارتفاع صرف يو درجه د منبر په اندازه وه او په ارتفاع يسير كښې هيڅ باك نشته، مزيد اختلاف په دې كښې دا دې چه مالكيان وائي چه كه امام يا مقتدى په لوړ ځائې باندې د تكبر د وجې نه اودريږي نو فاسد به شي.

د احنافو په نزد كراهت هغه وخت دې چه كله صرف امام يا صرف مقتدى په اوچت ځائې باندې ولاړ وي او كه د امام سره بعض مقتديان هم وي نو بيا كراهت مرتفع كيږي، هم دغه شان په قدر ارتفاع كښې هم زمونږ په نزد څو اقوال دى، د ابويوسف په نزد بقدر اقامة الرجل، وعند الطحاوي ما زاد على القامة، بقدر ذراع، ما يقع به الامتياز وهو الراجح.

او كه ددې برعكس وي يعنى مقتدى اوچت ولاړ وي او امام په لاندې ځائې كښې نو د احنافو او شوافعو په نزد دا هم مكروه دى او د حنابله او مالكيانو په نزد مكروه نه دى. (كذا في المنهل)

[۵۹۷]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سِنَانٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ الْفُرَاتِ أَبُو مَسْعُودٍ الرَّازِيُّ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا يَعْلَى، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ هَمَّامٍ، أَنَّ حُذَيْفَةَ أَمَّ النَّاسَ بِالْمَدَائِنِ عَلَى دُكَّانٍ، فَأَخَذَ أَبُو مَسْعُودٍ بِقَمِيصِهِ فَجَبَذَهُ، فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ صَلَاتِهِ، قَالَ: "أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّهُمْ كَانُوا يُنْهَوْنَ عَنْ ذَلِكَ؟"، قَالَ: بَلَى، قَدْ ذَكَرْتُ حِينَ مَدَدْتَنِي.

**ترجمه:** د همام نه روايت دې چې حذيفة امامت وكړو په مدائن كښې بره په دكان، نو ابو مسعود دهغه قميص ونيولو او راخكلو ئې، هركله چې د مانځه نه فارغ شو هغه ورېل: آيا تاته پته نشته چې دوى به منع كوله ددې نه؟ هغه وفرمائيل: ولې نه، بيشكه ماته ياد شو كله چې تا زه راخكلم.

**تشريح: قوله:** ﴿ ان حذيفة ام بالمدائن على دكان الخ ﴾ د مدائن نه مدائن كسرى مراد دې كوم چه په بغداد كښې دې كوم چه د اكاسره (د كسرى جمع) دار الحكومت وو، د جمع په صيغې سره ئې نوم په دې وجه كيخودلې شوې دې چه هغه ډير لوئې ښهر وو، د دكان نه اوچت ځائې مراد دې.

## د باب په دوه احاديثو كښې تعارض

د حديث مضمون واضح دې او د هغې نه وړاندې روايت داسې دې چه عمار امامت اوكړو او سيدنا حذيفه رضي الله عنه جبذ اوكړو، اوس يا خو دې په تعدد واقعه باندې محمول كړې شى، او يا به دا وئيلې شى چه راتلونكې حديث ضعيف دې په هغې كښې يو راوى مجهول دې.

[۵۹۸]([2])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي أَبُو خَالِدٍ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيِّ، حَدَّثَنِي رَجُلٌ، أَنَّهُ كَانَ مَعَ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ بِالْمَدَائِنِ فَأُقِيمَتِ الصَّلَاةُ، فَتَقَدَّمَ عَمَّارٌ وَقَامَ عَلَى دُكَّانٍ يُصَلِّي وَالنَّاسُ أَسْفَلَ مِنْهُ، فَتَقَدَّمَ حُذَيْفَةُ فَأَخَذَ عَلَى يَدَيْهِ فَاتَّبَعَهُ عَمَّارٌ حَتَّى أَنْزَلَهُ حُذَيْفَةُ، فَلَمَّا فَرَغَ عَمَّارٌ مِنْ صَلَاتِهِ، قَالَ لَهُ حُذَيْفَةُ: أَلَمْ تَسْمَعْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا أَمَّ الرَّجُلُ الْقَوْمَ فَلَا يَقُمْ فِي مَكَانٍ أَرْفَعَ مِنْ مَقَامِهِمْ"، أَوْ نَحْوَ ذَلِكَ، قَالَ عَمَّارٌ: لِذَلِكَ اتَّبَعْتُكَ حِينَ أَخَذْتَ عَلَى يَدَيَّ.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۳۸۸) (صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۳۹٦) (حسن)

**ترجمه**: عدي بن ثابت انصاري وائي چه ماته يو سړي بيان کړل چه هغه د عمار بن ياسر رضي الله عنه سره په مدائن کښې وو چه د مونځ دپاره اقامت اوشو نو عمار مخکښې شو اوپه يوه دبه (موره اوچت ځائي) باندې اودريدو مونځ ئې ورکړو، اوخلق دهغه نه لاندې وو، په دې ليدلو سره حذيفه رضي الله عنه ورمخکښې شو او د عمار بن ياسر دواړه لاسونه ئې اونيول او شاته (روسته) ئې راوستلو، عمار بن ياسر هم راشاته شو تردې چه حذيفه هغه لاندې راکوز کړو، کله چه عمار دځپل مونځ نه فارغ شو نو حذيفه هغه ته اووئيل: آيا تا د رسول الله ﷺ نه دا فرمان نه دې آوريدلې چه کله يوکس د يو قوم امامت کوي نو دهغوی نه دې اوچت ځائې کښې نه اودريږي؟ عمار رضى الله عنه اووئيل: هم په دې وجه خو چه کله تا زما لاس اونيولو نو زه هم تا سره رالاندې شوم.

## باب إِمَامَةِ مَنْ يُصَلِّي بِقَوْمٍ وَقَدْ صَلَّى تِلْكَ الصَّلَاةَ

**باب دې په بيان د امامت دهغه چا کې چې هغه مونځ يو قوم ته ورکړي چې هغه يي کړي وي**

[۵۹۹] (۱) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مِقْسَمٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، "أَنَّ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ كَانَ يُصَلِّي مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ ثُمَّ يَأْتِي قَوْمَهُ فَيُصَلِّي بِهِمْ تِلْكَ الصَّلَاةَ".

**ترجمه**: د جابر بن عبد الله نه روايت دې، بيشکه معاذ بن جبل مونځ وکړو د رسول الله سره د ماسخوتن. بيا به راتلو خپل قومته نو کولو به ئې هغوی ته همدغه مونځ.

[۶۰۰] (۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: "إِنَّ مُعَاذًا كَانَ يُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ يَرْجِعُ فَيَؤُمُّ قَوْمَهُ".

**ترجمه**: جابر بن عبد الله به وئيل: بيشکه معاذ وو چې مونځ به ئې کولو د رسول الله ﷺ سره، بيا به واپس تلو او امامت به ئې کولو خپل قوم ته.

### د صلاة المفترض خلف المتنفل بحث

د داؤد ظاهري او امام شافعي رحمه الله په نزد صلاة المفترض خلف المتنفل جائز دې، هم دا يو روايت د امام احمد دې، او د احنافو، مالکيانو او حنابله په مشهور قول کښې دا جائز نه دی، هم دغه شان صلاة الظهر خلف من يصلى العصر وعکسه،

په دې کښې هم دا اختلاف دې، د شوافع په نزد جائز دې او د ائمه ثلاثه په نزد جائز نه دې، او دريمه مسئله دا ده ﴿ صلاة المتنفل خلف المفترض ﴾ دا د جمهور علماء کرامو په نزد جائز دې د مالکيانو په نزد دا هم جائز نه دې (کذا فى الفيض السمائى ص ۲۷٤ ج ۱)

جمهور د حديث الباب يعنى دقصه صلاة معاذ نه کوم چه په صحيحين کښې هم مذکور دې جواب دا ورکوی چه ددې نه استدلال صحيح نه دې، ممکنه ده چه هغه په رسول

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۳۹۱)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأذان ٦٠ (۷۰۰)، والأدب ۷٤ (٦١٠٦)، صحيح مسلم/الصلاة ۳٦ (٤٦٥)، سنن النسائي/الإمامة ۳۹ (۸۳۲)، ٤١ (۸۳٦)، والافتتاح ٦٣ (۹۸۵)، ۷۰ (۹۹۸)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٤۸ (۹۸٦)، مسند احمد (۲۹۹/۳، ۳۰۸، ۳٦۹)، سنن الدارمي/الصلاة ٦٥ (۱۳۳۳)، ويأتي برقم: (۷۹۰) (حسن صحيح)

(۲): صحيح مسلم/الصلاة (۳٦ (٤٦٥)، سنن النسائي/الإمامة ٤١ (۸۳٦)، (تحفة الأشراف: ۲۵۳۳) (صحيح)

الله ﷺ پسې د نفلو نيت کولو. اذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال.

## د شوافعو د حديث نه استدلال او د جمهورو د طرف نه جواب

شوافع وائي چه مصنف عبدالرزاق، طحاوي، دارقطني په روايت کښې په طريق د ابن جريج عن عمرو بن دينار تصريح ده. ﴿ وهي له تطوع ولهم فريضة ﴾ امام طحاوي رحمه الله فرمائي چه دا واقعه د معاذ، سفيان بن عيينه ډيره په احسن طريقې سره روايت کړې ده په هغې کښې خو دا زيادت نشته کوم چه ابن جريج روايت کوي، پس ظاهره دا ده چه دا لفظ مدرج دې د ابن جريج د طرف نه او يا کيدې شي چه د هغوی د شيخ د طرف نه يا زيات نه زيات دا وئيلې کيدې شي چه واقعي دا خبره به معاذ رضي الله عنه کړې وي، نو بيا هم دا زيادت موقوف پاتې شو، مرفوعاً ددې ثبوت نشته، برابره خبره ده که هغه د خپل طرف نه کول، اوس که رسول الله ﷺ ددې تقرير فرمائيلې وې نو بيا هم صحيح وه او دلته صورت حال ددې برعکس دې يعنی رسول الله ﷺ ته چه کله علم اوشو چه هغه خپل ځائې کښې هم مونځ ورکوی او اوږد مونځ ورکوی نو په دې باندې ئې اوفرمائيل ﴿ يا معاذ اما ان تصلى معى واما ان تخفف عن قومک ﴾ يا خو ما سره مونځ کوه يا بل صورت دا دې چه خپل قوم ته مونځ ورکوه خو خفيف او مختصر، په دې حديث کښې ګويا نبي ﷺ په دواړو ځايونو کښې د مونځ کولو نه منع کړو. فکيف الاستدلال.

## د حافظ ابن حجر تاويل

حافظ ابن حجر رحمه الله ددې جواب دا کړې دې چه د رسول الله ﷺ مراد دا نه دې چه صرف په يوځائې کښې مونځ کوه بلکه په اصل کښې د تطويل صلاة نه منع کول دی او مطلب دا دې چه يا خو صرف ما سره کوه ﴿ ای ان لم تخفف عن قومک ﴾ (که مختصر مونځ نه شې ورکولې) واما ان تخفف عن قومک ای وتصلى معى ﴾ او که مختصر مونځ ورکولې شې خپل قوم ته نو بيا ئې ما سره هم کولې شې،

علامه عيني د حافظ صاحب د اشکالاتو جوابات ورکړې دی دا ټوله مناظره حضرت په بذل المجهود کښې ذکر فرمائيلې ده، د حافظ دا وينا چه ﴿ ان لم تخفف عن قومک ﴾ صحيح نه ده ځکه چه ددې څه مطلب دې چه که ته تخفيف نه شې کولې، د نه شې کولې څه معنی؟ آيا هغه په تخفيف باندې قادر نه وو، او بيا د ائمه په مقتديانو تخفيف کول خو مامور به من الشارع دې په هغې کښې تعليق څنګه صحيح دې.

## د جمهورو مزيد دلائل

د احنافو بلکه جمهورو سره نور هم دلائل دی، مثلاً د صلاة الخوف مشروعيت چه که صلاة المفترض خلف المتنفل جائز وې نو بيا د صلاة الخوف د طريقې جاری کولو څه حاجت وو په کوم امام پسې چه خلق مونځ کول غواړی هغه دې يو جماعت ته پوره مونځ يو ځل ورکړی او په دويم ځل دې دويم جماعت ته ورکړی، هم دغه شان حديث مرفوع ﴿ انما جعل الامام ليؤتم به، لا تختلفوا على ائمتكم ﴾ او د نيت د اختلاف نه نور اختلاف څه کيدې

شي، شوافع وائي چه د ائتمام او اقتداء تعلق د ظاهري اقتداء سره دی چه په ظاهر کښې د هغه سره اوسه، ﴿ اذا ركع فاركعوا، اذا سجد فاسجدوا ﴾ وغیره وغیره د نیتونو اتحاد او اتفاق په دې کښې داخل نه دې.

﴿ ان معاذا بن جبل كان يصلي مع رسول الله صلي الله عليه وسلم العشاء ﴾ د سیدنا معاذ دا قصه د صحیحین د روایت مطابق د ماسخوتن د مونځ ده، دلته په ابوداود کښې هم ماسخوتن دې.

## د معاذ رضی الله عنه په قصه کښې د ماسخوتن او ماښام تعارض

خو وړاندې تلو سره په ابواب القرات کښې په یو روایت کښې په ځائې د ماسخوتن د ماښام لفظ راغلې دې هم دغه شان د نسائی په روایت کښې هم ماسخوتن او په یو کښې ماښام مذکور دې،د حضرت گنگوهي او حضرت سهارنپوري رائې دا ده چه په تعدد واقعه باندې محمول کول صحیح نه دی ځکه چه د سیدنا معاذ رضی الله عنه په شان جلیل القدر صحابی نه دا بعیده ده چه یو ځل د تنبیه کولو نه پس بیا هم داسې اوکړی او بیا ورته دوباره د تنبیه ضرورت راشي، لهذا ماسخوتن صحیح دې لکه چه مشهور دی، خو د حافظ میلان د تعدد واقعه طرف ته دې ځکه چه د رجل معتزل په نوم کښې هم روایات مختلف دی درې نومونه په روایاتو کښې راځي، حرام بن ملحان، حزم بن ابی کعب، سلیم، ددې نه د تعداد تائید کیږي، په تعدد باندې چه کوم ا شکال راځي ددې جواب علامه سندی د نسائی په حاشیه کښې دا ورکړې دې چه داسې اووئیلې شی چه په اول ځل واقعه پیښه شوه نو د هغې شکایت تر اوسه پورې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته نه وو رسیدلې چه بیا په دویم ځل باندې بل مونځ کښې هم داسې صورت راپیښ شو نو د دواړو واقعاتو شکایت هغه ته یوځائې اورسیدو چه په هغې باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم معاذ رضی الله عنه راطلب کړو او هغه ته ئې تنبیه اوکړه. والله تعالى اعلم

## بَابُ الْإِمَامِ يُصَلِّي مِنْ قُعُودٍ

### باب دې په بیان د امام کښې چې مونځ ورکوی په ناسته

لفظ ﴿من ﴾ زائد دې او په بعض نسخو کښې دی ﴿ باب اذا صلى الامام قاعدًا ﴾ امام که د عذر د وجې نه مونځ په ناسته ورکوی نو مقتدی به ئې څنګه کوی.

## په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه

مسئله مختلف فیه ده، جمهور علماء کرام فرمائی چه مقتدیان به ئې قائما کوی چه د هغوی هیڅ عذر نشته، د امام احمد او اسحاق بن راهویه په نزد به مقتدیان هم په ناسته مونځ کوی، په دې قعود کښې به هغوی د امام موافقت کوی او د امام مالک مسلک دا دې چه د قاعدا مونځ ورکونکي امامت جائز نه دې غیر معذور دې د هغه اقتداء قائمًا هم نه کوی، او په احنافو کښې د امام محمد مسلک هم دا دې لهذا په دې مسئله کښې درې اقوال شو، یو د جمهورو، بل د امام احمد وغیره، او دریم د امام مالک او محمد او د امام مالک دلیل دا دې چه هغه اوفرمائیل ﴿ لا يؤم احد بعدي جالسا ﴾ خو دا حدیث مرسل دې کوم چه جمهور په تنزیه باندې محمول کوی، او د امام احمد دلیل حدیث الباب دې چه د هغې جواب زمونږ د طرف نه وړاندې راځي.

[۶۰۱] ()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكِبَ فَرَسًا فَصُرِعَ عَنْهُ فَجُحِشَ شِقُّهُ الْأَيْمَنُ، فَصَلَّى صَلَاةً مِنَ الصَّلَوَاتِ وَهُوَ قَاعِدٌ وَصَلَّيْنَا وَرَاءَهُ قُعُودًا، فَلَمَّا انْصَرَفَ، قَالَ: "إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ، فَإِذَا صَلَّى قَائِمًا فَصَلُّوا قِيَامًا، وَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوا، وَإِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوا، وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، فَقُولُوا: رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ، وَإِذَا صَلَّى جَالِسًا فَصَلُّوا جُلُوسًا أَجْمَعُونَ".

**ترجمه**: د انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دي، بيشکه رسول الله ﷺ سور شو په اس نو وغورځيده د هغي نه نو زخمي شو ښي اړخ د هغه، نو هغه ورکړو يو مونځ د مونځونو نه په ناسته، او مونځ وکړو مونږ وروسته د هغه نه په ناسته، هرکله چې فارغ شو، نو ويې وئيل: بيشکه ګرځولې شوی دی امام چې هغه پسې اقتداء وشي، کله چې هغه مونځ کوی په ولاړه نو مونځ کوئ په ولاړه، او چې کله رکوع کوې نو تاسو هم رکوع کوئ، او چې کله اوچت شي نو تاسو هم اوچت شئ، او چې کله هغه ووايي سمع الله لمن حمده نو تاسو وايي ربنا و لک الحمد، او چې کله هغه مونځ کوې په ناسته نو تاسو ټول په ناسته مونځ کوئ.

**تشريح**: **قوله**:﴿ عن انس بن مالک ان رسول الله صلى الله عليه وسلم رکب فرسا فصرع عنه فجحش شقه الايمن ﴾ يعنی يو ځل رسول الله ﷺ په اس باندې سور وو د هغې نه راپريوتلو نو هغې سره ئې ښي طرف متاثر شو.

په دې روايت کښې ﴿ شقه الايمن ﴾ مذکور دې، او په يو روايت کښې ﴿ فجحشت ساقه او کتفه ﴾ او په يو روايت کښې ﴿ فانفکت قدمه ﴾ دې، حافظ فرمائی ﴿ لا منافاة بينهما لاحتمال وقوع الامرين ﴾ يعنی ښي طرف ئې هم متاثر شو او په قدم مبارک کښې ئې درد هم پيدا شو، دا واقعه په ذی الحجة ۵ هجری کښې پيښه شوې وه په دې موقعه باندې رسول الله ﷺ دير مونځونه په ناسته ورکړل او صحابه کرامو ته ئې هم خپل ځان سره جالسا د مونځ کولو حکم اوکړو.

## په مسئلة الباب کښې د جمهورو دليل

هم دا حديث د حنابله مستدل دې ددې جواب تاسو په مشکاة المصابيح کښې لوستلې دې، صاحب مشکاة د بعض علماء کرامو نه ددې جواب دا نقل کړې دې چه دا حديث منسوخ دې او دا واقعه د شروع شروع ده او د مرض الوفات واقعه چه په هغې کښې رسول الله ﷺ په ناسته باندې مونځ ورکړو او صحابه کرامو په هغه پسې په ولاړه مونځ اوکړو هغه ددې دپاره ناسخ دې.

﴿ وانما يوخذ بالاخر من فعل رسول الله صلى الله عليه وسلم ﴾ او حنابله د مرض الوفات يو جواب خو دا کوی چه په دې روايت کښې سخت اختلاف دې په دې خبره کښې چه په دې قصه کښې امام څوک دې ابوبکر رضي الله عنه يا خپله رسول الله ﷺ، لهذا ددې نه استدلال صحيح

(): صحيح البخاري/الصلاة ۱۸ (۳۷۸)، والأذان ۵۱ (۶۸۹)، ۸۲ (۷۳۲)، ۱۲۸ (۸۰۵)، وتقصير الصلاة ۱۷ (۱۱۱۴)، صحيح مسلم/الصلاة ۱۹ (۴۱۱)، سنن النسائي/امامة ۱۶ (۷۹۵)، ۴۰ (۸۳۳)، والتطبيق ۲۲ (۱۰۶۲)، (تحفة الأشراف: ۱۵۲۹)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ۱۵۵ (۳۶۱)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۴۴ (۱۲۳۸)، موطا امام مالك/صلاة الجماعة ۵ (۱۶)، مسند احمد (۳/۱۱۰، ۱۶۲)، سنن الدارمي/الصلاة ۴۴ (۱۲۹۱) (صحيح)

نه دي، بل جواب هغوى دا ورکړې دې چه ددې مسئلې دوه صورتونه دى، يو دا چه امام د عذر د وجې نه په شروع کښې مونځ په ناسته باندې ورکړى، په دې صورت کښې حکم خو دا دې چه مقتدى دې هم په ناسته باندې اوکړى، بل صورت دا دې چه امام د مونځ ابتدا خو اوکړى په ولاړه باندې خو روستو د څه عذر د وجې نه هغه په ناسته باندې اوکړې شى، نو په دې صورت کښې مقتدى لره ناسته نه ده پکار لکه چه په مرض الوفات کښې شوې دى چه په شروع کښې امام صديق اکبر رضي الله عنه وو چا چه په ولاړه باندې مونځ ورکولو، روستو رسول الله ﷺ مسجد ته تشريف راوړلو چه په هغې باندې صديق اکبر رضي الله عنه شاته شو او رسول الله ﷺ د هغه په ځائې امام شو نو ګويا داسې اوګڼړئ چه امام ته په مينځ کښې عذر راپيښ شو، لهذا ددې نه معلومه شوه په مينځ کښې د څه عذر راپيښيدو حکم جدا دې، ددې په جواب کښې جمهور دا وئيلې شى چه دا خو تاسو د حديث توجيه خالص د خپل مسلک مطابق اوکړه، د حديث رخ مو خپل طرف ته کړو.

امام ترمذى رحمه الله په دې مسئله کښې دوه بابونه جدا جدا قائم کړې دى، يو د مذهب حنابله د اثبات دپاره څنګه چه مصنف قائم فرمائيلې دې، دويم باب د جمهورو د مسلک ثابتولو دپاره قائم کړې دې او په هغې کښې د مرض الوفات والا مونځ قصه په مختلف رواياتو سره ذکر کړې ده خو امام ابوداود نه خو د جمهورو د مسلک دپاره باب قائم کړې دې او نه ئې مستقل باب قائم کړې او نه ئې د جمهورو دليل ذکر کړې دې، امام خطابى ددې کتاب په شرح معالم السنن کښې په دې باندې د تعجب اظهار کړې دې، چه دلته مصنف د خپل عادت خلاف صرف د يوې ډلې دليل ذکر فرمائيلې دې او د جمهور دليل ته ئې تعرض نه دې کړې، حال دا چه دا کتاب په امهات سنن کښې دې او ډير جامع کتاب دې، معلومه نه ده چه مصنف ته څه ذهول اوشو؟ والله تعالى اعلم

**فائده اولى**: زمونږ د شيخ رائې لکه چه د کتاب په مقدمه کښې هم تير شوې دى چه امام ابوداود حنبلى دې، د حنابله دلائل نسبة زيات بيانوى، مصنف چه دلته کوم طرز اختيار کړې دې د هغې نه د حضرت شيخ د رائې تائيد کيږى.

[۶۰۲]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، وَوَكِيعٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: رَكِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا بِالْمَدِينَةِ فَصَرَعَهُ عَلَى جِذْمِ نَخْلَةٍ فَانْفَكَّتْ قَدَمُهُ، فَأَتَيْنَاهُ نَعُودُهُ فَوَجَدْنَاهُ فِي مَشْرُبَةٍ لِعَائِشَةَ يُسَبِّحُ جَالِسًا، قَالَ: فَقُمْنَا خَلْفَهُ فَسَكَتَ عَنَّا، ثُمَّ أَتَيْنَاهُ مَرَّةً أُخْرَى نَعُودُهُ، فَصَلَّى الْمَكْتُوبَةَ جَالِسًا، فَقُمْنَا خَلْفَهُ فَأَشَارَ إِلَيْنَا فَقَعَدْنَا، قَالَ: فَلَمَّا قَضَى الصَّلَاةَ، قَالَ: "إِذَا صَلَّى الْإِمَامُ جَالِسًا فَصَلُّوا جُلُوسًا، وَإِذَا صَلَّى الْإِمَامُ قَائِمًا فَصَلُّوا قِيَامًا، وَلَا تَفْعَلُوا كَمَا يَفْعَلُ أَهْلُ فَارِسَ بِعُظَمَائِهَا".

**ترجمه**: د جابر رضى الله عنه نه روايت دې هغه وئيلى دى سور شو رسول الله ﷺ په اس باندې په مدينه کښې، نو هغه ئې وغورځولو په تنه د کجورې نو خپه ئې وخته، مونږ راغلو د هغه عيادت مو کولو، مونږ هغه وليدلو په بالاخانه د عائشې کښې چې نفل ئې کول په

[۱]: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۴۴ (۱۲۴۰)، الطب ۲۱ (۳۴۸۵)، (تحفة الأشراف: ۲۳۱۰)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الصلاة ۱۹ (۴۱۱)، سنن النسائي/الإفتتاح ۲۰۷ (۱۲۰۱)، مسند احمد (۳/۳۳۴) (صحيح)

ناسته، هغه وايي: نو مونږ ودريدو وروسته د هغه نه نو هغه چپ شو زمونږ نه، بيا راغلو مونږ هغه ته بل ځل، مونږ د هغه بيمار پرسې كوله، فرض مونځ ئې وكړو په ناسته، نو مونږ ودريدو وروسته د هغه نه نو اشاره ئې وكړه مونږ ته، نو مونږ كيناستلو ، هغه وايي: هر كله چې ئې مونځ پوره كړو هغه وفرمائيل: كله چې امام په ناسته مونځ كوى نو تاسو هم په ناسته مونځ كوئ، او كله چې امام په ولاړه مونځ كوى نو تاسو هم په ولاړه مونځ كوئ، تاسو داسې مه كوئ لكه څنګه چې د فارس والا كوى د خپلو سردارانو سره (چه دهغوى سرداران ناست وى او نورخلق ئې ولاړ وى).

**فائده ثانيه** : ﴿ واذا صلى جالسا فصلوا جلوسا ﴾ كښې تاويل دا كړې شوې دې چه دا مطلب نه دې چه كله امام په ناسته باندې مونځ كوى نو تاسو هم په ناسته باندې ټول مونځ كوئ، بلكه مطلب دا دې چه ﴿ اذا جلس فاجلسوا ﴾ چه كله امام د تشهد دپاره كينى نو تاسو هم كينئ، كما قال اذا كبر فكبروا واذا ركع فاركعوا، خو دا جواب بس هم دغه شان دې چه د مفصل رواياتو خلاف دې خو د بعض رواياتود الفاظو نه ددې جملې څه نه څه تائيد هم كيږى، په دې وجه فرمائى ﴿ ولا تفعلوا كما يفعل اهل فارس بعظمائها ﴾ لهذا كيدې شى چه بعض صحابه كرام د تشهد په حالت كښې د كيناستلو په ځائې ادبا او تعظيما أودريدلي وى، په دې باندې رسول الله ﷺ منع كړل چه داسې زما دپاره مه اودريږئ څنګه چه اهل فارس د خپلو مشرانو تعظيم كښې اودريږى.

[٦٠٣][1] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ المعنى، عَنْ وُهَيْبٍ، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ، فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا وَلَا تُكَبِّرُوا حَتَّى يُكَبِّرَ، وَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوا وَلَا تَرْكَعُوا حَتَّى يَرْكَعَ، وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقُولُوا: اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ، قَالَ مُسْلِمٌ: وَلَكَ الْحَمْدُ، وَإِذَا سَجَدَ فَاسْجُدُوا وَلَا تَسْجُدُوا حَتَّى يَسْجُدَ، وَإِذَا صَلَّى قَائِمًا فَصَلُّوا قِيَامًا، وَإِذَا صَلَّى قَاعِدًا فَصَلُّوا قُعُودًا أَجْمَعُونَ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ، أَفْهَمَنِي بَعْضُ أَصْحَابِنَا، عَنْ سُلَيْمَانَ.

**ترجمه**: د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلى دى، وئيلى دى رسول الله ﷺ: بيشكه ګرځولى شوى دى امام چې اقتداء وشى د هغه پسې، كله چې هغه تكبير ووايي نو تاسو هم تكبير كوئ، او تاسو تكبير مه كوئ ترڅو چې هغه تكبير وكړي، او كله چې هغه ركوع وكړى نو تاسو هم ركوع وكړئ، او ركوع مه كوى تردې چې هغه ركوع وكړي، او كله چې سمع الله لمن حمده ووايى نو تاسو وايي: اللهم ربنا لك الحمد ـ وئيلى دى مسلم: و لك الحمد ـ او چې كله سجده وكړى نو تاسو هم سجده وكړئ، او سجده مه كوئ ترڅو چې هغه سجده وكړي، او كله چې مونځ كوى په ولاړه نو تاسو هم مونځ كوئ په ولاړه، او كله چې هغه مونځ كوى په ناسته نو مونځ وكړئ تاسو ټول په ناسته. وئيلى دى ابوداود: اللهم ربنا لك الحمد زه پوهه كړى يم بعضو ملګرو زمونږ د سليمان نه.

[1]: تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ١٢٨٨٢)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الصلاة ٢٠ (٤١٧)، سنن النسائي/الافتتاح ٣٠ (٩٢٠)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٣ (٨٤٦)، ١٤٤ (١٢٣٨)، مسند احمد (٢/٣٧٦، ٤٢٠) (صحيح)

[۶۰۴]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ آدَمَ الْمِصِّيصِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ، بِهَذَا الْخَبَرِ، زَادَ: وَإِذَا قَرَأَ فَأَنْصِتُوا، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَهَذِهِ الزِّيَادَةُ وَإِذَا قَرَأَ فَأَنْصِتُوا، لَيْسَتْ بِمَحْفُوظَةٍ الْوَهْمُ عِنْدَنَا مِنْ أَبِي خَالِدٍ.

**ترجمه**: د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې، هغه روايت کوی د نبی ﷺ نه هغه فرمائيلی دي: بيشکه ګرځولی شوی دی امام چې هغه پسې اقتداء وشي. په دې حديث کښې، هغه زيادت کړی دی: او چې کله قرأت لولې نو چپ شئ. وئيلی دی ابوداود: او دا زيادت (و اذا قرء فانصتوا) دا محفوظ نه دی او دا زيادت زمونږ په نزد د ابو خالد نه دی.

**تشريح**: **قوله**:﴿ زاد واذا قراء فانصتوا قال ابوداود : وهذه الزيادة.... ليست بمحفوظة ﴾ د زاد ضمير په بذل او منهل کښې د ابو خالد طرف ته راجع کړې شوې دې کوم چه د ابن عجلان شاګرد دې، او د مصنف د کلام نه هم دا معلوميږي، خو په عون المعبود کښې د ﴿ زاد ﴾ فاعل زيد بن اسلم ليکلې دې، په ظاهره کښې ددې وجه دا ده چه دلته په سند کښې د زيد بن اسلم مقابل خو موجود دې يعنی مصعب بن محمد لکه چه پورته په سند کښې دی، دا دواړه يعنی مصعب او زيد بن اسلم د ابو صالح شاګردان دی، او د ابو خالد مقابل دلته په سند کښې موجود نه دې، خو په ظاهره وجه هم هغه ده کوم چه په بذل او منهل کښې ده. والله تعالی اعلم

## واذا قراء فانصتوا په ثبوت کښې بحث

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه ددې کتاب شارح حافظ منذری د امام ابوداود تنقيد نه دې تسليم کړې، او دا ئې وئيلې دی چه ابو خالد الاحمر چه د هغه نوم سليمان بن حيان دې دا د صحيحين راوی دې شيخين د هغه د روايت تخريج کړې دې، بالکل ثقه راوی دې او د ثقه زيادت معتبر وی اګر چه هغه متفرد وی، او دلته خو تفرد هم نشته بلکه محمد بن سعيد انصاری د ابو خالد متابعت کړې دې لکه چه په نسائی (ص ۱۴۶) کښې روايت موجود دې لهذا دا زيادت صحيح او ثابت دې.

ځان پوهه کړئ چه ﴿ واذا قرأ فانصتوا ﴾ په دې کتاب کښې وړاندې په باب التشهد کښې هم راروان دې، خو هغه حديث د ابو موسی اشعری رضي الله عنه دې او دلته چه کوم حديث دې هغه د ابوهريره رضي الله عنه دې، هلته هم مصنف په دې لفظ باندې کلام کړې دې او دې ته ئې غير محفوظ وئيلې دې او فرمائی : ﴿ لم يجئ به الا سليمان التيمی ﴾

امام مسلم رحمه الله په صحيح مسلم کښې د ابو موسی اشعری رضي الله عنه حديث چه په هغې کښې دا زيادت موجود دې تخريج کړې دې، د امام مسلم يو شاګرد هم په دې لفظ باندې د تردد اظهار اوکړو او هغه تردد هم دا کيدې شو چه په دې زيادت سره سليمان تيمی متفرد دې نو په دې باندې امام مسلم رحمه الله اوفرمائيل : ﴿ اترید احفظ من سليمان ﴾ يعنی که سليمان تيمی په دې سره متفرد دې نو په دې کښې څه حرج دې هغه خو ډير ثقه او حافظ حديث

---

() : سنن النسائي/الإفتتاح ۳۰(۹۲۲)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۳ (۸۴۶)، (تحفة الأشراف: ۱۲۳۱۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۴۲۰) (صحيح)

دي، ددې نه روستو هم دې سائل د امام مسلم نه تپوس اوکړو چه دا الفاظ په حديث ابوهريره رضي الله عنه کښې هم دی نو ايا هغه هم ستا په نزد صحيح دي، هغه اوفرمائيل چه او: صحيح دي، سائل ورته اووې بيا تاسو په کتاب کښې د هغې تخريج ولې نه دې کړې نو هغه اوفرمائيل: ﴿ ليس كل شئ عند صحيح وضعت ههنا، وانما وضعت ههنا ما اجمعوا عليه ﴾ چه دا ضروری نه ده چه کوم حديث زما په نزد صحيح وی هغه دې زه دلته ذکر کړم، زه په دې خپل صحيح کښې هغه احاديث راوړم چه د هغې په صحت باندې د مشائخو اجماع شوې وی، دا ټول عبارت په صحيح مسلم کښې په متن کښې موجود دې، ددې نه معلومه شوه چه د ابو موسى اشعري رضي الله عنه حديث چه په هغې کښې دا زيادت موجود دې هغه په قول د امام مسلم بالاجماع صحيح دې. (خو دا په ذهن کښې ساتئ چه د امام مسلم مراد په اجماع سره د څو مخصوص مشائخو اجماع ده)، حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل المجهود کښې ﴿ واذا قراء فانصتوا ﴾ د ډيرو صحابه کرامو د رواياتو نه د کتابونو د حوالې سره په يو درځن طرق سره ثابت کړې دې او په اخر کښې دی چه په دې طرق کښې بعض صحيح او بعض ضعيف دی، که دا ټول طرق هم ضعيف وی نو په تعدد سره به ئې انجبار شوې وې، پاتې لا دا چه بعض طرق پکښې صحيح هم دی، دا ټول بحث او مضمون د قرأت خلف الامام متعلق دې کوم چه قابل حفظ دې، هلته به مو په کار راشی، دلته به بحث په حديث الباب کښې د کيدو د وجې نه بې محل او د وخت نه مخکښې اوشو.

[۶۰۵]([۱])حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهَا قَالَتْ: صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَيْتِهِ وَهُوَ جَالِسٌ، فَصَلَّى وَرَاءَهُ قَوْمٌ قِيَامًا فَأَشَارَ إِلَيْهِمْ أَنِ اجْلِسُوا، فَلَمَّا انْصَرَفَ، قَالَ: "إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ، فَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوا، وَإِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوا، وَإِذَا صَلَّى جَالِسًا فَصَلُّوا جُلُوسًا".

**ترجمه:** عائشه دا بی بی د رسول الله صلی الله علیه وسلم ده هغې ويلی دي: مونځ وکړو رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپل کور کښې او هغه ناست وو، مونځ وکړو وروسته د هغه نه يو قوم په ولاړه، نو اشاره ئې ورته وکړه چې کينئ، هرکله چې فارغ شو هغه ووېل: بيشکه ګرځولی شوی دی امام چې اقتداء وشی په هغه پسې کله چې هغه رکوع کوی نو تاسو هم رکوع کوئ، او کله چې هغه سر اوچت کړی نو تاسو هم سر اوچت کړئ، او کله چې هغه مونځ کوې په ناسته نو تاسو هم په ناسته مونځ کوئ.

[۶۰۶]([۲])حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَيَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ الْمَعْنَى، أَنَّ اللَّيْثَ حَدَّثَهُمْ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: اشْتَكَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَصَلَّيْنَا وَرَاءَهُ وَهُوَ قَاعِدٌ وَأَبُو بَكْرٍ يُكَبِّرُ لِيُسْمِعَ النَّاسَ تَكْبِيرَهُ، ثُمَّ سَاقَ الْحَدِيثَ.

[۱]: صحيح البخاري/الأذان ۵۱ (۶۸۸)، وتقصير الصلاة ۱۷ (۱۱۱۳)، ۲۰ (۱۱۱۹)، (تحفة الأشراف: ۱۷۱۵۶)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الصلاة ۱۹ (۴۱۲)، سنن ابن ماجه/ إقامة الصلاة ۱۴۴ (۱۲۳۷)، موطا امام مالك/ صلاة الجماعة ۵ (۱۷)، مسند أحمد (۶/۱۱۴،۱۶۹) (صحيح)

[۲]: صحيح مسلم/الصلاة ۱۹ (۴۱۳)، سنن النسائي/الافتتاح ۲۰۷ (۱۲۰۱)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۴۵ (۱۲۴۰)، (تحفة الأشراف: ۲۹۰۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۳۴) (صحيح)

**ترجمه**: د جابر رضي الله عنه نه روایت دي هغه وئیلی دي: چه کله بیمار شو نبی ﷺ نو مونږ مونځ وکړو وروسته د هغه نه او هغه ناست وو او ابوبکر تکبیر ویلو چي خلقو ته واوروی تکبیر د هغه، بیا ئي بیان کړو پوره حدیث.

[۶۰۷] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا زَيْدٌ يَعْنِي ابْنَ الْحُبَابِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ صَالِحٍ، حَدَّثَنِي حُصَيْنٌ مِنْ وَلَدِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ، عَنْ أُسَيْدِ بْنِ حُضَيْرٍ، أَنَّهُ كَانَ يَؤُمُّهُمْ، قَالَ: فَجَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُهُ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ إِمَامَنَا مَرِيضٌ، فَقَالَ: "إِذَا صَلَّى قَاعِدًا فَصَلُّوا قُعُودًا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا الْحَدِيثُ لَيْسَ بِمُتَّصِلٍ.

**ترجمه**: د أسید بن حضیر نه روایت دي، بیشکه هغه امامت کولو هغوی ته، هغه وايي: راغي رسول الله ﷺ چي بیمار پرسی ئي کوله د هغه، نو هغوی وویل: اې د الله رسوله! بیشکه زمونږ امام مریض دی، هغه وفرمائیل: کله چي هغه مونځ کوی په ناسته نو تاسو هم په ناسته مونځ کوئ. وئیلی دی ابوداود: دا حدیث متصل نه دی.

## بَابُ الرَّجُلَيْنِ يَؤُمُّ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ كَيْفَ يَقُومَانِ

### باب دې په بیان د دوه سړوکي چي یو یکي امامت د بل کوي نو څنګه به ودریږي

[۶۰۸] (۲) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ، عَنْ أَنَسٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَى أُمِّ حَرَامٍ، فَأَتَوْهُ بِسَمْنٍ وَتَمْرٍ، فَقَالَ: رُدُّوا هَذَا فِي وِعَائِهِ وَهَذَا فِي سِقَائِهِ فَإِنِّي صَائِمٌ، ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى بِنَا رَكْعَتَيْنِ تَطَوُّعًا، فَقَامَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ، وَأُمُّ حَرَامٍ خَلْفَنَا، قَالَ ثَابِتٌ: وَلَا أَعْلَمُهُ إِلَّا قَالَ: أَقَامَنِي عَنْ يَمِينِهِ عَلَى بِسَاطٍ".

**ترجمه**: د انس رضي الله عنه نه روایت دي، بیشکه رسول الله ﷺ راغي ام حرام ته هغوی ورته کجوري او غوړي راوړل، هغه وفرمائیل: واپس کړئ دا په خپل لوښي کښي او دا په خپل سقاء (لوښي) کښي بیشکه زه روژه یم. بیا پاڅیدلو مونځ ئي وکړو مونږ ته دوه رکعاته نفل، ودریدلي ام سلیم او ام حرام وروسته زمونږ نه، وئیلی دی ثابت: ماته علم نشته مگر ددې خبري چي هغه وئیلی دي: زه ئي ودرولم خپل ښي طرف ته په فرش باندې.

**تشریح**: **قوله**: ﴿ ان رسول الله صلی الله علیه وسلم دخل علی ام حرام ﴾ د ام حرام رضي الله عنها د سیدنا رضي الله عنه خاله ده یعنی د ام سلیم رضي الله عنها خور ده، په قباء کښي اوسیدله، په روایاتو کښي راځي چه کله به رسول الله ﷺ قباء تشریف اوړلو نو هلته به هم وربښکاره کیدو، هلته د رسول الله ﷺ خوراک کول، قیلوله کول، تفلیة الراس (۳) (په سرکښي سپږې کتل) وغیره هر څه ثابت دی، اوس دلته سوال دا دې چه دا په څه وجه باندي وو.

### د رسول الله ﷺ او ام حرام رضي الله عنها ترمینځه د محرمیت بحث

نو بعض علماء کرامو خو د محرمیت دعوی کړې ده، پس امام نووی رحمه الله فرمائي، ﴿ اتفقوا

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۲) (صحیح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۷۵)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الأذان ۷۸ (۷۲۷)، صحیح مسلم/المساجد ۴۸ (۱۴۹۹)، سنن النسائي/الإمامة ۲۰ (۸۰۴)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۴۵ (۹۷۵)، مسند احمد (۳/۱۶۰، ۱۸۴، ۲۰۴، ۲۳۹، ۲۴۲، ۲۴۸) (صحیح)

(۳)، کما سیأتي في كتاب الجهاد باب في ركوب البحر في الغزو، من حديث انس كان رسول الله (ص) اذا ذهب الي قباء يدخل علي ام حرام بنت ملحان فدخل عليها يومًا فاطعمته وجلست تفلي رأسه».

على انها كانت محرما له صلى الله عليه وسلم واختلفوا في كيفية ذلك ﴾ نو بعض وائي چه دا ئې رضاعي ترور وه، بعض وائي چه د هغه رضاعي مور وه، او بعض ئې نسبتي تعلق هم قائم کړې دې. قال ابن رسلان وكانت احدى خالاته من الرضاعة، قال ابن وهب وقال غيره بل خالته لابيه او لجده ﴾ او ددې په مقابله کښې علامه دمياطي په مبالغې سره رد کړې دې د هغه خلقو څوک چه د محرميت د تعلق قائل دی، ابن العربي رحمه الله فرمائي چه کوم علماء د محرميت تعلق نه منی هغوی وائي چه رسول الله ﷺ معصوم وو ﴿ يملك اربه عن زوجته فكيف عن غيرها ﴾ يعنې رسول الله ﷺ په خپل نفس باندې پوره پوره قابو لرلو، لهذا دا يعنې د اجنبيه سره د خلوت جواز د رسول الله ﷺ سره خاص دې، اګر چه قاضي عياض ددې قائل نه دې ﴿ الخصوصيات لا تثبت بالاحتمالات ﴾ خو د حافظ ابن حجر رحمه الله رائې هم دا ده چه دا د رسول الله ﷺ خصوصيت دې.

قوله: ﴿ ردو هذا في وعائه وهذا في سقائه ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کهجورې خو په تهيلۍ کښې واچوئ او په تهيلۍ کښې چه کوم غوړي يا ګُهِ دی هغه د کجهورو په لوښي کښې واړوئ، په ظاهره کښې د لوښی د بدلولو مصلحت دا دې چه کهجورې په بند ځيز کښې کيخودلې شی ځکه چه په هوا سره هغې کښې چينجي پيدا کيږي، او دا هم احتمال دې چه هغوی دواړه ځيزونه لږ لږ راويستلو سره د رسول الله ﷺ مخې ته کيخودلې وی، رسول الله ﷺ اوفرمائيل د راويستلو ضرورت نشته بلکه هر يو خپل لوښي ته واپس کړئ ځکه چه زما روژه ده.

قوله: ﴿ ثم قام فصلى بنا ركعتين ﴾ رسول الله ﷺ د ام حرام په کور کښې مونځ اوکړو چه د هغې په کور کښې رزق او خير او برکت پيدا شی، ځکه چه مونځ رزق لره راکاږی بلکه بعض علماء کرامو ليکلې دی چه مونځ د هر يو منزل تحيه ده.

## په تنفل بالجماعت کښې اختلاف د علماء کرامو

په دې حديث کښې د تنفل بالجماعت ثبوت دې، کوم چه د امام شافعي او امام احمد په نزد مطلقاً جائز دې، او د امام مالک رحمه الله په نزد د مختصر شان جماعت په غير مشهور ځائې کښې جائز دې او هم دغه شان د احنافو په نزد هم خو صرف د دوه مقتديانو سره او که د امام نه علاوه درې کسان وی نو په دې کښې زمونږ په نزد دوه قوله دی، او که د امام نه علاوه څلور وی نو بغير د خلاف نه مکروه دې (الفيض السمائي ص ۲۶۸)

## په مسئلة الباب کښې اختلاف د علماء کرامو

قوله: ﴿ اقامني عن يمينه ﴾ د دې نه معلومه شوه چه که مقتدی يو وی نو هغه به د امام ښی طرف ته اودريږی، د ائمه اربعه مذهب هم دا دې، خو که ګس طرف ته اودريږی نو هم د ائمه ثلاثه په نزد جائز ده، په خلاف د امام احمد چه د هغه په نزد به ګس طرف ته کيدو سره مونځ فاسد کيږی، او د ابراهيم نخعي رائې دا ده چه که مقتدی يو وې نو په امام پسې دې شاته اودريږی، که رکوع ته تلو پورې بل څوک شامل شو خو صحيح ده ګينې وړاندې د امام سره

يوځائې شي او هغه سره دې برابر اودريږي، دريم مذهب دلته د سعيد بن المسيب دې چه يو مقتدي لره خلف الامام اودريدل پكار دي. (نقله الشعراني في الميزان)

[۶۰۹]()حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُخْتَارِ، عَنْ مُوسَى بْنِ أَنَسٍ يُحَدِّثُ، عَنْ أَنَسٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَّهُ وَامْرَأَةً مِنْهُمْ، فَجَعَلَهُ عَنْ يَمِينِهِ وَالْمَرْأَةَ خَلْفَ ذَلِكَ".

**ترجمه**: د انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې، بيشكه رسول الله ﷺ امامت وكړو انس ته او يوې ښځې ته د دوی نه، نو هغه ئې وګرځولو خپل ښې طرف ته او ښځه ئې وروسته د هغه نه كړه.

**تشريح**: **قوله**:﴿ فجعله عن يمينه والمرأة خلف ذلک ﴾ د دې حديث نه معلومه شوه چه د زنانه مقام په صف كښې شاته دې اګر چه هغه يواځې ولې نه وی، مسئله متفق عليه ده، خو اختلاف په دې كښې دې چه كه زنانه د سړی برابر يا د هغه نه وړاندې اودريږی نو څه حكم دې، د جمهورو په نزد به ئې مونځ فاسد نه وی او د احنافو په نزد د قياس حكم خو هم دا دې خو د هغوی په نزد استحسانا د سړی مونځ فاسديږی، په دې شرط چه امام د زنانه د امامت نيت كړې وی او كه هغه نيت نه وی كړې نو د سړی مونځ صحيح او د زنانه مونځ به فاسد شي، دې مسئلې ته مسئلة المحاذاة وئيلې شي په دې كښې د جمهورو او احنافو اختلاف مشهور دې.

## په مسئلة المحاذات كښې د احنافو په دليل باندې كلام

د احنافو تائيد د حديث الباب نه هم كيږي چه رسول الله ﷺ ام سليم لره سره د يواځې كيدو نه شاته اودروله حال دا چه انفراد خلف الصف د اكثرو علماء كرامو په نزد مكروه دې، او د امام احمد په نزد مفسد صلاة دې، دويم دليل د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث موقوف دې، كوم چه د غير مدرک بالرائې كيدو د وجې نه مرفوع دې ﴿ اخروهن من حيث اخرهن الله رواه الطبراني، قال ابن دقيق العيد انه حديث صحيح قاله القاری في النقاية ﴾ (كذا في البذل) معلومه شوه چه د سړی مقام تقدم دې او د زنانه مقام تاخر، كه سړې خپل ځان سره برابر زنانه ته د مونځ دپاره ځائې وركړی نو ددې معنی دا شوه چه هغه خپل مقام ترک كړو، او خپل مقام لره ترک كول ډيره لويه او بنيادی غلطي ده معمولي خيز نه دې، په دې وجه به د سړی مونځ فاسد شي، حافظ ابن حجر رحمه الله د احنافو په مسلک باندې د تعجب اظهار كړې دې چه دا داسې كمزورې خبره ده چه د هغې د جواب هم حاجت نشته خو وړاندې فرمائی چه د سړی مقام تقدم على المرأة دې خو ددې په خلاف كولو سره دا څنګه ضروری ده چه د هغه مونځ دې فاسد شي، هغه وائي چه ګوره په ثوب مغصوب كښې مونځ كول ممنوع دی د هغې كوزول واجب دی خو كه يو سړې هم په هغې كښې مونځ اوكړی نو بالاتفاق ئې مونځ صحيح كيږي زيات نه زيات به مكروه وی دلته هم داسې كيدل پكار دي.

[1]: صحيح مسلم/المساجد ٤٨ (٦٦٠)، سنن النسائي/الإمامة ٢٠ (٨٠٤)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٤٤ (٩٧٥)، (تحفة الأشراف: ١٦٠٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩٤/٣، ٢٥٨، ٢٦١) (صحيح)

## د حافظ ابن حجر د کلام رد

خو د حافظ دا قیاس مع الفارق دې ځکه چه مونږ پورته اووئیل چه ترک د مقام یو بنیادی او اساسی غلطی ده لهذا د هغې حکم هم د هغې مطابق مناسب او سخت کیدل پکار دی کما لا يخفى، علامه عینی رحمه الله فرمائی چه که دې قائل (ابن حجر) د احنافو د مقال ادراک کړې وې نو هغه به دا نه وئیل کوم چه هغه اوویې، په دې کښې ئې قصور د خپل فهم دې، او حضرت سهارنپوری رحمه الله فرمائی چه حافظ د ثوب مغصوب والا مثال خو پیش کړو، او دا مثال ئې ولې پیش نه کړو چه کوره د امام مقام خو تقدم علی المقتدی دې، اوس که امام خپله شاته شې او مقتدی د ځان نه مخکښې کړی نو مونځ به ئې فاسد وی یا نه؟

[۶۱۰](١)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "بِتُّ فِي بَيْتِ خَالَتِي مَيْمُونَةَ، فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ اللَّيْلِ فَأَطْلَقَ الْقِرْبَةَ فَتَوَضَّأَ ثُمَّ أَوْكَأَ الْقِرْبَةَ ثُمَّ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ، فَقُمْتُ فَتَوَضَّأْتُ كَمَا تَوَضَّأَ ثُمَّ جِئْتُ، فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ فَأَخَذَنِي بِيَمِينِهِ فَأَدَارَنِي مِنْ وَرَائِهِ فَأَقَامَنِي عَنْ يَمِينِهِ فَصَلَّيْتُ مَعَهُ".

**ترجمه**: د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې، هغه وئیلی دي: زه ویده شوم په کور د خالې زما کښې چې میمونه ده: نو ودریدو رسول الله صلی الله علیه وسلم دشپې نو کولاویې کړه مشکیزه نو اودس ئې وکړو، بیا ئې بنده کړه مشکیزه، بیا ودریدو مانځه ته، نو زه پاځیدم اودس مې وکړو ځنګه چې هغه اودس کړی وو، بیا زه راغلم د هغه شاته ودریدم، زه ئې په ښي لاس ونیولم نو راتاویې کړم د وروستو نه ویې درولم خپل ښې خوا ته، نو ما مونځ وکړه د هغه سره.

[۶۱۱](٢)حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: فَأَخَذَ بِرَأْسِي أَوْ بِذُؤَابَتِي فَأَقَامَنِي عَنْ يَمِينِهِ.

**ترجمه**: د ابن عباس رضی الله عنه روایت دې، په دې قصه کښې هغه وایي: ویې نیولو سر زما او یا ئې دا ووئیل: وېښته زما، زه ئې ودرولم خپل ښې طرف ته.

## بَابٌ إِذَا كَانُوا ثَلَاثَةً كَيْفَ يَقُومُونَ

### باب دې په بیان د دې کښې چې درې کسان وي نو څنګه به ودریږي

[۶۱۲](٣)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، "أَنَّ جَدَّتَهُ

---

١): صحيح مسلم/المسافرين ٢٦ (٧٦٣)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٤٤ (٩٧٣)، (تحفة الأشراف: ٥٩٠٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/العلم ٤١ (١١٧)، والأذان ٥٧ (٦٩٧)، ٥٩ (٦٩٩)، ٧٩ (٧٢٨)، واللباس ٧١ (٥٩١٩)، سنن النسائي/الغسل ٢٩ (٤٤٣)، الإمامة ٢٢ (٨٠٧)، وقيام الليل ٩ (١٦٢١)، مسند احمد (١/٢١٥، ٢٥٢، ٢٥٨، ٢٨٧، ٣٤١، ٣٤٧، ٣٥٤، ٣٥٧، ٣٦٠، ٣٦٥)، سنن الدارمي/الصلاة ٤٣ (١٢٩٠) (صحيح)

٢): صحيح البخاري/اللباس ٧١ (٥٩١٩)، (تحفة الأشراف: ٥٤٥٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢١٥، ٢٨٧) (صحيح)

٣): صحيح البخاري/الصلاة ٢٠ (٣٨٠)، والأذان ٧٨ (٧٢٧)، ١٦١ (٨٦٠)، ١٦٤ (٨٧١)، ١٦٧ (٨٧٤)، صحيح مسلم/المساجد ٤٨ (٦٥٨)، سنن الترمذي/الصلاة ٥٩ (٢٣٤)، سنن النسائي/المساجد ٤٣ (٧٣٨)، والإمامة ١٩ (٨٠٢)، ٦٢ (٨٧٠)، (تحفة الأشراف: ١٩٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/قصر الصلاة ٩ (٣١)، مسند احمد (٣/١٣١، ١٤٥، ١٤٩، ١٦٤)، سنن الدارمي/الصلاة ٦١ (١٣٢٤)، (صحيح)

مُلَيْكَةَ دَعَتْ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِطَعَامٍ صَنَعَتْهُ فَأَكَلَ مِنْهُ، ثُمَّ قَالَ: قُومُوا فَلأُصَلِّيَ لَكُمْ، قَالَ أَنَسٌ: فَقُمْتُ إِلَى حَصِيرٍ لَنَا قَدِ اسْوَدَّ مِنْ طُولِ مَا لُبِسَ فَنَضَحْتُهُ بِمَاءٍ، فَقَامَ عَلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَفَفْتُ أَنَا وَالْيَتِيمُ وَرَاءَهُ وَالْعَجُوزُ مِنْ وَرَائِنَا فَصَلَّى لَنَا رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ انْصَرَفَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه**: د انس بن مالک ﷛ نه روايت دي، بيشکه نيا د هغه مليکې دعوت ورکړې وو رسول الله ﷺ ته د ډوډئ لپاره چې هغې تياره کړې وه نو خوراک ئې وکړو د هغې نه، بيا ئې وويل: پاڅېږئ چې زه تاسو ته مونځ وکړم. وئيلي دي انس: نو زه پاڅيدم زمونږ يو پوزر وو چې تور شوې وو د وجې د ډير وخت نه استعمالولو نه، نو هغه څنړکاو کړو په اوبو سره، نو ودريدو په هغې باندې رسول الله ﷺ او صف جوړ کړو ما او زما رور يتيم وروسته د هغه نه، او بوډئ وروسته زمونږ نه وه، نو مونځ ئې وکړو مونږ ته دوه رکعاته، بيا لاړلو رسول الله ﷺ.

که يو امام او دوه مقتديان وي نو د جمهورو په نزد د هغوی مقام خلف الامام دې، او د عبدالله بن مسعود ﷛ په نزد به ښي او ګس طرف ته اودريږي، د امام ابويوسف ﷫ نه هم دا نقل دی، د جمهورو دليل حديث الباب دې چه په هغې کښې انس او يتيم په رسول الله ﷺ پسې شاته اودريدل او ام سليم په هغوی پسې شاته.

## شرح السند او د ضمير د مرجع تحقيق

﴿ ان جدته مليكة ﴾...د ﴿ جدته ﴾ په ضمير کښې شارحينو دوه احتماله ليکلي دی، يا خو دا ضمير د اقرب طرف ته راجع دې يعنی انس بن مالک يا د ابعد طرف ته يعنی اسحاق بن عبدالله کوم چه دا حديث د سيدنا انس ﷛ نه روايت کوی، په اصل کښې دې کښې اختلاف دې چه مليکه ام سليم يعنی د سيدنا انس ﷛ د مور نوم دې که د ام سليم د مور نوم دې، يعنی د انس ﷛ د نيا، ابن عبدالبر او امام نووی وغيره اول قول اختيار کړې دې او ابن سعد او ابن منده دويم قول لره.

هم دغه شان دا هم پيژندل ضروری دی چه اسحاق بن عبدالله کوم چه په سند کښې مذکور دې هغه د انس ﷛ وراره دې، ځکه چه عبدالله بن ابی طلحه د انس ﷛ اخيافی (په مور کښې شريک) رور دې، لهذا انس د اسحاق تره شو، پس که مليکه د ام سليم (د انس د مور) نوم دې نو بيا خو به دا ضمير ضرور د اسحاق طرف ته راجع وی ځکه چه د تره مور د وراره نيا وی او که دويم قول اختيار کړې شی چه مليکه د ام سليم د مور نوم دې نو په دې صورت کښې به ضمير د اقرب يعنی انس ﷛ طرف ته راجع وی. او د جده نه مراد به د هغه د مور د طرف نه نيا وی نه د پلار د طرف نه، دا چه مونږ وئيلي وو چه اسحاق د انس د اخيافی رور خوئي دی ددې وضاحت دا دې چه د انس ﷛ مور ام سليم مخکښې د انس ﷛ د پلار مالک په نکاح کښې وه د هغه د وفات کيدو نه پس هغې سره ابو طلحه نکاح اوکړه چه د هغې نه عبدالله بن ابی طلحه پيدا شو، لهذا عبدالله بن ابی طلحه د انس ﷛ اخيافی رور شو.

**قوله**:﴿ فقمت الى حصير لنا قد اسود من طول ما لبس فنضحته بماء ﴾ يعنی دا سې درئ چه د ډير استعمال د وجې نه توره شوې وه، انس ﷛ فرمائی چه ما په هغې باندې اوبه واړولې چه د

هغې نه دوره او خيرې لرې شي او يا دا چه هغه نرمه شي او يا په دې وجه چه په طهارت کښې به ئې شک وو، او هغه شک ختم شي، عام شارحينو اول او دويم احتمال اختيار کړې دې او قاضي عياض مالکي احتمال ثالث لره.

## د بعض مسائل ثابته بالحديث بيان

اصل کښې د مالکيانو مذهب دا دې چه د کوم څيز نجاست مشکوک وی د هغې د پاکوالی دپاره نضح کافي ده او قاضي عياض چونکه مالکي دی په دې وجه هغه دا اختيار کړې دې، دا اختلافي مسئله مشهوره ده کيدې شي چه په کتاب الطهارة کښې چرته تيره شوې ده.[1]

## دويمه مسئله

دلته په حديث کښې لفظ لبس لره د افتراش په معنی کښې اخستلې دې، په دې سره مالکيانو يوې بلې مسئلې باندې استدلال کړې دې چه که يو سړې د عدم لبس قسم اوخوری او بيا هغه هغې کپړې لره خورولو سره په هغې باندې کينی نو هغه به حانث شی، جمهور ددې قائل دی چه د قسم مدار په عرف باندې دې او په عرف کښې د لبس استعمال په افتراش باندې نه کيږی، او دلته چه په حديث کښې چه لبس په افتراش باندې محمول کړې شوې دې نو هغه د قرينې د وجې نه. (قاله ابن رسلان)

## مسئله ثالثه افتراش حرير للرجال

خان پوهه کړه چه دلته يوه بله اختلافي مسئله ده هغه دا چه د جمهورو په نزد د رجال په حق کښې چه څنگه لبس حرير جائز نه دې هم دغه شان افتراش حرير هم جائز نه دې، په دې کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله اختلاف دې، د هغوی په نزد د سړی دپاره افتراش حرير جائز دې ځکه چه په حديث کښې د لبس ممانعت دې د افتراش نه، حافظ ابن حجر رحمه الله په دې حديث سره د امام صاحب د مذهب ترديد کړې دې ځکه چه په حديث کښې لبس لره د افتراش په ځائې باندې استعمال کړې شوې دې، علامه عيني رحمه الله ددې جواب دا ورکړې دې چه په دې حديث کښې لبس دې ﴿ لبست الثوب ﴾ والا لبس نه دې مراد بلکه دا ماخوذ دې د عربو د قول ﴿ لبست امرأة ﴾ چه د هغې معنی ده د تمتع، يعنی تمتعت بها زمانا، لهذا دلته حديث کښې لبس په معنی د تمتع دې او د اغوستلو په معنی کښې نه دې، لهذ ددې حديث نه د امام صاحب د قول په خلاف استدلال صحيح نه دې. (عمدة القاری شرح بخاری)

## شرح حديث

**قوله:** ﴿ وصففت انا واليتيم ورائه والعجوز من ورائنا ﴾ انس رضي الله عنه فرمائی چه زه او يو ماشوم په رسول الله صلی الله عليه وسلم پسې شاته اودريدو او مليکه په مونږ پسې شاته، د يتيم اطلاق په نابالغ ماشوم باندې کيږی که هغه مميز وی يا غير مميز. خو دلته ترې ماشوم مراد دې ځکه چه دغير مميز مونځ صحيح نه دې، شارحينو ددې ماشوم نوم ضميره بن ابی ضميره ليکلې دې

[1] د ثوب مصلی د تطهير متعلق په يو باب کښې ولتنضح مالم تر د لاندې تيره شوې ده.

او د ابو ضميره نوم سعد دې، په دې وجه باندې په بعض شروح حديث کښې د دې يتيم نوم ضميره بن سعد ليکلې شوې دې، د ضميره د پلار سعد شمير اهل رجال د رسول الله ﷺ په غلامانو کښې کړې دې، او ملا علی قاری رحمه الله جدا يوه خبره ليکلې ده چه يتيم د انس د رور نوم دې. والله تعالى اعلم

د دې حديث نه د انس رضي الله عنه د کور د خلقو زهد او قناعت معلوميږی ځکه خو ئې رسول الله ﷺ باندې په زړې درئ باندې د مونځ امامت اوکړو.

﴿ فصلى لنا ركعتين ثم انصرف ﴾ په دې واقعه کښې رسول الله ﷺ خوراک اول اوکړو او د مونځ دوه رکعتونه ئې روستو کړې دی، او د عتبان بن مالک چه کومه مشهوره قصه ده په صحيح مسلم وغيره کښې هلته په ترتيب کښې ددې برعکس ده چه د هغې وجه په ظاهره کښې دا ده چه هلته د رسول الله ﷺ مقصود د هغوی کور ته په تلو سره مونځ کول وو او دلته هغه د خوراک د دعوت دپاره تشريف راوړلو.

[٦١٣] (١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ هَارُونَ بْنِ عنترة، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: اسْتَأْذَنَ عَلْقَمَةُ، وَالْأَسْوَدُ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ وَقَدْ كُنَّا أَطَلْنَا الْقُعُودَ عَلَى بَابِهِ، فَخَرَجَتِ الْجَارِيَةُ فَاسْتَأْذَنَتْ لَهُمَا فَأَذِنَ لَهُمَا، ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى بَيْنِي وَبَيْنَهُ، ثُمَّ قَالَ: "هَكَذَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَ".

**ترجمه:** عبد الرحمن بن الاسود روايت کوی د خپل پلار نه، هغه وئيلی دی: اجازت وغوښتلو علقمة او اسود د عبد الله نه، او وو مونږ چې اوږد انتظار مو کړی وو د هغه په دروازه کښې، نو راووتله وينزه نو طلب د اجازت ئې وکړو د هغو دواړو لپاره نو اجازت ئې وکړو دواړو ته، بيا پاڅيدلو مونځ ئې وکړو زما د هغه په مينځ کښې، بيا ئې ووېل: داسې ما ليدلی وو رسول الله ﷺ چې کړی ئې وو.

**تشريح: قوله:** ﴿ استأذن علقمة والاسود (٢) على عبدالله وقد كنا اطلنا القعود على بابه فخرجت الجارية ﴾ علقمه او اسود کوم چه د عبدالله بن مسعود مشهور شاګردان دی هغوی وائی چه يو ځل مونږ د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په دروازه باندې اجازت طلب کړو چه هلته مونږ د ډير ساعته پورې ناست وو، ډير ساعت پس د دننه نه يوه وينزه راغله او هغې مونږ په دروازه باندې ناست اوليدو نو هغه لاړه او د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه ئې اجازت طلب کړو، په اجازت ملاويدو باندې مونږ دننه داخل شو هغه مونږ خپل ښی او ګس طرف ته اودرولو او مونځ ئې راکړو او بيا ئې اوفرمائيل چه ما رسول الله ﷺ هم په دې طريقه باندې مونځ کونکې ليدلې دې.

## په مسئلة الباب کښې د جمهورو دليل

دا روايت د جمهورو خلاف دې، د جمهورو استدلال د تير شوی روايت ﴿ وصففت انا

(١): سنن النسائي/المساجد ٢٧ (٧٢٠)، والإمامة ١٨ (٨٠٠)، والتطبيق ١ (١٠٣٠)، (تحفة الأشراف: ٩١٧٣)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المساجد ٥ (١١٩١)، مسند احمد (٤٢٤/١، ٤٥١، ٤٥٥، ٤٥٩) (صحيح)

(٢) دلته متکلم چونکه اسود دې په دې وجه حق خبره دا ده چه داسې ئې وئيلې وې: استاذنت انا وعلقمة خو هغه د خپل ځان نه په غائب سره تعبير اوکړو)

واليتيم﴾ والا حديث نه دې او دا حديث موقوف دې او دا چه دلته کوم روايت مذکور دې ﴿هکذا رايت رسول الله صلى الله عليه وسلم ﴾ (چه هغې سره دا حديث مرفوع کيږي) دا زيادت په اکثر رواياتو کښې موجود نه دې او که دا زيادت اومنلې شي نو دا به وئيلې شي چه ممکنه ده د ځائې د تنګ والی د وجې نه به داسې کړې شوې وي، او خپله د ابن مسعود ﷺ د فعل په باره کښې هم ابن سيرين هم دا توجيه کړې ده.

## بَابُ الإِمَامِ يَنْحَرِفُ بَعْدَ التَّسْلِيمِ

### باب دې په بيان دا نحراف (تاويدو) د امام کې پس د سلام نه

### د مصنف قائم کړې ترجمو کښې فرق

هم ددې قسم يو باب د ابواب الجمعة نه لږ شان مخکښې راروان دې، ﴿ کيف الانصراف من الصلاة ﴾ د دواړو مضمون او مفهوم په ظاهره کښې يو دې لهذا دا تکرار شو خو في الواقع تکرار نه دې، ځکه چه دلته د انحراف نه مراد تحول الى القوم دې يعنى د امام د خپل مونځ نه فارغ کيدو نه پس د قبلې د طرف نه مخ اړولو سره کيناستل، وړاندې چه کوم باب راروان دې هلته د انصراف نه مراد انصراف الى البيت يا انصراف الى موضع الحاجت دې يعنى د مونځ نه فارغ کيدو نه پس د مصلى نه پاسيدل، لهذا د دواړو بابونو مفهوم مختلف شو.

[۶۱۴] [1] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي يَعْلَى بْنُ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ الأَسْوَدِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "صَلَّيْتُ خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ إِذَا انْصَرَفَ انْحَرَفَ".

**ترجمه:** جابر بن يزيد بن الاسود روايت کوی د خپل پلار نه، هغه وئيلی دي: ما مونځ وکړو وروسته د رسول الله ﷺ نه وو چې کله به فارغ شو نو تاو به شو د خپل حالت نه.

**تشريح: قوله:** ﴿ صليت خلف رسول الله صلى الله عليه وسلم فكان اذا انصرف انحرف ﴾ يعنى رسول الله ﷺ چه به کله سلام واړولو نو د هغه عادت مبارک دا وو چه په خپله مصلى باندې به ئې رخ بدل کړو او ښى يا ګس طرف ته مخ کولو سره به کيناستلو خو اکثر به ئې انحراف ښى طرف ته وو او کله ګس طرف ته هم، هم په دې وجه لکه وړاندې حديث کښې راځي چه صحابه کرامو به په صف کښې ښى طرف ته اودريدل خوښول ددې دپاره چه د مخ مبارک زيارت اوکړي.

### په حديث باندې من حيث الفقه کلام

اوس دا چه د فقهاء کرامو رائې په دې کښې څه ده؟ بعض شارحينو د جمهورو مسلک دا ليکلې دې چه د هغوی په نزد انحراف الى اليمين او د احنافو په نزد الى اليسار اولى دې خو صحيح دا ده چه احناف دا وائی چه د يو طرف التزام دې نه کوی کله دې ښى طرف ته او کله دې ګس طرف اختيار کړی.

---

[1] سنن الترمذي/الصلاة ٥١ (٢١٩)، الإمامة ٥٤ (٨٥٧)، (تحفة الأشراف: ١١٨٢٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٧٥/٥، ٢٧٩) (صحيح)

**«د انحراف بعضې حکمتونه»**

په دې انحراف کښې څه حکمت دې، د شارحينو د کلام نه معلوميږي چه يو حکمت په دې کښې ﴿ ازالة الاشتباه فی حق الجائی ﴾ دې چه که د مونځ نه فارغ کيدو نه پس هم امام د مقتديانو په شان قبلې طرف ته مخ کولو سره ناست وی نو نوی راتلونکو ته دا اشتباه کيدې شی چه مونځ لا ختم شوې نه دې او خلق په قعده کښې دی، او بل حکمت په دې کښې الاحتراز عن الاستدبار القوم دې، د خلقو طرف ته شا کولو نه ځان ساتل، دلته يو سوال دا دې چه امام لره د مونځ کولو نه پس په خپل ځائې کښې کيناستل پکار دی يا نه؟ نو فقهاء کرامو ليکلې دی خصوصا صاحب بدائع چه د کومو مونځونو نه روستو سنت دی د هغې نه پس دې امام نه کينی ددې دپاره چه په سنتو کښې تاخير رانشی او په باقی مونځونو کښې اختيار دې. (۱)

دا کلام خو ددې باب سره متعلق دې او هغه باب کوم چه وړاندې راروان دې ﴿ کيف الانصراف من الصلاة ﴾ يعنی د مصلی نه پاسيدو سره به امام چرته ځی ښی طرف ته يا ګس طرف ته، نو ددې جواب دا دې چه دا د موضع حاجت تابع دې چه چرته د هغه حاجت تړلې شوې وی او په کوم کښې چه هغه خپل سهولت ګنړی هغه طرف ته دې لاړ شی، مثلا د امام منزل يا د هغه حجره که ښی طرف ته وی نو ښی طرف ته دې لاړ شی او که ګس طرف ته وی نو هغه طرف ته دې لاړ شی، او يو صورت دا هم کيدې شی چه تحول الی القوم کوم چه په دې باب کښې مذکور دې هغه هم د موضع حاجت تابع اومنلې شی چه که د امام حجره ښی طرف ته وی نو ښی طرف ته دې مخ کولو سره کينی او که د امام حجره ګس طرف ته وی نو هغه طرف ته رخ کولو سره کينی ددې دپاره چه د پاسيدو په وخت ګرځيدلو ته ضرورت رانشی، حضرت شيخ په حاشيه د لامع کښې هم دغه شان ليکلې دی.

[۶۱۵](۲)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ الْبَرَاءِ، عَنْ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: "كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْبَبْنَا أَنْ نَكُونَ عَنْ يَمِينِهِ، فَيُقْبِلُ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه:** د براء بن عازب ﷺ نه روايت دې هغه وئيلی دې: وو مونږ چې کله به مو مونځ کولو وروسته د رسول الله ﷺ نه نو دا به مو خوښوله چې د هغه ښی طرف ته ودرېږو، ځکه چې مونږ ته به ئې مخ رااړولو.

(۱) هم دا وجه ده چه تاسو ګورئ چه عام طور ائمه د مازيګر او د سحر د مونځ نه روستو په خپله مصلی باندې کيناستلو سره تسبيح فاطمه وغيره لولی، خو دا په ذهن کښې ساتئ چه تسبيح فاطمه صرف ددې دوه مونځونو سره خاص نه دې بلکه د ټولو مونځونو نه پس ئې د لوستلو ترغيب راغلې دې لهذا په باقی مونځونو کښې د سنتو نه روستو لوستل پکار دی.

(۲): صحيح مسلم/المسافرين ۸ (۷۰۹)، سنن النسائي/الإمامة ۳۴ (۸۲۳)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۵۵ (۱۰۰۶)، (تحفة الأشراف: ۱۷۸۹)، وقد أخرجه: (۴/۲۹۰، ۳۰۴) (صحيح)

# بَابُ الْإِمَامِ يَتَطَوَّعُ فِي مَكَانِهِ

## باب دې په بيان د امام كې چې نفل كوي په خپل ځاى

[۶۱۶]()حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ الْقُرَشِيُّ، حَدَّثَنَا عَطَاءٌ الْخُرَاسَانِيُّ، عَنْ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يُصَلِّي الْإِمَامُ فِي الْمَوْضِعِ الَّذِي صَلَّى فِيهِ حَتَّى يَتَحَوَّلَ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: عَطَاءٌ الْخُرَاسَانِيُّ لَمْ يُدْرِكْ الْمُغِيرَةَ بْنَ شُعْبَةَ.

**ترجمه:** د مغيرة بن شعبة نه روايت دې هغه وئيلى دى، وئيلى دى رسول الله ﷺ: مونځ دې نه كوى امام په هغه ځائې كښې چې مونځ ئې كرى وى په هغې تردې چې بل طرف ته واوړي. وئيلى دى ابوداود: عطاء الخراساني مغيرة بن شعبة نه دى موندلى (دا حديث منقطع دې).

**تشريح: قوله:** ﴿ قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : لا يصل الامام في الموضع الذى صلى فيه حتى يتحول ﴾ د دې حديث نه معلومه شوه چه امام لره د فرض په محل كښې سنت يا نفل نه دى كول پكار، على هذا القياس په دې كښې مقتدى هم دې، پس په ابواب التشهد كښې يو باب راروان دې : باب في الرجل يتطوع في مكانه الذى صلى فيه المكتوبة... او په دې كښې مصنف د ابوهريره رضی الله عنه حديث مرفوع ﴿ ايعجز احدكم ان يتقدم او يتاخر الخ ﴾ ذكر كړې دې په دې حديث كښې د امام قيد نشته بلكه عام دې، په دې وجه د جمهورو په نزد دا حكم هم عام دې لكه چه په عيني شرح بخاري كښې دى، هم دغه شان په دې كښې دى چه د ابن عمر رضی الله عنه په نزد كراهت صرف د امام دپاره دې د غير امام په حق كښې د هغوى په نزد هيڅ باك نشته، او په بذل المجهود كښې د بدائع نه د امام په حق كښې خو كراهت ليكلې شوې دې او د مقتدى په حق كښې هغه فرمائى چه په دې كښې زمونږ د مشائخو اختلاف دې بعض وائى چه د هغه په حق كښې هيڅ حرج نشته، د امام د خپل ځائې نه لرې كيدل د اشتباه د ازالې دپاره كافى دى، او د امام محمد نه منقول دى چه د قوم په حق كښې هم دا مستحب ده چه هغه صفونو لره ماتولو سره متفرق شى ددې دپاره چه اشتباه كلى طور سره د لرې كتونكى په حق كښې هم مرتفع شى.

واضحه دې وى چه شارحينو ددې انتقال مكانى حكمت د ازاله اشتباه نه علاوه استكثار شهود هم ليكلې دې.

# بَابُ الْإِمَامِ يُحْدِثُ بَعْدَ مَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ مِنْ آخِرِ الرَّكْعَةِ

## باب دې په بيان د امام كې چې بې اودسه شي پس د اوچتولو د سر نه د اخرې ركعت نه

په بعض نسخو كښې دلته د من اخر الركعة اضافه هم ده، يعنى امام د اخرى ركعت د كولو نه پس كه بې اودسه شى نو ددې څه حكم دې؟ مونځ به صحيح وى يا نه؟ په ترجمة الباب كښې خو اګر چه د اخرى ركعت د سجود ذكر دې خو مراد دا دې چه د اخرى ركعت سجود او د هغې نه روستو قعده نه فارغ شوې وى لكه چه په حديث الباب كښې ذكر دى.

[1]: سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ٢٠٣ (١٤٢٨)، (تحفة الأشراف: ١١٥١٧) (صحيح)

[۶۱۷]( ) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زِيَادِ بْنِ أَنْعُمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ رَافِعٍ، وَبَكْرِ بْنِ سَوَادَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا قَضَى الْإِمَامُ الصَّلَاةَ وَقَعَدَ فَأَحْدَثَ قَبْلَ أَنْ يَتَكَلَّمَ، فَقَدْ تَمَّتْ صَلَاتُهُ، وَمَنْ كَانَ خَلْفَهُ مِمَّنْ أَتَمَّ الصَّلَاةَ".

**ترجمه:** د عبد الله بن عمرو نه روايت دې، بيشکه رسول الله ﷺ ويلي دي: کله چې پوره کړی امام مونځ او کيناستلو نو بې اودسه شو مخکې د خبرو کولو نه، يعنی د سلام نه مخکښې بې اودسه شو نو د هغه مونځ پوره شو، او د هغه چا هم چې د امام نه وروسته دی چې مونځونه ئې پوره کړی وي (او دچا مونځ چه نه وی پوره بلکه څه حصه مونځ ورته پاتې وی دهغوی مونځ به فاسد شي).

## په حديث الباب کښې د احنافو دليل

**قوله:** ﴿ اذا قضى الامام الصلاة وقعد فاحدث قبل ان يتكلم فقد تمت صلاته ﴾ ددې حديث نه معلوميږی چه د مونځ په ارکانو کښې اخری رکن قعده قدر التشهد دې، لهذا معلومه شوه چه سلام فرض نه دې، مسئله مختلف فيه ده، د کتب الطهارة په شروع کښې د مفتاح الصلاة الطهور وتحريمها التكبير وتحليلها التسليم" د لاندې تير شوې دې، د ائمه ثلاث په نزد فرض دې او د احنافو په نزد نه دې، لهذا دا حديث د احنافو دليل شو، جمهور ددې جواب دا ورکوی چه دا حديث ضعيف دې د عبدالرحمن بن زياد افريقى د وجې نه، جواب دا دې چه د عبدالرحمن ضعف مختلف فيه دې، ډير ائمه کرامو دهغې توثيق کړې دې، په دلائلو باندې کلام د پورته ذکر شوې حديث د لاندې هم تير شوې دې.

## د قعده اخير په حکم کښې اختلاف

دا اختلاف خو د سلام په باره کښې دې او قعده اخيره کښې هم لږ شان اختلاف دې، هغه دا چه عند الجمهور ومنهم الحنفية والشافعية والحنابلة فرض ده او د مالکيانو په نزد فرض نه ده، كما فى الانوار الساطعه.

## بَابٌ فِي تَحْرِيمِ الصَّلٰوةِ وَتَحْلِيلِهَا

### باب د مونځ د تحريم او تحليل متعلق

[۶۱۸]( ) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ ابْنِ عَقِيلٍ، عَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مِفْتَاحُ الصَّلَاةِ الطُّهُورُ وَتَحْرِيمُهَا التَّكْبِيرُ وَتَحْلِيلُهَا التَّسْلِيمُ".

**ترجمه:** د علی رضی الله عنه نه روايت دې هغه وئيلی دی چې فرمائيلی دی رسول الله ﷺ: چابې د مونځ پاکوالی دی، او تحريم د هغې تکبير دی، او حلالونکی د هغې سلام دی.

---

[1]: سنن الترمذي/الصلاة ۱۸۸ (۴۰۸)، (تحفة الأشراف: ۸۶۱۰) (ضعيف)

[2]: سنن الترمذي/الطهارة ۳ (۳)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۳ (۲۷۵)، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۶۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۲۳/۱)، سنن الدارمي/الطهارة ۲۱ (۷۱۳) (حسن صحيح)

**تشريح:** په دې باندې تفصيلي كلام په باب فرض الوضوء د لاندې تير شوې دې.

## بَابُ مَا يُؤْمَرُ بِهِ الْمَأْمُومُ مِنَ اتِّبَاعِ الْإِمَامِ

**باب دې په بيان د هغې كې چې امر كولې شي په هغې سره مقتدي ته د تابعدارۍ د امام نه**

په دې باب كښې مصنف دوه قسمه روايات ذكر كړي دى پس په اول حديث كښې د تقديم على الامام ممانعت دې او په باقى رواياتو كښې د تاخير عن الامام ثبوت دې.

د تقدم على الامام په ممنوع كيدو كښې خو هيڅ اختلاف نشته[1] خو تاخر عن الامام مسئله مختلف فيه او تفصيل طلب ده اول تاسو د تقدم په باره كښې د علماء كرامو مذاهب اوګورئ.

### تقدم على الامام كښې اختلاف الائمة

پس ځان پوهه كړئ چه دلته درې څيزونه دى، تحريمه، سلام، بقيه اركان ركوع او سجود وغيره، يعنى تحريمه كښې تقدم على الامام باتفاق ائمه اربعه مفسد صلاة دې، او په ثانى يعنى سلام كښې تقدم على الامام صرف د ائمه ثلاثه په نزد مفسد دې، د احنافو په نزد نه دې بلكه مكروه دې او قسم ثالث يعنى بقيه اركان، پس په دې كښې تقدم على الامام د ائمه اربعه په نزد مفسد نه دې مكروه دې، البته د اهل ظواهر په نزد او هم دا يو روايت د امام احمد رحمه الله هم دې چه مفسد دې.

### متابعة امام على وجه المقارنة پكار دې يا په طريق د معاقبة

او بله مسئله يعنى تاخر عن الامام كوم چه د باب په دويم حديث كښې مذكور دې په دې كښې اختلاف دې، امام شافعي او امام احمد خو د متابعة على وجه المعاقبة قائل دى په ټولو اركانو كښې ددې بالمقابل د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد متابعة على وجه المقارنة افضل دې په ټولو اركانو كښې تردې چه په تحريمه كښې هم، خو په تحريمه كښې د صاحبينو اختلاف دې په بدائع كښې ليكلې دى چه د امام ابويوسف رحمه الله نه په مقارنة فى التحريمه كښې دوه روايتونه دى، فى رواية يجوز وفى رواية لا يجوز، او د امام محمد په نزد اګر چه جائز دې خو مع الاساءة د تحريمه نه علاوه په باقى افعالو كښې صاحبين فرمائى په دې كښې دوه قوله دى كما فى الشامي، بعض فقهاء كرامو ليكلې دى چه په دې كښې د امام صاحب سره دى چه مقارنت افضل دې او بعض وائى چه هغوى په دې كښې د جمهورو سره دى يعنى تاخر اولى دې، پاتې شو مسلک د امام مالک پس د هغوى په نزد په تحريمه او تسليمه كښې خو تاخر عن الامام متعين دې او په باقى اركان كښې د هغوى دوه قوله دى، اولوية مقارنة او اولوية تاخر.

---

[1] التقدم على الامام في التحريمة مبطل عند الائمة الاربعة، واما التقدم في السلام فعند الجمهور مبطل كالتقدم في التحريمة وعندنا حرام غير مبطل، والتقدم في بقية الاركان حرام غير مبطل عند الائمة الاربعة. نعم في رواية لاحمد مبطل، واما المقارنة في التحريمة فمستحب عند الامام ومفسد عند الائمة الثلاثة وكذا في رواية عند الصاحبين وقيل خلافهما مع الامام ابي حنيفة في الفضيلة لا في الجواز واما المقارنة في السلام فمبطل عند المالكية، ومكروهة عند الشافعية والحنابلة، وكذا هي مكروهة عند الجمهور في بقية الاركان (من اماني الاحبار ولامع الدراري).

## په مقارنة مع الامام کښې مذاهب اربعه

ددې نه پس پوهه شئ چه جمهور علماء ائمه ثلاثه په تحريمه کښې خو د تأخر د وجوب قائل دی تردې چه مقارنة فی التحريمة ددوی په نزد مفسد د صلاة دې او په تسليم کښې مقارنة دامام شافعی رحمه الله او احمد رحمه الله په نزد خو صرف مکروه دې او د امام مالک رحمه الله په نزد په دې کښې هم مفسد دې، لکه چه په لامع الدراری کښې د مختصر خليل نه نقل کړې دی او د تحريمه او تسليمه نه علاوه په نورو ارکانو کښې د امام شافعی رحمه الله او احمد رحمه الله په نزد مقارنه خلاف اولی ده، او د امام مالک رحمه الله په دې کښې دوه روايتونه دی کما فی امانی الاحبار (ص ۲۸۵ ج ۳) عن القاضی عياض، اول دا چه مقارنه اولی ده کما عند الحنفية، او د مقارنه مطلب دادې چه کله امام رکوع ته تلل شروع کړی نو ددې نه پس فوراً مقتدی هم شروع کړی، او دويم قول د امام مالک رحمه الله دادې چه تأخر اولی دې (کما عند الشافعية والحنابلة) يعنی کله چه امام سجدې ته اورسيږی مقتدی دې تلل شروع کړی لکه څنګه چه د باب په دويم حديث يعنی حديث البراء کښې دی. (دا احاديث د ډير تتبع (تلاش) نه پس اوليکلې شو) (من الامانی والاوجز واللامع)

## دلائل فريقين

دا حضرات د حرف فاء نه استدلال کوی چه په حديث کښې دی ﴿ اذا رکع فارکعوا واذا سجد فاسجدوا ﴾ او فاء د تعقيب دپاره راځی، زمونږ علماء کرامو ددې جواب کړې دې (کما فی فيض الباری) چه فاء تعقيب بلا مهلت دپاره ده لهذا د مقتدی شروع فی الرکوع د امام د شروع فی الرکوع نه پس د تعقيب دپاره کافی ده او د امام صاحب مراد هم د مقارنت نه هم دا دې چه د امام په شروع کولو سره دې مقتدی فورا شروع کړی.

خو زه دا وائم چه په کومو رواياتو کښې حرف فاء ده د هغې جواب خو به اوشی خو د براء په حديث کښې خو تصريح ده ددې خبرې چه ترڅو پورې رسول الله ﷺ سجدې ته نه وو رسيدلې تر هغه وخته پورې به مونږ رکوع ته تلل نه شروع کول.

## د حضرت ګنګوهی توجيه

د دې جواب ماته د حضرت ګنګوهی رحمه الله په تقرير ترمذی الکوکب الدری کښې ملاؤ شو هغه دا چه اصل ضابطه د امام د تابعدارئ خو هغه ده کومه چه په متعدد روايات قوليه کښې راغلې ده ﴿ اذا رکع فارکعوا واذا سجد فاسجدوا ﴾ او دا چه د براء په حديث کښې مذکور ده تاخر عن الامام دا صورت د يو عارض د وجې نه راپيښ شوی دې هغه دا چه په اخر زمانه کښې چه کله د حضور ﷺ په حرکت او انتقال کښې سست والې راغلو او هغه سرعت پاتې نه شو کوم چه مخکښې وو او بعض ځوانان صحابه کرام د خپلې تيزئ او سرعت په وجه باندې قومه او سجده کښې د امام نه مخکښې رسيدل (يا د رسيدو خطره شوه) نو په دې باندې هغه تنبيه اوفرمائيله، ددې تنبيه نه پس دا خلق اويريدل او زيات احتياط ئې شروع کړو او چه ترڅو پورې به امام سجدې ته نه وو تلې نو تر هغه وخته پورې به په قومه کښې

وو، دا دي ددې معاقبة وجه، د رسول الله ﷺ د طرف نه دا حکم نه وو، والله تعالى اعلم بالصواب. په فتح الملهم کښې هم اجمالا هم ددې توجيه طرف ته اشاره ده چه دا په زمانه د ضُعف باندې محمول دې.

[۶۱۹](۱)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنِ ابْنِ مُحَيْرِيزٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُبَادِرُونِي بِرُكُوعٍ وَلَا بِسُجُودٍ، فَإِنَّهُ مَهْمَا أَسْبِقْكُمْ بِهِ إِذَا رَكَعْتُ تُدْرِكُونِي بِهِ إِذَا رَفَعْتُ إِنِّي قَدْ بَدَّنْتُ".

**ترجمه:** د معاوية بن ابی سفيان نه روايت دې هغه وئيلی دی، چې فرمائيلی دی رسول الله ﷺ: تاسو مه مخکې کيږئ زمانه په رکوع سره، او نه په سجده سره، بيشکه زه چې تاسو نه څومره هم مخکې شم کله چې زه رکوع کوم نو ما موندلی شئ په هغې کښې کله چې زه سر اوچتوم، بيشکه زه غټ شوی يم.

**تشريح: قوله:** ﴿ انی قد بدنت ﴾ دا په تشديد او تخفيف دواړو سره لوستلې شوې دې، د تشديد په صورت کښې ددې معنی د بوډاتوب ده چه اوس زه بوډا شوې يم او د تخفيف په صورت ﴿ بدن، يبدن، بدنا ﴾ د باب نصر نه، او ﴿ بدن يبدن بدانة ﴾ د باب کرم نه چه د هغې معنی د سمن او کثرت لحم دې.

## هل السمن من اوصافه ﷺ

خو اکثر علماء کرامو تشديد له ترجيح ورکړې ده ځکه چه سمن (خورب والې) د رسول الله ﷺ د صفاتو نه نه دې، خو يو روايت په ابوداود کښې وراندې راروان دې، باب الرجل يعتمد فی الصلاة علی عصا... چه د هغې نه صفا معلوميږي [عربی ص۳۱۹ چه د رسول الله ﷺ بدن مبارک په اخر کښې خورب شوې وو، خو ددې جواب دا کيدې شی چه په بوډاتوب کښې بدن کښې سستی پيدا شی چه په هغې کښې غوښه خوره شی په خلاف د ځوانئ چه په دې زمانه کښې غوښه يو بل پورې پيوست او متماسک وی نو ممکنه ده چه راوی هم په دې وجه باندې داسې وئيلې وی.

[۶۲۰](۲)حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ يَزِيدَ الْخَطْمِيَّ يَخْطُبُ النَّاسَ، قَالَ: حَدَّثَنَا الْبَرَاءُ وَهُوَ غَيْرُ كَذُوبٍ، "أَنَّهُمْ كَانُوا إِذَا رَفَعُوا رُءُوسَهُمْ مِنَ الرُّكُوعِ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامُوا قِيَامًا، فَإِذَا رَأَوْهُ قَدْ سَجَدَ سَجَدُوا".

**ترجمه:** د ابو اسحاق نه روايت دې هغه وايې ما اوريدلی دی د عبد الله بن يزيد الخطمی نه، چې خطبه ئې ويله، هغه ووېل: حديث بيان کړې دې مونږ ته براء او هغه درغژن نه دی، دوی وو کله چې به ئې خپل سرونه اوچت کړل د رکوع نه د رسول الله ﷺ سره نو وبه دريدل په اودريدلو سره، کله چې به هغوی وليدلو چې سجده ئې وکړه نو دوی به هم سجده وکړه.

(۱): سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ۴۱ (۹۶۳)، (تحفة الأشراف: ۱۱۴۲۶)، وقد أخرجه: حم(۴/۹۲، ۹۸)، سنن الدارمي/الطهارة ۷۲ (۷۸۲) (حسن صحيح)

(۲): صحيح البخاري/الأذان ۵۲ (۶۹۰)، ۹۱ (۷۴۷)، ۱۳۳ (۸۱۱)، صحيح مسلم/الصلاة ۳۹ (۴۷۴)، سنن الترمذي/الصلاة ۹۳ (۲۸۱)، سنن النسائي/الإمامة ۳۸ (۸۳۰)، مسند احمد (۴/۲۹۲، ۳۰۰، ۳۰۴)، (تحفة الأشراف: ۱۷۷۲) (صحيح)

## آيا صحابه کرام توثيق ته محتاج وو؟

**قوله:** ﴿ حدثنا البراء وهو غير كذوب ﴾ دا لفظ د شارحين حديث په نزد محل غور او توجيه ته محتاج جوړ شوي دي ځکه چه ﴿ الصحابة كلهم عدول يحتاجون الى التوثيق ﴾ ځکه چه ټول علماء رجال په کتب اسماء رجال کښي د يو صحابي په ترجمه کښي هم ﴿ وهو ثقة ﴾ کله هم نه ليکي، او غير صحابي که هر څومره لوئي محدث او فقيه وي هغوی لره محتاج توثيق ګڼړي چه څه کلام کول غواړي هغه کوی په دې وجه د امام يحيى بن معين رائې خو دا ده چه د ﴿ هو ﴾ ضمير مرجع خو براء رضي الله عنه نه دي بلکه د هغه نه لاندې راوی يعنی عبدالله بن يزيد دې، خو په دې باندې دا اشکال دې چه عبدالله بن يزيد خو خپله صحابي دې، ددې جواب دا دې چه عبدالله بن يزيد داسې مشهور صحابي دې، د صغار صحابه کرامو نه دې بلکه بعض خو د هغه صحبت نه تسليموی خپله يحيى بن معين په هغوی کښي دې، او د اکثر شارحينو رائې دا ده چه ضمير د براء طرف ته راجع دې خو د راوی مقصود په دې سره د براء تعديل او توثيق نه دې بلکه مقصود تقوية حديث دې چه اوګوره! حديث بالکل صحيح دې او دا هم داسې ده لکه چه بعض وخت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي ﴿ سمعت خليل الصادق المصدوق صلى الله عليه وسلم ﴾ ځکه چه ظاهره ده چه دلته راوی د رسول الله ﷺ تصديق نه کوی بلکه دا د حديث تقويت دې، زما په ذهن کښي يوه بله خبره هم ده هغه دا کيدې شی چه په دې کښي تعريض مقصود دې په بعض مخاطبينو باندې، يعنی کيدې شی چه د بعض سامعينو عمل د حديث په مضمون باندې نه وی او هغوی ددې خلاف د مخکښي نه کوی په دې وجه دا وئيلې شی چه ﴿ وهو غير كذوب ﴾، ګورئ! براء دروغ خو نه وائي.

[٦٢١] (¹) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، وَهَارُونُ بْنُ مَعْرُوفٍ المعنى، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبَانَ بْنِ تَغْلِبَ، قَالَ زُهَيْرٌ: حَدَّثَنَا الْكُوفِيُّونَ أَبَانُ وَغَيْرُهُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ، قَالَ: "كُنَّا نُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا يَحْنُو أَحَدٌ مِنَّا ظَهْرَهُ حَتَّى يَرَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ".

**ترجمه:** د براء رضي الله عنه نه روايت دې، هغه وئيلی دي: وو مونږ چې مونځ مو کولو د رسول الله ﷺ سره، نه به کړوله هېڅا زمونږ نه شا خپله تردې چې نبی ﷺ به ئې وليدلو چې رکوع ئې وکړه.

[٦٢٢] (²) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ يَعْنِي الْفَزَارِيَّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ يَزِيدَ، يَقُولُ عَلَى الْمِنْبَرِ حَدَّثَنِي الْبَرَاءُ، "أَنَّهُمْ كَانُوا يُصَلُّونَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَإِذَا رَكَعَ رَكَعُوا، وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، لَمْ نَزَلْ قِيَامًا حَتَّى يَرَوْهُ قَدْ وَضَعَ جَبْهَتَهُ بِالْأَرْضِ ثُمَّ يَتَّبِعُونَهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه:** محارب بن دثار وئيلی دی، ما اوريدلی دی د عبد الله بن يزيد نه هغه به وئيل په منبر، حديث بيان کړې دې ماته براء: چې هغوی به مونځ کولو د رسول الله ﷺ سره کله چې به هغه رکوع وکړه نو دوی به هم رکوع وکړه، او چې کله به ئې سمع الله لمن حمده ووئيله نو

¹): صحيح مسلم /الصلاة ٣٩ (٤٧٤)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٤) (صحيح)

²): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٧٧٣) (صحيح)

مونږ به ولاړ وو، ترڅو چې هغوی به وليدلو چې تندی ئې په ځمکه کښې کېخوده، بيا به د نبی ﷺ پسې شول.

## باب التَّشْدِيدِ فِيمَنْ يَرْفَعُ قَبْلَ الإِمَامِ أَوْ يَضَعُ قَبْلَهُ

### باب دې په بيان د تشديد کښې د هغه چا لپاره چې اوچتېږي مخکښې د امام نه او ښکته کېږي مخکښې د امام نه

[٦٢٣]() حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَمَا يَخْشَى أَوْ أَلَا يَخْشَى أَحَدُكُمْ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ وَالْإِمَامُ سَاجِدٌ أَنْ يُحَوِّلَ اللَّهُ رَأْسَهُ رَأْسَ حِمَارٍ أَوْ صُورَتَهُ صُورَةَ حِمَارٍ".

**ترجمه**: د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلي دی، چې فرمائيلي دی رسول الله ﷺ: ايا نه وېرېږي يو کس ستاسو نه کله چې اوچت کړی خپل سر او امام په سجده کښې وی چې وبه ګرځوی الله سر د هغه سر د خره، او شکل د هغه، شکل د خره.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ اما يخشى او الا يخشى احدكم اذا رفع راسه والامام ساجد الخ ﴾ په دې حديث کښې په تقدم على الامام باندې سخت وعيد دې او دا چه داسې سړی لره د خپل صورت او شکل د مسخ کولو نه ويره کول پکار دی. ان يحول الله راسه راس حمار.

### شرح حديث

شارحينو په دې کښې دوه احتماله ليکلي دی، يا ددې نه مسخ حسی مراد ده، د شکل او صورت په قبيح شکل او صورت کښې بدليدل، يا مسخ معنوی لکه چه حمار په بلادت کښې مشهور دې، خو ظاهره دا ده چه دا په خپل ظاهر باندې محمول دې ځکه چه د ابن حبان په روايت کښې د راس حمار په ځائې راس کلب دې، بله دا چه که مقصود تشبيه وې د حمار سره نو لفظ مستقبل به نه استعماليدلې بلکه داسې به وئيلې شو فراسه راس حمار، ځکه چه د حماقت او بلادت کار خو هغه في الحال کوی نه دا چه راروان وخت کښې به ئې کوی، که پوهيدې چه په دې رکوع او سجده کښې د مخکښې کيدو څه فائده؟ او حال دا چه سلام به د امام سره اړوی نو په مينځ کښې تندئ ته څه حاجت دې؟

### وقوع المسخ في هذه الامة

او په دې امت کښې د مسخ وقوع د بعض احاديثو نه صراحة ثابته ده (ذکر الحديث في البذل) هم دغه شان د ابوداود په يو روايت کښې دی چه زما په امت کښې چه کوم خلق مکذبين بالقدر وی (قدريه) په هغوی کښې به خسف او مسخ واقع کيږی، خو د مشکاة د بعض شارحينو د کلام نه معلوميږی چه په دې امت کښې به مسخ نه واقع کيږی، نو اول خو دا د يو روايت نه هم ثابته نه ده، او که اومنلې شی نو د عموم مسخ نفی کيدلې شی چه

(1): صحيح البخاري/الأذان ٥٣ (٦٩١)، صحيح مسلم/الصلاة ٢٥ (٤٢٧)، (تحفة الأشراف: ١٤٣٨٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ٢٩٢ (٥٨٢)، سنن النسائي/الإمامة ٣٨ (٨٢٩)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٤١ (٩٦١)، مسند احمد (٢/٢٦٠، ٢٧١، ٤٢٥، ٤٥٤، ٤٥٦، ٤٦٩، ٤٧٢، ٥٠٤)، سنن الدارمي/الصلاة ٧٢ (١٣٥٥) (صحيح)

بالعموم به مسخ نه وی، د خاص خاص جماعتونو په باره کښې خو د مسخ ثبوت په احاديثو کښې موجود دې.

## رفع قبل الامام کښې مذاهب ائمه

ځان پوهه کړه چه رفع قبل الامام حرام ده خو د جمهورو په نزد به مونځ صحيح شي او ظاهريه وائي چه مونځ به فاسد شي او هم دا يو روايت د امام احمد نه دې او عبدالله بن عمر هم ددې قائل دې. (بذل)

## بَاب فِيمَنْ يَنْصَرِفُ قَبْلَ الإِمَامِ

### باب دې په بيان د هغه چا کې چې واپس کيږي مخکې د امام نه

[٦٢٤]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ بُغَيْلٍ الْمُرْهِبِيُّ، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ، عَنْ الْمُخْتَارِ بْنِ فُلْفُلٍ، عَنْ أَنَسٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَضَّهُمْ عَلَى الصَّلَاةِ وَنَهَاهُمْ أَنْ يَنْصَرِفُوا قَبْلَ انْصِرَافِهِ مِنَ الصَّلَاةِ".

**ترجمه:** د انس ﷺ نه روايت دې، بيشکه نبي ﷺ تيزې ورکړه دوی ته په مونځ، او منع ئې کړل د تلو نه مخکې د تلو د هغه نه (د نبي ﷺ نه).

**تشريح: قوله:** ﴿ ونهاهم ان ينصرفوا قبل انصرافه من الصلاة ﴾ په دې کښې ډير احتمالات دی، د امام د سلام نه مخکښې دې مقتدی سلام نه اړوی، يا د انصراف نه مراد انصراف عن المسجد دې چه مقتدی دې د امام نه مخکښې د مسجد نه بهر نه ځی. ﴿ لئلا يختلط الرجال بالنساء ﴾ په دې سلسله کښې به يو مستقل باب وړاندې راشی د ابواب الجمعة نه مخکښې "باب انصراف النساء قبل الرجال من الصلاة" ويمكن ان يكون المراد النهى عن قيام المسبوق قبل سلام الامام.

## بَاب جِمَاعِ أَثْوَابِ مَا يُصَلَّى فِيهِ

### باب دې په بيان د بابونو د هغه جامو کې چې مونځ پکې کولی شي

دا لوئې استيشن راغلو، ددې ځائې نه نور قسم بابونه شروع کيږی، په لفظ جماع کښې دوه لغتونه دی، په کسرې د جيم او په تخفيف د ميم سره په وزن د کتاب، او په ضم د جيم او تشديد سره په وزن د رمان، دا د جامع يا مجموع په معنى کښې دې يعنى د ثوب مصلى سره متعلق د ابوابو مجموعه، يا د ثواب مصلى سره متعلق يو جامع باب.

## د مونځ دپاره د ستر حکم او په هغې کښې د علماء کرامو اختلاف

ځان پوهه کړئ چه د جمهورو په نزد او د ائمه ثلاثه په نزد د عورت پټول د صحت صلاة دپاره شرط دې، ﴿ قال تعالى : يا بنى ادم خذوا زينتكم عند كل مسجد ﴾ د زينت نه مرد ما يستر العورة دې او د مسجد نه مراد صلاة دې يعنى د هر يو مونځ په وخت باندې خپل لباس اختيار کړئ بغير د لباس او ستر عورت نه مونځ مه کوئ، په دې کښې د مالکيانو اختلاف دې دوه اقوال پکښې دی، الاول ستر العورة شرط عند القدرة والذكر، که قدرت نه وی يا ئې

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٨١)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الصلاة ٢٥ (٤٢٧)، سنن النسائي/السهو ١٠٢ (١٣٦٤)، مسند احمد (١٠٢/٣، ١٢٦، ١٥٤، ٢٤٠)، سنن الدارمي/الصلاة ٧٢ (١٣٥٦) (صحيح)

خيال نه وي نو معاف دي، دويم قول د هغوی دا دي چه اګر چه د ستر پټول في نفسه فرض دی خو د مونځ د صحت دپاره شرط نه دی، لهذا ددې په ترک سره به ګناهګار وی او مونځ به صحيح شی، خو قول مختار د متاخرين مالکيانو په نزد د ستر عورت شرط کيدل دی د جمهور د مذهب مطابق. (رحمة الامة)

## په مسئله کښې د جمهورو او مالکيانو دليل

ابن قدامه په مغنی کښې د مالکيانو د طرف نه دليل دا ليکلې دې چه د ستر عورت واجب کيدل د مونځ سره خاص نه دی بلکه په هر حال کښې دی، لهذا د صحت صلاة دپاره به شرط نه وی، لکه په قبضه کړې شوی کور کښې کول چه د هغې نه ځان ساتل د صحت صلاة دپاره شرط نه دې ځکه چه د غصب نه بچ کيدل په هر حال کښې ضروری دی د صلاة سره خاص نه دی او د جمهورو دليل هغوی ﴿ لا يقبل الله صلاة حائض الا بخمار ﴾ او د سلمه بن الاکوع حديث کوم چه په کتاب کښې راروان دې ﴿وَازْرُرْهُ وَلَوْ بِشَوْكَةٍ ﴾ ذکر کړې دې.

## په حد العورت کښې د علماؤ اختلاف

د دې مقام مناسب يوه مسئله بله بيانول ضروري دی او هغه دا چه د عورت حد د کوم چه پټول ضروری دی هغه څه دې، پس امام بخاری رحمه الله هم دلته د ثوب مصلی ابواب ذکر کړې دی هلته يو باب "باب ما يستر من العورة" هم ذکر کړې دې.

پس ځان پوهه کړئ چه د ظاهريه په نزد د عورة مصداق صرف سوئتين دې يعنی قبل او دبر د باقی بدن ستر ضروری نه دې، هم دا يو روايت د امام احمد دې کما فی المغنی (ج ۱ ص ۵۷۸) او د ائمه ثلاثه په نزد د سړی د عورت حد ما بين السرة والرکبة دې، او د احنافو په نزد من السرة الى الرکبة په داسې طريقه چه ﴿ سرة ﴾ د عورة د حد نه خارج او رکبه په دې کښې داخله ده، په خلاف د ائمه ثلاثه چه د هغوی په نزد رکبه هم د حد عورت نه خارج ده، شيخ المشائخ حضرت شاه ولی الله صاحب د بخاری په تراجم کښې د امام مالک مذهب تقريبا د اهل ظواهر په شان ليکلې دې او دا چه فخذين د هغوی په نزد په حد عورت کښې داخل نه دی، خو دا د هغه يو قول دې.

اوس پاتې شوه مسئله د زنانه چه د هغې حد څه دې، پس پوهه شه چه د جمهورو په نزد په ﴿امة ﴾ او ﴿ حرة ﴾ کښې فرق دې، د وينزې عورت د سړی په شان دې او د سړی حکم وړاندې تير شو، الا الظاهرية وهم لا يفرقون فی ذلک بين الحرة والامة. او د ازادې زنانه عورت پوره بدن دې البته د بعض اندامونو استثناء شته لکه مخ او دواړه لاسونه، د اول استثناء خو د ائمه اربعه په نزد متفق عليه ده او د کفين استثناء د احنافو او شوافعو او مالکيانو ترمينځه ده، د حنابله په دې کښې دوه روايتونه دی په يو کښې استثناء ده او په يو کښې نشته. کما فی المغنی.

## د زنانو په قدمين کښې اختلاف

او د قدمين استثناء د ائمه ثلاثه په نزد نشته، د هغوی په نزد قدمين د عورت په حد کښې

داخل دي، د احنافو په دې کښې دوه روايتونه دي خو په هدايه او در مختار کښې عورت نه کيدل اصح منلې شوې دي، (۱) او دريم روايت هغه دې کوم چه په شامي کښې دې چه قدمين عورت دې د مانځه نه بهر، نه په مانځه کښې.

## منشاء د اختلاف

په اصل کښې دا اختلاف مبنى دې د آيت كريمه (ولا يبدين زينتهن الا ما ظهر منها) په تفسير باندې، په آيت کښې د زينت نه مراد مواضع د زينت دي، بيا د زينت په مواضع ظاهره کښې اختلاف دې بعضو وجه (مخ) او کفين (دواړه ورغوى يعني لاسونه) گرځولي دي، چه کحل (رانجه) د مخ زينت دې او خاتم (گوتمه) د کف زينت دې، او بعضو په دې کښې قدمين هم داخل کړي دي ځکه چه په خپو کښې هم گوتمه اچولې شي چه هغې ته فتحنه (پازيب) وائي، نو گويا د زينت ظاهره مصداق درې ځيزونه شو، کحل (رانجه)، خاتم (گتمه) او فتحنه (پازيب)، او مراد ددې ځايونه دي.

## يوه بله اختلافي مسئله

دلته يوه مسئله بله ده او هغه دا چه د امام شافعي رحمه الله په نزد د عورت انکشاف په مانځه کښې مطلقا مفسد صلاة دې او د احنافو او حنابله په نزد انکشاف يسير معاف دې كما في المغني. او د يسير مصداق زمونږ فقهاء کرامو ما دون ربع العضو ليکلي دې لهذا د اندام څلورمه حصه مکمل ښکاره کيدو سره به مفسد وي.

[۶۲۵] (۲) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنِ الصَّلَاةِ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَوَلِكُلِّكُمْ ثَوْبَانِ؟".

**ترجمه:** د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې، بيشکه د رسول الله ﷺ نه تپوس وشو په باره د مونځ کولو کښې په يوه جامه کښې، نو وويل نبي ﷺ: ايا په تاسو کښې د هر سړي دوه جامې دي.

**تشريح: قوله:** ﴿ اوكلكم ثوبان ﴾ رسول الله ﷺ د صلاة في ثواب واحد په باره کښې سوال کړې شوې دې چه په هغې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ايا په تاسو کښې هر يو سره دوه دوه کپړې دي، مطلب دا دې چه په ثواب واحد کښې مونځ جائز دې.

صلاة في ثوب احد په اتفاق د ائمه اربعه جائز دې، بعض صحابه کرام لکه د ابن مسعود نه ددې ممانعت منقول دې، پس د مصنف عبدالرزق په روايت کښې دي چه يو ځل د ابي بن کعب رضي الله عنه او ابن مسعود رضي الله عنه په دې مسئله کښې اختلاف پيدا شو، سيدنا ابي رضي الله عنه فرمائيل چه ﴿ لا باس به ﴾ او ابن مسعود رضي الله عنه فرمائيل چه ﴿ انما كان ذلک اذا كان الناس لا يجدون ثيابا فاما اذا وجدوها فالصلاة في ثوبين ﴾، سيدنا عمر رضي الله عنه هلته ناست وو هغه اوفرمائيل

(۱) حضرت شيخ په بذل کښې ليکي: قلت ويظهر من هامش الهداية عكسه فتامل)

(۲) صحيح البخاري/الصلاة ٤ (۳۵۸)، صحيح مسلم/الصلاة ۵۲ (۵۱۵)، سنن النسائي/القبلة ۱۴ (۷۶۴)، (تحفة الأشراف: ۱۳۲۳۱)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۶۹ (۱۰۴۷)، موطا امام مالك/صلاة الجماعة ۹ (۳۰)، مسند احمد (۲/۲۳۰، ۲۳۹، ۲۸۵، ۳۴۵، ۴۹۵، ۴۹۸، ۴۹۹، ۵۰۱)، سنن الدارمي/الصلاة ۹۹ (۱۴۱۰) (صحيح)

﴿الصواب ما قال ابی لا ما قال ابن مسعود﴾ (منهل) هم دغه شان د ابن مسعود رضي الله عنه نه نقل دی چه په ثوب واحد کښې مونځ نه دی کول پکار ﴿وان كان اوسع من السماء﴾ (هامش کوکب) خو په دې باندې اجماع ده چه صلاة فی ثوبين افضل دې او د رسول الله ﷺ په ثوب واحد کښې مونځ کول کله خو به د کپړې د نه کیدو د وجې نه وو او کله به ئې باوجود د کیدو نه د بیان جواز دپاره، اصل په دې کښې دا دې چه مونځ په معتاد او مناسب جامه او هیئت کښې کول پکار دی، چه په کومه جامه او هیئت کښې چه انسان د لویو خلقو سره ملاویدل او مجامع کښې شرکت نه خوښوی داسې هیئت په مونځ کښې هم اختیارول پکار نه دی، پس فقهاء کرامو ثیاب بذله (په خیرنو او ګډو وډو) کښې مونځ کولو ته مکروه وئیلې دی.

[۶۲۶](1)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يُصَلِّ أَحَدُكُمْ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ لَيْسَ عَلَى مَنْكِبَيْهِ مِنْهُ شَيْءٌ".

**ترجمه:** د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې، هغه وئيلی دی، فرمائيلی دی رسول الله ﷺ: مونځ دې نه کوی یو کس ستاسو نه په یوه جامه کښې چې نه وی د هغه په اوږو باندې د هغې نه څه شی.

**تشریح: قوله:**﴿لا يصل احدكم فى الثوب الواحد ليس على منكبيه منه شئ﴾ د دې نه معلومه شوه چه انسان که په ثوب واحد کښې مونځ اوکړی نو هغه دې داسې استعمالوی چه د بدن پورته حصه هم پټه وی د لنګ په شان دې په بدن پورې دې نه تړی، دا هم هغه معتاد او مناسب هیئت والا خبره ده کومه چه مونږ پورته بیان کړې ده خو دا هم هغه وخت ده چه کله په دې کپړه کښې ددې ګنجائش وی، او که هغه زیات وړوکې وی نو بیا یقینا د بدن په مینځ کښې به هغه تړلې شی.

## مذاهب ائمه

د جمهور علماء کرامو په نزد دا نهی د تنزیه دپاره ده وعند احمد ﴿للتحريم﴾، یو قول د هغوی دا دې چه په دې صورت کښې به مونځ صحیح نه وی، بل قول د هغوی دا دې چه مونځ خو به صحیح شی، خو ګناهګار به وی.

[۶۲۷](2)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، الْمَعْنَى عَنْ هِشَامِ بْنِ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فِي ثَوْبٍ، فَلْيُخَالِفْ بِطَرَفَيْهِ عَلَى عَاتِقَيْهِ".

**ترجمه:** د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې، هغه وئيلی دی، فرمائيلی دی رسول الله ﷺ: کله چې مونځ کوی یو کس ستاسو نه په یوه جامه کښې تاو دې کړی دواړه طرفونه د هغې په غاړه کښې.

(1): صحيح مسلم/الصلاة ۵۲ (۵۱۶)، سنن النسائي/القبلة ۱۸ (۷۷۰)، (تحفة الأشراف: ۱۳۶۷۸)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلاة ۵ (۳۵۹)، مسند احمد (۲/۲۴۳)، سنن الدارمي/الصلاة ۹۹ (۱۴۱۱) (صحيح)

(2): صحيح البخاري/الصلاة ۵ (۳۶۰)، (تحفة الأشراف: ۱۴۲۵۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۵۵، ۲۶۶، ۴۲۷، ۵۲۰) (صحيح)

[۶۲۸]()حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ مُلْتَحِفًا مُخَالِفًا بَيْنَ طَرَفَيْهِ عَلَى مَنْكِبَيْهِ".

**ترجمه**: د عمرو بن سلمة رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلى دى ما وليدلو رسول الله ﷺ چې مونځ ئې كولو په يوه جامه كښې مشتمل په هغه او تاو كړيې وو دواړه طرفونه د هغې په اوږو خپلو باندې.

[۶۲۹]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا مُلَازِمُ بْنُ عَمْرٍو الْحَنَفِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بَدْرٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ طَلْقٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَدِمْنَا عَلَى نَبِيِّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَجَاءَ رَجُلٌ، فَقَالَ: "يَا نَبِيَّ اللَّهِ، مَا تَرَى فِي الصَّلَاةِ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ؟ قَالَ: فَأَطْلَقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِزَارَهُ طَارَقَ بِهِ رِدَاءَهُ فَاشْتَمَلَ بِهِمَا، ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى بِنَا نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا أَنْ قَضَى الصَّلَاةَ قَالَ: أَوَكُلُّكُمْ يَجِدُ ثَوْبَيْنِ؟".

**ترجمه**: قيس بن طلق د خپل پلار نه روايت كوي، هغه وئيلى دى، مونږ راغلو نبي ﷺ ته نو راغي يو سړى ويې وئيل: اې د الله نبي! ستا څه خيال دى د مونځ كولو باره كښې په يوه جامه كښې، هغه وايي: ايله كړو رسول الله ﷺ خپل لنګ جوړه ئې كړو د خپل څادر سره، نو هغه راواچولې په ځان، بيا پاڅيدلو مونځ وكړو مونږ ته نبي ﷺ، هركله چې ئې مونځ پوره كړو هغه ووئيل: ايا هر يو په تاسو كښې بيامومي دوه جامې؟ (يعنى هرچا سره دوه جامې كيدل ضرورى نه دى نو بيا په يوه جامه كښې به مونځ ولې صحيح نه وى).

## بَابُ الرَّجُلِ يَعْقِدُ الثَّوْبَ فِي قَفَاهُ ثُمَّ يُصَلِّي

### باب دې په بيان د سړي كې چې تړي جامه په خپل څټ كې او بيا مونځ كوي

[۶۳۰]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: "لَقَدْ رَأَيْتُ الرِّجَالَ عَاقِدِي أُزُرِهِمْ فِي أَعْنَاقِهِمْ مِنْ ضِيقِ الْأُزُرِ خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلَاةِ كَأَمْثَالِ الصِّبْيَانِ، فَقَالَ قَائِلٌ: يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ، لَا تَرْفَعْنَ رُءُوسَكُنَّ حَتَّى يَرْفَعَ الرِّجَالُ".

**ترجمه**: د سهل بن سعد نه روايت دې هغه وئيلى دي: بيشكه ما ليدلى وو سړي چې تړلى ئې وو خپل لنګونه په څټونو كښې د وجې د تنګوالى نه وروسته د رسول الله ﷺ نه په مانځه كښې پشان د ماشومانو، نو ووئيل يو ويونكي: اې ټولګى د ښځو تاسو خپل سرونه مه اوچتوئ تردې چې سړي ئې اوچت كړي.

### د ثوب واحد اقسام ثلاثه او د هر يو د استعمال طريقه

ځان پوهه كړه چه ثوب واحد چه په هغې كښې انسان مونځ كوى د هغې درې قسمونه دى، ضيق، وسيع، اوسع، كه ضيق دې نو په حديث كښې د هغې طريق استعمال اتزار دې يعنى

[1]: صحيح مسلم/الصلاة ۵۲ (۵۱۷)، سنن الترمذي/الصلاة ۱۴۲ (۳۳۹)، (تحفة الأشراف: ۱۰۶۸۲)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلاة ٤ (۳۵۵)، سنن النسائي/القبلة ١٤ (٧٦٥)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٦٩ (١٠٤٩)، موطا امام مالك/صلاة الجماعة ۹ (۲۹)، مسند احمد (٢٦/٤، ٢٧) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۰۲۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢/٤) (صحيح)

[3]: صحيح البخاري/الصلاة ٦ (٣٦٢)، والأذان ١٣٦ (٨١٤)، والعمل في الصلاة ١٤ (١٢١٥)، صحيح مسلم/الصلاة ٢٩ (٤٤١)، سنن النسائي/القبلة ١٦ (٧٦٧)، (تحفة الأشراف: ٤٦٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٣١/٥) (صحيح)

لنګ اود پاجامي په شان دا د بدن په مينځ کښې ترل پکار دی، او که وسيع دې نو په خاټي د مينځ کښې ترلو نه سټ نه نزدې راوستلو سره غوټه ورکول لکه چه په دې ترجمه کښې ذکر شوې دی، او د قسم ثالث يعنی اوسع حکم دا دې چه دا دې استعمال کړې شی په مخالفة بين الطرفين سره لکه چه په حديث کښې ذکر شوې دی، يعنی ددې کپړې ښي پلو دې په ګس طرف باندې او ګس پلو دې په ښئ اوګه باندې واچولې شی، مخالفة بين الطرفين هم په هغه څادر کښې کيدې شی کوم چه زيات وسيع وی، او کوم چه کم وسيع وی په هغې کښې به غوټه لګوی، په سټ باندې. او د زيات وړوکوالی په صورت کښې به د بدن په وسط کښې ترلې شی، د مصنف په تراجم ابواب او ددې سلسلې د احاديثو نه هم دا تفصيل مستفاد کيږی.

## بَابُ الرَّجُلِ يُصَلِّي فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ بَعْضُهُ عَلَى غَيْرِهِ

**باب دې په بيان دسړي کې چې مونځ کوي په يوه جامه کې بعضې حصه يې په بل پرته وي**

[۶۳۱](١)حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ، عَنْ أَبِي حُصَيْنٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ بَعْضُهُ عَلَيَّ".

**ترجمه**: د عائشې رضی الله عنها نه روايت دې هغې ويلی دې: بيشکه نبی صلی ا لله عليه وسلم مونځ وکړو په يوه جامه کښې او بعضې حصه په ما پرته وه.

**تشريح**: په دې باب کښې مصنف چه کوم حديث ذکر کړې دې هغه باب الصلاة فی شعر النساء کښې تير شوې دې.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُصَلِّي فِي قَمِيصٍ وَاحِدٍ

**باب دې په بيان د سړي کې چې مونځ کوي په يو قميص کې**

[۶۳۲](٢)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي رَجُلٌ أَصِيدُ، "أَفَأُصَلِّي فِي الْقَمِيصِ الْوَاحِدِ؟ قَالَ: نَعَمْ، وَازْرُرْهُ وَلَوْ بِشَوْكَةٍ".

**ترجمه**: د سلمة بن الاکوع نه روايت دې هغه وئيلی دې: ما تپوس وکړو ای د الله رسوله! زه ښکار کونکی سړی يم، آيا زه مونځ وکرم په يو قميص کې؟ هغه وفرمائيل آو، او ويې تړه اګر که په غنه باندې وي.

**تشريح**: په ثوب واحد کښې د مونځ کولو دوه صورتونه دی، يا خو به هغه کپړه د څادر د قسم نه وی، يا د قميص په شکل کښې، دا دويم صورت دلته بيانولې شی

### شرح حديث

**قوله**:﴿ يا رسول الله صلى الله عليه وسلم انى رجل اصيد فاصلى فى القميص الواحد ﴾ سلمه بن الاکوع رضی الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو چه زه اکثر د ښکار دپاره ځم او د ښکاری دپاره

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٠٧١)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الصلاة ٥١ (٥١٤)، سنن النسائي/القبلة ١٧ (٧٦٩)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٣١ (٦٥٢)، مسند احمد (٦/٢٠٤) (صحيح)

(٢): سنن النسائي/القبلة ١٥ (٧٦٦)، (تحفة الأشراف: ٤٥٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤٩، ٥٤) (حسن)

د څادر او لنګ سنبهالول د منډو د وجې نه ګران وي، نو ایا په یو قمیص کښې مونځ اوکړم (قمیص چونکه سنبهالولو ته ضرورت نه وي په دې وجه په دې کښې سهولت دې خصوصا د ښکار کونکی دپاره) په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ﴿ نعم وازروه ولو بشوكة ﴾ چه او کوه! خو د هغه قمیص ګریوان تړه اګر که په ازغی سره ولې نه وي، ځکه چه ګریوان که پرانستلې وو نو په رکوع کښې یا په بل څه حالت کښې په خپل عورت باندې د نظر پریوتلو امکان دې ﴿ وازر ﴾ د امر صیغه ده د زرز یزر د باب نصر نه وئیلې شی تړلو ته چه د هغې جمع ازرار راځی، په حدیث کښې لفظ د ﴿ اصید ﴾ مذکور دې په ظاهره کښې دا د واحد متکلم صیغه ده په وزن د ﴿ ابیع ﴾، او وئیلې شوې دی چه لفظ ﴿ اصید ﴾ دې په وزن د ﴿ احمر ﴾، چه د هغې معنی ده هغه سړې چه د هغه په سټ کښې څه تکلیف وي چه د هغې په وجه باندې هغې ته حرکت ورکول او التفات کول ګران وي.

## لو وقع نظر المصلي على عورته

په دې حدیث کښې د ګریوان د تړلو حکم ورکړې شوې دې ددې وجه دا بیان کړې شوې ده چه په عورت باندې نظر پریوځی دا مسئله مختلف فیه ده.

د امام شافعي او احمد په نزد د مصلي نظر په خپل ستر باندې پریوتلو سره مونځ فاسد کیږي او د مالکیانو په دې کښې اختلاف دې، زمونږ په نزد هم دې کښې دوه اقوال دی خو راجح عدم فساد دې (من هامش البذل) د دې حدیث نه ابن قدامه د صحة صلاة دپاره د ستر عورت په شرط کیدو باندې استدلال کړې دې. کما تقدم

[۶۳۲] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمِ بْنِ بَزِيعٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي بُكَيْرٍ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي حَوْمَلٍ الْعَامِرِيِّ، قَالَ أَبُو دَاوُد: كَذَا قَالَ، وَالصَّوَابُ: أَبُو حَرْمَلٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: أَمَّنَا جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ فِي قَمِيصٍ لَيْسَ عَلَيْهِ رِدَاءٌ، فَلَمَّا انْصَرَفَ، قَالَ: "إِنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي قَمِيصٍ".

**ترجمه**: د ابو حومل نه روایت دې، وئیلی دی ابوداود: دارنګه ویلی دي: او صحیح ابو حرمل دی، هغه روایت کوی د محمد بن عبد الرحمن بن ابی بکر نه او هغه ئې د خپل پلار نه کوي، هغه وایي: امامت وکړو مونږ ته جابر بن عبد الله په یو قمیص کښې چې نه وو په هغه باندې څادر، هرکله چې فارغ شو هغه وویل: ما لیدلی وو رسول الله ﷺ چې مونځ ئې کولو په یو قمیص کښې.

## بَابُ إِذَا كَانَ الثَّوْبُ ضَيِّقًا يَتَّزِرُ بِهِ

### باب دی، کله چې جامه تنګه وي نو لنګ دې تړینه ووهي

د ثوب ضیق حکم زمونږ په کلام کښې مخکښې تیر شو، او دا چه ثواب واحد چه په هغې کښې مونځ کولې شی د هغې درې قسمونه دی تفصیل مخکښې تیر شو.

١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٣٧٩)، وقد أخرجه: وقد ورد بلفظ: «ثوب واحد» عند: صحيح البخاري/الصلاة ٣ (٣٥٣)، صحيح مسلم/الصلاة ٥٢ (٥١٨)، مسند احمد (٣/٢٩٣، ٢٩٤) (ضعيف)

[٦٣٤]()حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، وَيَحْيَى بْنُ الْفَضْلِ السِّجِسْتَانِيُّ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الدِّمَشْقِيُّ، قَالُوا: حَدَّثَنَا حَاتِمٌ يَعْنِي ابْنَ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ مُجَاهِدٍ أَبُو حَزْرَةَ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الْوَلِيدِ بْنِ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، قَالَ: أَتَيْنَا جَابِرًا يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "سِرْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةٍ، فَقَامَ يُصَلِّي وَكَانَتْ عَلَيَّ بُرْدَةٌ ذَهَبْتُ أُخَالِفُ بَيْنَ طَرَفَيْهَا فَلَمْ تَبْلُغْ لِي، وَكَانَتْ لَهَا ذَبَاذِبُ فَنَكَّسْتُهَا ثُمَّ خَالَفْتُ بَيْنَ طَرَفَيْهَا ثُمَّ تَوَاقَصْتُ عَلَيْهَا لَا تَسْقُطُ، ثُمَّ جِئْتُ حَتَّى قُمْتُ عَنْ يَسَارِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخَذَ بِيَدِي فَأَدَارَنِي حَتَّى أَقَامَنِي عَنْ يَمِينِهِ، فَجَاءَ ابْنُ صَخْرٍ حَتَّى قَامَ عَنْ يَسَارِهِ فَأَخَذَنَا بِيَدَيْهِ جَمِيعًا حَتَّى أَقَامَنَا خَلْفَهُ، قَالَ: وَجَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْمُقُنِي وَأَنَا لَا أَشْعُرُ، ثُمَّ فَطِنْتُ بِهِ فَأَشَارَ إِلَيَّ أَنْ أَتَّزِرَ بِهَا، فَلَمَّا فَرَغَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: يَا جَابِرُ، قَالَ: قُلْتُ: لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: إِذَا كَانَ وَاسِعًا فَخَالِفْ بَيْنَ طَرَفَيْهِ، وَإِذَا كَانَ ضَيِّقًا فَاشْدُدْهُ عَلَى حِقْوِكَ".

**ترجمه:** عبادة بن الصامت وايي چې مونږ راغلو جابر بن عبد الله ته، هغه وئيلي دی، زه لاړم د نبی ﷺ سره په يوه غزا كښې، نو پاځيدلو چې مونځ ئې كولو، او په ما باندې يو څادر وو زه شروع شوم چې راتاوول مې دواړه طرفونه د هغې نو هغه ونه رسيدل ماته، او د هغې څونډې وو ما هغه جامه نسكوره كړه بيا مې دواړه طرفونه د هغې راتاو كړل، بيا وركوږ شوم په هغې چې ونه غورځيږي، بيا راغلم تردې چې ودريدم ګس طرف د رسول الله ﷺ ته، نو ويې نيولو زما لاس او راتاويې كړم تردې چې زه ئې ودرولم ښي طرف ته، راغې ابن صخر تردې چې د هغه چپ طرف ته ودريدو نو مونږيې ونيولو په دواړو لاسونو باندې، تردې چې مونږ ئې شاته ودرولو، هغه وايي: او شروع شو رسول الله ﷺ چې كتل ئې ماته او زه نه پوهيدم، بيا پوهه شوم، اشاره ئې وكړه ماته چې زه لنګ ووهم، هركله چې فارغ شو رسول الله ﷺ هغه وويل: اې جابرا ما وويل: حاضر يم اې د الله رسوله! هغه وفرمائيل: كله چې كولاو وي نو تاو كړه دواړه طرفونه د هغې، او چې كله تنګ وي نو ويې تړه په خپل دوډې باندې.

## مضمون حديث

**قوله:**﴿قال اتينا جابرا يعنى ابن عبدالله قال : سرت معى النبى صلى الله عليه وسلم فى غزوة الخ ﴾ د دې غزوه نه مراد غزوه بواط ده لكه چه د مسلم په روايت كښې تصريح ده، سيدنا جابر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د بعض سفرونو ذكر كوی، حديث ډير اوږد دې كوم چه د مسلم شريف د جلد ثانی په اخر كښې دې مصنف د هغې دلته يوه ټكړه ذكر كړې ده چه د هغې مضمون دا دې، رسول الله ﷺ مونځ كولو ما سوچ اوكړو چه زه هم ورپسې شاته نيت اوترم، ما سره صرف يو څادر وو چه د هغې اغوستلو سره به ما مونځ كولو ما هغه د مخالفة بين الطرفين سره اغوستل اوغوښتل خو هغه وانغوستلې شو، په هغه څادر كښې يو طرف ته د جال په شان حصه وه هغه ارخ ئې لاندې طرف ته وو په دې وجه ما هغه څادر تاؤ كړو چه هغه لاندې طرف ئې پورته راشي او هغه جالي داره حصه پورته طرف ته شي او د هغې په وجه باندې ماته د څادر په سنبهالى كښې څه مدد ملاؤ شي، پس ما هغه څادر د مخكښې په شان د

[١]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٣٦٠)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المسافرين ٢٦ (١٧٨٨)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٤٤ (٩٧٣)، مسند احمد (٣/٣٥١) (صحيح)

مخالفة بين الطرفين سره واچولو او هغه جال ښه پورته راغلي وو او د هغې په ذريعه ما د هغه څادر سرونه د خپلې زنې لاندې کړل ددې دپاره چه هغه څادر پرې نه اوځي، بيا مې هم په دې حالت کښې په رسول الله ﷺ پسې شاته نيت اوتړلو، رسول الله ﷺ زما لاس اونيولو او زه ئې د ګس نه ښي طرف ته راواړولم، لږ ساعت پس زما ملګرې (چه د هغه نوم جبار بن صخر دې لکه چه د مسلم په روايت کښې دی) هغه هم راغلو او په رسول الله ﷺ پسې ئې شاته نيت اوتړلو، رسول الله ﷺ مونږ دواړه په خپلو لاسونو مبارکو سره شاته ديکه کړو، او رسول الله ﷺ ماته په مونځ کښې مسلسل کتل خو زه د هغه په اشاره باندې متوجه نه شوم، لږ ساعت پس زه پوهه شوم چه هغه ماته په اشارې سره څه حکم کوی، او هغه اشاره دا وه چه چونکه دا څادر وړوکې دې او په دې کښې د مخالفة بين الطرفين ګنجائش نشته لهذا دا د خپل بدن په مينځ باندې اوتړه، او بيا د مونځ نه فارغ کيدو باندې ئې هم دا خبره په ژبې سره ارشاد اوفرمائيله.

## باب الإسبال في الصلاة

### باب دې په بيان د اسبال کې (پرتوګ د ګېټو نه لاندې) په مانځه کې

د اسبال لغوی معنی پرده وغيره سسته پريخودل دی، او دلته مراد دا دې چه قميص يا ازار د ګيټو نه لاندې کول کوم چه د سړو دپاره ممنوع دې.

### د اسبال ازار حکم

علماء کرامو ليکلې دی چه که دا د خيلاء د وجې نه وی نو بيا حرام دې او که هم داسې د بې توجه کيدو يا غفلت د وجې نه وی نو بيا مکروه دې، او که د څه عذر او مجبورئ د وجې نه وی نو بيا مکروه هم نه دې، لکه چه د صديق اکبر ﷛ په باره کښې راځی چه هغه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه زما لنګ لاندې کيږی نو هغه ورته اوفرمائيل چه ستا دا فعل د خيلاء د وجې نه نه دې، په لامع کښې چرته ليکلی دی چه ابوبکر صديق ﷛ د بدن نه مانده وو او خيټه ئې دننه وه په دې وجه به د هغه لنګ پخپله لاندې شو، او ددې بالمقابل د علی ﷛ بدن درونډ او د هغه خيټه بهر راوتلې وه په دې وجه به ئې لنګ ښکته کيدو، بهرحال په داسې شکل کښې هيڅ کراهت نشته

[٦٣٨] (١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: بَيْنَمَا رَجُلٌ يُصَلِّي مُسْبِلًا إِزَارَهُ إِذْ قَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اذْهَبْ فَتَوَضَّأْ، فَذَهَبَ فَتَوَضَّأَ، ثُمَّ جَاءَ، ثُمَّ قَالَ: اذْهَبْ فَتَوَضَّأْ، فَذَهَبَ فَتَوَضَّأَ، ثُمَّ جَاءَ، فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا لَكَ أَمَرْتَهُ أَنْ يَتَوَضَّأَ ثُمَّ سَكَتَّ عَنْهُ؟ فَقَالَ: إِنَّهُ كَانَ يُصَلِّي وَهُوَ مُسْبِلٌ إِزَارَهُ، وَإِنَّ اللَّهَ تَعَالَى لَا يَقْبَلُ صَلَاةَ رَجُلٍ مُسْبِلٍ إِزَارَهُ".

**ترجمه:** د ابو هريرة ﷛ نه روايت دې، هغه وئيلی دي: يو سړی وو چې مونځ ئې کولو لنګ ئې ځکته وو، وويل هغه ته رسول الله ﷺ: لاړه شه اودس وکړه. لاړلو اودس ئې وکړو، بيا راغلو، لاړه شه اودس وکړه. لاړلو اودس ئې وکړو بيا راغلو، نو يو سړی ورته وويل: اې د

(١): تفرد به أبو داود، وأعاده في اللباس (رقم: ٤٠٨٦)، (تحفة الأشراف: ١٤٢٤١) (ضعيف)

الله رسوله! څه دي تالره چې امر دې ورته وکړو په اودس، بیا چوپ شولو د هغه نه، وبې فرمائیل: ده مونځ کولو او لنګ ئې خکته وو او بیشکه الله تعالی نه قبلوې مونځ د سړي چې لنګ ئې خکته وي.

## مضمون حدیث

**قوله:** ﴿ بينما رجل يصلى مسبلا ازاره الخ ﴾ یو سړی د اسبال ازار سره مونځ کولو، رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه لاړ شه اودس اوکړه، هغه لاړو او اودس ئې اوکړو، رسول الله ﷺ ورته دوباره حکم اوکړو چه لاړ شه او دوباره اودس اوکړه، هغه دوباره اودس اوکړو، یو سړي عرض اوکړو چه تاسو هغه ته د اودس کولو حکم ولې اوکړو؟ هغه ددې وجه دا بیان اوفرمائیله چه د اسبال ازار په حالت کښې الله پاک ته د انسان مونځ نه قبلیږي.
اسبال ازار چونکه بعض وخت د تکبر په بناء باندې وی کومه چه یو باطنی ګندګی ده ځکه رسول الله ﷺ هغه ته د طهارة الظاهر حکم اوفرمائیلو ددې دپاره چه د هغې په اثر سره طهارت باطن حاصل شی ځکه چه الله پاک د ظاهر او باطن ترمینځه یو خاص قسم جوړ ساتلې دې، او دوباره به ئې هغه ته د اودس کولو حکم په دې وجه ورکړې وی چه په اول ځل به مقصود ښه طریقې سره نه وی حاصل شوې.

[٦٣٧]()حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ أَخْزَمَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، عَنْ أَبِي عَوَانَةَ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ أَسْبَلَ إِزَارَهُ فِي صَلَاتِهِ خُيَلَاءَ، فَلَيْسَ مِنَ اللَّهِ فِي حِلٍّ وَلَا حَرَامٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا جَمَاعَةٌ، عَنْ عَاصِمٍ، مَوْقُوفًا عَلَى ابْنِ مَسْعُودٍ، مِنْهُمْ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، وَحَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، وَأَبُو الْأَحْوَصِ، وَأَبُو مُعَاوِيَةَ.

**ترجمه:** د ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې، هغه وئیلی دی، ما اوریدلی دی د رسول الله ﷺ نه هغه به وئیل: چا چې خکته کړو خپل لنګ په مانځه خپل کښې د وجې د کبر نه نو نه دی د الله د طرف نه په حل او حرمت کښې. وئیل دی ابوداود: روایت کړی دی ددې یو جماعت د عاصم نه په موقوفیت ددې سره په ابن مسعود باندې، بعضې د دوی نه حماد بن سلمة دی او حماد بن زید دی او ابو الاحوص دی، او ابو معاویة دی.

**تشریح: قوله:** ﴿ فليس من الله فى حل ولا حرام ﴾ یعنی کوم سړې چه په مونځ کښې (د تکبر د وجې نه) اسبال ازار کوی د هغه حال دا دې کوم چه په حدیث کښې مذکور دې.

## شرح حدیث

د جملې په مطلب کښې د شارحینو مختلف اقوال دی.
۱: دا ماخوذ دې د عربو د قول ﴿فلان لا ينفع للحلال ولا للحرام﴾ یعنی فلانې سړې ناکاره او بیکاره دې د خلقو په نزد د هغه هیڅ عزت نشته او نه د هغه یو فعل قابل اعتبار دې،
۲: او یا ئې دا مطلب دې چه دا سړې نه خو یو جائز او حلال کار کوی او نه د الله پاک په نزد د هغه څه احترام دې،

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٣٧٩) (صحيح)

۳: یا ئې دا مطلب دې چه د هغه سرې دپاره نه جنت حلال دې او نه جهنم حرام،
۴: او یا دا مطلب دې چه دا سړې د الله پاک په نزد داسې دې چه هغه ته نه د حلال خبر او پرواه شته او نه د حرام.

# باب من قال یتزربه اذاکان ضیقا

## باب: څوک چه وائي چه کپړه وړه وي نو د لنګ په شان تړل پکار دي

## په یو قسم بابونو کښې دفع تکرار

دا باب په ظاهره مکرر دې هم ددې په شان باب مخکښې تیر شو، حضرت په بذل کښې ددې جواب دا لیکلې دې چه په تیر شوی حدیث کښې ﴿ فاشدده علی حقوک ﴾ لفظ راغلې دې، صریح لفظ اتزار هلته نه وو اګر چه معنی د دواړو یوه ده نو ګویا مصنف د الفاظ حدیث اتباع او رعایت کښې داسې کړې دی، خو صاحب منهل ددې سره هیڅ تعرض نه دې کړې، یو جواب دا کیدې شی چه په حدیث الباب کښې دا مذکور دی چه که انسان سره یوه کپړه وی نو د هغې نه اتزار کول پکار دی، په حدیث کښې د ثوب واحد په حق کښې مطلقا د اتزار وئیلې شوې دی حال دا چه دا حکم په هغه صورت کښې دې چه کله هغه کپړه وړه او تنګه وی، په دې وجه مصنف د حدیث د مقید کولو دپاره په هغې باندې دا ترجمه قائم کړې ده نو ګویا دا ترجمه شارحه شوه،[1] د بخاری شریف هم په بعض تراجم کښې په بعض صورتونو کښې هم دا توجیه کولې شی چه دا ترجمه شارحه ده.

[۶۳۵]([2]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَوْ قَالَ: قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: "إِذَا كَانَ لِأَحَدِكُمْ ثَوْبَانِ فَلْيُصَلِّ فِيهِمَا، فَإِنْ لَمْ يَكُنْ إِلَّا ثَوْبٌ وَاحِدٌ فَلْيَتَّزِرْ بِهِ وَلَا يَشْتَمِلِ اشْتِمَالَ الْيَهُودِ".

**ترجمه:** د ابن عمر ﷺ نه روایت دې، هغه وئیلی دی، چې فرمائیلی دی رسول الله ﷺ: یا هغه وویل: چې وئیلی دی عمر رضی الله عنه: کله چې وې یو ستاسو لپاره دوه جامې نو مونځ دې کوی په هغې کښې که چرې نه وې مګر یوه جامه نو لنګ دې ووهي، او اشتمال دې نه کوی پشان د اشتمال د یهودو.

## د اشتمال الیهود والصماء تفسیر

**قوله:** ﴿ ولا یشتمل اشتمال الیهود ﴾ او د یهودو په شان دې څادر نه راتولوی، اشتمال یهود دا دې چه څادر داسې په خپل بدن باندې راتول کړی د پورته نه لاندې چه د لاسونو بهر راوتل ئې ګران شی، په دې کښې د تشبه بالیهود نه علاوه د ضرر رسیدو ویره هم ده، که غورځیږی نو خپل ځان به څنګه بچ کوی، دغه شان به ئې د ضرری حیوان نه بچ کیدل هم

---

[1] په دې توجیه باندې دا اشکال کیدې شی چه که د مصنف مقصود شرح حدیث وی نو هغه حدیث به ئې هم د تیر باب د لاندې راوړې وې هغې سره به هم د شرح حدیث فائده حاصله شوې وه، اللهم ﴿ الا ان یقال ﴾ چه د اهتمام په قصد ئې ددې دپاره مستقل باب تړلې دې.

[2] تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۵۸۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۴۸/۲) (صحیح)

ګران وی ځکه چه دواړه لاسونه خو ئې دننه دی، او هم دا تفصیل د اشتمال الصماء هم کړې شوې دې، د بخاری شریف په یو روایت کښې دی ﴿ نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن اشتمال الصماء ﴾ په اصل کښې دا د ﴿ الصخرة الصماء ﴾ نه اخستلې شوې دې، هغه مضبوط کاڼړې چه په هغې کښې منفذ او سورې نه وی، او بعض علماء کرامو د اشتمال الصماء تفسیر دا کړې دې چه یوه کپړه دې داسې واچوی چه د هغې د راټولولو نه پس د هغې یو سر اوچت کړی او په اوږه دې واچوی، په دې صورت کښې د کشف عورت احتمال دې.

[۶۳۶]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ الذُّهْلِيُّ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو تُمَيْلَةَ يَحْيَى بْنُ وَاضِحٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْمُنِيبِ عُبَيْدُ اللَّهِ الْعَتَكِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُصَلِّيَ فِي لِحَافٍ لَا يَتَوَشَّحُ بِهِ وَالْآخَرُ أَنْ تُصَلِّيَ فِي سَرَاوِيلَ وَلَيْسَ عَلَيْكَ رِدَاءٌ".

**ترجمه:** عبد الله بن بریدة روایت کوی د خپل پلار نه، هغه وئیلی دی: منع کړې ده رسول الله ﷺ چې مونځ وکړی په لحاف کښې او ځان نه پټوې په هغې، او بل دا چې ته مونځ وکړې په پرتوګ کښې او په تا باندې څادر نه وې.

## بَابٌ فِي كَمْ تُصَلِّي الْمَرْأَةُ

### باب دی، په څو جاموکې به ښځه مونځ کوی

[۶۳۹]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ قُنْفُذٍ، عَنْ أُمِّهِ، أَنَّهَا سَأَلَتْ أُمَّ سَلَمَةَ: مَاذَا تُصَلِّي فِيهِ الْمَرْأَةُ مِنَ الثِّيَابِ؟ فَقَالَتْ: "تُصَلِّي فِي الْخِمَارِ وَالدِّرْعِ السَّابِغِ الَّذِي يُغَيِّبُ ظُهُورَ قَدَمَيْهَا".

**ترجمه:** محمد بن زید بن قنفذ روایت کوې د خپلې مور نه، بیشکه هغې تپوس وکړو د ام سلمة نه، هغه څو جامې دی چې ښځه پکې مونځ کوې، هغې ووېل: مونځ به کوې په لوپټه کښې او په قمیص اوږد کښې هغه چې د خپو شاګانې پټوې.

**تشریح:** د جمهورو په نزد د زنانه دپاره د مونځ په جامو کښې د دوه کپړو کیدل واجب دی، خمار او قمیص (۳) لکه چه په حدیث الباب کښې دی، خمار د سر پټولو او قمیص د باقی بدن پټولو دپاره، خو جمهور دا وائی چه مقصود د ټول بدن ستر دې فلو حصل بثوب واحد وسیع جاز. هم دا د ائمه اربعه مذهب دې، وقیل لا بد من ثلاث، وقیل لا بد من اربع، خمار، قمیص، ازار، ملحفه، اخری دواړه اقوال د عطاء او ابن سیرین نه نقل دی، ابن قدامه لیکی چه د زنانو دپاره مستحب (د شافعی او احمد په نزد) دا ده چه په درې کپړو کښې مونځ اوکړی، خمار، درع، جلباب یعنی څادر په قمیص باندې دپاسه اچولو دپاره.

﴿ والدرع السابغ الذی یغیب ظهور قدمیها ﴾ د دې حدیث نه معلومه شوه چه د زنانه قدمین د عورت په حد کښې داخل دی لکه چه د ائمه ثلاثه مذهب دې.

[۱]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۸۷) (حسن)
[۲]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۲۹۱)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/صلاة الجماعة ۱۰(۳۶) (ضعيف موقوف)
[۳]) د قمیص نه اوږده کرته مراد ده لاندې پورې (عربی کُرته).

## د قدمين په عورة كيدو باندې استدلال او د احنافو د طرف نه د دې جواب

خو د احنافو د اصح قول خلاف دې، جواب دا دې چه دا حديث ضعيف دې ددې په سند كښې احمد راوی دې د هغه په باره كښې امام ذهبی فرمائی ﴿ لا تعرف ﴾، هم دغه شان ددې حديث په سند كښې اضطراب دې كوم چه مصنف خپله وړاندې بيان كړې دې، او دا چه اكثر راويانو دا حديث د ام سلمه رضي الله عنها نه موقوفًا او بعض مرفوعا روايت كړې دې لهذا په حديث كښې ضعف پيدا شو.

[٦٤٠]([1]) حَدَّثَنَا مُجَاهِدُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ دِينَارٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّهَا سَأَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَتُصَلِّي الْمَرْأَةُ فِي دِرْعٍ وَخِمَارٍ لَيْسَ عَلَيْهَا إِزَارٌ؟ قَالَ: إِذَا كَانَ الدِّرْعُ سَابِغًا يُغَطِّي ظُهُورَ قَدَمَيْهَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَبَكْرُ بْنُ مُضَرَ، وَحَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، وَابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، وَابْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، لَمْ يَذْكُرْ أَحَدٌ مِنْهُمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَصَرُوا بِهِ عَلَى أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا.

**ترجمه:** د ام سلمة رضي الله عنها نه روايت دې، بيشكه هغې تپوس وكړو د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه، آيا ښځه به مونځ كوې په قميص او لوپټه كښې چې لنګ ورسره نه وي؟ هغه وفرمائيل: كله چې وي قميص اوږد پټوې شاګانې د قدمونو. وئيلې دی ابوداود: روايت كړې دی ددې حديث مالك بن انس او بكر بن مضر او حفص بن غياث او اسماعيل بن جعفر، او وهب بن ابی ذئب، او ابن اسحاق د محمد بن زيد نه، او هغه د خپلې مور نه، او هغې د ام سلمة نه، يو هم نبی صلى الله عليه وسلم نه دی ذكر كړې، دوی دا حديث موقوف كړې دې په ام سلمة باندې.

## بَابُ الْمَرْأَةِ تُصَلِّي بِغَيْرِ خِمَارٍ

### باب دی چې ښځه مونځ كوې بغير د څادر نه

[٦٤١]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ الْحَارِثِ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "لَا يَقْبَلُ اللَّهُ صَلَاةَ حَائِضٍ إِلَّا بِخِمَارٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ سَعِيدٌ يَعْنِي ابْنَ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې، هغه روايت كوی د نبی صلى الله عليه وسلم نه، بيشكه هغه وئيلې دې: نه قبلوی الله تعالى مونځ د حائضې (بالغې) مګر د څادر سره. وئيلې دی ابوداود: نقل كړې دی دې لره سعيد يعنی ابن ابی عروبة د قتادة نه او هغه د حسن نه او هغه د نبی صلى الله عليه وسلم نه.

[٦٤٢]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، أَنَّ عَائِشَةَ نَزَلَتْ عَلَى صَفِيَّةَ أُمِّ طَلْحَةَ الطَّلَحَاتِ فَرَأَتْ بَنَاتٍ لَهَا، فَقَالَتْ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ وَفِي حُجْرَتِي جَارِيَةٌ فَأَلْقَى لِي حَقْوَهُ، وَقَالَ لِي: "شُقِّيهِ بِشُقَّتَيْنِ، فَأَعْطِي هَذِهِ نِصْفًا وَالْفَتَاةَ الَّتِي عِنْدَ أُمِّ سَلَمَةَ نِصْفًا، فَإِنِّي لَا أُرَاهَا إِلَّا قَدْ حَاضَتْ، أَوْ لَا أُرَاهُمَا إِلَّا قَدْ حَاضَتَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ هِشَامٌ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ.

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٨٢٩١) (ضعيف)

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ١٦٠ (٣٧٧)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٣٢ (٦٥٥)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٤٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥٠/٦، ٢١٨، ٢٥٩) (صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٥٨٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩٦/٦، ٢٣٨) (ضعيف)

**ترجمه**: د محمد بن سيرين نه روايت دې بيشكه عائشه راغله صفية ته چې مور د طلحة الطلحات ده نو ويې ليدلې لورګانې د هغې، نو هغې وويل: بيشكه رسول الله ﷺ راغې او زما په كوټه كښې يوه جينئ وه، نو راويې غورځولو ماته خپل لنګ او ويې وئيل ماته: دا دوه ځائې كړه نيم دې له وركړه او نيم هغه جنئ له وركړه چې د ام سلمة سره ده، بيشكه زه نه وينم هغه مګر دا چې بالغه ده، او يا زه نه وينم هغوى دواړو لره مګر چې بالغې دې. وئيلې دى ابوداود: همداسې روايت كړى دى هشام هم د ابن سيرين نه.

**(د زنانه بغير د سر پټولو نه د مونځ حكم)**

د ازادې زنانه مونځ بغير د خمار نه يعنى بغير د سر پټولو نه بالاتفاق فاسد دې، خو په دې كښې اختلاف دې چه كه مقدار يسير ښكاره شي نو بيا به څه حكم وى؟ نو دا مخكښې تير شو چه د امام شافعي رحمه الله په نزد به په داسې صورت كښې مونځ فاسد نه وى، پس امام ترمذي رحمه الله د حديث الباب د لاندې فرمائى: ﴿والعمل عليه عند اهل العلم ان المرأة اذا ادركت فصلت وشئ من شعرها مكشوف لا تجوز صلاتها وهو قول الشافعي﴾ او د احنافو او حنابله په نزد مقدار يسير (ما دون الربع) معاف دې.

**(د طلحة الطلحات....وجه تسميه)**

﴿ان عائشة نزلت على صفية ام طلحة الطلحات﴾ دا د صفيه صفت دې يعنى هغه صفيه كومه چه د طلحة الطلحات مور ده، د طلحة الطلحات نه مراد طلحه بن عبدالله بن خلف دې، هغې ته طلحة الطلحات ولې وئيلې شي؟ ددې لقب كيدو په وجه كښې مختلف اقوال دى، يو قول هغه دې كوم چه د اصمعى نه منقول دې چه طلحه نومى څو رجال دى كوم چه په جود او سخاوت كښې معروف دى، او د هر يو جدا لقب دې هغه دا دى، طلحه بن عبيدالله التيمى، د هغه لقب الفياض دې، طلحه بن عمر بن عبيدالله، دا په طلحه الجواد سره معروف دې، طلحه بن عبدالله بن عوف الزهرى دا په طلحة الندى سره معروف دې، طلحه بن الحسن بن علي هغه ته طلحة الخير وئيلې شي. او پنځم دا دې چه څه دلته مذكور دى هغوى ته طلحة الطلحات وئيلې شى ځكه دا په هغوى ټولو كښې زيات سخى وو، او يوه بله وجه ددې دا بيان كړې شوې ده چه د هغه په نيكونو كښې د ډيرو نومونه طلحه وو.

﴿فرأت بنات لها فقالت : الخ﴾ مضمون حديث دا دې چه يو ځل عائشه رضي الله عنها د صفيه رضي الله عنها كره لاړه (هلته ئې د هغې جينكۍ سرتور سر اوليدې) نو په دې ورته عائشې رضي الله عنها د رسول الله ﷺ د زمانې يوه قصه بيان كړه هغه دا چه يو ځل رسول الله ﷺ زما حجرې ته تشريف راوړلو هلته هغه يوه وينزه اوليده چه د هغې سر ښكاره وو نو رسول الله ﷺ د عائشې رضي الله عنها طرف ته يو لنګ ور ګزار كړو او وې فرمائيل دا دوه ټكړې كړه او يو ترې دې وينزې ته وركړه او يو هغه وينزې ته اوليږه كومه چه د ام سلمه رضي الله عنها كره اوسيږى ځكه چه زما اندازه دا ده چه دا دواړه د بلوغ حد ته رسيدلې دى لهذا اوس هغوى لره سر پټول پكار دى.

**صلاة الامة مع كشف الراس**

ځان پوهه كړه چه مسئله دا ده، د وينزې ستر تور سر مونځ كول جائز دى د هغې په حق كښې

د سر پټول واجب نه دی، په مغنی کښې ليکلې دی ﴿ لا نعلم احدا خالف في هذا الا الحسن ﴾ د جمهورو دليل هغوی دا ليکلې دې چه يو ځل عمر ﷛ يوه وينزه لوپټه په سره اوليده، نو وې فرمائيل ﴿ اکشفي راسک ولا تشبهي بالحرائر ﴾ او دلته چه رسول الله ﷺ د ستر د پټولو اوفرمائيل نو کيدې شی چه هغه جينۍ حره وی يا د احتياط او تعلم ادب دپاره ئې داسې کړې وی.

د وينزې او ازادې زنانه د عورت حد سره د اختلاف نه مخکښې په تفصيل سره تير شو.

# بَاب مَا جَاءَ فِي السَّدْلِ فِي الصَّلَاةِ

## باب دې په بيان د سدل کې په مانځه کې

## د سدل په تفسير کښې اقوال

دلته دوه څيزونه دی، د سدل تفسير او بل د هغې حکم، ددې ډير تفسيرونه کړې شوې دی، ارسال الثوب وجره خيلاء، يعنی قميص او ازار لره زيات اوږدول چه هغې ته اسبال هم وئيلې شی چه د هغې باب وړاندې تير شوې دې، او يو تفسير دا کړې شوې دې کوم چه په اشتمال اليهود کښې تير شوې دې چه څادر داسې اچول چه دواړه لاسونه هم پکښې بند شی، او معروف تفسير ددې دا دې چه د څادر يا رومال مينځ په سر يا په اوږو باندې واچولې شی او بيا هغه هم داسې پريږدی بغير د ضم طرفين نه (يعنی هغه نه تاوهی)[1] علامه سيوطی ﷫ هم دې تفسير ته راجح وئيلې دې، صاحب هدايه، صاحب مغنی او امام بيهقی هم دا معنی اختيار کړې ده.

## (د سدل حکم)

دا د جمهورو په نزد مکروه دې، د امام ابوحنيفه او امام احمد په نزد خو صرف په مونځ کښې منع دې کما في البذل عن الخطابي والبدائع وکذا في الشامي، او د امام شافعی ﷫ په نزد مطلقا صلاة او خارج از صلاة، او د امام مالک ﷫ په نزد په دې کښې مطلقا کراهت نشته لکه چه ابن العربی دا نقل کړې دې، هم دا مذهب دې د عطاء او حسن او ابن سيرين وغيره، ابن رسلان فرمائی چه د امام احمد په نزد کراهت هغه وخت دې چه کله د مونځ کونکی په بدن باندې صرف يوه کپړه وی، او که يو سړې په قميص باندې سدل اوکړی ﴿ فلا باس به ﴾ او نور حضرات دا وائی چه سدل که په قميص وغيره باندې دې نو بيا خو کراهت د تشبه باليهود د وجې نه دې او که بغير د قميص نه وی نو لاحتمال کشف العورة.

[1]) مظاهر حق کښې ليکلې دی چه سدل دا دی چه کپړه په سر يا په اوږو باندې واچوی او دواړه طرفين د هغې زوړند وی يعنی د خان نه ئې راتاؤ نه کړی، پس دا منع دې مطلق ځکه چه دا د تکبر شان دې او په مونځ کښې ډير بد دې او عرب به د پټکی په پلو سره ترګو چه په هغې سره به ئې خوله پټه شوه، ددې نه ئې هم منع فرمائيلې ده ځکه چه په دې سره قرآت په ښه طريقې سره نه شی ادا کيدې او سجده نه پوره کيږی، او څوک چه اسويلې اوکړی يا اګرمې اوکړی او د هغه د خولې نه بدبوئی راځی نو هغه لره په مانځه کښې د خولې پټول مستحب دی په لاس سره)

[٦٤٣]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ ذَكْوَانَ، عَنْ سُلَيْمَانَ الْأَحْوَلِ، عَنْ عَطَاءٍ، قَالَ إِبْرَاهِيمُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ السَّدْلِ فِي الصَّلَاةِ، وَأَنْ يُغَطِّيَ الرَّجُلُ فَاهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ عِسْلٌ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ السَّدْلِ فِي الصَّلَاةِ.

**ترجمه:** د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دي بيشکه رسول الله ﷺ منع کړې ده د سدل نه په مانځه کښې (سدل دېته وايي چې جامه په سر واچوي او طرفونه ئې لاندې اويزان وي) او د دېنه چې سړی خپله خوله پټه کړي. وئيلی دی ابوداود: نقل کړی دی دې حديث لره عِسْلٌ د عطاء نه او هغه د ابو هريرة نه، بيشکه نبي ﷺ منع کړې ده د سدل نه په مانځه کښې.

## د سدل په حکم کښې اختلاف

**قوله:**﴿ نهى عن السدل فى الصلاة وان يغطى الرجل فاه ﴾ د مونځ په حالت کښې د خلې پټول مکروه دی، يعنې ددې حديث په بناء باندې او ځکه چه هغه د قرأت او اذکار نه مانع دې، هم دغه شان په دې کښې تشبه بالمجوس دې ﴿ فانهم يتلمثون فى عبادتهم النار ﴾ يهود د اتش پرستئ په وخت په خپله خوله باندې کپړه تړي، لهذا د يخنئ په زمانه کښې دې په کمبل يا څادر د اچولو په وخت باندې خپله خوله نه پټوئ، هم دغه شان دې د سر په رومال يا پټکی سره هم نه کوی، ددې خيال ساتل پکار دی.

[٦٤٤]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى بْنِ الطَّبَّاعِ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: "أَكْثَرُ مَا رَأَيْتُ عَطَاءً يُصَلِّي سَادِلًا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا يُضَعِّفُ ذَلِكَ الْحَدِيثَ.

**ترجمه:** د ابن جريج نه روايت دې هغه وئيلی دي: اکثر چې ما عطاء ليدلی دی نو مونځ به ئې کولو په حالت د سدل کښې. وئيلی دی ابوداود: او دا ضعيف کوی هغه حديث.

**تشريح: قوله:**﴿ عن ابن جريج قال : اکثر ما رايت عطاء يصلى سادلا ﴾ دا مخکښې تير شو چه عطاء د هغه علماء کرامو نه دې چه د هغه په نزد سدل مکروه نه دې. ﴿ قال ابوداود : رواه عسل عن عطاء الخ ﴾ په حديث سابق يعنې د باب د اول حديث دا دويم طريق دې، مصنف هم دا بيانول غواړي چه ددې حديث يو سند دا هم دې خو اول سند ددې دويم نه غوره دې ځکه چه عسل ضعيف راوی دې

## اشکال او جواب

دلته دا اشکال دې چه عطاء د حديث الباب راوی دې چه په دې کښې د سدل فى الصلاة ممانعت دې نو هغه ددې حديث خلاف ولې کوی، نو ددې جواب دا کيدې شی چه د هغوی په نزد د سدل کراهت د ثوب واحد په صورت کښې وی، او که سدل په قميص يا ازار باندې وی نو بيا به کراهت نه وی. لکه چه د امام احمد رحمه الله په نزد دی، لهذا کيدې شی چه هغه

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤١٧٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ١٦١ (٣٧٨)، مسند احمد (٢/٢٩٥، ٣٤٥)، سنن الدارمي/الصلاة ١٠٤ (١٤١٩) (حسن)

(): تفرد به أبو داود (صحيح)

سدل په قميص يا ازار باندې کوی، او امام بيهقی ددې توجيه دا کړې ده ﴿ وكانه نسى الحديث او حمله على ان ذلک انما لا يجوز للخيلاء وكان لا يفعله خيلاء ﴾ يعنی يا خو د هغه نه دا حديث هيرشو او يا دهغه په نزد دحديث محمل هغه سدل دې کوم چه د تکبر د وجې نه وی.

## بَابُ الصَّلَاةِ فِي شُعُرِ النِّسَاءِ

### باب دې په بيان د مونځ کې په جامو د ښځو کې

[٦٤٥]()حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا الْأَشْعَثُ، عَنْ مُحَمَّدٍ يَعْنِي ابْنَ سِيرِينَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُصَلِّي فِي شُعُرِنَا أَوْ لُحُفِنَا"، قَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ: شَكَّ أَبِي.

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې هغې ويلې دي: وو رسول الله ﷺ چې مونځ ئې نه کولو زمونږ په جامو کښې او نه زمونږ په لحفو کښې. وئيلې دی عبيد الله شک کړی دی زما پلار.

## بَابُ الرَّجُلِ يُصَلِّي عَاقِصًا شَعْرَهُ

### باب دې په بيان د سړي کې چې مونځ کوې او ويخته يې غوټه کړې وي

د عقص معنی دا ده چه انسان خپل ويښته په ځائې د ارسال شاته هغه اوتړی څنګه چه ئې زنانه تړی.

### د کراهت عقص علت مع اختلاف علماء

دا د جمهور علماء ثلاثه په نزد مطلقا مکروه دې او د امام مالک په نزد کراهت په هغه صورت کښې دې چه کوم عقص د مونځ نه مخکښې د مونځ په نيت سره اوکړی، او که د مخکښې نه وی نو بيا خو هيڅ باک نشته، خو دا کراهت فی حق الرجال دې د زنانو په حق کښې نشته ځکه چه د هغوی ويښته واجب الستر دی، او د سړو په حق کښې کراهت په دې وجه دې چه په دې صورت کښې ويښته د سجدې نه محروم کول دی، که د انسان د سجدې سره د هغه ويښته هم په زمکه واقع شی نو څه ښه ده! په مصنف ابن ابی شيبه کښې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اثر نقل دې چه کله انسان سجده کوی نو د هغه ويښته هم سجده کوی، او د هر ويښته په بدله کښې ورته اجر ملاويږی. (منهل) هم دغه شان په کتاب الطهارة کښې حديث تير شوې دې ﴿ كنا لا نتوضاء من موطئ ولا نكف شعرا ولا ثوبا ﴾ او وړاندې به هم يو حديث راشی ﴿ امرت ان اسجد على سبعة اراب لا اكف شعرا ولا ثوبا ﴾ عند الجمهور په عقص کښې صرف کراهت دې او د حسن بصری نه په دې کښې د مونځ اعاده منقول ده.

[٦٤٦]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، حَدَّثَنِي عِمْرَانُ بْنُ مُوسَى، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ رَأَى أَبَا رَافِعٍ مَوْلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ عَلَيْهِمَا السَّلَام وَهُوَ يُصَلِّي قَائِمًا وَقَدْ غَرَزَ ضَفْرَهُ فِي قَفَاهُ، فَحَلَّهَا أَبُو رَافِعٍ، فَالْتَفَتَ حَسَنٌ إِلَيْهِ مُغْضَبًا، فَقَالَ أَبُو رَافِعٍ: "أَقْبِلْ

[1]: انظر حديث رقم: ٣٦٧، (تحفة الأشراف: ١٦٢٢١، ١٧٥٨٩، ١٩٢٩٦) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ١٧٠ (٣٨٤)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٣٠)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٦٧ (١٠٤٢)، مسند احمد (٨/٦، ٣٩١)، سنن الدارمي/الصلاة ١٠٥ (١٤٢٠) (حسن)

عَلَى صَلَاتِكَ وَلَا تَغْضَبْ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ذَلِكَ كِفْلُ الشَّيْطَانِ"، يَعْنِي: مَقْعَدَ الشَّيْطَانِ يَعْنِي: مَغْرَزَ ضَفْرِهِ.

**ترجمه:** د سعيد بن ابى سعيد المقبرى نه روايت دې هغه حديث بيانوى د خپل پلار نه، بيشکه هغه ليدلى وو ابو رافع چې مولى د نبى ﷺ دى، تېر شو په حسن بن على رضي الله عنهما باندې او هغه مونځ کولو چې ولاړ وو، او په تحقيق سره هغه ځنبه کړې وه کمځئ په خپل څټ کښې نو ابو رافع هغه کهلاو کړه، نو حسن ورته په غصه وکتل. نو وويل ابو رافع: توجه دې مانځه ته کړه او مه غصه کيږه بيشکه ما اوريدلى دى د رسول الله ﷺ نه هغه به وئيل: دغه د شيطان حصه ده. يعنى ځائې د کيناستو د شيطان دى. مطلب ئې ځائې د ښخولو د کمځئ دى.

**تشريح: قوله:** ﴿ وقد غرز ضفره ﴾ "ضفر" په مضمتين سره د ويښتو کمسئ، د ضفيرة جمع، يا دا ضفر بالفتح مصدر دې د مضفور په معنى کښې ګوند لګيدلى شوى ويښته، يعنى د خپلو ويښتو کمسئ ئې ګوند کړې وې په خپل ستې باندې.

## شرح حديث

**قوله:** ﴿ يقول ذلک کفل الشيطان ﴾ د ﴿ ذلک ﴾ اشاره د ﴿ غرز الشعر ﴾ طرف ته ده، يعنى دا د ويښتو جمع کول د سر نه شاته د شيطان حصه ده، يعنى د شيطان د کيناستلو ځائې ﴿ مقعد الشيطان ﴾ د کفل تفسير دې او وړاندې ﴿ مغرز ضفره ﴾ دا د ذلک د اسم اشاره تفسير دې، د مغرز د ښخولو ځائې يعنى هغه ځائې کوم چه د شيطان د کيناستلو دې دا جوړه د هغه کرسئ ده.

[٦٤٧]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ، أَنَّ بُكَيْرًا، حَدَّثَهُ أَنَّ كُرَيْبًا مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ حَدَّثَهُ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ رَأَى عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الْحَارِثِ يُصَلِّي وَرَأْسُهُ مَعْقُوصٌ مِنْ وَرَائِهِ، فَقَامَ وَرَاءَهُ فَجَعَلَ يَحُلُّهُ وَأَقَرَّ لَهُ الْآخَرُ، فَلَمَّا انْصَرَفَ أَقْبَلَ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، فَقَالَ: مَا لَكَ وَرَأْسِي؟ قَالَ: إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّمَا مَثَلُ هَذَا مَثَلُ الَّذِي يُصَلِّي وَهُوَ مَكْتُوفٌ".

**ترجمه:** بيشکه عبد الله بن عباس وليدلو عبد الله بن الحارث چې مونځ ئې کولو او سريې ترلى وو د شا ارخ نه، نو عبدالله بن عباس ودريدو وروسته د هغه او شروع شو چې کولاوولو يې کمسئ دهغه، او هغه بل (عبدالله بن حارث) ورته چپ ولاړ وو، هرکله چې فارغ شو راغې ابن عباس ته، هغه ووېل: څه دى تالره او زما سر لره، هغه ورته ووېل: ما اوريدلى دى د رسول الله ﷺ نه چې هغه به وئيل: بيشکه ددې مثال داسې دى لکه د چا لاسونه چې وروستو سره ترلى شوى وې.

**تشريح: قوله:** ﴿ انما مثل هذا مثل الذى يصلى وهو مكتوف ﴾ مكتوف هغه سړې چه د هغه د واړه لاسونه شاته ترلې شوې وى کوم سړې چه په دې حالت کښې مونځ کوى نو ظاهره ده چه د

[1] ): صحيح مسلم/الصلاة ٤٤ (٤٩٢)، سنن النسائي/التطبيق ٥٧ (١١١٥)، (تحفة الأشراف: ٦٣٣٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠٤/١)، سنن الدارمي/الصلاة ١٠٥ (١٤٢١) (صحيح)

هغه لاسونه سجده اونکړې شي، هم دغه شان چه کوم سړې د ويښتو جوړه تړلو سره مونځ کوی د هغه ويښته به هم سجده اونکړې شی، تشبيه په دې لحاظ سره ده.

## بَابُ الصَّلَاةِ فِي النَّعْلِ

### باب دې په بيان د مانځه کې په پيزار کې

[٦٤٨]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبَّادِ بْنِ جَعْفَرٍ، عَنِ ابْنِ سُفْيَانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ السَّائِبِ، قَالَ: "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي يَوْمَ الْفَتْحِ وَوَضَعَ نَعْلَيْهِ عَنْ يَسَارِهِ".

**ترجمه:** د عبد الله بن السائب نه روايت دې، هغه وئيلى دی، ما ليدلى وو نبی ﷺ چې مونځ ئې کولو په ورځ د فتح مکه او کيخودلی ئې وو خپل پيزار خپل چپ طرف ته.

**د صلاة فى النعل په باره کښې روايات او په هغې کښې د فقهاء کرامو رائې**

په دې باب کښې مصنف روايات قوليه او فعليه دواړه قسم ذکر کړی دی، پس د باب په اخری حديث کښې ﴿ يصلى حافيا ومتنعلا ﴾ او د باب په يو حديث کښې دی ﴿ خالفوا اليهود فانهم لا يصلون فى نعالهم ولا خفافهم ﴾ اکثر علماء کرامو دا امر په رخصت اباحت باندې محمول کړې دې او ددې تائيد د مرسل عبد الرحمن بن ابی ليلی نه کيږی کوم چه په مصنف ابن ابی شيبه کښې دی چه د هغې الفاظ دا دی ﴿ قال من شاء ان يصلى فى نعليه فليصل فيهما ومن شاء ان يخلع فليخلع ﴾ د دې نه معلومه شوه چه صلاة فى النعل کښې امر د اباحت دپاره دې، امام نووی او قاضی عياض وغيره حضراتو دا په اباحت باندې محمول کړې دې، خو کيدې شی چه کوم سړې د مخالفت اهل کتاب په نيت سره د حديث په وجه باندې په نعلين کښې مونځ اوکړی نو په دې نيت به ورته فضيلت ملاؤ شی پس په در مختار کښې دی ﴿وصلاته فيهما افضل ﴾... علامه شامی ليکی : ای فى النعل والخف الطاهرين افضل مخالفة لليهود. وړاندې بيا هغه ددې نور تفصيل ليکلې دې او يو قول د صلاة فى النعل په باره کښې د سوء ادب هم ليکلې دې، او حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې ليکلې دی چه د صلاة فى النعل امر په حديث کښې د مخالفت يهود په وجه باندې دې او مونږ په هندوستان کښې نصاری وينو چه په پيزار کښې مونځ کوی (د بذل د تاليف په وخت په هند کښې د نصاری حکومت وو) لهذا د مخالفت تقاضه دا ده چه دلته دې پيزار ويستلو سره مونځ اوکړې شی، په منهل کښې ئې د ﴿ خالفوا اليهود ﴾ د لاندې ليکلې دی چه يهودو به صلاة فى النعال د تعظيم صلاة منافی ګڼړلو، دويم دا چه هغوی به داسې د موسی عليه السلام په اتباع کښې کول حيث قيل له ﴿ فاخلع نعليک انک بالواد المقدس طوی ﴾ لهذا رسول الله ﷺ خپل امت د تشبه باليهود نه منع کړو.

---

[1] ): سنن النسائي/الافتتاح ٧٦ (١٠٠٨)، والقبلة ٢٥ (٧٧٧)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٢٠٥ (١٤٣١)، (تحفة الأشراف: ٥٣١٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١١/٣) (صحيح)

[۶۴۹](¹)حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، وَأَبُو عَاصِمٍ، قَالَا: أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ عَبَّادِ بْنِ جَعْفَرٍ، يَقُولُ: أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ سُفْيَانَ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُسَيَّبِ الْعَابِدِيُّ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ السَّائِبِ، قَالَ: "صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصُّبْحَ بِمَكَّةَ فَاسْتَفْتَحَ سُورَةَ الْمُؤْمِنِينَ، حَتَّى إِذَا جَاءَ ذِكْرُ مُوسَى، وَهَارُونَ، أَوْ ذِكْرُ مُوسَى، وَعِيسَى، ابْنُ عَبَّادٍ يَشُكُّ أَوِ اخْتَلَفُوا، أَخَذَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَعْلَةٌ فَحَذَفَ فَرَكَعَ"، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ السَّائِبِ حَاضِرٌ لِذَلِكَ.

**ترجمه:** د عبد الله بن السائب نه روايت دي، هغه وئيلى دي: مونږ وکړو مونځ ته رسول الله ﷺ په مکه کښې نو شروع ئې کړو سورة المؤمنون تردې چې ذکر د موسى او هارون ته ورسيدو، او يا ذکر د موسى، او عيسى ته يعنى محمد بن عباد شک کوى او يا اختلاف کوي (دعباد شيوخ د نبى عليه‌السلام نه په روايت کولو کښې)، نو ونيولو ټوخي رسول الله ﷺ لره، نو قرأت ئې بس کړو نو رکوع ئې وکړه. او عبد الله بن السائب حاضر وو د پته.

## مطابقة الحديث للترجمة

**قوله:**﴿ حدثنا الحسن بن علي الخ ﴾ په دې حديث کښې د صلاة في النعل نفيا او اثباتا هيڅ ذکر نشته لهذا د حديث د ترجمة الباب سره هيڅ مطابقت رانغلو، جواب دا دې چه دا حديث او د باب اولني حديث دواړه يو دى، راوى اختصار کړې دې، لهذا په اول حديث کښې ذکر راتلل کافى دي.

**قوله:**﴿ ابن عباد يشك او اختلفوا ﴾ ابن جريج فرمائى چه د روايت په الفاظو کښې شک يا خو زما استاذ محمد بن عباد ته شوې دې، د ابن عباد چه کوم ګڼړ شمير استاذان ذکر دى دا اختلاف د هغوى د طرف نه دې، بعض ﴿ جاء ذكر موسى وهارون ﴾ وئيلي دي او بعض ﴿ ذكر موسى وعيسى ﴾.

[۶۵۰](²)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي نَعَامَةَ السَّعْدِيِّ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "بَيْنَمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي بِأَصْحَابِهِ إِذْ خَلَعَ نَعْلَيْهِ فَوَضَعَهُمَا عَنْ يَسَارِهِ، فَلَمَّا رَأَى ذَلِكَ الْقَوْمُ أَلْقَوْا نِعَالَهُمْ، فَلَمَّا قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاتَهُ، قَالَ: مَا حَمَلَكُمْ عَلَى إِلْقَاءِ نِعَالِكُمْ؟ قَالُوا: رَأَيْنَاكَ أَلْقَيْتَ نَعْلَيْكَ فَأَلْقَيْنَا نِعَالَنَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ أَتَانِي فَأَخْبَرَنِي أَنَّ فِيهِمَا قَذَرًا، أَوْ قَالَ: أَذًى، وَقَالَ: إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمْ إِلَى الْمَسْجِدِ فَلْيَنْظُرْ، فَإِنْ رَأَى فِي نَعْلَيْهِ قَذَرًا أَوْ أَذًى فَلْيَمْسَحْهُ وَلْيُصَلِّ فِيهِمَا".

**ترجمه:** د ابو سعيد الخدرى رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلى دى، رسول الله ﷺ مونځ کولو خپلو صحابو ته، ويستل هغه دواړه پيزار خپل کيخودې هغه خپل چپ طرف ته، کله چې دا کار قوم وليدلو نو خپل پيزارئې ويستلو، هرکله چې رسول الله ﷺ مونځ پوره کړو، هغه وفرمائيل: تاسو باندې څه شى باعث شو په ويستلو د پيزار ستاسو. هغوى وويل: مونږ ته

¹): صحيح البخاري/الأذان ۱۰۶ (۷۷۴تعليقا)، صحيح مسلم/الصلاة ۳۵ (۴۵۵)، سنن النسائي/الافتتاح ۷۶ (۱۰۰۸)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۵ (۸۲۰)، (تحفة الأشراف: ۵۳۱۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۱۱/۳) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۴۳۶۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۹۲،۲۰/۳)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۰۳ (۱۴۱۸)، (صحيح)

ولیدی چې تا ویستل پیزار خپل، نو مونږ خپل پیزار ویستل، نو وویل رسول الله ﷺ بیشکه جبریل علیه السلام راغې ماته نو زه ئې خبر کړم چې په دې کښې گندگي ده ـ او یایې وویل چې دې کښې اذی ده ـ هغه وفرمائیل: کله چې راشي یو کس ستاسو نه مسجد ته نو ودې گوري: که چرې ووینې هغه په خپل پیزار کښې گندگي نو هغه دې اومږي او مونځ دې وکړي په هغې دواړو کښې.

**تشریح**: **قوله**:﴿ ان جبریل علیه السلام أتانی فاخبرنی ان فیهما قذرا ﴾ د ﴿ قذرا ﴾ په تفسیر کښې دوه احتماله دی، یا خو ددې نه نجاست مراد دې یا مستقذر څیز یعنی د کوم نه چه طبیعت کرکه کوی لکه لاړې او بلغم وغیره.

## الكلام على الحديث من حيث الفقه

د مالکیانو د مسلک په رڼړا کښې خو هیڅ اشکال نشته چه د هغوی په نزد طهارة عن النجاسة الحسیة شرط صلاة نه دې[1] او هم دا قول قدیم دې د امام شافعی رحمه الله او د هغوی قول جدید او د جمهور علماء سلفا وخلفا په نزد د نجاست نه طهارت د مانځه د صحت دپاره شرط دې، ابن رسلان فرمائی چه د جمهورو د طرف نه ددې دوه جوابونه دی، یو دا چه د قذر نه مراد غیر نجاست دې یعنی شئ مستقذر او بل جواب دا چه نجاست قلیله کوم چه معفو عنه دې، هغه مراد دې، د کتاب الطهارة په اخیر کښې هم دا مسئله تیره شوې ده او صاحب منهل دا لیکلي دی چه د حنابله قول اشهر دا دې چه که مونځ کونکی د مونځ ترمینځه په خپله کپړه باندې د نجاست علم راشی بیا هغه ددې د معلومیدو نه پس فورا په عمل قلیل سره زائل کړی نو مونځ به صحیح شي. والا بطلت

[٦٥١] (٢) حَدَّثَنَا مُوسَى يَعْنِي ابْنَ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، حَدَّثَنِي بَكْرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا، قَالَ: فِيهِمَا خَبَثٌ، قَالَ: فِي الْمَوْضِعَيْنِ خَبَثًا.

**ترجمه**: حدیث بیان کړې دې قتادة، هغه وایې ماته حدیث بیان کړې دې بکر بن عبد الله د نبی ﷺ نه په دې سره، هغه وایی: په دې دواړو کښې خَبَثٌ دې. ویې وئیل په دواړو ځایونو کښې: خَبَثًا.

[٦٥٢] (٣) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ هِلَالِ بْنِ مَيْمُونٍ الرَّمْلِيِّ، عَنْ يَعْلَى بْنِ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خَالِفُوا الْيَهُودَ فَإِنَّهُمْ لَا يُصَلُّونَ فِي نِعَالِهِمْ وَلَا خِفَافِهِمْ".

**ترجمه**: یعلی بن شداد بن اوس د خپل پلار نه روایت کوي، هغه وئیلی دی، وئیلی دی رسول الله ﷺ: مخالفت وکړئ د یهودیانو بیشک هغوی مونځ نه کوی په خپلو پیزارونو کښې او نه په موزو کښې.

---

[1]) وفي رحمة الامة، والاصح عند المالكية ان صلى عالمًا بها اي بالنجاسة لا تصح وان جاهلًا او ناسيًا صحت ، والرواية الاخري عندهم لصحة مطلقًا واخري عدم الصحة مطلقًا مثل الجمهور.

[2]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٣٦٢) (صحيح)

[3]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٨٣٠) (صحيح)

[۶۵۳]()حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ حُسَيْنٍ الْمُعَلِّمِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي حَافِيًا وَمُنْتَعِلًا".

**ترجمه**: عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده روايت كوى هغه وئيلى دي: ما وليدلو رسول الله ﷺ چي مونځ ئې كولو سره د پيزار نه او بغير د پيزار نه.

## بَابُ الْمُصَلِّي إِذَا خَلَعَ نَعْلَيْهِ أَيْنَ يَضَعُهُمَا

**باب دى مونځ كونكى چي كله پيزار اوكاږي نوكوم ځاى كي به يې ږدي**

[۶۵۴]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا صَالِحُ بْنُ رُسْتُمَ أَبُو عَامِرٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فَلَا يَضَعْ نَعْلَيْهِ عَنْ يَمِينِهِ وَلَا عَنْ يَسَارِهِ فَتَكُونَ عَنْ يَمِينِ غَيْرِهِ، إِلَّا أَنْ لَا يَكُونَ عَنْ يَسَارِهِ أَحَدٌ، وَلْيَضَعْهُمَا بَيْنَ رِجْلَيْهِ".

**ترجمه**: د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دي بيشكه رسول الله ﷺ ويلى دي: كله چي مونځ كوى يو كس ستاسو نه نو نه دي ږدي خپل پيزار ښي طرف ته او نه چپ طرف ته نو شي به ښي طرف دبل چاته، مگر داچي چپ طرف ته ئې بل څوك نه وي، ږدي دي په مابين د خپو كښې.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ وليضعهما بين رجليه ﴾ د ﴿ بين الرجلين ﴾ نه مراد يا خو هغه خاص فرجه ده كومه چه د قدمين ترمينځه وى يا د هغه نه وړاندې كوندو ته مخامخ (كذا فى البذل) او په منهل كښې دى ﴿ والمراد يضعهما امام القدمين فيكونان بين الساقين حال الجلوس والسجود، ويحتمل ان المراد ان يجعلهما تحت صدره وقبل مكان سجوده، د دې نه په وړاندې حديث كښې تير شوې دى چه ښى طرف ته دي نه ږدى ځكه چه جهت يمين محترم او قابل تعظيم دې او دا ئې نه دى فرمائيلي چه شاته دې اوساتى ځكه چه د وړاندې صف والا خلف، د شاته صف والا قدام به اوشى كه شاته څوك مونځ كوى، يا به د احتمال سرقه د ويرې نه خشوع فوت شى. (كذا فى البذل عن القارى)

### وضع نعلين قدام المصلي

على هذا القياس مخامخ طرف ته د ږدلو هم په حديث كښې ذكر نشته او دلته شارحينو هم ددې سره څه تعرض نه دې كړې، البته په بذل المجهود كښې د كتاب اللباس د يو حديث د لاندې ليكلي دى.

﴿ من السنة اذا جلس الرجل ان يخلع نعليه ويضعهما بجنبه "فان جهة اليمين والقبلة يتنزهان عن النعل لما يطرا عليه غالبا من النجاسة ﴾

[۶۵۵]()حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، وَشُعَيْبُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْوَلِيدِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فَخَلَعَ نَعْلَيْهِ فَلَا يُؤْذِ بِهِمَا أَحَدًا، لِيَجْعَلْهُمَا بَيْنَ رِجْلَيْهِ، أَوْ لِيُصَلِّ فِيهِمَا".

(۱): سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ۶۶(۱۰۳۸)، (تحفة الأشراف: ۸۶۸۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۷۴) (حسن صحيح)
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۴۸۵۵) (حسن صحيح)
(۳): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۴۳۳۱) (صحيح)

**ترجمه**: ابو هريره ﷛ روايت كوي د رسول الله ﷺ نه هغه فرمائيلي دي: كله چې مونځ كوي يو كس ستاسو نه او وېستل خپل پيزار نو ضرر دې نه وركوي په هغې باندې ګاونډې ته، ږدې دې مابين د دواړو خپو كښې، او يا دې پكې مونځ وكړي.

## باب الصَّلاَةِ عَلَى الْخُمْرَةِ

### باب دې په بيان د مانځه كې په مصلی باندې

[٦٥٦]()حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنِ الشَّيْبَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَدَّادٍ، حَدَّثَتْنِي مَيْمُونَةُ بِنْتُ الْحَارِثِ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي وَأَنَا حِذَاءَهُ وَأَنَا حَائِضٌ وَرُبَّمَا أَصَابَنِي ثَوْبُهُ إِذَا سَجَدَ وَكَانَ يُصَلِّي عَلَى الْخُمْرَةِ".

**ترجمه**: حديث بيان كړې دې ميمونې هغې ويلي دي: وو رسول الله ﷺ چې مونځ به ئې كولو او زه به برابر د هغه وم او زه به حائضه وم، او كله به ماته د هغه جامه هم راورسيده، او وو چې مونځ ئې كولو په مصلی باندې.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ خمرة ﴾ هغه وړې بورئ ته وئيلې شي چه په هغې باندې انسان لاس كيخودلو سره صرف سجده اوكړې شي او حصير ددې نه لږ لوئې وي چه په هغې باندې يو سړې مونځ اوكړې شي، چه د هغې باب به وړاندې راشي، د رسول الله ﷺ نه په خمره او حصير باندې مونځ كول ثابت دی او هم دغه شان د څرمنې په مصلی باندې هم چه د هغې ذكر په حديث الباب كښې هم شته، د جمهور علماء كرامو هم دا مذهب دې.

### بغير د حائل نه په زمكه باندې سجده او په هغې كښې اختلاف

په دې كښې شک نشته بغير د واسطې نه په زمكه باندې سجده كول بغير د حائل نه افضل دی، پس منقول دی چه د عمر بن عبد العزيز ﵀ دپاره به خاوره راوړلې شوه هغه به هغه په درئ دپاسه كيخودله او په هغې باندې به ئې سجده كوله، علماء كرامو ليكلي دی چه هغه به په ظاهره كښې د ډيرې خشوع او تواضع د وجې نه كول نه دا چه هغه به دا ضروری ګڼړل (بلكه زمونږ فقهاء كرام خو فرمائي چه ما ينبت من الارض هم د زمكې په حكم كښې دې) خو د جمهور علماء كرامو په نزد بالواسطه په زمكه باندې سجده كولو كښې هيڅ كراهت نشته برابره خبره ده كه هغه څيز د نباتات د قسم نه نۀ وي په هغې باندې سجده كول مكروه دی پس د مالكيانو نه هم داسې منقول دی ([2]) لكه چه په مدونه كښې دی، او د بعض علماء كرامو رائې دا ده لكه سعيد بن المسيب او ابن سيرين او عروه بن الزبير چه د زمكې نه په

[1] ): صحيح البخاري/الحيض ٣٠ (٣٣٣)، والصلاة ١٩ (٣٧٩)، ٢١ (٣٨١)، صحيح مسلم/المساجد ٤٨ (٥١٣)، سنن النسائي/المساجد ٤٤ (٧٣٩)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٤٠ (٩٥٨)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٦٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٣٠، ٣٣٥، ٣٣٦)، سنن الدارمي/الصلاة ١٠١ (١٤١٣) (صحيح)

[2] ) وفي الشرح الكبير ص ٢٥٢: كره سجود علي ثوب او بساط لم يعد لفرش مسجد لا علي حصير لا رفاهية فيها وترك السجود علي الحصير احسن ١٢٥ منه، معلومه شوه چه په مسجد كښې مصلی خورولو سره مونځ كول د مالكيانو په نزد مكروه دی او په معمولی شان بوريه باندې مونځ كولو كښې هيڅ باک نشته، ډير قيمتي پوزكې (درئ) دې نه وي. منه ١٢)

علاوه باندې سجده کول مطلقا مکروه دي او شيعه ګان خو دا وائي چه په غير د زمکې نه سجده جائز نه ده.

## بَابُ الصَّلَاةِ عَلَى الْحَصِيرِ

### باب دې په بيان د مونځ کې په پوزړ باندې

د خمره او حصير فرق په اول باب کښې تير شوې دې دا دواړه د جنس الارض او د نباتات د قبيل نه دی لهذا په دوه مستقل ترجمه قائم کولو کښې هيڅ خاص فائده په نظر نه راځی.

### د ترجمة الباب غرض

حضرت شيخ يوه خبره ليکلې ده هغه دا چه کيدې شی په دې ترجمې سره غرض د مصنف ابن ابی شيبه روايت طرف ته اشاره وی او په هغې باندې رد وی، پس په هغې کښې دی چه د عائشې رضی الله عنها نه تپوس اوکړې شو چه ايا رسول الله ﷺ به پوزکی باندې مونځ کولو او حال دا چه د الله پاک ارشاد دې ﴿ وجعلنا جهنم للكافرين حصيرا ﴾ نو په دې باندې هغه اوفرمائيل ﴿ لا ما كان يصلى عليها ﴾ د دې دواړو ترجمو د غرض په سلسله کښې دا هم وئيلې کيدې شی چه په بعض رواياتو کښې په خاورو باندې د سجدې کولو حکم راغلې دې پس د مسند احمد په روايت کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ترب وجهک يا رباح﴾ چه په خاوره باندې سجده کوه. چه ددې نه په ظاهره معلوميږی چه په غير د تراب نه سجده جائز نه ده، خو حافظ عراقی فرمائی چه په دې سره د هغه غرض سجود على التراب نه دې، ﴿ بل الغرض منه تمكين الجبهة من الارض ﴾ يعنی خپل تندې په زمکه باندې ښه طريقې سره ږده، ممکنه ده چه هغه افلح اوليدو چه هغه خپل تندی لره په ښه طريقې سره نه ږدی په دې وجه ئې هغه ته داسې اوفرمائيل.

### د جامع ترمذی ترجمة الباب

امام ترمذی رحمه الله په دې سلسله کښې يوه دريمه ترجمه هم قائم فرمائيلې ده، باب ما جاء فى الصلاة البسط... بسط د بساط جمع ده کوم چه د څادر او قالين په معنی کښې دې کوم چه د جنس الارض يعنی از قسم نباتات نه دې په خلاف د خمره او حصير، په دې ترجمه کښې البته خاص فائده دا ده چه د تيرو مذاهبو د کتلو نه دا معلوميږی چه بعض علماء کرامو د جنس الارض او د غير جنس الارض فرق کړې دې او د شيعه ګانو په نزد خو ارض يا د جنس الارض نه علاوه په يو څيز باندې هم سجده جائز نه ده.

[٦٥٧](١)حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَنَسِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي رَجُلٌ ضَخْمٌ وَكَانَ ضَخْمًا لَا أَسْتَطِيعُ أَنْ أُصَلِّيَ مَعَكَ، وَصَنَعَ لَهُ طَعَامًا وَدَعَاهُ إِلَى بَيْتِهِ فَصَلِّ، حَتَّى أَرَاكَ كَيْفَ تُصَلِّي فَأَقْتَدِيَ بِكَ، فَنَضَحُوا لَهُ طَرَفَ حَصِيرٍ كَانَ لَهُمْ فَقَامَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ"، قَالَ فُلَانُ بْنُ الْجَارُودِ، لِأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ: أَكَانَ يُصَلِّي الضُّحَى؟ قَالَ: لَمْ أَرَهُ صَلَّى إِلَّا يَوْمَئِذٍ.

(١): صحيح البخاري/الأذان ٤١ (٦٧٠)، (تحفة الأشراف: ٢٣٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/١٣٠، ١٣١، ١٨٤، ٢٩١) (صحيح)

**ترجمه**: د انس بن مالک ﷺ نه روایت دې، هغه وئیلی دی، چې اووئیلې یوسړی د انصارو نه، ای د الله رسوله! بیشکه زه سړی یم غټ او خپل غټ والی په وجه زه نشم کولی چې تاسره مونځ وکړم، او ډوډئ ئې ورله تیاره کړه او خپل کور ته ئې راوغوښتلو، نو ورته ئې اووئیل چې مونځ وکړه چې زه دې وینم چې ته څنګه مونځ کوی زه به اقتداء وکړم تا پسې. نو هغوی څنړکاو کړو یو طرف د پوړ د هغه لپاره چې دا وو د هغوی، نو مونځ ئې وکړو دوه رکعاته. وویل فلان بن الجارود انس بن مالک ته: ایا هغه به د څابښت مونځ کولو؟ هغه وویل: ما نه دې لیدلی رسول الله ﷺ مګر په دغه ورځ.

## مضمون حديث

**قوله**:﴿ قال رجل من الانصار : يا رسول الله! اني رجل ضخم ﴾ د حدیث مضمون دا دې چه یو انصاری سړی هغه ته عرض اوکړو چه زما بدن دروند دې مسجد ته بار بار تلل راتلل زما دپاره ګران دی زه دا غواړم چه ته زما کور ته تشریف راوړې او هلته زما په کور کښې یوځائې کښې مونځ اوکړې او زه به تا په ښه طریقې سره وینم چه څنګه مونځ کوی، او بس بیا د هغې نه پس د مسجد په ځائې به هم هلته مونځ کوم او هغه د هغه (ﷺ) دپاره خوراک هم تیار کړو پس هغه د هغوی درخواست قبول کړو او یوه ورځ د چاشت په وخت کښې ئې د هغه کور ته تشریف راوړلو او هلته تلو سره ئې مونځ اوکړو.

په دې حدیث کښې هغه صحابی رسول الله ﷺ ته په مسجد کښې د مونځ کولو شرکت عذر د خپل بدن ضخامت بیان کړو، په دې باندې ابن رسلان لیکی چه ددې حدیث نه معلومه شوه چه د ترک جماعت په عذرونو کښې سمن مفرط هم دې او ابن حبان په دې حدیث باندې هم دا ترجمه قائم کړې ده.

## د رجل ضخم مصداق

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه په مسلم شریف کښې هم ددې قسم یوه واقعه د عتبان بن مالک انصاری ﷺ هم مذکور ده، حافظ فرمائی چه کیدې شی دا واقعه هم دهغه وی او ددې رجل ضخم نه مراد هم هغه وی خو ددې تصریح ماته چرته ملاؤ نه شوه بلکه د ابن ماجه د روایت نه معلومیږی چه دا سړې د انس ﷺ په ترونو کښې وو او عتبان، د انس تره نه دې، البته مجازا ورته تره وئیلې کیدې شی د قبیلې د یو والی د وجې نه.

﴿ قال فلان بن الجارود ﴾ په بذل کښې لیکلې دی چه کیدې شی چه دا عبدالحمید بن المنذری بن الجاردو دې.

[٦٥٨]([1]) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا الْمُثَنَّى بْنُ سَعِيدٍ الذَّارِعُ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَزُورُ أُمَّ سُلَيْمٍ فَتُدْرِكُهُ الصَّلَاةُ أَحْيَانًا فَيُصَلِّي عَلَى بِسَاطٍ لَنَا وَهُوَ حَصِيرٌ نَنْضَحُهُ بِالْمَاءِ".

[1]): تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ١٣٣٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلاة ٢٠ (٣٨٠)، والأذان ٧٨ (٧٢٧)، ١٦١ (٨٦٠)، ١٦٤ (٨٧١)، ١٦٧ (٨٧٤)، صحيح مسلم/المساجد ٤٨ (٥١٣)، سنن الترمذي/الصلاة ٥٩ (٣٣١)، سنن النسائي/المساجد ٤٣ (٧٣٨)، والإمامة ١٩ (٨٠٢)، ٦٢ (٨٧٠)، موطا امام مالك/الصلاة ٩ (٣١)، مسند احمد (٣/١٣١، ١٤٥، ١٤٩، ١٦٤)، سنن الدارمي/الصلاة ٦١ (١٣٢٤) (صحيح)

**ترجمه**: د انس بن مالک رضي الله عنه نه روایت بیشکه نبي ﷺ وو چې ملاقات به ئې کولو د ام سليم نو کله به پرې د مانځه وخت راغي نو مونځ به ئې کولو په يو فرش زمونږ باندې او هغه پوزي وو چې مونږ چنړکاو کوه په اوبو سره

[٦٥٩] (١) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ بِمَعْنَى الإِسْنَادِ وَالْحَدِيثِ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، عَنْ يُونُسَ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ أَبِي عَوْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي عَلَى الْحَصِيرِ وَالْفَرْوَةِ الْمَدْبُوغَةِ".

**ترجمه**: د مغيرة بن شعبة نه روايت دې هغه وئيلي دی، وو رسو ل الله ﷺ چې مونځ به ئې کولو په پوزي باندې او په څرمن رنګ شوې باندې.

**تشريح**: **قوله**: ﴿يُصَلِّي عَلَى الْحَصِيرِ وَالْفَرْوَةِ الْمَدْبُوغَةِ﴾ رنګ کړې شوې څرمن يعنى د څرمنې مصلى

## بَابُ الرَّجُلِ يَسْجُدُ عَلَى ثَوْبِهِ

### باب دې په بيان د سړي کې چې سجده کوې په خپله جامه

[٦٦٠] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ يَعْنِي ابْنَ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا غَالِبٌ الْقَطَّانُ، عَنْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كُنَّا نُصَلِّي مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي شِدَّةِ الْحَرِّ، فَإِذَا لَمْ يَسْتَطِعْ أَحَدُنَا أَنْ يُمَكِّنَ وَجْهَهُ مِنَ الأَرْضِ بَسَطَ ثَوْبَهُ فَسَجَدَ عَلَيْهِ".

**ترجمه**: د انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې، هغه وئيلي دي وو مونږ چې مونځ به مو کولو د رسول الله ﷺ سره په سخته ګرمئ کښې، کله چې به طاقت نه لرلو يو کس زمونږ نه چې خپل مخ په ځمکې کيدي نو خوره به ئې کړه خپله جامه په هغې به ئې سجده وکړه

**تشريح**: **قوله**: ﴿ بسط ثوبه فسجد عليه ﴾ دا مخکښې هم تير شوې دی چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې په مسجد نبوی کښې پوزې (درئ) وغيره د څه فرش خورولو دستور نه وو بلکه په ټول مسجد کښې کاڼړی خواره وو چه د هغې قصه هم په ابواب المساجد کښې تير شوې دې، په دې حديث کښې صحابی فرمائی چه د سختې ګرمئ په زمانه کښې چه به کله مونږ د رسول الله ﷺ سره مونځ کولو نو چه کله به ورته د ګرمئ د وجې نه په زمکه باندې تندې ړدل ګران شو نو مونځ کونکی به په سجده کښې خپل څادر خور کړو او په هغې به ئې سجده اوکړه.

### په حديث کښې يوه اختلافي مسئله

د شوافعو په نزد چونکه د مصلى په خپل ثوب ملبوس باندې سجده کول جائز نه دی په دې وجه هغه دا حديث په ثوب منفصل باندې محمول کړې دې، احناف بلکه جمهورو (٣) ته ددې د مقيد کولو حاجت نشته د هغوی په نزد دا په ثوب متصل باندې هم جائز دې، بلکه ظاهره

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٥٠٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٥٤/٤) (ضعيف)

(٢): صحيح البخاري/الصلاة ٢٣ (٣٨٥)، والمواقيت ١١ (٥٤٢)، والعمل في الصلاة ٩ (١٢٠٨)، صحيح مسلم/المساجد ٣٣ (٦٢٠)، سنن الترمذي/الجمعة ٥٨ (٥٨٤)، سنن النسائي/ الكبري التطبيق ٥٧ (٧٠٣)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٦٤ (١٠٣٣)، (تحفة الأشراف: ٢٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠٠/٣)، سنن الدارمي/الصلاة ٨٢ (١٣٧٦) (صحيح)

(٣) ابوحنيفه، مالک او احمد (في رواية) ابن رسلان)

دا ده [1] چه په حديث کښې هم دا ثوب متصل مراد دې او مطلب دا دې چه سجدې ته د تلو په وخت خپل څادر يا د قميص لمن خورولو سره په هغې باندې سجده کوله مستقل کپړه خورول مراد نه دی د هغه خلقو سره دومره وسعت چرته وو. ﴿ او لکلکم ثوبان ﴾ د دې دپاره شاهد عدل دې.

## تفريع أبواب الصفوف

### د صف جوړولو ابواب (احکام اومسائل)

## بَابُ تَسْوِيَةِ الصُّفُوفِ

### باب دې په بيان د برابرولو د صفونو کې

په بعض نسخو کښې عبارت داسې دې ﴿ تفريع ابواب الصفوف﴾، د ﴿تسوية الصفوف ﴾ په باره کښې علامه عينی ليکی : ﴿ هو اعتدال القائمين وسد الخلل ﴾ يعنی نيغ او برابر اودريدل بغير د تقدم او تاخر نه او د صف په مينځ کښې فراخی نه پريخودل بلکه يوځائې اودريدل د ﴿تسوية الصفوف ﴾ حکم سره د ائمه کرامو د اختلاف نه وړاندې په يو حديث کښې راروان دی.

[٦٦١] [2] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، قَالَ: سَأَلْتُ سُلَيْمَانَ الْأَعْمَشَ عَنْ حَدِيثِ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ فِي الصُّفُوفِ الْمُقَدَّمَةِ، فَحَدَّثَنَا، عَنِ الْمُسَيَّبِ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ تَمِيمِ بْنِ طَرَفَةَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَلَا تَصُفُّونَ كَمَا تَصُفُّ الْمَلَائِكَةُ عِنْدَ رَبِّهِمْ عَزَّ وَجَلَّ؟ قُلْنَا: وَكَيْفَ تَصُفُّ الْمَلَائِكَةُ عِنْدَ رَبِّهِمْ؟ قَالَ: يُتِمُّونَ الصُّفُوفَ الْمُقَدَّمَةَ وَيَتَرَاصُّونَ فِي الصَّفِّ".

**ترجمه:** جابر بن سمرة وئيلی دی، چې فرمائيلی دی رسول الله ﷺ: ايا تاسو صف نه جوړوئ لکه څنګه چې ملائکی صف جوړوی په نزد د رب جل و عز، مونږ ووئيل: ملائکی څنګه صف جوړوی په نزد د رب؟ هغه وفرمائيل: دوی پوره کوی اولنې صفونه او جوختېږی په صف کښې.

**تشريح: قوله:** ﴿ الا تصفون کما تصف الملائکة عند ربهم ﴾ دا ﴿ عند ربهم ﴾ څنګه دې الله پاک ددې په حقيقت باندې پوهېږی څکه چه الله پاک د مکان نه منزه دې او يا په حذف د مضاف دې ای عند عرش ربهم يا عند عبادة ربهم، هم دغه شان ددې نه معلومه شوه چه فرشتې هم صف جوړولو سره عبادت کوی بلکه دا خو د قران کريم نه هم ثابته ده ﴿ والصافات صفا ﴾ په دې حديث کښې دی چه ملائک اولنی صفونه پوره کولو سره بيا روستو صف جوړوی، هم دغه شان په صف کښې يوځائې اودريږی وئيلې شی ﴿ رص البناء اذا الصق بعضه ببعض ﴾ يعنی څنګه چه د ديوال په رده خيژولو کښې ښختې يو بل پسې جختې کيخودلې شی

---

[1] ) لان المتبادر من الاضافة الثوب المتصل بالمصلي ويؤيده ما رواه ابن ابي شيبة عن عکرمة عن ابن عباس ان النبي صلي الله عليه وسلم صلي في ثوب واحد يتقي بفضوله حر الارض ويردها. منهل)

[2] ): صحيح مسلم/الصلاة ٢٧ (٤٣٠)، سنن النسائي/الإمامة ٢٨ (٨١٧)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٥٠ (٩٩٢)، (تحفة الأشراف: ٢١٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠١/٥، ١٠٦) (صحيح)

[۶۶۲] ()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ أَبِي الْقَاسِمِ الْجُدَلِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ، يَقُولُ: أَقْبَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى النَّاسِ بِوَجْهِهِ، فَقَالَ: "أَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ ثَلَاثًا، وَاللَّهِ لَتُقِيمُنَّ صُفُوفَكُمْ أَوْ لَيُخَالِفَنَّ اللَّهُ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ"، قَالَ: فَرَأَيْتُ الرَّجُلَ يَلْزَقُ مَنْكِبَهُ بِمَنْكِبِ صَاحِبِهِ وَرُكْبَتَهُ بِرُكْبَةِ صَاحِبِهِ وَكَعْبَهُ بِكَعْبِهِ.

**ترجمه**: ابو القاسم الجدلي وايي ما اوريدلي دي د نعمان بن بشير نه هغه به وئيل: رسول الله ﷺ خلقو ته مخامخ شو او وېي وئيل: نيغ کړئ خپل صفونه. درې ځل، قسم په الله! خامخا به تاسو برابروئ صفونه خپل او يا به مخالفت واچوی الله ستاسو په زړونو کښې. هغه وايي: ما به ليده سړی لره چې جوختوله به ئې اوږده خپله اوږې د خپل ملګری سره، او زنګون خپل د زنګون د ملګری خپل سره او ګيټئ خپله د ګيټئ د هغه سره.

## شرح حديث

**قوله**:﴿ والله لتقيمن صفوفكم او ليخالفن الله بين قلوبكم ﴾ د مخالفت بين القلوب معنى خو ظاهره ده خپل مينځ کښې اختلاف او نزاع.

او ددې وجه دا ده چه الله پاک د ظاهر او باطن ترمينځه يو خاص مناسبت او ربط کيخودلي دې چه هغې سره د يو اثر په بل باندې پريوځي نو هر کله چه د صفونو په ظاهر کښې کوږوالي وی نو د هغې په وجه باندې باطن هم کږيږی يعنی په زړونو کښې نفرت او دشمنی، علماء کرامو ليکلي دی، الظاهر عنوان الباطن، چه ظاهری حالت د باطنی حالت خبر ورکوی، وړاندې په روايت کښې د ﴿ بين قلوبكم ﴾ په ځائې ﴿ بين وجوهكم ﴾ راروان دې او هم دا د صحيحين په روايت کښې دی، بيا په دې کښې د شارحينو دوه قوله دی، چه د وجوه نه مراد صفات دی نو بيا خو به دا دواړه احاديث تقريبا يو شان معنی والا شی او بل قول دا دې چه د وجوه نه ظاهری شکل او صورت مراد دې، په دې صورت کښې به دا وعيد شی د مسخ لکه د رفع راس الامام په باره کښې اول وعيد تير شوې دې، او مطلب به دا وی چه مخ شاته طرف ته اړول، چه د وړاندې په ځائې شاته طرف ته اوګرځولي شی. والعياذ بالله تعالى منه.

## شرح حديث او د غير مقلدينو د طريقې ترديد

**قوله**:﴿ وركبته بركبة صاحبه وكعبه بكعبه ﴾ دلته ئې په کعب کښې ﴿ بكعب صاحبه ﴾ نه دی فرمائيلي لکه چه پورته ئې اوفرمائيل ﴿ بمنكب صاحبه وركبته بركبة صاحبه ﴾ لهذا دا چه کومه د غير مقلدينو طريقه ده چه هر مونځ کونکې کعب د بل مونځ کونکی د کعب سره يوځائې کوی، ددې حديث خلاف ده، خو عام طور سره د شراح حديث د کلام نه معلوميږی چه د ﴿ كعبه بكعبه ﴾ نه مراد هم دا دې يعنی ﴿ بكعب صاحبه ﴾ او د بخاری په يو روايت غير مرفوعه کښې ه دغه شان دی ﴿ قال النعمان بن بشير رايت الرجل منا يلزق كعبه بكعب صاحبه ﴾ بهرحال که د کعب نه مراد هم کعب وی نو بيا به ددې نه مراد حقيقت الصاق نه وی ځکه چه حقيقی الصاق بغير د تکلف نه نه شی کيدې او په دې سره به داسې هيئت پيدا شی کوم چه د مونځ

---

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۶۱۶) (صحيح)

د هیئت خلاف دي لهذا ددي نه قرب او محاذات مراد دي. كذا فی لامع الدراری)

**قوله:**﴿ قال الحافظ المراد بذلک المبالغة فی تعدیل الصف وسد خلله ﴾ زه وائم چه خپلي ګیتئ لره د ملګری د ګیتئ سره یوځائي کولو په صورت کښي سد خلل نشته ځکه چه په دي صورت کښي اګر چه خواته خالی ځائي خو ختم شی خو د مصلی په خپلو خپو کښي به د فرجي اضافه اوشی نو بیا سد خلل چرته شو کوم چه مقصود دي بلکه دا خو به ایقاع خلل وی. والله الموفق

[٦٦٣]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، قَالَ: سَمِعْتُ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ، يَقُولُ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَوِّينَا فِي الصُّفُوفِ كَمَا يُقَوَّمُ الْقِدْحُ، حَتَّى إِذَا ظَنَّ أَنْ قَدْ أَخَذْنَا ذَلِكَ عَنْهُ وَفَقِهْنَا أَقْبَلَ ذَاتَ يَوْمٍ بِوَجْهِهِ إِذَا رَجُلٌ مُنْتَبِذٌ بِصَدْرِهِ، فَقَالَ: "لَتُسَوُّنَّ صُفُوفَكُمْ أَوْ لَيُخَالِفَنَّ اللَّهُ بَيْنَ وُجُوهِكُمْ".

**ترجمه:** سماک بن حرب وایي چي ما اوریدلی دی د نعمان بن بشیر نه هغه به وئیل: وو نبی ﷺ چي مونږ به ئي برابرولو په صفونو کښي لکه څرنګه چي برابرولی شی غشی، تردي چي کله هغه ګمان وکړو چي مونږ دا خبره زده کړه د هغه نه، او مونږ پوهه شو نو رامخامخ شو یوه ورځ ناڅاپه یو سړی وو چي وبستونکی وو سینې خپلي لره، هغه وفرمائیل: برابر کړئ خپل صفونه او یا به مخالفت واچوي الله ستاسو په مینځ کښي.

**تشریح: قوله:**﴿ یسوینا فی الصفوف کما یقوم القدح ﴾ ﴿ قدح ﴾ بفتحین په معنی د پیاله نه دي مراد دا په کسرې د قاف او د دال په سکون سره دي د غشی دسته لکه چه د چاقو دسته وی، هغه ډیر برابر او هوار تراشلي شی، مطلب ظاهر دي چه څنګه هغه برابرولي شی هم دغه شان به رسول الله ﷺ صفونه برابرول.

د حدیث مطلب دا دي چه رسول الله ﷺ مونږ ته د صفونو د برابرولو تر ډیرې مودې پورې تعلیم او تلقین راکولو، تردې چه کله هغه پوهه شو چه اوس مونږ په دي باندې عمل شروع کړو نو بیا رسول الله ﷺ ددې متعلق هدایت پریخودلو په دې خیال چه ضرورت پاتي نه شو خو ددې نه روستو بیا هغه یوه ورځ اولیدل چه د یو سړی سینه په صف کښي وړاندې راوتلې ده نو بیا رسول الله ﷺ هغه وعید بیان کړو کوم چه وړاندې په حدیث کښي ذکر شوي دي.

[٦٦٤]()حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، وَأَبُو عَاصِمِ بْنُ جَوَّاسٍ الْحَنَفِيُّ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ طَلْحَةَ الْيَامِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْسَجَةَ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَلَّلُ الصَّفَّ مِنْ نَاحِيَةٍ إِلَى نَاحِيَةٍ يَمْسَحُ صُدُورَنَا وَمَنَاكِبَنَا، وَيَقُولُ: لَا تَخْتَلِفُوا فَتَخْتَلِفَ قُلُوبُكُمْ، وَكَانَ يَقُولُ: إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى الصُّفُوفِ الْأُوَلِ".

**ترجمه:** د براء بن عازب رضی الله عنه نه روایت دي هغه وئیلی دی، وو رسو ل الله ﷺ د صف مینځ

---

[١]): صحیح مسلم/الصلاة ٢٨ (٤٣٦)، سنن الترمذي/الصلاة ٥٥ (٢٢٧)، سنن النسائي/الإمامة ٢٥ (٨١١)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٥٠ (٩٩٢)، (تحفة الأشراف: ١١٦٢٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٧٠/٤، ٢٧١، ٢٧٢، ٢٧٦، ٢٧٧) (صحيح)

[٢]): سنن النسائي/الأذان ١٤ (٦٤٧)، والإمامة ٢٥ (٨١٢)، (تحفة الأشراف: ١٧٧٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٥١ (٩٩٣)، مسند احمد (٢٨٤/٤، ٢٨٥، ٢٩٧، ٢٩٨، ٢٩٩، ٣٠٤)، دي/الصلاة ٤٩(١٢٩٩) (صحيح)

کښې به ننوتلو د يو طرف نه بل طرف ته، برابرولې به ئې سينې او اوږې زمونږ او وئيل به يې: تاسو اختلاف مه کوئ مختلف به شي ستاسو زړونه، او وو چې وئيل به يې: بيشکه الله او د هغه ملائک رحمتونه لېږي په اولنی صف والا باندې.

**تشريح: قوله:** ﴿ يتخلل الصف من ناحية الى ناحية ﴾ يعنی رسول الله ﷺ به د صفونو د برابرولو دپاره هغې کښې داخل شو او ښي او ګس طرف نه به ئې د خلقو اوږې او سينه برابروله او وړاندې روستو کولو سره به ئې صفونه برابرول او په ژبې سره به ئې دا فرمائيل ﴿ لا تختلفوا فتختلف قلوبکم ﴾... يصلون على الصفوف الاول... اول په ضمې د الف او فتحې د واو سره د ﴿ اول ﴾ جمع ده، يعنی الله او د هغه ملائک درود لېږي، په وړاندې صف والو باندې، په لفظ جمع راوړلو سره اشاره ده، الاول فالاول طرف ته، ګويا اول صف ته فضيلت حاصل دې په ثاني باندې، او ثاني ته په ثالث باندې، وهکذا.

## د صف اول په مصداق کښې اقوال

ځان پوهه کړه چه د صف اول په مصداق کښې د علماء کرامو اختلاف دې، امام بخاري ددې دپاره مستقل ترجمه قائم کړې ده. "باب الصف الاول" د دې په مصداق کښې درې اقوال دی.

۱: اول صف هغه دې کوم چه د امام سره متصل وی مطلقا برابره خبره ده که هغه صف کامل وی يا ناقص لکه د مقصوره اول صف.

۲: امام ته نزدې والا هغه صف کوم چه کامل وی، لهذا چه کوم صف په امام پسې شاته مقصوره کښې وی ددې قول په بناء به هغه صف اول نه وی د ناقص کيدو د وجې نه بلکه د مقصوره نه بهر کوم ړومبې اولنې صف وی هغه به ددې مصداق وی.

۳: او دريم قول دا دې ﴿ من سبق الى الصلاة ولو صلى اخر الصفوف ﴾ يعنی کوم سړې چه اول مسجد ته لاړ شی برابره خبره ده که مونځ په هر يو صف کښې اوکړی هم هغه د صف اول مصداق دې.

امام نووی رحمه الله فرمائي چه قول اول صحيح او مختار دې، والقولان اخيران غلط. او په شامي کښې د قول اول ليکلو نه پس قول ثاني ليکلو سره فرمائي: وبه اخذ الفقيه ابو الليث توسعة على الامة کيلا تفوتهم الفضيلة. اهـ

[۶۶۵] ([1]) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ ابْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ، حَدَّثَنَا حَاتِمٌ يَعْنِي ابْنَ أَبِي صَغِيرَةَ، عَنْ سِمَاكٍ، قَالَ: سَمِعْتُ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَوِّي صُفُوفَنَا إِذَا قُمْنَا لِلصَّلَاةِ، فَإِذَا اسْتَوَيْنَا كَبَّرَ".

**ترجمه:** د سماک نه روايت دې، هغه وئيلی ما اوريدلی دی د نعمان بن بشير نه، هغه وئيلی دي: وو رسول الله ﷺ چې برابرولو به ئې مونږ کله چې به مونږ ودريدلو مانځه ته کله چې به مونږ برابر شو نو تکبير به ئې وويلو.

[1]: انظر حديث رقم: ۶۶۳، (تحفة الأشراف: ۱۱۶۲۰) (صحيح)

**تشریح: قوله:** ﴿ كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يسوى صفوفنا اذا قمنا للصلاة ﴾ يعنى رسول الله ﷺ به زمونږ صفونه هغه وخت برابرول چه کله به مونږ د مونځ دپاره اودریدلو.

## تسوية صفوف څه وخت کیدل پکار دی؟

په دې باندې ابن رسلان شافعی لیکی چه قیام الی الصلاة د اقامت نه پس وی لهذا تسوية الصفوف به په طریق اولی د اقامت نه روستو وی [1] او هم دا مشهوره خبره ده او زمونږ بعض اصحاب دې طرف ته تلې دی چه تسوية صفوف د اقامت په اواخر کښې کیدل پکار دی ددې دپاره چه د اقامت د پوره کیدو سره سره مونځ شروع شی، وهو خلاف النص، او دا مسئله چه مقتدی به د مونځ دپاره کله اودریږی هغه زمونږ په نزد سره د ائمه کرامو د اختلاف په باب فی الصلاة تقام ولم یات الامام الخ د لاندې تیر شوې دې. ﴿ فاذا استوينا كبر ﴾ امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه د عمر رضی الله عنه په باره کښې دی چه هغه یو سړې د صفونو د برابرولو دپاره مقرر کړې وو او مونځ به ئې تر هغه وخته پورې نه شروع کولو چه ترڅو پورې به هغه سړی خبر نه ورکولو چه صفونه برابر شو، هم دغه شان هغه لیکی چه هم دغه شان د علی او عثمان رضی الله عنهم اجمعین نه روایت دی چه دې دواړو حضراتو به هم ددې اهتمام فرمائیلو او په ژبې سره به ئې هم فرمائیل چه ﴿ استووا ﴾، تسویه صفوف کوم وخت پکار دی په دې باندې تفصیلی کلام په الحل المفهم ص ۱۳۷ کښې موجود دې هلته دې اوکتلې شی، په هغې کښې لیکلې دی چه امام محمد په موطاء کښې فرمائی چه کله مؤذن ﴿ حی علی الفلاح ﴾ ته اورسیږی نو ټول خلق دې اودریږی او صف بندی او تسوية الصفوف دې اوکړی. وهو قول ابی حنیفة.

**قوله:** وسدوا الخلل: خلل په معنی د فرجة سره، ددې جمع خلال ده پشان د جبل او جبال.

[٦٦٦] ([2]) حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْغَافِقِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ. ح وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، وَحَدِيثُ ابْنِ وَهْبٍ أَتَمُّ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ أَبِي الزَّاهِرِيَّةِ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ قُتَيْبَةُ: عَنْ أَبِي الزَّاهِرِيَّةِ، عَنْ أَبِي شَجَرَةَ، لَمْ يَذْكُرِ ابْنَ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَقِيمُوا الصُّفُوفَ وَحَاذُوا بَيْنَ الْمَنَاكِبِ وَسُدُّوا الْخَلَلَ وَلِينُوا بِأَيْدِي إِخْوَانِكُمْ، لَمْ يَقُلْ عِيسَى: بِأَيْدِي إِخْوَانِكُمْ، وَلَا تَذَرُوا فُرُجَاتٍ لِلشَّيْطَانِ، وَمَنْ وَصَلَ صَفًّا وَصَلَهُ اللَّهُ وَمَنْ قَطَعَ صَفًّا قَطَعَهُ اللَّهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو شَجَرَةَ كَثِيرُ بْنُ مُرَّةَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَمَعْنَى وَلِينُوا بِأَيْدِي إِخْوَانِكُمْ: إِذَا جَاءَ رَجُلٌ إِلَى الصَّفِّ فَذَهَبَ يَدْخُلُ فِيهِ فَيَنْبَغِي أَنْ يُلِينَ لَهُ كُلُّ رَجُلٍ مَنْكِبَيْهِ حَتَّى يَدْخُلَ فِي الصَّفِّ.

**ترجمه:** د ابو شجرة نه روایت دې . نه دی ذکر کړی ابن عمر رضی الله عنه چه بیشکه رسول الله ﷺ ویلی دی: ودروئ صفونه او برابرې کړئ اوږې او بند کړئ خالیګاه او نرم شئ په لاسونو د ورونړو خپلو کښې . عیسی ندی ویلی (بایدي اخوانکم) او مه پریږدئ لارې د شیطانانو دپاره، او چا چې پیوست کړو صف الله به ئې پیوست کړي، او چا چې پریکړو صف الله به

[1] او د احنافو مذهب په دې کښې وراندې راروان دې.

[2]: سنن النسائي/الإمامة ٣١ (٨٢٠)، (تحفة الأشراف: ٧٣٨٠، ١٩٢٣٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٩٧) (صحیح)

ئي پرې کړي. وئيلې دې ابوداود: ابو شجرة کثير بن مرة دې. وئيلې دې ابوداود: معنى د و لِيُنُوا بِأيدِي اخوانكم داده: چې كله يو سړې راشي او صف ته داخلېږي نو مناسب دې هر سړې لره چې هر سړې ورته اوږې نرمې کړي تردې چې صف کښې داخل شي.

## شرح حديث

قوله: ﴿ الخلل ﴾ خلل په معنى د فرجه ددې جمع خلال ده لكه جبل او جبال.

قوله: ﴿ ومن وصل صفا وصله الله ﴾ کوم چه صف يوځائې کړي الله پاک به هغه د خپل رحمت سره يوځائې کړي، د يوځائې كولو يو صورت دا دې چه په مينځ کښې که چرته خلل وي نو هغه ختم کړي يا وړاندې صف ناقص وي په هغې کښې د يو يا دوه سړو گنجائش وي نو هغه پوره کړي. ﴿ ومن قطع صفا قطعه الله ﴾ د قطع صف يو صورت دا دې چه يو سړې کوم چه په مانځه کښې شريک نه دې هغه د صف په مينځ کښې ناست وي يا يو سړې په صف کښې د گنجائش کيدو باوجود په دې کښې د داخليدو والا منع کړي. (افاده السندى).

[٦٦٧]([1])حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "رُصُّوا صُفُوفَكُمْ وَقَارِبُوا بَيْنَهَا وَحَاذُوا بِالْأَعْنَاقِ، فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنِّي لَأَرَى الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ مِنْ خَلَلِ الصَّفِّ كَأَنَّهَا الْحَذَفُ".

ترجمه: د انس بن مالک رضي الله عنه روايت دې، هغه روايت کوی د رسول الله ﷺ نه هغه فرمائيلي دي: جوخت کړئ خپل صفونه او نزدې والې راولئ په هغې کښې، او مخامخ کړئ څټونه، قسم په هغه ذات چې زما نفس د هغه په لاس کښې دې زه وينم شيطان چې ننوځي د خاليگاه د صف نه گويا چې هغه گډورکي دي.

تشريح: قوله: ﴿ وحاذوا بالاعناق ﴾ او ددې نه مخکښې تير شو چه ﴿ حاذوا بين المناكب ﴾ يعنى د مونځ کونکو د اوږو او ستونو ترمينځه محاذات پکار دي چه وړاندې روستو نه وي، او د ﴿ حاذوا بالاعناق ﴾ بل مطلب دا هم کيدې شي چه ټول مونځ کونکي په هوار ځائې باندې اودريږي او په هغه ځائې کښې لاندې باندې نه وي چه بعض په لوړ ځائې ولاړ وي او بعض په ښکته ﴿ كانها الحذف ﴾ حذف جمع د ﴿ حذفة ﴾ ده، د حجاز بيزه کومه چه توره او وړه شان وي، د مشكاة په روايت کښې ئې د ﴿ حذف ﴾ تفسير داسې کړې دې يعنى ﴿ اولاد الضان من الصغار ﴾

[٦٦٨]([2])حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "سَوُّوا صُفُوفَكُمْ فَإِنَّ تَسْوِيَةَ الصَّفِّ مِنْ تَمَامِ الصَّلَاةِ".

ترجمه: انس رضي الله عنه وئيلې دي، چې رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: برابر کړئ خپل صفونه ځکه

[1]): سنن النسائي/الإمامة ٢٨ (٨١٦)، (تحفة الأشراف: ١١٣٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٦٠/٣، ٢٨٣) (صحيح)

[2]): صحيح البخاري/الأذان ٧٤ (٧٢٣)، صحيح مسلم/الصلاة ٢٨ (٤٣٣)، سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ٥٠ (٩٩٣)، (تحفة الأشراف: ١٢٤٣)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الإمامة ٢٧ (٨١٢)، مسند احمد (١٧٧/٣، ١٧٩، ٢٥٤، ٢٧٤، ٢٧٩، ٢٩١)، سنن الدارمي/الصلاة ٤٨ (١٢٩٨) (صحيح)

برابرول د صفونو د پوره والي د مانځه نه دي.
**تشريح: قوله:** فَإِنَّ تَسْوِيَةَ الصَّفِّ مِنْ تَمَامِ الصَّلَاةِ،، اى من كمال الصلوة: د مونځ كمال په صفونو برابرولو كښې دې.

## د تسوية صفوف حكم

د دې نه معلومه شوه چه تسويه د مستحبات نه دې ځكه چه د يو څيز تماميت عرفا د هغه څيز د حقيقت نه خارج منلې شى او هم دا مذهب دې د جمهور علماء كرامو او د بخارى په يو روايت كښې دى ﴿من اقامة الصلاة﴾ د دې نه ابن حزم استدلال كړې دې چه تسويه فرض ده ځكه چه اقامت صلاة فرض دې، ددې جواب د نورو رواياتو پيش نظر دا كيدې شى چه تسوية الصف د اقامة الصلاة على وجه الكمال د قبيل نه دې نفس اقامة صلاة مراد نه دې.

[٦٦٩]([1])حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ ثَابِتِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مُسْلِمِ بْنِ السَّائِبِ صَاحِبِ الْمَقْصُورَةِ، قَالَ: صَلَّيْتُ إِلَى جَنْبِ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ يَوْمًا، فَقَالَ: هَلْ تَدْرِي لِمَ صُنِعَ هَذَا الْعُودُ؟ فَقُلْتُ: لَا وَاللَّهِ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ يَدَهُ عَلَيْهِ، فَيَقُولُ: "اسْتَوُوا وَعَدِّلُوا صُفُوفَكُمْ".

**ترجمه:** د محمد بن مسلم بن السائب نه روايت دې چې خاوند مقصورى دى، هغه وئيلى دي: ما مونځ وكړو د انس ﷺ خوا ته يوه ورځ، هغه وويل: ايا ته پوهېږې دا لرګى ولې كيخودلې دې، ما وويل: نه قسم په الله، هغه وويل: وو رسول الله ﷺ كيخودلو به ئې خپل لاس په هغې او وئيل به يې: برابر شئ او برابر كړئ خپل صفونه.

**تشريح: قوله:**﴿ هل تدرى لم صنع هذا العود ﴾ په مسجد نبوى كښې د امام د مونځ ځائې ته نزدې يو لرګي ښخ كړې شوې وو، چه په هغې باندې به رسول الله ﷺ لاس كيخودلو يا خو به هغه په ديوال كښې وو د كونټئ په شان يا به په زمكه كښې ښخ وو، والله تعالى اعلم، د دې تفصيل په الحل المفهم (١١٦) كښې شته، په هغې كښې ليكلي دى چه د حضرت ګنګوهى په يو تقرير كښې دى چه دا لرګي د رسول الله ﷺ مصلي ته نزدې ښخ كړې شوې وو، رسول الله ﷺ به د وعظ په وخت په هغې لاس ږدلو او تكيه به ئې پرې وهله.

[٦٧٠]([2])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ الْأَسْوَدِ، حَدَّثَنَا مُصْعَبُ بْنُ ثَابِتٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ أَنَسٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ أَخَذَهُ بِيَمِينِهِ ثُمَّ الْتَفَتَ، فَقَالَ: اعْتَدِلُوا سَوُّوا صُفُوفَكُمْ، ثُمَّ أَخَذَهُ بِيَسَارِهِ، فَقَالَ: اعْتَدِلُوا سَوُّوا صُفُوفَكُمْ.

**ترجمه:** د انس ﷺ نه روايت دې ددې حديث هغه وئيلى دي: بيشكه رسول الله ﷺ وو كله چې به ودريدلو مانځه ته هغه به ئې ونيولو په ښي لاس سره بيا به ئې وكتل، وبه ئې وئيل: برابر شئ، برابر كړئ خپل صفونه. بيا به ئې هغه ونيول د چپ لاس نه، هغه به وويل: تاسو برابر شئ او برابر كړئ تاسو صفونه.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٧٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٥٤/٣) (ضعيف)
[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٤٧٤) (ضعيف)

[۶۷۱]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ يَعْنِي ابْنَ عَطَاءٍ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَتِمُّوا الصَّفَّ الْمُقَدَّمَ ثُمَّ الَّذِي يَلِيهِ، فَمَا كَانَ مِنْ نَقْصٍ فَلْيَكُنْ فِي الصَّفِّ الْمُؤَخَّرِ".

**ترجمه:** د انس بن مالک رضي الله عنه نه روایت دې بیشکه رسول الله ﷺ ویلی دي: پوره کړئ مخکنی صف، بیا هغه چې وروسته دی، کوم کمي چې دې هغه دې په وروستني صف کښې شي.

[۶۷۲]()حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ يَحْيَى بْنِ ثَوْبَانَ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَمِّي عُمَارَةُ بْنُ ثَوْبَانَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خِيَارُكُمْ أَلْيَنُكُمْ مَنَاكِبَ فِي الصَّلَاةِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: جَعْفَرُ بْنُ يَحْيَى مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ.

**ترجمه:** د ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې، هغه وئیلی دی، فرمائیلی دی رسول الله ﷺ: په تاسو کښې غوره هغه دی چې ډېرې نرمې وې اوږې د هغه په مانځه کښې. وئیلی دی ابوداود: جعفر بن یحیی د مکې والاو نه دی.

**تشریح: قوله:**( خیارکم الینکم مناکب فی الصلاة ) په تاسو کښې د ټولو نه غوره هغه دې کوم چه په مونځ کښې د اوږو په اعتبار سره نرم وی، ددې نه مراد انقیاد او اطاعت دې یعنی صفونه برابرولو والا سړې که څوک د اوږو نه اونیسی او څوک مخکښې روستو کوی نو د هغه په حق کښې نرم شی او ضد اونکړی، هم دا معنی ددې مقام مناسب ده، او بل مطلب ئې دا لیکلې دې چه ددې نه مراد خشوع او سکون او طمانیت دې.

## بَابُ الصُّفُوفِ بَيْنَ السَّوَارِي

### باب دې په بیان د صفونوکې په مینځ د ستنوکې

دلته دوه بحثونه دی اول د صلاة بین الساریتین حکم او په هغې کښې اختلاف د علماء کرامو او دویم د منع کولو حکمت.

### صف بین الساریتین کښې د مذاهب ائمه تحقیق

**اول بحث** : امام ترمذی رحمه الله په ائمه کرامو کښې صرف د امام احمد او اسحاق مسلک دا لیکلې دې چه د هغوی په نزد صف بین الساریتین مکروه دې خو د صف تعلق خو د مقتدیانو سره وی او د امام او منفرد دپاره خو صف نه وی نو ګویا دا کراهت د هغوی په نزد صرف د مقتدیانو په حق کښې شو، او د باقی ائمه کرامو د مذاهبو په باره کښې دا دی چه ابن سید الناس فرمائی : هغه لیکی چه د امام احمد نه علاوه د ائمه ثلاثه په نزد د مقتدی په حق کښې هم جائز دې، او امام نووی رحمه الله د مسلم په شرح (۱۹۷) کښې د شوافعو مسلک د جواز لیکلې دې [۳] خو د امام مالک په باره کښې ئې دا لیکلې دی چه د هغه په دې کښې دواړه قوله دی کراهت او عدم کراهت، خو ابن العربی مالکی د مقتدی په حق

[1]: سنن النسائي/الإمامة ۳۰(۸۱۹)، (تحفة الأشراف: ۱۱۹۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۳۲/۳، ۲۱۵، ۲۳۳) (صحیح)
[2]: تفرد به ابو داود، (تحفة الأشراف: ۵۹۳۶) (صحیح)
[3]: په ظاهره کښې خو صحیح هم دا ده څه چه امام نووی رحمه الله لیکلې دی څکه چه هغه خپله شافعی دې خو صاحب منهل د شوافعو مسلک کراهت فی حق المقتدی لیکلې دې.

کښې صرف د کراهت قول نقل کړې دې، زه وايم چونکه د مالکيانو په دې کښې دوه قوله دی. (کما قال النووی) په دې وجه د هغوی دا يو قول ابن العربی او دويم قول ابن سيد الناس نقل کړې دې، نو اوس حاصل دا شو چه د مقتدی په حق کښې قيام بين الساريتين د حنابله په نزد مکروه او د احنافو او شوافع په نزد غير مکروه، [1] او د مالکيانو په نزد دواړه اقوال دی کراهت او عدم کراهت.

## حکمت منع

**بحث ثانی** : د دې منع په حکمت کښې د شارحينو درې اقوال دی، اول دا چه په دې کښې قطع صفوف لازميږی، دويم قول دا چه دا ما بين الساريتين موضع النعال دې، او دريم قول دا دې چه ﴿ انه مصلی الجن من المومنين ﴾ چه دا د مسلمانانو جناتو د مونځ کولو ځائې دې، خو ابن سيد الناس قول اول ته ترجيح ورکړې ده او د قول ثانی په باره کښې ليکی چه ﴿ انه محدث ﴾ يعنی د ساريتين ترمينځه د پيزار ږدلو رواج د رسول الله ﷺ په زمانه کښې نه وو، دا بدعت او روستو رواج دې لهذا دا علت منل صحيح نه دی.

[۶۷۳]([2])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ هَانِئٍ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ مَحْمُودٍ، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَدُفِعْنَا إِلَى السَّوَارِي فَتَقَدَّمْنَا وَتَأَخَّرْنَا، فَقَالَ أَنَسٌ: "كُنَّا نَتَّقِي هَذَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه**: عبد الحميد بن محمود وايې چې ما مونځ وکړو د انس بن مالک سره د جمعې په ورځ، نو مونږ دېکه کړی شو ستنو ته، نو مخکې او وروسته شو. نو وويل انس: وو مونږ چې ځان به مو بچ کولو د دېنه په زمانه د رسول الله ﷺ کښې.

## شرح حديث

**قوله**:﴿ صليت مع انس بن مالک يوم الجمعة الى السواری فتقدمنا وتاخرنا ﴾ ما د انس بن مالک ﷺ سره د جمعې مونځ اوکړو، د ترمذی او د نسائی د روايت نه معلوميږی چه دا مونځ په يو امير پسې شاته کړې شوې وو، خپله انس ﷺ امام نه وو، پس د هجوم په وجه باندې مونږ ستنو طرف ته واپس کړې شو خو په مونږ کښې بعض په وړاندې صفونو کښې او بعض په شاته صفونو کښې شامل شو يعنی د قيام بين الساريتين نه د بچ کيدلو دپاره.

---

[1] **تنبيه** : عموما د شارحينو د کلام نه او هم دغه شان د بذل المجهود نه معلوميږی چه د امام او منفرد په حق کښې په جواز باندې اتفاق دې، خو په معارف السنن کښې د احنافو د مسلک په باره کښې ابن عابدين او ابن الهمام نه د امام په حق کښې قيام بين الساريتين مکروه ليکلې شوې دې او د مقتدی په حق کښې هغه ليکی ﴿ واما المقتدي فلم يذكر حكمه في كتبنا ﴾ خو په بذل المجهود کښې په حواله د مبسوط للسرخسی د مقتدی په حق کښې د عدم کراهت تصريح نقل ده.

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ۵۵ (۲۲۹)، سنن النسائي/الإمامة ۳۳ (۸۲۲)، (تحفة الأشراف: ۹۸۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۳۱/۳) (صحيح)

## د رواياتو تعارض

د دې روايت نه معلوميږي چه دې خلقو د ساريتين ترمينځه مونځ نه دې کړې، حال دا چه د ترمذی او نسائی په روايت کښې ددې خلاف موجود دې، ﴿ فصلينا بين الساريتين ﴾ ددې يو جواب خو دا کيدې شی چه کومو بعضو ته ځائې ملاؤ شوې وو هغوی شاته او مخکښې صفونو ته لاړل او چاته چه ځايونه نه وو ملاؤ شوې هغوی د ساريتين ترمينځه مونځ اوکړو لهذا دا د راويانو اختصار دې، او يا دې دا په تعدد د واقعه باندې محمول کړې شی او په کوکب کښې ئې ددې جواب دا ورکړې دې چه د ﴿ تقدمنا وتاخرنا ﴾ نه مراد په وړاندې او روستو صفونو کښې شامليدل نه دی بلکه ددې ستنو ترمينځه مونځ کول مراد دی ځکه چه د مسجد نبوی اساطين مستوی نه وو، په هغې کښې څه کوږوالې وو هم په دې وجه باندې د هغوی ترمينځه د مونځ کونکو صف برابر پاتې نه شو، هم دا مراد دې د تقدم او تاخر نه، په دې صورت کښې به د دواړو روايتونو مفهوم متحد شی.

**قوله:** ﴿ فقال انس: كنا نتقى هذا على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم ﴾ د دې حديث نه د صلاة بين الساريتين مطلقا کراهت معلوميږي چه په ائمه کرامو کښې د چا مذهب هم نه دې، خو دلته يو بل روايت دې چه د کوم امام ترمذی رحمه الله حواله ورکړې ده ﴿ وفى الباب عن قرة بن اياس المزنى ﴾ دا حديث په ابن ماجه کښې دې چه د هغې الفاظ دا دی ﴿ كنا نهى ان نصف بين السوارى على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم ونطرد عنها طردا ﴾

## الكلام على دلائل الفريقين

په دې حديث کښې ممانعت د مطلق صلاة نه دې بلکه د صف د قائمولو دې او د صف تعلق د مقتديانو سره وی، لهذا حديث انس کوم چه مطلق دې هغه به ددې حديث سره مقيد کولې شی، لهذا داسې به د مقتدی په حق کښې کراهت ثابت شی، لکه چه د حنابله وغيره مذهب دې، ددې جواب حضرت په بذل کښې دا ورکړې دې چه حديث د انس رضی الله عنه صحيح دې، كما قال الترمذی، خو هغه مطلق دې[1] د مطلق کراهت خو څوک هم قائل نه دی او د کوم روايت نه چه ددې تقييد کولې شی هغه ضعيف دې په دې کښې هارون بن مسلم راوی ضعيف او مجهول دې لهذا په کراهت باندې استدلال تام نه دې، هم دغه شان د صحيحين په روايت کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم صلاة بين الساريتين کول په بيت الله شريف کښې ثابت دی او د صحيحين روايت اگر چه د منفرد په حق کښې دې خو غير منفرد به په منفرد باندې قياس کولې شی، حضرت فرمائی چه په مبسوط للسرخسی کښې تصريح ده ددې خبرې چه ﴿ اصطفاف بين الاسطوانتين ﴾ مکروه نه دې، ﴿ لانه صف فى حق كل فريق وان لم يكن طويلا ﴾

[1] په دې باندې زما دا کلام دې چه دا حديث به مطلق په هغه صورت کښې وی چه د ﴿ كنا نتقى هذا ﴾ اشاره د صلاة الى الساريتين طرف ته اومنلې شی، او که ددې مشار اليه ﴿ الصف ﴾ بين الساريتين اومنلې شی لکه چه د کلام د سياق تقاضه ده نو بيا به دا حديث مطلق نه وی او د تقييد دپاره به د ابن ماجه د روايت طرف ته هم حاجت نه وی، فتامل فانه دقيق)

## بَابُ مَنْ يُسْتَحَبُّ أَنْ يَلِيَ الإِمَامَ فِي الصَّفِّ وَكَرَاهِيَةِ التَّأَخُّرِ

**باب دې په بيان د دې چې چاله مستحب دي چې نزدې وي امام ته په صف کې او کراهيت د وروسته والي**

[٦٧٤] ()حَدَّثَنَا ابْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنِي سُفْيَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لِيَلِنِي مِنْكُمْ أُولُو الأَحْلاَمِ وَالنُّهَى ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ".

**ترجمه**: د ابو مسعود نه روايت دې هغه ويلې، چې فرمائيلي دى رسول الله ﷺ: نزدې دې شي ماته په تاسو کښې خاوند د عقلونو، بيا هغه کسان چې دوى ته نزدې وي، بيا هغه کسان چې دوى ته نزدې وي.

### د حديث تشريح:

### د ليلني صرفي تحقيق:

**قوله**:﴿ ليلنى منكم اولوا الاحلام والنهى ﴾ دا لفظ د ولى نه دې چه د هغې معنى ده نزدې او په شروع کښې لام، لام امر دې او نون مشدد، او د مسلم په روايت کښې بغير د ياء نه دې ﴿ليلنى ﴾ په دې صورت کښې په نون مخفف وى کوم ته چه نون وقايه وئيلې شى او په بعض رواياتو کښې باوجود د ياء نه ﴿ ليلنى ﴾ ياء ثانى په سكون او تخفيف نون سره دې خو دا د قواعدو خلاف په دې وجه دې چه دا لام لام امر دې کوم چه جازم دې او په حالت د جزم کښې د حرف علت سقوط ضرورى دې، ملا على قارى ددې تاويل کړې دې چه دا ياء دلته د اشباع د کسرې د وجې نه ده، يا په اصل کلمه باندې د تنبيه دپاره راوړلې شوې ده. **كما فى قراءة انه من يتقى ويصبر**.

### د الاحلام لغوى تحقيق

**قوله**:﴿ الاحلام ﴾ يا خو د ﴿ حلم ﴾ بالكسر جمع ده، چه د هغې نه مراد عقل او پوهه ده، يا ﴿حلم ﴾ بضم الحاء چه د هغې معنى د خوب ده، خو دلته ترې مراد بلوغ دې، په اول صورت کښې به د احلام نه مراد عقلاء وى او په دويم صورت کښې به بلغاء، والنهى د نهية جمع ده په معنى د عقل، يعنى عقلاء په اول صورت کښې به ﴿ اولو الاحلام والنهى ﴾ د دواړو مصداق يو وى يعنى عقلاء په دې صورت کښې به دا عبارت ﴿ والفى قولها كذبا ومينا ﴾ د قبيل نه وى يعنى تغاير فى اللفظ لره د تغاير فى المعنى حكم ورکولو سره عطف راوړل، او په دويم صورت کښې به د معنى تکرار وى بلکه د اول نه مراد بلغاء او د ثانى نه مراد عقلا دى.

**قوله**:﴿ ثم الذين يلونهم ﴾ يعنى بيا چه څوک هغوى ته نزدې وى، د عقل يا بلوغ په اعتبار سره دهغې نه کم درجه وى لکه مراهقين بيا چه څوک هغوى ته نزدې وى لکه صبيان مميزين يا په اعتبار د عقل د هغې نه د کمې درجې وى، او وئيلې شوې دى چه ددې نه مراد ﴿ نساء﴾

[1]: صحيح مسلم/الصلاة ٢٨ (٤٣٢)، سنن النسائي/الإمامة ٢٣ (٨٠٨)، ٢٦ (٨١٣)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٤٥ (٩٧٦)، (تحفة الأشراف: ٩٩٩٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٢/٤)، سنن الدارمي/الصلاة ٥١ (١٣٠٢) (صحيح)

دى وقيل ﴿ خنالى ﴾ او د صفونو ترتيب د فقهاء كرامو په نزد داسې دې، صفوف الرجال، ثم الصبيان ثم الخنالى ثم النساء ﴾

[۶۷۵](¹)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنْ أَبِي مَعْشَرٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ، وَزَادَ: وَلَا تَخْتَلِفُوا فَتَخْتَلِفَ قُلُوبُكُمْ وَإِيَّاكُمْ وَهَيْشَاتِ الْأَسْوَاقِ.

**ترجمه:** د عبد الله نه روايت دې، هغه روايت كوى د نبى ﷺ نه په مثل د هغې، او زيادت ئې كړى دى: او تاسو اختلاف مه كوئ مختلف به شى ستاسو زړونه، او ځان وساتئ د ګڼو د بازارونو نه.

**تشريح: قوله:** ﴿ واياكم وهيشات الأسواق﴾ د ﴿ هيشة ﴾ معنى د اواز اوچتول او اختلاط دواړه راځى يعنى په مسجدونو كښې شور مه كوئ لكه چه په بازاراونو كښې وى، يا د ترتيب مذكور خلاف مه كوئ ځنګه چه په بازارونو او دكانونو باندې د خلقو ترمينځه څه ترتيب نه وى ټول په يو ځائې باندې روان وى، دويمه معنى د مقام زياته مناسب ده ځكه چه په حديث كښې ترتيب بيانولې شى.

[۶۷۶](²)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى مَيَامِنِ الصُّفُوفِ".

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې هغې وئيلى دى، چې فرمائيلى دى رسول الله ﷺ: بيشكه الله او د هغه ملائک رحمتونه لېږى په ښى طرفونو د صفونو باندې

## بَابُ مُقَامِ الصِّبْيَانِ مِنَ الصَّفِّ

### باب دې په بيان د ځاى د ماشوما نو كې د صف نه

[۶۷۷](³)حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ شَاذَانَ، حَدَّثَنَا عَيَّاشٌ الرَّقَّامُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا قُرَّةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا بُدَيْلٌ، حَدَّثَنَا شَهْرُ بْنُ حَوْشَبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ غَنْمٍ، قَالَ: قَالَ أَبُو مَالِكٍ الْأَشْعَرِيُّ: أَلَا أُحَدِّثُكُمْ بِصَلَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: "فَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَصَفَّ الرِّجَالَ وَصَفَّ خَلْفَهُمُ الْغِلْمَانَ ثُمَّ صَلَّى بِهِمْ، فَذَكَرَ صَلَاتَهُ، ثُمَّ قَالَ: هَكَذَا صَلَاةُ"، قَالَ عَبْدُ الْأَعْلَى: لَا أَحْسَبُهُ إِلَّا قَالَ: صَلَاةُ أُمَّتِي.

**ترجمه:** ابو مالک الاشعرى وئيلى دي: ايا زه بيان نه كړم تاسو ته مونځ د نبى ﷺ، هغه ووئيل: مونځ ئې ودرولو، او صف ئې كړل سړى او صف ئې كړل وروسته د هغوى نه هلكان، بيا ئې مونځ وكړو هغوى ته، ذكريې كړو مونځ د هغه بيا ئې ووئيل: دارنګه مونځ دى. وئيلى دى عبد الاعلى: زه ګمان نه كوم مګر دا چې هغه ووئيل مونځ د امت زما.

¹): صحيح مسلم/الصلاة ۲۸ (۴۳۲)، سنن الترمذي/الصلاة ۵۴ (۲۲۸)، (تحفة الأشراف: ۹۴۱۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۵۷/۱)، سنن الدارمي/الصلاة ۵۱ (۱۳۰۳) (صحيح)

²): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۵۵ (۱۰۰۵)، (تحفة الأشراف: ۱۶۳۶۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶۷/۶، ۸۹، ۱۶۰)، (حسن) بلفظ: «على الذين يصلون الصفوف».

³): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۶۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۴۱/۵، ۳۴۳، ۳۴۴) (ضعيف)

**تشريح:** د جمهور علماء کرامو او اکثر شوافعو په نزد د صبيان دپاره مستقل صف پکار دی په سړو پسې شاته، د امام مالک او بعض شوافعو په دې کښې اختلاف دې هغه داسې وائی ﴿ يقف كل صبى بين رجلين ليتعلموا منهم الصلاة (وكذا فى الميزان للشعرانى) په حديث الباب کښې د جمهورو د مسلک تائيد دې او صاحب منهل مالکی ليکلي دی چه که صبی يو وی نو د سړو سره دې اودريږی په شاته صف کښې دې ځانله نه اودريږی.[1]

## بَابُ صَفِّ النِّسَاءِ وَكَرَاهِيَةِ التَّأَخُّرِ عَنِ الصَّفِّ الْأَوَّلِ

**باب دې په بيان د صف د زنانوکې او کراهيت د وروستوالي د اولنې صف نه**

[۶۷۸][2] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّاءَ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خَيْرُ صُفُوفِ الرِّجَالِ أَوَّلُهَا وَشَرُّهَا آخِرُهَا وَخَيْرُ صُفُوفِ النِّسَاءِ آخِرُهَا وَشَرُّهَا أَوَّلُهَا".

**ترجمه:** د ابو هريرة رضی الله عنه نه رويت دی، هغه وئيلی دی، چې فرمائيلی دی رسول الله ﷺ: بهترين صف د سړو اولنی دی او بدترين ئې اخيرنی دی، او غوره د صفونو د ښځو نه اخيرنی دی او بدترين ئې اولنی دی.

**تشريح: قوله:** ﴿ خير صفوف الرجال اولها وشرها اخرها ﴾ ابن العربی فرمائی:

۱: دا په دې وجه چه په دې کښې سبقت الی الخير دې،

۲: دويم په دې وجه چه مقدم مسجد افضل دې د موخر مسجد نه،

۳: دريم دا چه په دې کښې د امام قرب دې. ﴿ وخير صفوف النساء اخرها وشرها اولها ﴾ ځکه چه په اول صورت کښې د سړو سره قرب دې او په دويم صورت کښې د هغوی نه بُعد (لرې والې) دې، هم دغه شان سړی په تقدم مامور دی او زنانه د تاخر او احتجاب.

[۶۷۹][3] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ عَمَّارٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَزَالُ قَوْمٌ يَتَأَخَّرُونَ عَنِ الصَّفِّ الْأَوَّلِ حَتَّى يُؤَخِّرَهُمُ اللَّهُ فِي النَّارِ".

**ترجمه:** د عائشې رضی الله عنها نه روايت دې، هغې وئيلی دی، چې فرمائيلی دی رسول الله ﷺ همیشه دی يو قوم چې وروسته والی کوی د اول صف نه تردې چې الله ئې وروسته کړی په اور کښې.

**تشريح: قوله:** ﴿ لا يزال قوم يتاخرون عن الصف الاول حتى يوخرهم الله فى النار ﴾ يعنی بعض خلق

---

[1]: او د امام احمد رحمه الله مذهب هغوی دا ليکلي دې چه صبی لره د سړو سره په امام پسې شاته اودريدل نه دی پکار، د عمر رضی الله عنه نه هم روايت دې چه که هغه به يو ماشوم په صف کښې اوليدو نو هغه به ئې لرې کولو، په ظاهره کښې به مراد دا وی چه هغه به ئې په روستو صف کښې اودرولو.

[2]: صحيح مسلم/الصلاة ۲۸ (۴۴۰)، سنن الترمذي/الصلاة ۵۲ (۲۲۴)، سنن النسائي/الإمامة ۳۲ (۸۲۱)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۵۲ (۱۰۰۰)، (تحفة الأشراف: ۱۲۶۳۷، ۱۲۵۸۹، ۱۲۵۹۶، ۱۲۷۰۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۴۷، ۳۳۶، ۳۴۰، ۳۶۶، ۴۸۵)، سنن الدارمي/الصلاة ۵۲ (۱۳۰۴) (صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۷۸۶) (صحيح)

په اول صف نه شاته پاتې کيدو د وجې نه او د هغې د اهتمام د ترک کولو په وجه باندې اخر يعنى د انجام په لحاظ سره جهنم کښې داخل کړې شى، يا به ئې الله پاک د جهنم نه روستو راوباسى.

مطلب دا دې چه هميشه اول صف پريخودل او مسجد ته ناوخته تلل د داسې قبائحو د ارتکاب سبب جوړيدې شى کوم چه مفضى الى النار وى، نه دا چه صرف د صف اول په ترک باندې انسان د اور مستحق کيږى.

[٦٨٠]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْخُزَاعِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الْأَشْهَبِ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى فِي أَصْحَابِهِ تَأَخُّرًا، فَقَالَ لَهُمْ: "تَقَدَّمُوا فَأْتَمُّوا بِي، وَلْيَأْتَمَّ بِكُمْ مَنْ بَعْدَكُمْ، وَلَا يَزَالُ قَوْمٌ يَتَأَخَّرُونَ حَتَّى يُؤَخِّرَهُمُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ".

**ترجمه:** د ابو سعيد الخدرى رضی الله عنه نه روايت دې، بيشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم وليده په خپلو ملګرو کښې وروستوالى، نو ويې وئيل هغوى ته: مخکښې شئ ماپسې اقتداء وکړئ، او اقتداء دې وکړى تاسو پسې هغه څوک چې تاسو نه وروسته دې، او هميشه يو قوم وروسته والى کوى تردې چې الله تعالى ئې وروسته کړي.

## شرح حديث

**قوله:**﴿ رأى فى اصحابه تاخرا فقال لهم : تقدموا فاتموا بى ولياتم بكم من بعدكم ﴾ (٢) يعنى وړاندې کيدو سره په اول صف کښې د مونځ کولو کوشش کوئ ددې دپاره چه زما مونځ ته کتلو سره اتباع اوکړې شئ او بيا شاته صف والا تاسو ته کتلو سره ستاسو اتباع اوکړى يعنى ستاسو د وجې نه هغه زما تابعدارى اوکړې شى، او دا مطلب هم کيدې شى چه تاسو په ښه طريقه باندې زما تابعدارى کوئ ددې دپاره چه روستو راتلونکى (تابعين) ستاسو تابعدارى اوکړى (ذكر المعنيين القارى فى المرقاة) او امام شعبى رحمه الله ددې حديث نه په يوه بله مسئله کښې استدلال کړې دې يعنى د اقتداء بالماموم جواز، چه وړاندې صف والا به د امام د اقتداء نيت کوى او شاته صف والا دې د وړاندې صف والو د اقتداء نيت اوکړى، او د علامه عينى رحمه الله رائې دا ده چه هم دې طرف ته د امام بخارى رحمه الله ميلان هم دې، ځکه چه هغه په دې باندې ترجمه قائم کړې ده ﴿ باب الرجل ياتم بالامام وياتم الناس بالماموم ﴾ خو دا ضرورى نه ده چه د امام بخارى رحمه الله مراد دې هم دا وى کوم چه شعبى خيال کوى، بلکه د بخارى په نزد هم د حديث محمل هم هغه وى کوم چه جمهورو اختيار کړې دې، د حضرت ګنګوهى رائې په لامع کښې هم دا ده.

[١]: صحيح مسلم/الصلاة ٢٨ (٤٣٨)، سنن النسائي/الإمامة ١٧ (٧٩٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٤٥ (٩٧٨)، (تحفة الأشراف: ٤٣٠٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩/٣، ٣٤، ٥٤) (صحيح)

[٢]: ملا على قارى رحمه الله ليکلي دى چه د تاخر نه مراد تاخر عن الصف الاول او تاخر عن العلم دواړه کيدې شى، فعلي الاول معناه ليصف العلماء في الصف الاول وليقف من دونهم في الصف الثاني فان الصف الثاني يقتدون بالصف الاول ظاهرا لا حكما وعلي الثاني المعني ليتعلم كلكم مني احكام الشريعة ويتعلم التابعون منكم وهكذا قرنا بعد قرن ﴾

## بَابُ مُقَامِ الْإِمَامِ مِنَ الصَّفِّ

### باب دي په بيان د ځای د ودريدو د امام کښ د صف نه

يعنی امام لره په صف کښې چرته اودريدل پکار دی، په نورو الفاظو د امام د قيام د ځائي د مقتديانو د صف سره څه نسبت پکار دی، پس د حديث نه معلومه شوه چه هغه نسبت د تنصيف پکار دې چه امام داسې اودريږی چه د هغه نه شاته د مقتديانو صف د هغه ښی او ګس طرف ته برابر وی.لکه چه فرمائی: وسطوا الامام.

[٦٨١]()حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ بَشِيرِ بْنِ خَلَّادٍ، عَنْ أُمِّهِ، أَنَّهَا دَخَلَتْ عَلَى مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ الْقُرَظِيِّ فَسَمِعَتْهُ، يَقُولُ: حَدَّثَنِي أَبُو هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَسِّطُوا الْإِمَامَ وَسُدُّوا الْخَلَلَ".

**ترجمه**: حديث بيان کړې دې ابو هريرة، هغه وئيلی دی، چې فرمائيلی دی رسول الله ﷺ: مينځ کښې کړئ امام او خاليګاه بند کړئ.

### شرح حديث

پس فرمائی ﴿ وسطوا الامام ﴾ يعنی امام په مينځ کښې ساتئ، او دا هله کيدې شی چه کله مقتديان دواړو طرفونو ته برابر وی او په دې صورت کښې به دا لفظ ﴿ وسط ﴾ د سين په سکون سره وی، او بعض وائی چه دا ﴿ وسط ﴾ بفتح السين دې چه د هغې معنی افضل ده. ﴿وکذلک جعلناکم امة وسطا ﴾ ويقال ﴿ فلان وسط القوم ای خيرهم ﴾ لهذا د حديث معنی شوه ﴿اجعلوا امامکم خيرکم ﴾، يعنی څوک چه په تاسو کښې افضل وی هغه خپل امام اوګرځوئ، او بعض وائی چه دا حديث د زنانو په حق کښې دې پس د زنانو په امامت کښې هم داسې وی چه هغه په مينځ کښې اودريږی، هم دغه شان امام ابويوسف رحمه الله هم په خپل مسلک باندې استدلال کوی چه که مقتديان دوه وی نو ښی او ګس طرف ته دې اودريږی. (من هامش البذل)

## بَابُ الرَّجُلِ يُصَلِّي وَحْدَهُ خَلْفَ الصَّفِّ

### باب دې په بيان د سړي کښې چې مونځ کوي ځانله وروسته د صف نه

[٦٨٢]()حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَحَفْصُ بْنُ عُمَرَ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ رَاشِدٍ، عَنْ وَابِصَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يُصَلِّي خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ فَأَمَرَهُ أَنْ يُعِيدَ"، قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ: الصَّلَاةَ.

**ترجمه**: د وابصة نه روايت دې، بيشکه رسول الله ﷺ وليدلو يو سړی چې مونځ ئې کولو وروسته دصف نه ځانله نو امريې ورته وکړو چې بيائې وکړه.وئيلی دی سليمان بن حرب: مونځ.

**تشريح**: **قوله**:﴿ ان رسول الله صلی الله عليه وسلم رای رجلا يصلی خلف الصف وحده فامره ان يعيد﴾ انفراد خلف الصف د جمهورو په نزد مکروه دې، او د امام احمد او امام اسحاق بن

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٦٠٠) (ضعيف)

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ٥٨ (٢٣٠)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٥٤ (١٠٠٤)، (تحفة الأشراف: ١١٧٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد ٤/٢٢٧، ٢٢٨، سنن الدارمي/الصلاة ٦١ (١٣٢٣) (صحيح)

راهويه په نزد مفسد صلاة دي، لهذا د جمهورو په نزد به د اعادې حکم په طريقه د استحباب وی او د حنابله په نزد په طريقه د وجوب شو[1] او د جمهورو مستقل دليل په وړاندې باب کښې راروان دې، دلته سوال دا دې چه اخر يواځې سړې به څه کوی؟ جواب دا دې چه يو کس دې راکاږی، د احنافو او شوافعو مذهب هم دا دې ځکه چه د طبراني په يو روايت کښې يو زيادت دې ﴿ هلا دخلت في الصف او جررت احدا ﴾ لكنها ضعيفة. مالک او احمد د جر قائل نه دی هم دغه شان مفتی به قول زمونږ په نزد هم دا دې چه جذب دې نه کوی ځکه چه په دې کښې د بد لګيدو او فتنې ويره ده. لقلة العلم بالمسائل.

## بَابُ الرَّجُلِ يَرْكَعُ دُونَ الصَّفِّ

### باب دې په بيان د سړې کې چې رکوع کوې اخوا د صفن نه

[۶۸۳]([2]) حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، أَنَّ يَزِيدَ بْنَ زُرَيْعٍ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ زِيَادٍ الْأَعْلَمِ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ، أَنَّ أَبَا بَكْرَةَ حَدَّثَ أَنَّهُ دَخَلَ الْمَسْجِدَ وَنَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاكِعٌ، قَالَ: فَرَكَعْتُ دُونَ الصَّفِّ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "زَادَكَ اللَّهُ حِرْصًا وَلَا تَعُدْ".

**ترجمه**: حديث بيان کړې دې حسن، بيشکه ابابکرة حديث بيان کړې دې، بيشکه هغه ننوتلو مسجد ته او د الله نبی ﷺ په رکوع کښې وو، هغه وايي: ما رکوع وکړه اخوا د صف نه نو وويل نبی ﷺ: زيات دې کړی الله تعالى تالره حرص او دآسې مه کوه.

**تشريح**: دا باب د ماقبل سره مربوط دې، مسئله او اختلاف په مخکښې باب کښې تير شو، په دې باب کښې مصنف د ابوبکره رضی الله عنه حديث ذکر کړې دې چه د هغې مضمون دا دې چه يوه ورځ هغه مسجد ته د مونځ دپاره داخل شو او جماعت ولاړ وو او رسول الله ﷺ په رکوع کښې وو نو هغه سوچ اوکړو چه که ما صف ته د رسيدو نه پس د مونځ نيت اوتړلو نو دا رکعت به رانه لاړ شی په دې وجه هغه صف ته د رسيدو نه مخکښې نيت اوتړو او د رکوع په هيئت کښې تلوسره په صف کښې شامل شو، رسول الله ﷺ د مونځ نه د فارغ کيدو نه پس اوفرمائيل: ﴿ زادک الله حرصا ولا تعد ﴾ ګويا د هغه د عزم او جذبې تحسين ئې اوفرمائيلو چه د نيکئ د حاصلولو حرص خو دې مبارک شه خو چونکه دا صورت کوم چه تا اختيار کړې دې دا د قاعدې خلاف دې په دې وجه بيا داسې مه کوه، دا حديث د جمهور دليل دې په پورته ذکر شوې مسئله کښې، ځکه چه دلته هم د تحريمه په وخت انفراد خلف الصف بيا موندلې شو، ابن حبان کوم چه يو مشهور محدث دې هغه په دې مسئله کښې د حنابله سره دې، خو هغه دا خاص صورت د مسئلې نه مستثنى کړې دې هم ددې حديث په وجه باندې.

---

[1]) ابن الهمام هم دا خبره ليکلې ده او زمونږ د بعض فقهاء کرامو په نزد اعاده صلاة ته واجب هم ليکلې ده ځکه چه انفراد خلف الصف مکروه تحريمی دې ﴿ واجاب عنه صاحب البدائع بوجه اخر حيث قال وامره بالاعادة شاذ ولو صح فمحمول علي انه كان بينه وبين الصف ما يمنع الاقتداء وفي الحديث ما يدل علي ذلك لانه قال في ناحية من الارض. اهـ د هغوی د کلام نه هم معلوميږی چه امر د وجوب دپاره دې.

[2]): صحيح البخاري/الأذان ١١٤ (٧٨٣)، سنن النسائي/الإمامة ٦٣ (٨٧٢)، (تحفة الأشراف: ١١٦٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣٩، ٤٢، ٤٥، ٤٦، ٥٠) (صحيح)

[٦٨٤]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا زِيَادٌ الْأَعْلَمُ، عَنِ الْحَسَنِ، أَنَّ أَبَا بَكْرَةَ جَاءَ وَرَسُولُ اللَّهِ رَاكِعٌ فَرَكَعَ دُونَ الصَّفِّ ثُمَّ مَشَى إِلَى الصَّفِّ، فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاتَهُ، قَالَ: أَيُّكُمُ الَّذِي رَكَعَ دُونَ الصَّفِّ ثُمَّ مَشَى إِلَى الصَّفِّ؟ فَقَالَ أَبُو بَكْرَةَ: أَنَا. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "زَادَكَ اللَّهُ حِرْصًا وَلَا تَعُدْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: زِيَادٌ الْأَعْلَمُ زِيَادُ بْنُ فُلَانِ بْنِ قُرَّةَ وَهُوَ ابْنُ خَالَةِ يُونُسَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ.

**ترجمه**: بیشکه ابوبکرة راغې او رسول الله ﷺ په رکوع کښې وو، نو هغه رکوع وکړه اخوا د صف نه بیا لاړلو صف ته، هرکله چې نبی ﷺ مونځ خلاص کړو، نو ویې وئیل: کوم یو په تاسو کښې رکوع وکړه اخوا د صف نه بیا لاړلو صف ته؟ ابوبکرة ووېل: ما، نو نبی ﷺ ووېل: الله دې ستا حرص زیات کړې، بیا داسې مه کوه. وئیلی دی ابوداود: زیاد الاعلم هغه زیاد بن فُلان بن قرة دی او هغه خوی د خاله د یونس بن عبید دی.

**تشریح: قوله:** ﴿ولا تعد﴾ دا لفظ درې طریقو سره لوستلې شوې دې. ﴿لا تعد﴾ صیغة النهی من العود، ﴿لا تعد﴾ د دال په ضمې سره، صیغة النهی من العود یعنی د بیا دپاره داسې په منډه مه راځه، لا تعد صیغة النهی من الاعادة ای لا تعد تلک الصلاة.

**فائده**: د حدیث الباب راوی ابوبکره رضی الله عنه دې چه د هغه نوم نفیع بن الحارث دې، دا طائفی دې، صحابه کرامو چه کله د طائف د قلعه محاصره اوکړه نو هغه ددې قلعه د چهت نه رسئ رازوړندولو سره په هغې باندې لاندې راغلې وو او په مسلمانانو کښې شامل شوې وو، ﴿بکره﴾ رسئ ته وائی هم دا د هغه د کنیت وجه ده.

## تفریع أبواب السترة

### د سترې باره کښې ابواب (احکام ومسائل)

## بَابُ مَا يَسْتُرُ الْمُصَلِّي

### باب دې په بیان د هغې کې چې ستره جوړیږي د مصلي دپاره

د دې ځائې نه ابواب السترہ شروع کیږی، د سترې متعلق مصنف ډیر ابواب قائم کړې دی، د سترې په باره کښې ډیر بابونه او مسائل دی چه د هغې په شروع کښې پیژندل ضروری دی، د حضرت شیخ په تقریر ابوداود السعی المحمود کښې دی چه صاحب د البحر الرائق د سترې متعلق تقریبا اولس بحثونه او مسائل ذکر کړې دی، امام ابوداود د هغې نه څو بیان کړې دی او هم دا خبره حضرت شیخ په اوجز المسالک کښې هم لیکلې ده.

### د سترې متعلق لس بحثونه

۱: معنی السترة لغة وشرعا، ۲: حکم السترة، ۳: قدرها طولا،
۴: نفعها لمن، ۵: حریم المصلی، ۶: قدر الفاصلة بین المصلی والسترة،
۷: الحکمة فیها، ۸: السترة بالراحلة، ۹: السترة بالخط، ۱۰: درا المار.

---

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۶۵۹) (صحیح)

## البحث الاول: معنى السترة لغة وشرعا

السترة في الاصل "ما يستر به مطلقا ثم غلب على ما ينصب قدام المصلي (طحطاوي) يعني مطلق هغه څيز چه د هغې په ذريعه د دوه څيزونو ترمينځه پرده راشي، او د فقهاء کرامو په عرف کښې هغه څيز ته وئيلې شي کوم چه د مونځ کونکي مخې ته قائم کړې شي د تيريدونکو نه د حيلولت دپاره.

## البحث الثاني: حكم السترة

سُتره قائمول د ائمهٔ اربعه په نزد سنت ده، ابن العربي د امام احمد مذهب د وجوب ستره نقل کړې دې، حضرت شيخ په اوجز کښې ليکي چه دا صحيح نه ده بلکه هغه په دې کښې د جمهورو سره دې.

## البحث الثالث: قدرها طولا

د سترې مقدار په اوږدوالي او پلن والي کم از کم يو ذراع دې، په حديث کښې راځي ﴿مثل مؤخرة الرحل واما عرضا فقيل ينبغي ان يكون في غلظ اصبع﴾

## البحث الرابع: نفعها لمن

د سترې فائده او نفع: وئيلې شوي دي چه د مونځ کونکي طرف ته راجع ده ددې دپاره چه د مونځ خشوع زائل نه شي، که ستره ئې قائم نه کړه نو د خلقو د تيريدو د وجې نه به خشوع ضائع شي ﴿ ولئلا يحتاج الى الدرء ﴾ يعني تيريدونکي ته د لرې کولو ضرورت راپيښ نه شي، بل قول دا دې چه د هغې نفع تيريدونکي طرف ته عائد ده ځکه چه اوس به هغه په تيريدو سره ګناهګار نه وي خو په دواړو فائدو کښې منافات څه دې، لهذا دا به اووئيلې شي چه په ستره کښې دا دواړه قسم فائدې دي.

## البحث الخامس: حريم المصلي

د حريم مصلي مطلب دا دې چه د مونځ کونکي مخې ته هغه حصه چه د هغې تيريدل د ستره نه کيدو په صورت کښې ممنوع دې، د جمهور علماء کرامو په نزد دا د درې ذراع په اندازه دې کوم چه تقريبا د مصلي د محل قيام نه د موضع سجود پورې دې، لهذا دهغې د وراء نه به تيريدل ناجائز وي، او د احنافو په نزد په يو روايت کښې په اندازه د دوه صفونو دې او يو روايت په اندازه د درې صفونو دې، دا خو شو په اعتبار د صحراء يعني ښکاره ميدان کښې، او په مسجد کښې دننه د مونځ کونکي مخې ته تيريدل خو مطلقا جائز نه دي، ګويا ټول مسجد حريم مصلي دې که هغه مسجد وړوکې وي يا لوئې وي، او وئيلې شوې دي چه په دواړو کښې فرق دې، په مسجد صغير کښې خو مرور مطلقا ممنوع دې او مسجد کبير د صحراء په حکم کښې دې، يو قول په حريم مصلي کښې بل دې کوم چه شيخ ابن الهمام او صاحب بدائع اختيار کړې دې يعني "منتهى بصر المصلي لو صلى صلاة الخاشعين" يعني خشوع او خضوع سره د مونځ کولو په صورت کښې بغير د قصد نه د زمکې د کومې حصې پورې چه په نظر راځي هغه حصه حريم مصلي دې، لهذا په دومره حصه کښې نه شي تيريدې.

## البحث السادس : قدر الفاصلة بين المصلي والسترة

په دې سلسله کښې وړاندې باب راروان دې، "باب الدنو من السترة" د مصلی او سترې ترمینځه فاصله کم نه کم غوره ده ددې دپاره چه لاره تنګه نه شی او تیریدونکی په تکلیف نه شی، بهرحال په دې سلسله کښې دوه احادیث راغلې دی یو هغه کوم چه په دې باب کښې ذکر شوې دې ﴿ كان بين مقام النبي صلى الله عليه وسلم وبين القبلة ممر عنز ﴾ یعنی د بیزې د تیریدو په اندازه فاصله، چه په کوم ځائې کښې بیزه تیریدې شی، او بل حدیث دا دې چه رسول اللهﷺ په کعبه کښې مونځ ادا اوفرمائیلو ﴿ وبينه وبين القبلة ثلثة اذرع ﴾ یعنی د رسول اللهﷺ او د قبلې د دیوال ترمینځه د درې ذراع فاصله وه او ممر العنز په قدر د یو ذراع وی، په ظاهره دې دواړو کښې تخالف دې چه د هغې دوه جوابونه دی، اول دا چه رومبې روایت په حالت د سجود باندې محمول دې یعنی موضع سجود او د سترې ترمینځه په قدر د یو ذراع فاصله وی، او بل روایت کښې محل قیام او د سترې ترمینځه فاصله مراد ده، دویم جواب ددې هغه دې کوم چه داؤدی ورکړې دې چه کم از کم فاصله په قدر د ممر شاة دې او زیات نه زیات درې ذراع.

## البحث السابع : الحكمة فيها

په ستره قائم کولو کښې حکمت "قيل هي كف البصر عما ورائها وجمع الخاطر بربط الخيال بها" یعنی یو څیز لره د مخامخ کولو نه بغیر په ښکاره میدان کښې په مونځ کولو سره نظر په یو ځائې باندې نه ایساریږی، او چه کله یو خاص نااشنا شان څیز مخامخ وی نو په هغې باندې ایساریږی نو هم په دې وجه باندې ستره قائمولې شی ددې دپاره چه نظر او خیال مجتمع وی، هم دغه شان بل حکمت په دې کښې "اعلام موضع السجود" یعنی حریم مصلی کوم چه موضع السجود دې د هغې په نخښه کول دی چه په هغې کښې څوک تیر نه شی.

## البحث الثامن : السترة بالراحلة

ابن رسلان لیکی چه د امام شافعیؒ په نزد صلاة الی الدابه مکروه دې او هغه حدیث په ضرورت باندې محمول کړې دې او د ضرورت په وخت جائز دې هم دغه شان د مالکیانو په نزد دابه لره ستره جوړول خلاف مستحب دی (صرح به الدسوقي) او د احناف او حنابله په نزد په دې کښې هیڅ باک نشته كما في الاوجز ددې سلسلې مزید فوائد په باب الصلاة الى الراحلة کښې راځی.

## البحث التاسع : السترة بالخط

د دې باب ددې نه روستو متصلا راروان دې هغه دا چه که د سترې دپاره یو څیز ملاؤ نه شی نو څه به کوی؟ په یو حدیث کښې دی کوم چه وړاندې راروان دې چه رسول اللهﷺ اوفرمائیل ﴿ فليخطط خطا ﴾ چه خپلې مخې ته دې په زمکه باندې کرښه راکاږی، هم ددې حدیث په بناء باندې امام احمد د ستره بالخط قائل دې، اګر چه حدیث ضعیف دې او خپله د امام احمدؒ نه نقل دی "حديث الخط ضعيف" خو ددې باوجود ددې قائل دې، امام

مالک د سترة بالخط قائل دي، د امام شافعي په دې کښې دوه اقوال دی. او د احنافو په نزد مشهوره خو هم دا ده چه خط له اعتبار نشته ځکه چه هغه د لرې نه په نظر نه راځي او د سترې چه کومه فائده ده یعنی اعلام موضع السجود هغه په دې سره نه حاصلیږی خو نور فوائد ترې حاصلیدې شی، کف البصر عما ورائها وغیره. بیا په دې کښې دا اختلاف دې چه که خط راښکلې شی نو څنګه به وی؟ په دې کښې دوه اقوال دی، عرضا مثل الهلال والمحراب وقیل طولا.

## البحث العاشر : درا المار

د مونځ کونکی د هغه مخې ته تیریدونکی له اودرول د لاس په اشارې سره او بالتسبیح د جمهور علماء کرامو او ائمه ثلاث په نزد مستحب دې او د احنافو مسلک هم په ظاهره کښې هم دا دې لکه چه د هدایه شرح وقایه وغیره کتابونو نه معلومیږی، په موطاء د امام محمد کښې هم دا لیکلي دی ویدراء المار... خو په در مختار کښې لیکلي دی چه درء المار د رخصت درجه ده افضل او عزیمت ترک درء دې او په بدائع کښې لیکلي دی چه بعض مشائخو درء ته رخصت وئیلي دې او عدم درء ته ئې افضل.
ددې نه معلومه شوه چه د درمختار والاقول دبعض مشائخونه منقول دې "تلک عشرة کاملة"

## البحث الحادي عشر :

یوه مسئله بله رایاده شوه چه په مسجد حرام کښې د سترې حاجت شته یا نه، پس امام بخاری رحمه الله هم ددې متعلق باب قائم فرمائیلي دې،باب السترة بمکة وغیرها،، او امام ابوداؤد دې سره متعلق باب په کتاب الحج کښې قائم کړې دې چه دهغې الفاظ دادی: باب في مکة،، او ددې باب لاندې مصنف د مطلب بن ابی وداعه حدیث ذکرکړې دې چه هغوی نبی ﷺ اولیده چه په مسجد حرام کښې ئې مونځ کولو.﴿ والناس یمرون بین یدیه لیس بینه وبین الکعبة سترة ﴾ امام ابوداود رحمه الله چونکه حنبلی دې په دې وجه هغه دا ثابته کړې ده چه په مکه کښې د سترې حاجت نشته، د حنابله راجح قول هم دا دې، او د جمهور علماء کرامو په نزد په دې مسئله کښې مکه وغیره مکه برابر دی، یو قول د احنافو په نزد دا هم دې چه په مسجد حرام کښې دې د مونځ کونکی مخې ته تیریدونکي منع نه کړې شی، او دا ئې هم لیکلي دی چه چونکه مسجد کبیر د صحراء په حکم کښې دې لهذا په مسجد حرام کښې د موضع سجود نه جدا تیریدلې شی، دا یولس بحثونه شو احد عشر کوکبا.

## البحث الثاني عشر

د سترې په مسائلو کښې یوه بله مسئله رایاده شوه چه د هغې دپاره مصنف ډیر وراندې تلو سره باب قائم کړې دې "باب سترة الامام سترة لمن خلفه" جمهور علماء ثلاث خو هم ددې قائل دې چه کومه ستره د امام دپاره دې هم هغه د قوم دپاره ده د مالکیانو په دې کښې اختلاف دې کوم چه به مونږ هم په دې باب کښې بیانوو، اوس دا دولس مسائل شو. وبحثنا منهم اثني عشر نقیبا.

[٦٨٥]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ الْعَبْدِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ طَلْحَةَ، عَنْ أَبِيهِ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا جَعَلْتَ بَيْنَ يَدَيْكَ مِثْلَ مُؤْخِرَةِ الرَّحْلِ فَلَا يَضُرُّكَ مَنْ مَرَّ بَيْنَ يَدَيْكَ".

**ترجمه**: د طلحة بن عبيد الله نه روايت دې هغه وئيلي دي، چې فرمائيلي دي رسول الله ﷺ: کله چې تا کيخوده مخې خپلې ته په شان د لرګې د پالان نو نقصان نشې رسولې تاته هغه څوک چې ستا په مخه کښې تيرېږي.

**تشريح**: **قوله**:﴿ اذا جعلت بين يديک مثل موخرة الرحل ﴾ په مؤخرة کښې درې لغات نور دي ﴿مؤخَّرة، مؤخَره، آخِرَه ﴾ د کجاوې په شاته حصه کښې يو لرګې راوتلې وی، يستند اليه الراکب چه هغې ته سورتکيه لګوی دا د يوذراع په اندازه وی او وئيلې شوې دی چه يو ثلث کم يو ذراع.

[٦٨٦]([2])حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، قَالَ "آخِرَةُ الرَّحْلِ ذِرَاعٌ فَمَا فَوْقَهُ".

**ترجمه**: د عطاء نه روايت دې هغه وئيلي دي: وروستنی (لرګی) د پالان هغه ګز دی او يا د ګز نه زيات.

[٦٨٧]([3])حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا خَرَجَ يَوْمَ الْعِيدِ أَمَرَ بِالْحَرْبَةِ فَتُوضَعُ بَيْنَ يَدَيْهِ فَيُصَلِّي إِلَيْهَا وَالنَّاسُ وَرَاءَهُ، وَكَانَ يَفْعَلُ ذَلِكَ فِي السَّفَرِ، فَمِنْ ثَمَّ اتَّخَذَهَا الْأُمَرَاءُ".

**ترجمه**: د ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې، بيشکه رسول الله ﷺ وو کله چې به وتلو په ورځ د اختر نو امر به ئې وکړو په نېزه باندې کيخودلې به شوه د هغه په مخکې نو مونځ به ئې کولو هغې ته، او خلک به د هغه شاته وو، او وو چې کول به ئې دا په سفر کښې د دېنه وجې نه عادت جوړ کړو دې لره اميرانو.

**تشريح**: عطاء فرمائی چه د پالان شاته لرګې د يو ذراع (لاس) برابر يا د هغې نه لږ شان زيات وی.

**قوله**: ﴿ ثم اتخذها الامراء ﴾ د حديث مضمون دا دې چه رسول الله ﷺ به کله په يو سفر باندې تلو نو خان سره به ئې يوه حربه او په وړاندې روايت کښې عنزه راروانه ده، يعنی وړه نيزه به ئې خان سره ساتله ددې دپاره چه د مونځ په وخت د سترې په کار راشي او ددې نه علاوه ترې نور کارونه هم اخستلې کيدې شو، بيا وړاندې راوی وائی چه چونکه د رسول الله ﷺ معمول د نيزې خان سره د ساتلو وو، هم په دې وجه روستو اميرانو هم دا طرز اختيار کړو، هغوی به هم خان سره په سفر کښې حربه ساتله.

[1]): صحيح مسلم/الصلاة ٤٧ (٤٩٩)، سنن الترمذي/الصلاة ١٣٨ (٣٣٥)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٣٦ (٩٤٠)، (تحفة الأشراف: ٥٠١١) وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٦١، ١٦٢) (صحيح)

[2]): تفرد به ابو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٠٦٣) (صحيح)

[3]): صحيح البخاري/الصلاة ٩٠ (٤٩٤)، والعيدين ١٣ (٩٧٢)، ١٤ (٩٧٣)، صحيح مسلم/الصلاة ٤٧ (٥٠١)، تحفة الأشراف (٧٩٤٠)، وقد أخرجه: سنن النسائي/العيدين ٩ (١٥٦٦)، سنن ابن ماجه/ إقامة الصلاة ١٦٤ (١٣٠٥)، مسند احمد (٢/٩٨، ١٤٢، ١٤٥، ١٥١)، سنن الدارمي/ الصلاة ١٢٤ (١٤٥٠) (صحيح)

[٦٨٨]()حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَوْنِ بْنِ أَبِي جُحَيْفَةَ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى بِهِمْ بِالْبَطْحَاءِ وَبَيْنَ يَدَيْهِ عَنَزَةٌ الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ وَالْعَصْرَ رَكْعَتَيْنِ يَمُرُّ خَلْفَ الْعَنَزَةِ الْمَرْأَةُ وَالْحِمَارُ".

**ترجمه:** ابو جحيفة د خپل پلار نه روايت کوي، بيشکه نبي ﷺ مونځ وکړو په بطحاء کښې او مخې د هغه ته نيزه وه د ماسپخين دوه رکعاته او د مازيګر دوه رکعاته، تيريدل به اخوا د نيزې نه ښځه او خر.

## بَابُ الْخَطِّ إِذَا لَمْ يَجِدْ عَصًا

### باب دې په بيان د خط کې کله چې امسا نه وي

د دې سره متعلق کلام په شروع کښې راغلې دې.

[٦٨٩]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أُمَيَّةَ، حَدَّثَنِي أَبُو عَمْرِو بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حُرَيْثٍ، أَنَّهُ سَمِعَ جَدَّهُ حُرَيْثًا يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فَلْيَجْعَلْ تِلْقَاءَ وَجْهِهِ شَيْئًا، فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَلْيَنْصِبْ عَصًا، فَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهُ عَصًا فَلْيَخْطُطْ خَطًّا ثُمَّ لَا يَضُرُّهُ مَا مَرَّ أَمَامَهُ".

**ترجمه:** د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې. بيشکه رسول الله ﷺ ويلي دي: هرکله چې مونځ کوي يو کس ستاسو نه نو ږدي دې مخامخ د مخ خپل ته څه شی، که څه شی پيدا نه کړی نو امسا دې ودروې، او که امسا ورسره نه وه نو خط دې راکاږی، بيا ضرر نشی رسولی هغه ته هغه څه چې د ده مخې ته تيرېږي.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثني ابو عمرو بن محمد بن حريث ﴾ د دې حديث په سند کښې دا راوی مجهول دې، او وړاندې په سند کښې ددې په ځائې ابو محمد بن عمرو حريث راروان دې ګويا د هغه نوم هم متعين نه دې.

[٦٩٠]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَلِيٌّ يَعْنِي ابْنَ الْمَدِينِيِّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أُمَيَّةَ، عَنْ أَبِي مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ، عَنْ جَدِّهِ حُرَيْثٍ رَجُلٍ مِنْ بَنِي عُذْرَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ أَبِي الْقَاسِمِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَذَكَرَ حَدِيثَ الْخَطِّ، قَالَ سُفْيَانُ: لَمْ نَجِدْ شَيْئًا نَشُدُّ بِهِ هَذَا الْحَدِيثَ وَلَمْ يَجِئْ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، قَالَ: قُلْتُ لِسُفْيَانَ: إِنَّهُمْ يَخْتَلِفُونَ فِيهِ فَتَفَكَّرَ سَاعَةً، ثُمَّ قَالَ: مَا أَحْفَظُ إِلَّا أَبَا مُحَمَّدِ بْنَ عَمْرٍو، قَالَ سُفْيَانُ: قَدِمَ هَاهُنَا رَجُلٌ بَعْدَ مَا مَاتَ إِسْمَاعِيلُ بْنُ أُمَيَّةَ فَطَلَبَ هَذَا الشَّيْخَ أَبَا مُحَمَّدٍ حَتَّى وَجَدَهُ فَسَأَلَهُ عَنْهُ فَخَلَطَ عَلَيْهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد، سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ سُئِلَ عَنْ وَصْفِ الْخَطِّ غَيْرَ مَرَّةٍ، فَقَالَ: هَكَذَا عَرْضًا مِثْلَ الْهِلَالِ، قَالَ أَبُو دَاوُد، وَسَمِعْتُ مُسَدَّدًا، قَالَ: قَالَ ابْنُ دَاوُدَ: الْخَطُّ بِالطُّولِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَسَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ وَصَفَ الْخَطَّ غير مرة، فقال هكذا يعني بالعرض حوراً دوراً مثل الهلال، يعني منعطفاً.

[1]: صحيح البخاري/الوضوء ٤٠ (١٨٧)، والصلاة ١٧ (٣٧٦)، ٩٣ (٤٩٥)، ٩٤ (٤٩٩)، والمناقب ٢٣ (٣٥٥٣)، واللباس ٣ (٥٧٨٦)، ٤٢ (٥٨٥٩)، (تحفة الأشراف: ١١٨١٠)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الصلاة ٤٧ (٢٥٠)، سنن الترمذي/الصلاة ٣٢ (١٩٧)، سنن النسائي/الطهارة ١٠٣ (١٣٧)، والأذان ١٣ (٦٤٤)، والزينة ١٢٣ (٥٣٨٠)، سنن ابن ماجه/الأذان ٣ (٧١١)، مسند احمد (٣٠٨/٤)، سنن الدارمي/الصلاة ٨ (١٢٣٥)، ١٢٤ (١٤٤٩) (صحيح)

[2]: سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ٣٦ (٩٤٣)، (تحفة الأشراف: ١٢٢٤٠)، وقد أخرجه: حم (٢٤٩/٢، ٢٥٤، ٢٦٦) (ضعيف)

[3]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٢٢٤٠) (ضعيف)

**ترجمه**: د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې، هغه وئيلي دي، ذکر ئې کړو حديث د خط، وئيلي دي سفيان: مونږ هيڅ دليل پيدا نه کړو چې دا حديث ورباندې مضبوط کړو. او نه دې راغلي دا مګر د همدې سند سره، هغه وئيلي دي ما وويل سفيان ته: دوی (محدثين) خو په ده (ابومحمد) کښې اختلاف کوي،نو هغه يو ساعت فکر وکړو، بيا ئې وويل: ماته ياد نه دي مګر ابو محمد بن عمرو، وويل سفيان: دلته يو سړی راغې پس د هغې نه چې اسماعيل بن امية مړ شوی وو، نو هغه شيخ ابو محمد طلب کړو تردې چې هغه ئې پيدا کړو نو تپوس ئې وکړو د هغه نه د هغې په باره کښې، نو خلط راغې په هغه باندې. وئيلي دي ابوداود: او ما اوريدلي دی د احمد بن حنبل نه چې د هغه نه تپوس وشو د کيفيت د خط څو ځل، هغه وويل: داسې په پلنو باندې پشان د نوې سپوږمۍ. وئيلي دي ابوداود: ما اوريدلي دي د مسدد نه هغه وئيلي دي: چې وويل ابن داود: خط به اوږد وي. وئيلي دی ابوداود: ما اوريدلي دی د احمد بن حنبل نه چې کيفيت د خط ئې بيانولو ډير ځل، هغه وويل: داسې يعنی په پلنور ګرد راتاو پشان د سپوږمۍ يعنی راکوږ.

**تشريح: قوله**:﴿ لم نجد شيئا نشد به هذا الحديث ﴾ يعنی ددې حديث بل سند هم نشته چه په هغې سره دا قوی شوې وي.

**قوله**: ﴿ قدم هاهنا رجل بعد ما مات اسماعيل بن امية الخ ﴾ سفيان بن عيينه فرمائی چه د اسماعيل بن اميه د وفات نه پس دلته يو سړې راغلو د پورته ذکر شوی راوی ابو عمرو بن محمد د تحقيق او معلومات دپاره، پس د هغه سړی د هغه سره ملاقات اوشو هغه سړی د هغه نه ددې حديث په باره کښې تپوس اوکړو نو هغه دا حديث بيان نه کړې شو، معلوميږی چه هغه ته څه اشتباه پيدا شوې ده، د سفيان د بيان کړې شوې قصې نه معلوميږی چه د ابو عمرو شاګرد يعنی د اسماعيل بن اميه وفات د استاذ په ژوند کښې شوې دې.

[٦٩١]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الزُّهْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، قَالَ: "رَأَيْتُ شَرِيكًا صَلَّى بِنَا فِي جَنَازَةٍ الْعَصْرَ، فَوَضَعَ قَلَنْسُوَتَهُ بَيْنَ يَدَيْهِ" يَعْنِي فِي فَرِيضَةٍ حَضَرَتْ.

**ترجمه**: سفيان بن عيينة وايې چې ما شريک وليدلو: مونځ ئې وکړو په جنازه کښې د مازيګر په وخت کښې، نو کيخوده هغه خپله توپۍ خپلې مخې ته. يعنی په هغه فرضی مونځ کښې چې حاضر شو.

**تشريح: قوله**:﴿ رأيت شريكا صلى بنا فی جنازة العصر فوضع قلنسوته الخ ﴾ سفيان بن عيينه فرمائی چه ما شريک اوليدو چه هغه يو ځل په يوه جنازه کښې د شرکت دپاره تشريف راوړلو نو هغه مونږ ته د مازيګر مونځ راکړو او په دې کښې هغه زمونږ امامت اوکړو نو هغه د مونځ نه مخکښې داسې اوکړل چه د سترې دپاره يو څيز نه وو نو د ځان نه ئې وړاندې خپله توپۍ کيخودله او د هغې نه ئې د سترې کار واخستلو، غالبا لوړه شان توپۍ به وی، لکه چه زمونږ په ماشوموالی کښې به د ترکی توپۍ په نوم باندې په بازارونو کښې

[1]: تفرد به أبو داود (صحيح)

لوړې غونډۍ ټوپۍ ملاويدې، په دې باندې ابن رسلان شارح ابوداود ليکي چه هم په دې وجه به بعض صوفياء اوږده ټوپۍ په سر کوله ددې دپاره چه د ضرورت په وخت ترې د سترې کار هم واخستلې شي.

## باب الصَّلاةِ إلَى الرَّاحِلَةِ

### باب دې په بيان د مونځ کې سورلۍ ته

په دې کښې اختلاف او مذاهب ائمه په ابتدائي بحثونو کښې تير شو، څه خبرې پاتې شوې هغه دلته واورئ، د سيدنا ابن عمر رضي الله عنه په باره کښې روايت دې په مصنف د عبدالرزاق کښې چه هغه به صلاة الى البعير مکروه ګڼړلو مګر دا چه په هغې باندې رحل (کجاوه) وي. علماء کرامو ليکلي دی چه کيدې شی ددې وجه دا وی چه د اوښ په شا باندې د کجاوې کيدو په صورت کښې به هغه اقرب الى السکون وی په په نسبت د برينډ کيدو، د امام شافعي رحمه الله مسلک وړاندې تير شوې دې چه هغه د صلاة الى الدابه د کراهت قائل وو، دغه شان ترې دا هم منقول دی چه د زنانه نه دې هم ستره جوړه نه کړې شي، په دې باندې امام نووي رحمه الله فرمائي "اما قوله فى المراة فظاهر انه ربما شغلت ذهنه" خو صلاة الى الدابة خو د صحيحين د روايت نه ثابت دې، هغه فرمائي چه کيدې شی امام شافعي رحمه الله ته دا حديث نه وی رسيدلې او د هغه وصيت دې چه ﴿ اذا صح الحديث فهو مذهبى ﴾ (منهل) هم دغه شان صاحب منهل په استتار بالحيوان کښې د مالکيانو د مسلک تفصيل ليکلې دې هغه دا چه که حيوان غير ماکول اللحم وی نو د هغه ستره جوړول مکروه دی، او که ماکول اللحم وی نو که هغه مربوط وی نو بيا خو د هغې طرف ته مونځ بغير د کراهت نه جائز دې ګينې مکروه دې.

[۶۹۲](1)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَوَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، وَابْنُ أَبِي خَلَفٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ، قَالَ عُثْمَانُ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي إِلَى بَعِيرٍ".

**ترجمه**: د ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دې، بيشکه نبي عليه السلام وو چې مونځ ئې کولو سورلۍ ته.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ كان يصلى الى البعير ﴾ او په ترجمة الباب کښې لفظ راحله دې، راحله هغه اوښې ته وئيلې شی کومه چه د سورلۍ قابله وی څکه چه هر يو اوښ يا اوښه د سورلۍ قابله نه وی، راحله هم هغې ته وئيلې شی کومه چه د سورلۍ قابله وی په خلاف د بعير چه هغه عام دې په سفر کښې که د سورلۍ قابل وی يا نه وی، هم دغه شان بعير ذکر او انثى دواړو ته شامل دې او په راحله کښې دواړه اقوال دی د بعض په نزد هغه د انثى سره خاص دې او بعض دا هم عام کړې دې. (كذا فى العينى ومجمع البحار)

### په دواړو احاديثو کښې رفع تعارض

دلته دا سوال دې چه په حديث کښې په معاطن ابل کښې د مونځ کولو نه منع راغلې ده او صلاة الى الراحلة په ظاهره کښې ددې خلاف ده، جواب دا دې چه معاطن خاص هغه ځائې

(1): صحيح مسلم/الصلاة ٤٧ (٥٠٢)، سنن الترمذي/الصلاة ١٤٩ (٣٥٢)، (تحفة الأشراف: ٧٩٠٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلاة ٥٠ (٤٣٠)، مسند احمد (١٠٦٧٢، ١٢٩)، سنن الدارمي/الصلاة ١٢٦ (١٤٥٢) (صحيح)

ته وئيلې شي چرته چه اوښان اوسيږي او تړلې كيږي او چرته چه بدبوئي او ګند پروت وي او بعض وائي چه د اصحاب الابل عادت وي چه هغه په معاطن ابل كښې د اوښانو شاته كيناستلو سره قضاء حاجت كوي، غرض دا چه هغه علت دلته مفقود دې، چه په صفا ستهره ځائې كښې اوښ كيني او ته د هغه طرف ته مونځ اوكړې دې كښې څه بدى ده؟

## بَاب إِذَا صَلَّى إِلَى سَارِيَةٍ أَوْ نَحْوِهَا أَيْنَ يَجْعَلُهَا مِنْهُ

**باب دى، كله چې مونځ كوي ستنې ته او په مثل د دېته كوم ځاى كې به ږدې د خپل ځان نه**

[۶۹۳]([1]) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَيَّاشٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عُبَيْدَةَ الْوَلِيدُ بْنُ كَامِلٍ، عَنِ الْمُهَلَّبِ بْنِ حُجْرٍ الْبَهْرَانِيِّ، عَنْ ضُبَاعَةَ بِنْتِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ أَبِيهَا، قَالَ: "مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي إِلَى عُودٍ وَلَا عَمُودٍ وَلَا شَجَرَةٍ إِلَّا جَعَلَهُ عَلَى حَاجِبِهِ الْأَيْمَنِ أَوِ الْأَيْسَرِ وَلَا يَصْمُدُ لَهُ صَمْدًا".

**ترجمه**: د مقداد بن الاسود نه روايت دې هغه وئيلى دي: ما نه دى ليدلى رسول الله ﷺ چې مونځ ئې كولو لرګي ته او نه ستنې ته او نه ونې ته مګر هغه به ئې ګرځوله خپل ښې وروځې ته او چپې وروځې ته او مخامخ به ورته نه ودريدو.

**تشريح**: **قوله**: په حديث الباب كښې دى چه رسول الله ﷺ به چه كله يو لرګى، ستن يا اونه ستره جوړولو سره مونځ كولو نو هغه به ئې بالكل خپلې مخې ته نه ږدلو بلكه خپل لږ شان ښى طرف ته يا ګس طرف ته به ئې ږدلو ﴿ولا يصمد له صمدا﴾ او د هغې قصد به ئې نه كولو په قصد كولو سره، يعنى هغه به ئې بالكل خپلې مخې ته نه راوستلو ددې دپاره چه دا خيال اونكړې شي چه په عبادت كښې هم ددې قصد كولې شي، او تشبه بعبدة الاصنام لازم نه شي.

## بَابُ الصَّلَاةِ إِلَى الْمُتَحَدِّثِينَ وَالنِّيَامِ

**باب دې په بيان د مانځه كې خبرې كونكوا اودو ته**

[۶۹۴]([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَيْمَنَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَعْقُوبَ بْنِ إِسْحَاقَ، عَمَّنْ حَدَّثَهُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ الْقُرَظِيِّ، قَالَ: قُلْتُ لَهُ يَعْنِي لِعُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تُصَلُّوا خَلْفَ النَّائِمِ وَلَا الْمُتَحَدِّثِ".

**ترجمه**: د محمد بن كعب القرظى نه روايت دې هغه وئيلى دى ما ووېل هغه ته: يعنى عمر بن عبد العزيز ته، ماته حديث بيان كړې دې عبد الله بن عباس، بيشكه نبى ﷺ ويلى دي: تاسو مونځ مه كوئ وروسته د اوده نه او د هغه كس نه چې خبرې كوي.

**تشريح**: **قوله**: ﴿نيام﴾ د ﴿نائم﴾ جمع، صلاة الى النائم په امامانو كښې د امام مالک په نزد مكروه دې، د مجاهد او طاؤس مذهب هم دا دې، ځكه چه كيدې شي د اوده كيدونكى د طرف نه د خوب په حالت كښې د يو داسې څيز صدور اوشى چه په هغې سره د مصلى خيال منتشر شى، هم دغه شان د حديث الباب نه هغوى دا استدلال كړې دې، خو دا حديث بالاتفاق ضعيف دې، ددې په سند كښې يو مجهول راوى دې چه د هغه نوم هشام بن زياد

---

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۵۵۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۶) (ضعيف)

[2]: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۴۰ (۹۵۹)، (تحفة الأشراف: ۶۴۴۸) (حسن)

دي او هغه متروک دي، د جمهورو دليل هغه حديث دي چه په هغي کښي عائشه رضي الله عنها فرمائی چه رسول الله ﷺ به د شپې مونځ کولو ﴿ وانا معترضة بينه وبين القبلة اعتراض الجنازة ﴾ دويم جزء د ترجمي صلاة الى المتحدث دي، په منهل کښي ليکلي دی چه دا د امام شافعي او امام احمد په نزد مکروه دی او د نورو علماء کرامو په نزد جائز دی، او د اختلاف هغه وخت دي چه کله خشوع نه زائله کيږي ګيني بالاتفاق مکروه دي، په مغنی کښي ئي هم صلاة الى المتحدث ته مکروه وئيلي دی يعنی عند احمد او صلاة الى النائم کښي هغوی د روايت اختلاف ذکر کړي دي.

## بَابُ الدُّنُوِّ مِنَ السُّتْرَةِ

### باب دې په بيان د نزدې والي کې ستري ته

په دې باندې تفصيلي کلام په شروع کښي تير شوي دي.

[۶۹۵](1)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ بْنِ سُفْيَانَ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ. ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَحَامِدُ بْنُ يَحْيَى، وَابْنُ السَّرْحِ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ إِلَى سُتْرَةٍ فَلْيَدْنُ مِنْهَا لَا يَقْطَعِ الشَّيْطَانُ عَلَيْهِ صَلَاتَهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ وَاقِدُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ صَفْوَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سَهْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَوْ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سَهْلٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ بَعْضُهُمْ: عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، وَاخْتُلِفَ فِي إِسْنَادِهِ.

**ترجمه:** سهل بن ابی حثمة خپل روايت نبی ﷺ ته رسوی هغه وايي: کله چي مونځ کوی يو کس ستاسو نه نو نزدې دې شی هغې ته چې قطع نه کړی په ده باندې شيطان مونځ دده. وئيلی دی ابوداود: روايت کړی دی واقد بن محمد د صفوان نه او هغه د محمد بن سهل نه او هغه د خپل پلار نه او هغه د محمد بن سهل نه او هغه د نبی ﷺ نه، وئيلی دی بعضو د دوی نه د نافع بن جبير نه، او هغه دسهل بن سعد نه او اختلاف شوی دی په اسناد د هغې کښي.

**تشريح: قوله:** ﴿ عن محمد بن سهل عن ابيه او عن محمد بن سهل عن النبی صلی الله عليه وسلم ﴾ په اول صورت کښي به روايت متصل وی ځکه چه دا سهل، سهل بن ابی حثمه دې کوم چه صحابی دې، او په دويم صورت کښي ﴿ عن ابيه ﴾ نه کيدو په صورت کښي به روايت مرسل وی ځکه چه محمد بن سهل تابعی دې.

[۶۹۶](2)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، وَالنُّفَيْلِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبِي، عَنْ سَهْلٍ، قَالَ: "وَكَانَ بَيْنَ مَقَامِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ مَمَرُّ عَنْزٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: الْخَبَرُ لِلنُّفَيْلِيِّ.

**ترجمه:** د سهل نه روايت دې هغه وئيلی دي او وو په مابين د اودريدلو د نبی ﷺ او قبله کښي ځائي د تيريدلو د چيلي. وئيلی دی ابوداود: الْخَبَرُ لِلنُّفَيْلِيِّ.

[1]: سنن النسائي/القبلة ۵ (۷۴۹)، (تحفة الأشراف: ۴۶۴۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۴) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الصلاة ۹۱ (۴۹۶)، والاعتصام ۱۵ (۷۳۳۴)، صحيح مسلم/الصلاة ۴۷ (۵۰۸)، (تحفة الأشراف: ۴۷۰۷) (صحيح)

## باب مَا يُؤْمَرُ الْمُصَلِّي أَنْ يَدْرَأَ عَنِ الْمَمَرِّ بَيْنَ يَدَيْهِ

**باب دې په بيان د هغې ځکې چې ديکه کوې يې مونځ کونکی د تيريدو نه خپلې مخې ته**

دې باره کښې مذاهب ائمه په شروع کښې تيرشوي دی د ظاهريه په نزد درأ (ديکه) واجب ده.

[٦٩٧](1)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا كَانَ أَحَدُكُمْ يُصَلِّي فَلَا يَدَعْ أَحَدًا يَمُرُّ بَيْنَ يَدَيْهِ وَلْيَدْرَأْهُ مَا اسْتَطَاعَ، فَإِنْ أَبَى فَلْيُقَاتِلْهُ فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ".

**ترجمه:** د ابوسعيد الخدری رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلی دي: بيشکه رسول الله ﷺ ويلی دي: کله چې يو تن په تاسو کښې مونځ کوی نو نه دې پريږدی هيڅ کس چې تېر شی د هغه مخې ته، هغه دې بند کړی ځومره چې ئې طاقت وي، که چرې هغه انکار وکړو نو جنګ دې ورسره وکړی بيشکه هغه بيا شيطان دی.

### د امام نووي رحمه الله رائې

**قوله:** ﴿ وليدراه ما استطاع فان ابى فليقاتله فانه شيطان ﴾ امام نووي رحمه الله ليکی چه زمونږ په نزد دفع المار مندوب دې واجب نه دې وړاندې فرمائی چه ابتداء به ئې دفع کوی باسهل الوجوه او که نه منی نو باشد الوجوه به ئې دفع کوی اګر چه په دې کښې قتل ته خبره ولې او نه رسيږی ځکه چه دا خو ګويا د دفع الصائل د قبيل نه دې او چونکه ددې مقاتلې شريعت اجازت ورکړې دې په دې وجه د هلاکت په صورت کښې به پرې ضمان هم نه وی.

ځان پوهه کړه چه په دې حديث کښې دوه څيزونه مذکور دی درء المار او دويم څيز مقاتله د در المار حکم په ابتدائی مباحث کښې تير شوې دې.

### په شرح حديث کښې د شراح حديث او فقهاء کرامو اقوال

او امر ثانی يعنی مقاتله نو بعض شوافع لکه امام نووي رحمه الله دا مقاتله په حقيقت باندې محمول کول سره دې ته جائز وئيلې ده کما سبق، خو قاضی عياض وغيره شراح حديث په دې باندې اجماع نقل کړې ده چه د درء المار دپاره تلل او عمل کثير جائز نه دې ځکه چه دا خو د تيريدونکی نه هم زيات د مونځ په حق کښې سخت او مضر دې او د اقبال علی الصلاة د قاعدې خلاف دې او ظاهره ده چه قتال بغير د عمل کثير نه کيدې نه شی په دې وجه دا حديث محتاج دې تاويل ته، پس علامه قرطبی رحمه الله فرمائی چه په حديث کښې د قتال نه مراد مبالغه فی الدفع ده چه که په اشارې وغيره سره منع نه شی نو نوره سختی دې هم اوکړی (مثلا ديکه دې ورکړی) او ابن عبدالبر فرمائی چه د رسول الله ﷺ دا ارشاد په طور د تغليظ دې فی الواقع د قتال اجازت مقصود نه دې، او علامه باجی فرمائی چه د قتال نه

(1): صحيح مسلم/الصلاة ٤٨ (٥٠٥)، سنن النسائي/القبلة ٨ (٧٥٨)، سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ٣٩ (٩٥٤)، (تحفة الأشراف: ٤١١٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/قصر الصلاة ١٠(٣٣)، مسند احمد (٣٤/٣، ٤٣، ٤٤، ٤٩، ٥٧، ٩٣)، سنن الدارمي/الصلاة ١٢٥ (١٤٥١) (صحيح)

مراد لعن دي، قتال لغة او شرعا هم د لعن په معنی کښې راځي قال تعالی ﴿ قاتلهم الله انی یؤفکون﴾ علامه زیلعي رحمه الله هم دا فرمائي چه د قتال نه مراد دلته بد دعا ده.(۱) او علامه شامي رحمه الله فرمائي چه دا حدیث منسوخ دې دا د هغه وخت خبره ده چه کله عمل کثیر په مونځ کښې جائز وو، او يو قول دا دې، مراد دا دې چه د مونځ نه روستو دې ددې خبر واخلي.

(آیا په دې صورت کښې قاتل باندې ضمان شته؟)

بیا بل اختلاف دلته دا دې چه که چا د هغه سره قتال اوکړو او هغه هلاک شو نو په دې صورت کښې به ضمان وي يا به نه وي، حضرت شيخ په اوجز کښې لیکي چه ددې حکم د حنابله په کتابونو کښې ماته ملاؤ نه شو.﴿ لا ضمان علیه عند الشافعیة وعلیه الدیة عند المالکیة﴾ او د احنافو په نزد د قاعدې مطابق قصاص يا ديت به واجب وي.

**قوله:** ﴿ فانما هو شیطان ﴾ یعني سرکش او شریر، عارف بالله ابن ابی جمره په دې باندې فرمائي چه ددې نه معلومه شوه چه په حديث کښې د قتال نه مراد مدافعة لطیفه دې نه حقیقت قتال ځکه چه د شیطان سره چه کومه مقابله وي هغه په لاس خپو او وسلې سره نه وي بلکه په استعاذه او تسمیه وغیره سره وي. (منهل)

[۶۹۸](۲)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فَلْيُصَلِّ إِلَى سُتْرَةٍ وَلْيَدْنُ مِنْهَا ثُمَّ سَاقَ مَعْنَاهُ.

**ترجمه:** د ابو سعید الخدري رضي الله عنه روایت دې، هغه وائي، وئيلي دي رسول الله صلى الله عليه وسلم: کله چې مونځ کوي يو کس ستاسو نه نو مونځ دې کوي سترې ته او نزدې دې شي هغې ته. بيا ئې بيان کړه معنی د هغې حدیث چه تیر شو.

[۶۹۹](۳)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي سُرَيْجٍ الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، أَخْبَرَنَا مَسَرَّةُ بْنُ مَعْبَدٍ اللَّخْمِيُّ لَقِيتُهُ بِالْكُوفَةِ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو عُبَيْدٍ حَاجِبُ سُلَيْمَانَ، قَالَ: رَأَيْتُ عَطَاءَ بْنَ يَزِيدَ اللَّيْثِيَّ قَائِمًا يُصَلِّي، فَذَهَبْتُ أَمُرُّ بَيْنَ يَدَيْهِ فَرَدَّنِي، ثُمَّ قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو سَعِيدٍ الْخُدْرِيُّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ لَا يَحُولَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ قِبْلَتِهِ أَحَدٌ فَلْيَفْعَلْ".

**ترجمه:** حدیث بیان کړې دې ابو عبید چې دا حاجب د سلیمان وو، هغه وئيلي دي ما وليدلو عطاء بن زيد الليثي ولاړ په مانځه زه د هغه په مخکې تيريدم نو زه ئې واپس کړم، بيا ئې ووئيل: ماته حديث بيان کړې دې ابو سعيد الخدري رضي الله عنه، بيشکه رسول الله صلى الله عليه وسلم وئيلي دي: د چا چې طاقت وي ستاسو نه ددې چې څوک لاړ نه شي د هغه او د قبلې په مينځ کښې نو داسې دې وکړي.

(۱) ددې تائيد د هغه حديث نه کيږي کوم چه يو دوه بابه روستو راروان دي، اللهم اقطع اثره ۱۲)
(۲): أنظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤١١٧) (حسن صحیح)
(۳): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤١٥٩) (حسن صحیح)

[٧٠٠]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ الْمُغِيرَةِ، عَنْ حُمَيْدٍ يَعْنِي ابْنَ هِلَالٍ، قَالَ قَالَ أَبُو صَالِحٍ: أُحَدِّثُكَ عَمَّا رَأَيْتُ مِنْ أَبِي سَعِيدٍ وَسَمِعْتُهُ مِنْهُ، دَخَلَ أَبُو سَعِيدٍ عَلَى مَرْوَانَ، فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ إِلَى شَيْءٍ يَسْتُرُهُ مِنَ النَّاسِ فَأَرَادَ أَحَدٌ أَنْ يَجْتَازَ بَيْنَ يَدَيْهِ فَلْيَدْفَعْ فِي نَحْرِهِ، فَإِنْ أَبَى فَلْيُقَاتِلْهُ فَإِنَّمَا هُوَ الشَّيْطَانُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ: يَمُرُّ الرَّجُلُ يَتَبَخْتَرُ بَيْنَ يَدَيَّ وَأَنَا أُصَلِّي فَأَمْنَعُهُ وَيَمُرُّ الضَّعِيفُ فَلَا أَمْنَعُهُ.

**ترجمه**: داخل شو ابو سعيد په مروان، هغه وويل: ما اوريدلي دي د رسول الله ﷺ نه هغه به وئيل: كله چې مونځ كوي يو كس ستاسو نه داسې شي ته چې هغه ئې پټوي د خلقو نه او تېر يدلو يو كس د هغه په مخ كښې نو هغه دې ووهي په سينه كښې، كه چرې انكاريې وكړو نو جنګ دې ورسره وكړي بيشكه هغه شيطان دي.

**تشريح**: **قوله**:﴿ عن حميد يعني ابن هلال قال : قال ابو صالح : احدثک عما رايت من ابی سعيد وسمعته منه الخ ﴾ ابو صالح، حميد ته اووې چه زه تاته هغه قصه بيانوم كومه ما د ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه ليدلې ده او هغه حديث هم تاته بيانوم كوم چه ما د هغه نه اوريدلې دې، ګويا دوه څيزونه درته بيانوم يوه خو هغه واقعه كومه چه د يو سړي د ابو سعيد خدري رضي الله عنه سره پيښه شوې وه او ابو صالح هغه ليدلې وه، او دويم هغه قولي حديث كوم چه هغه د ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه اوريدلې وو، پس وړاندې اول خو هغه واقعه بيانوي، او هغه واقعه دا ده چه يو ځل ابو سعيد خدري رضي الله عنه د مروان عدالت ته اورسيدو او هلته تلو سره ئې هغه ته اووې چه ما د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل ﴿ اذا صلى احدكم الى شئ يستره من الناس فاراد احد ان يجتاز بين يديه فليدفع فی نحره الخ ﴾ چه كله په تاسو كښې چا ستره قائمه كړې وي او د هغې طرف ته مونځ كوي او بيا يو سړې د هغه او د سترې ترمينځه تيريږي نو هغه دې په سينه كښې اووهي او كه هغه بيا هم نه منع كيږي نو په ښه طريقه دې د هغه مقابله اوكړي.

## په حديث الباب كښې اختصار او د هغې تشريح

مصنف رحمه الله چه دلته كوم حديث ذكر كړې دې په دې كښې اختصار دې، پوره قصه په مسلم شريف كښې مذكور ده او هغه دا ده چه يو ځل ابو سعيد خدري رضي الله عنه مونځ كولو نو يو ځوان هلک د هغه مخې ته تيريدل غوښتل نو هغه ورته يو ځل ديكه وركړه، هغه بيا د تيريدلو اراده اوكړه نو دې ځل ورته هغه د مخكښې نه هم تيزه ديكه وركړه، په دې باندې هغه ځوان مروان ته شكايت يوړلو، نو په دې كښې ابوسعيد خدري رضي الله عنه هم هلته راورسيدو، مروان ترې تپوس اوكړو چه تا د هغه سره داسې معامله ولې اوكړه، په دې باندې ورته هغه دا روايت واوروړلو (كذا فی البذل) زه وايم چه ددې واقعې څه حصه خو بابونه روستو په ابوداود كښې هم راروانه ده، مصنف حديث دوه ټكړې كړو يوه حصه ئې دلته او بله حصه ئې وړاندې بيان كړه، په صحيحين كښې پوره قصه په يو ځل ذكر ده.

١): صحيح البخاري/الصلاة ١٠٠ (٥٠٩)، صحيح مسلم/الصلاة ٤٨ (٥٠٥)، (تحفة الأشراف: ٤٠٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦٣/٣) (صحيح)

# بَابُ مَا يُنْهَى عَنْهُ مِنَ الْمُرُورِ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي

**باب دې په بيان د هغې ځکې چې منع کولې شي د هغې نه د تيريدلو نه مخې د مونځ کونکې ته**

او د امام بخاري رحمه الله ترجمه ده "باب اثم المار بين يدى المصلى"

[۷۰۱](۱) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، أَنَّ زَيْدَ بْنَ خَالِدٍ الْجُهَنِيَّ أَرْسَلَهُ إِلَى أَبِي جُهَيْمٍ يَسْأَلُهُ مَاذَا سَمِعَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَارِّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي، فَقَالَ أَبُو جُهَيْمٍ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ يَعْلَمُ الْمَارُّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي مَاذَا عَلَيْهِ، لَكَانَ أَنْ يَقِفَ أَرْبَعِينَ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ"، قَالَ أَبُو النَّضْرِ: لَا أَدْرِي قَالَ: أَرْبَعِينَ يَوْمًا أَوْ شَهْرًا أَوْ سَنَةً.

**ترجمه**: زيد بن خالد الجهني بو کس ولېږلو ابو جهيم ته تپوس ئې ترينه کول چې د رسول الله ﷺ نه ئې څه اوريدلي دي په باره د تېريدلو کښې مخې د مونځ کونکی ته، نو ابو جهيم وويل: چې رسول الله ﷺ ويلي دي: که چېرې پوهه شي تيريدونکی مخې د مونځ کونکی ته چې څومره ګناه ده د ده نو وو به دا چې ودرېږي څلويښت غوره به وی ده د دېنه چې تير شي مخې د هغه ته، وئيلی دی ابو النضر: زه نه پوهيږم چې هغه څلويښت ورځې ووئيلې او که مياشتې او که کلونه.

**تشريح**: **قوله**:﴿ ارسله الى ابى جهيم ﴾ دا هم هغه ابو الجهيم دې چه د هغه روايت په ابواب التيمم کښې تير شوې دې او يو راوی ابو الجهم دې، په دې باندې کلام هم هلته تير شوې دې ﴿ لو يعلم المار بين يدى المصلى ما ذا عليه ﴾ که د مونځ کونکی مخې ته تيريدونکی ته علم اوشی چه د هغه په تيريدو کښې څومره ګناه او اخروی نقصان دې نو هغه به څلويښت کاله اودريدو ته په تيريدو باندې ترجيح ورکړی، په مسند بزار کښې ﴿ اربعين حريفا ﴾ دې، او د ابن ماجه په روايت کښې ﴿ مائة عام ﴾ مذکور دې دا دې تعارض او نه ګڼلې شی ځکه چه مشهور دې چه مفهوم عدد معتبر نه دې

**د مصلی د درء المار حق کله جوړيږی او تيريدونکې اثم په کوم صورت کښې دې**

په دې حديث کښې منع عن المرور مطلقا ذکر شوې ده او په تير شوی باب کښې د ابو سعيد خدری رضي الله عنه په حديث کښې د يصلى الى السترة قيد دې چه يو سړی ستره قائمولو سره د هغې طرف ته مونځ کوی، ابن رسلان دا مطلق په مقيد باندې محمول کړې دې او حضرت هم په بذل المجهود کښې هم دغه شان کړې دی او ليکلی ئې دی چه د سترې نه قائمولو په صورت کښې ئې حق دفع نشته خو په شامی کښې د بحر وغيره نه اطلاق نقل کړې دې چه مصلی تيريدونکې دفع کولې شی که سُتره ئې وی يا نه وی خو تيريدونکې د مصلی او سترې ترمينځه تيريږی.

ځان پوهه کړه چه دلته دوه څيزونه دی مصلی ته د دفع کولو حق بل د تيريدونکی اثم کيدل،

(۱): صحيح البخاري/الصلاة ۱۰۱ (۵۱۰)، صحيح مسلم/الصلاة ٤٨ (٥٠٧)، سنن الترمذي/الصلاة ۱۳۹ (۳۳٦)، سنن النسائي/القبلة ۸ (۷۵۷)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۳۷ (۹٤٥)، (تحفة الأشراف: ۱۱۸۸٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ قصر الصلاة ۱۰ (۳٤)، مسند احمد (٤/١٦٩)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۳۰ (۱٤٥٦) (صحيح)

د اول په باره کښې خو د شامی نه نقل دی چه په دې کښې اطلاق دې او د دویم په باره کښې هم په شامی کښې عموم لیکلې دې ﴿ ومفاده اثم المار وان لم تکن سترة ﴾ خو په دویمه مسئله کښې تفصیل دې لکه چه په شروح حدیث او کتب فقه کښې ذکر دی، خپله علامه شامی په دې کښې څلور صورتونه ذکر کړې دی، چه د هغې خلاصه دا ده چه د ستره نه کیدو په صورت کښې به د ګناه مدار په تعدی باندې وی که تعدی د جانبین د طرف نه وی نو دواړه به ګناهګار وی او که د یو طرف نه نو صرف هم هغه به ګناهګار وی او که د یو طرف نه هم نه وی نو یو به هم ګناهګار نه وی، مثلاً سړې بغیر د سترې نه په داسې ځائې کښې مونځ کوی کوم چه د خلقو د تیریدو ځائې دې او د تیریدونکی دپاره بله لاره هم شته نو په دې صورت کښې به دواړه ګناهګار وی او که مصلی په محل د مرور کښې ولاړ نه وی خو د تیریدونکی دپاره اتفاقی د تیریدو بله لاره نه وی سوا ددې نه نو په دې صورت کښې به هم هغه ګناهګار نه وی.

## تفریع أبواب مـا یقطع الصلاة ومـا لا تقطعهـا

**دهغه څیزونو تفصیل، چه کوموسره مونځ ماتیږی اوکوموسره نه ماتیږی**

## بَابُ مَا يَقْطَعُ الصَّلَاةَ

**باب: بیان دهغې څیزونو چې مونځ ماتوي**

### د ابوابو په ترتیب کښې نقطه:

په ظاهره د ابواب السترة سلسله ختمه شوه حال دا چه اوس یو باب وړاندې راروان دې هغه هم د سترې سره متعلق دې لهذا د مصنف دپاره مناسب وه چه د سترې چه کوم یو باب اوس باقی پاتې شوې دې هغه ئې اول ذکرکړې دې، خو د هغې توجیه دا کیدې شی چه موجوده باب هم د سترې سره متعلق دې ځکه چه ددې باب د حدیث مضمون دا دې چه د مصلی مخکښې که ستره قائم نه وی نو په داسې صورت کښې د مرأة، حمار او کلب اسود تیریدلو ته قاطع صلاة وئیلې شوې دې، لهذا معلومه شوه چه مونځ کونکی لره خپلې مخې ته ستره قائمول پکار دی ددې دپاره چه د هغه مونځ د هغه څیزونو په تیریدو سره خراب نه شی.

[۷۰۲]([1]) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. ح وَحَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ مُطَهَّرٍ، وَابْنُ كَثِيرٍ الْمَعْنَى، أَنَّ سُلَيْمَانَ بْنَ الْمُغِيرَةِ أَخْبَرَهُمْ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الصَّامِتِ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ حَفْصٌ: قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَقْطَعُ صَلَاةَ الرَّجُلِ، وَقَالَا: عَنْ سُلَيْمَانَ، قَالَ أَبُو ذَرٍّ: يَقْطَعُ صَلَاةَ الرَّجُلِ إِذَا لَمْ يَكُنْ بَيْنَ يَدَيْهِ قِيدُ آخِرَةِ الرَّحْلِ الْحِمَارُ وَالْكَلْبُ الْأَسْوَدُ وَالْمَرْأَةُ، فَقُلْتُ: مَا بَالُ الْأَسْوَدِ مِنَ الْأَحْمَرِ مِنَ الْأَصْفَرِ مِنَ الْأَبْيَضِ؟ فَقَالَ: يَا ابْنَ أَخِي، سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا سَأَلْتَنِي، فَقَالَ: الْكَلْبُ الْأَسْوَدُ شَيْطَانٌ".

**ترجمه**: د ابو ذر نه روایت دې چې حفص وئیلی دی، هغه وایی چې رسول الله ﷺ ویلی دي:

[1]): صحيح مسلم/الصلاة ٥٠ (٥١٠)، سنن الترمذي/الصلاة ١٤١ (٣٣٨)، سنن النسائي/القبلة ٧ (٧٥١)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٣٨ (٩٥٢)، (تحفة الأشراف: ١١٩٣٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٩/٥، ١٥١، ١٥٥، ١٦٠، ١٦١)، سنن الدارمي/الصلاة ١٢٨ (١٤٥٤) (صحيح)

قطع کوی مونځ د سړی لره. او هغه وئیلی دي: د سلیمان نه، چي وئیلی دی ابوذر: قطع کوی مونځ د سړی لره چي نه وی مخي د هغه ته په اندازه د وروستنی لرګی د پالان، خر او تور سپی او ښځه، نو ما وویل: څه دی حال د تور سپي د سور نه او د زیړ نه او د سپین نه. هغه وویل: اې د ورور ځویه ما تپوس وکړو د رسول الله ﷺ نه څنګه چي تا زمانه تپوس وکړو، نو هغه وفرمائیل: تور سپی شیطان دی.

## په مسئلة الباب کښې مذاهب علماء

د دې نه روستو پوهه شئ چه حسن بصري او ابو الاحوص (د ابن مسعود شاګرد) او د امام احمد او ظاهریه په نزد ددې درې وارو ځیزونو مرور مفسد صلاة دې، او بل روایت د امام احمد دا دې چه دا حکم صرف د کلب اسود دې او په زنانه او خر کښې هغوی توقف کړې دې، د اسحاق بن راهویه په نزد هم صرف کلب اسود قاطع صلاة دې، د امام احمد د سړي او خر په معامله کښې د توقف وجه دا لیکلې ده چه د حمار په سلسله کښې د ابن عباس رضی الله عنه حدیث ددې خلاف راروان دې چه په هغې کښې مصنف وړاندې مستقل باب قائم کړې دې، هم دغه شان د زنانه په باره کښې هم د عائشې رضی الله عنها حدیث ددې خلاف راروان دې په دې باندې هم مصنف وړاندې مستقل ترجمه قائم کړې ده. جمهور فرمائی چه په دې احادیثو کښې د قطع نه مراد قطع خشوع ده او امام طحاوی رحمه الله ددې په ځائې مسلک نسخ اختیار کړې ده چه د قطع صلاة والا روایات منسوخ دی او ناسخ د ابوسعید خدری رضی الله عنه حدیث دې کوم چه وړاندې په کتاب کښې راروان دې ﴿لا يقطع الصلاة شئ﴾.

**قوله:** ﴿الكلب الاسود شيطان﴾ بعض دا په ظاهر باندې محمول کړې دې چه شیطان ډیر کرته د کلب اسود په شکل کښې متشکل کیږی او بعض وائی چه د شیطان استعمال د شریر او سرکش معنی کښې هم اکثر وی او چونکه کلب اسود زیات شری او ضرری وی په دې وجه د هغه نه په شیطان سره تعبیر اوکړې شو.

**قوله:** ﴿والخنزير واليهودى والمجوسى﴾ د ابوداود په بعض نسخو کښې دلته یو زیادت دې چه د هغې خلاصه ده چه امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه په دې حدیث کښې د اشیاء ثلاثه نه علاوه نور چه کوم زیات ځیزونه مذکور دی، ذکر د خنزیر او یهودی او مجوسی دا د یو راوی وهم دې، او د مصنف خیال دا دې چه هغه ابن ابی سمینه دې چه د هغه نوم محمد بن اسماعیل دې یعنی د مصنف استاذ.

[۷۰۳](1)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ زَيْدٍ يُحَدِّثُ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، رَفَعَهُ شُعْبَةُ قَالَ: "يَقْطَعُ الصَّلَاةَ الْمَرْأَةُ الْحَائِضُ وَالْكَلْبُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَفَهُ سَعِيدٌ، وَهِشَامٌ، وَهَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ، عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ.

**ترجمه:** د ابن عباس نه روایت دې هغه وئیلی دي: قطع کوی مونځ لره ښځه بالغه او سپی. وئیلی دی ابوداود: موقوف کړی دی دې لره سعید او هشام او همام د قتادة نه، او هغه د جابر بن زید نه په ابن عباس باندې.

(1): سنن النسائي/القبله ۷ (۷۵۲)، سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ۳۸ (۹٤۹)، مسند احمد (۱/۴۳۷)، (تحفة الأشراف: ۵۳۷۹) (صحيح)

[٧٠٤]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ مَوْلَى بَنِي هَاشِمٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا مُعَاذٌ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: أَحْسَبُهُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ إِلَى غَيْرِ سُتْرَةٍ، فَإِنَّهُ يَقْطَعُ صَلَاتَهُ الْكَلْبُ وَالْحِمَارُ وَالْخِنْزِيرُ وَالْيَهُودِيُّ وَالْمَجُوسِيُّ وَالْمَرْأَةُ، وَيُجْزِءُ عَنْهُ إِذَا مَرُّوا بَيْنَ يَدَيْهِ عَلَى قَذْفَةٍ بِحَجَرٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: فِي نَفْسِي مِنْ هَذَا الْحَدِيثِ شَيْءٌ كُنْتُ أُذَاكِرُ بِهِ إِبْرَاهِيمَ وَغَيْرَهُ، فَلَمْ أَرَ أَحَدًا جَاءَ بِهِ عَنْ هِشَامٍ وَلَا يَعْرِفُهُ، وَلَمْ أَرَ أَحَدًا يُحَدِّثُ بِهِ عَنْ هِشَامٍ، وَأَحْسَبُ الْوَهْمَ مِنَ ابْنِ أَبِي سَمِينَةَ يَعْنِي مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ الْبَصْرِيَّ مَوْلَى بَنِي هَاشِمٍ وَالْمُنْكَرُ فِيهِ ذِكْرُ الْمَجُوسِيِّ، وَفِيهِ عَلَى قَذْفَةٍ بِحَجَرٍ وَذِكْرُ الْخِنْزِيرِ وَفِيهِ نَكَارَةٌ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلَمْ أَسْمَعْ هَذَا الْحَدِيثَ إِلَّا مِنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي سَمِينَةَ، وَأَحْسَبُهُ وَهِمَ لِأَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُنَا مِنْ حِفْظِهِ.

**ترجمه**: د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې هغه وئيلي دي زه ګمان کوم چې روايت کوی د رسول الله ﷺ نه هغه وئيلي دي: کله چې مونځ کوی يو کس ستاسو نه بغير د سترې نه بيشکه مونځ د هغه لره قطع کوی سپی او خر او خنزير او يهودی او مجوسی او ښځه، او کافي کېږی د ده نه چې کله تېرېږی مخې د ده ته وېشتل د کاڼې. وئيلي دی ابوداود: زما په زړه کښې ددې حديث نه څه شبه شته، ما به مذاکره کوله ددې حديث د ابراهيم او دهغه نه علاوه بل چاسره هم، خوبل کس مې بيا نه موندلو چه هغه دا حديث د هشام نه روايت کوی او نه ئې هغه پېژندلو، او ما يو کس هم نه وو ليدلی چې بيان ئې کولو د هشام نه، او زه ګمان کوم د وهم د ابن ابی سمينة يعنی محمد بن اسماعيل البصری نه چې دا غلام د بنی هاشمو دی، او منکر په دې کښې ذکر کول د مجوسی دي، او په دې کښې په داندازه د وېشتلو د کاڼې دی، او ذکر کول د خنزير دی، او په دې کښې نکارت دی. وئيلي دی ابوداود: ما نه دی اوريدلی دا حديث مګر د محمد بن اسماعيل بن ابی سَمينة نه، او زما ګمان دی چې وهم کړی دی هغه ځکه هغه به حديث بيانولو مونږ ته د خپل حفظ نه.

﴿على قذفة بحجر﴾ د کاڼې د ويشتلو د فاصلې په قدر، ددې مقدار بعض شارحينو درې ذراع ليکلې دی، د حريم مصلی په باره کښې اختلاف او تفصيل زمونږ په ابتدائی مباحث کښې تير شوې دې.

[٧٠٥]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ مَوْلَى يَزِيدَ بْنِ نِمْرَانَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ نِمْرَانَ، قَالَ: رَأَيْتُ رَجُلًا بِتَبُوكَ مُقْعَدًا، فَقَالَ مَرَرْتُ بَيْنَ يَدَيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا عَلَى حِمَارٍ وَهُوَ يُصَلِّي، فَقَالَ: "اللَّهُمَّ اقْطَعْ أَثَرَهُ"، فَمَا مَشَيْتُ عَلَيْهَا بَعْدُ.

**ترجمه**: د يزيد بن نمران نه روايت دې هغه وئيلي دي: ما وليدلو يو سړی چې تبوک کښې چې کينولی شوی وو (د مرض نه) نو هغه ووئيل: زه تېر شوم مخې د نبی ﷺ ته او زه سور وم په خر باندې او هغه مونځ کولو، هغه وفرمائيل: يا الله ته دده اثر ختم کړې. زه بيا لاړ نه شوم په هغې باندې وروسته.

**تشريح**: **قوله**: ﴿اللهم اقطع اثره فما مشيت عليها بعد﴾ يزيد بن نمران وائی چه ما په تبوک کښې يو داسې سړې اوليدو کوم چه شل يعنی د تلو نه معذور وو، ما د هغه نه ددې سبب

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٢٤٥) (ضعيف)

(٢): تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٨٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦٤/٤، ٣٧٦/٥) (ضعيف)

اوتپوسلو نو هغه راته اووې چه يو ځل رسول اللهﷺ مونځ كولو او زه په خر باندې سور اوم او هم په دې حال كښې د هغه وړاندې تير شوم نو هغه وخت ماته رسول اللهﷺ (په ظاهره باندې مونځ كښې) د اوفرمائيل ﴿ اللهم اقطع اثره ﴾ يا الله د هغه د قدم نخښې ختمې كړې، د هغې نه روستو زه په زمكه باندې د تلو قابل پاتې نه شوم، هم دغه شان يو روايت ددې نه روستو راځي خو د دواړو احاديثو سند كښې ضعيف او مجهول راويان دي، په اول حديث كښې د يزيدبن نمران مولى مجهول دې،او په دويم سند كښې سعيد او د هغه پلار غزوان

## آيا د رسول اللهﷺ د ځان دپاره انتقام اخستل ثابت دي؟

په دې حديث كښې د يو سړي په غلط حركت باندې د رسول اللهﷺ د هغه خلاف خيرې كول ثابت دي خو دا حديث ضعيف دې، هم دغه شان دا عين ممكن ده چه په دې كښې خپله د هغه سړي خير ملحوظ وو، هم دغه شان وړاندې په ابوداود كتاب الديات كښې يو حديث راروان دې چه په هغې كښې دا دي چه يو سړې چه د هغه نوم محلم بن جثامه ليثى دې، هغه د اسلام په ابتداء كښې يو ناحقه قتل كړې وو، د رسول اللهﷺ په خدمت كښې چه كله دا مقدمه راغله نو په ډک محفل كښې ئې اوفرمائيل: ﴿ اللهم لا تغفر لمحلم ﴾

## (د اولياؤ په انتقام اخستلو كښې هم مصلحت وي)

بعض وخت چه صالحين او اولياء د چا نه خپل انتقام اخلي يا څه سخته كلمه اوائي نو په دې كښې هم مصلحت وي، حضرت شيخ په دې باندې يوه قصه بيان كړه [1] چه يو بزرګ په لاره باندې روان وو ورسره خادمان هم وو په لاره كښې مخامخ يو بهنګي (خاكروب) را روان وو چه هغه سره د نجاست يوه ټوكرۍ هم وه، چه كله هغه د هغه بزرګ په خوا كښې تيره شوه نو هغه بد بخت په تلو تلو كښې څه نجاست په هغه بزرګ هم راګزار كړو او په تيزه سره وړاندې لاړه، دې بزرګ خپل يو خادم ته اوفرمائيل چه ورشه او دا زر يوه سپيړه اووهه، هغه سوچ كښې پريوتلو، په دې كښې هغه زنانه په زمكه باندې راپريوتله او ختمه شوه، دې بزرګ په هغه خپل خادم باندې د عتاب او غصې اظهار اوكړو چه دا هم تا وژلې ده،بيا ئې اوفرمائيل خبره دا ده چه كله هغې ماته دا ضرر راكړو نو ما اوكتل چه د الله پاک غضب په جوش كښې راغلو نو ما سوچ اوكړو چه زر ترې زه انتقام واخلم ددې دپاره چه هغه د الله پاک د انتقام نه بچ شي خو تا په وهلو كښې تاخير اوكړو په دې وجه د پورته نه انتقام راغلو

[٧٠٦] ([2]) حَدَّثَنَا كَثِيرُ بْنُ عُبَيْدٍ يَعْنِي الْمَذْحِجِيَّ، حَدَّثَنَا أَبُو حَيْوَةَ، عَنْ سَعِيدٍ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ زَادَ، قَالَ: قَطَعَ صَلَاتَنَا قَطَعَ اللَّهُ أَثَرَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ أَبُو مُسْهِرٍ، عَنْ سَعِيدٍ، قَالَ فِيهِ: قَطَعَ صَلَاتَنَا.

**ترجمه:** د سعيد ﷺ نه روايت دې په اسناد او معنى د هغه حديث،په دې حديث كښې هغه زيادت كړې دې او ويلى ئې دي الله دې قطع كړي اثر د هغه. وئيلى دى ابوداود: او روايت كړى دى ابو مسهر د سعيد نه، ويلى هغه په هغې كښې قطع ئې كړو مونځ زمونږ.

[1] دا واقعه د حضرت شيخ په مطبوعه ملفوظات كښې هم په صفحه ۲۸ باندې ذكر ده)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٨٤) (ضعيف)

[٧٠٧]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ. ح وحَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي مُعَاوِيَةُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ غَزْوَانَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ نَزَلَ بِتَبُوكَ وَهُوَ حَاجٌّ، فَإِذَا هُوَ بِرَجُلٍ مُقْعَدٍ فَسَأَلَهُ عَنْ أَمْرِهِ، فَقَالَ لَهُ: سَأُحَدِّثُكَ حَدِيثًا فَلَا تُحَدِّثْ بِهِ مَا سَمِعْتَ أَنِّي حَيٌّ، "إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَزَلَ بِتَبُوكَ إِلَى نَخْلَةٍ، فَقَالَ: هَذِهِ قِبْلَتُنَا، ثُمَّ صَلَّى إِلَيْهَا، فَأَقْبَلْتُ وَأَنَا غُلَامٌ أَسْعَى حَتَّى مَرَرْتُ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا، فَقَالَ: قَطَعَ صَلَاتَنَا قَطَعَ اللَّهُ أَثَرَهُ"، فَمَا قُمْتُ عَلَيْهَا إِلَى يَوْمِي هَذَا.

**ترجمه:** د سعيد بن غزوان نه روايت دي هغه روايت کوی د خپل پلار نه، بيشکه هغه راغي تبوک ته او هغه حج کونکی وو، ناڅاپه هغه وليدو يو سړی چې کينولی شوی وو، نو تپوس ئې وکړو د هغه د کار هغه ووئيل: زه به تاته يوه خبره بيان کړم دا به خلقو ته نه وايې ترڅو چې زه ژوندی يم، بيشکه رسول الله ﷺ تشريف راوړو تبوک ته يوې کجورې ته هغه وفرمائيل: دا زمونږ ستره ده، بيا ئې مونځ وکړو هغې ته او زه راغلم حال دا دی چې زه هلک وم منډې مې وهلې تردې چې زه تېر شوم د هغه او د هغه د سترې په مينځ کښې، نو هغه ووئيل: پرېې کړو زمونږ مونځ الله دې د هغه اثر پرې کړې. زه پاڅيدلی نه يم په دې باندې د نن ورځې پورې.

## بَابُ سُتْرَةُ الْإِمَامِ سُتْرَةُ مَنْ خَلْفَهُ

**باب دی، ستره د امام ستره د هغه چا ده چې د امام نه وروسته دي**

په دې باندې د ټولو اتفاق دې چه د جماعت په مونځ کښې د امام دپاره ستره قائمول کافي دی د قوم دپاره د مستقل ستره قائمولو حاجت نشته، خو اختلاف په دې کښې دې چه ولې؟ ائمه ثلاثه خو فرمائی چه د امام چه کومه ستره ده هم هغه د مقتديانو ستره ده، لکه چه په ترجمة الباب کښې ذکر دی، او د مالکيانو په دې کښې دوه اقوال دی يو د جمهورو په مثل او دويم قول کوم چه د هغوی په نزد زيات معتمد دې هغه دا دې چه د امام ستره خو خپله د امام دپاره ده او د قوم ستره امام دې.

### په مسئلة الباب کښې اختلاف علماء او د اختلاف ثمره

د ثمره اختلاف د اوريدو نه مخکښې په يوه خبره باندې خان پوهه کړئ هغه دا چه د شروح حديث نه زه په دې باندې پوهه شوې يم چه هغه مرور ممنوع دې کوم چه براه راست د مصلی او د هغه د سترې ترمينځه وی، او که د مصلی او د سترې تر مينځه يو څيز حائل وی نو بيا د مصلی مخې ته تيريدل ممنوع نه دی، لهذا د امام مخې ته تيريدل خو به بالاتفاق ممنوع وی ځکه چه د امام او د هغه د سترې ترمينځه يو څيز حائل نه دې، او د اول صف په وړاندې تيريدل به د جمهورو په نزد جائز وی ځکه چه د مصلی او د ستره ترمينځه دلته امام حائل دې، خو د مالکيانو په نزد به جائز نه وی، د هغوی په نزد به د مصلی او ستره ترمينځه تيريدل لازميږی ځکه چه د اول صف ستره خپله امام دې دا ثمره د اختلاف علامه دردير مالکی او صاحب منهل هم ليکلې ده.

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٥٦) (ضعيف)

او حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباري کښې او علامه سندي په حاشيه د بخاري کښې د ثمره اختلاف د لاندې ليکلي دي چه مرور على الامام ښکه چه د امام په حق کښې مضر دې هم دغه شان د جمهورو په نزد د مقتدي په حق کښې به هم مضر وي (١) ځکه چه د دوارو ستره يوه ده، لهذا دا مرور به د هر دوارو په حق کښې مضر وي، په خلاف د مالکيانو چه د هغوى په نزد مرور على الامام به صرف د امام په حق کښې مضر وي.

**تنبيه** : په عيني شرح بخاري کښې په بيان تفريع کښې قلب واقع شوې دې، هغه دا ليکلي دي چه مرور على الامام په مسلک د جمهورو باندې به صرف د امام په حق کښې مضر وي او د مالکيانو په نزد به د دوارو په حق کښې مضر وي.

[٧٠٨](٢)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ الْغَازِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "هَبَطْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ ثَنِيَّةِ أَذَاخِرَ فَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ يَعْنِي فَصَلَّى إِلَى جِدَارٍ، فَاتَّخَذَهُ قِبْلَةً وَنَحْنُ خَلْفَهُ، فَجَاءَتْ بَهْمَةٌ تَمُرُّ بَيْنَ يَدَيْهِ فَمَا زَالَ يُدَارِئُهَا حَتَّى لَصَقَ بَطْنَهُ بِالْجِدَارِ وَمَرَّتْ مِنْ وَرَائِهِ"، أَوْ كَمَا قَالَ مُسَدَّدٌ.

**ترجمه**: عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده نه روايت دې هغه وئيلى دي: مونږ ځکته شو د رسول الله ﷺ سره د غونډۍ د اذخر نه، نو د مانځه وخت راغې. يعنى مونځ ئې وکړو ديوال ته ـ نو هغه ئې ستره ونيوه او مونږ ترينه وروسته وو، راغله يوه بهيمه چې تېريدله مخې د هغه ته هميشه وو پيغمبر چې هغه ئې دفع کوله تردې چې پيوسته ئې کړه خيټه خپله د ديوال سره، او هغه تېره شوه اخوا د ديوال نه. او يا چې څنګه وئيلى دى مسدد.

**تشريح**: **قوله**:﴿ هبطنا مع رسول الله صلى الله عليه وسلم من ثنية اذاخر ﴾ ثنية اذاخر د مديني او مکې ترمينځه د يوځائې نوم دې د مديني په نسبت مکې ته زيات نزدې دې ﴿ فصلى الى جدار ﴾ جدار وئيلې شى د پټې نه چاپيره مختصر شان ديوال ته چه کوم ته پناهي وئيلې شي، د حديث مضمون دا دې چه مونږ د رسول الله ﷺ سره په ثنية اذاخر په لاره باندې تيريدو چه د مونځ وخت شو نو رسول الله ﷺ د يو پټې ديوال ته اودريدو سره مونځ ورکړو يعنى هغه ديوال ئې ستره کړو، مونږ په هغه پسې شاته اودريدو نو د يوې بيزې بچې راغلو کوم چه د رسول الله ﷺ مخې ته تيريدل غوښتل نو رسول الله ﷺ هغه لرې کولو او وړاندې کيدو تردې چه د رسول الله ﷺ خيټه د هغه ديوال سره اولګيده، الغرض رسول الله ﷺ هغه خپلې مخې ته تيريدو ته پرينخودلو نو هغه د رسول الله ﷺ يا د ديوال نه شاته تير شو.

[٧٠٩](٣)حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَحَفْصُ بْنُ عُمَرَ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ الْجَزَّارِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي، فَذَهَبَ جَدْيٌ يَمُرُّ بَيْنَ يَدَيْهِ فَجَعَلَ يَتَّقِيهِ".

---

(١) په دې تفريع باندې به دا منلې شى چه مرور بين المصلى وسترته مطلقا ممنوع دې اګر چه د دوارو ترمينځه يو څيز حائل وى ١٢ منه)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٨١١ ألف)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/١٩٦) (حسن صحيح)

(٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٥٤٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٣٩ (٩٥٣)، مسند احمد (١/٢٩١، ٣٤١) (صحيح)

**ترجمه**: د ابن عباس ﷺ نه روایت دې بیشکه نبی ﷺ وو چې مونځ ئې کولو نو راغې بچې د چیلی چې تیریدلو مخې د هغه ته نو هغه شروع شو چې ځان ئې ترېنه بچ کولو.

## مطابقة الحديث للترجمة

د دې حدیث نه معلومه شوه چه د امام ستره د قوم ستره ده، قوم ته د جدا سترې حاجت نشته، ځکه چه په دې حدیث کښې د امام د سترې خو ذکر دې او د قوم د سترې پکښې هیڅ ذکر او ثبوت نشته، او دویمه خبره دا هم معلومه شوه چه خپله امام د قوم ستره نه ده لکه چه مالکیان فرمائی ځکه چه رسول الله ﷺ هغه بیزه خپله مخې ته په تیرید و پرینخودله او د هغې پرواه ئې اونکړه چه د قوم مخې ته تیره شی، حال دا چه که امام خپله د قوم ستره وې نو بیا به د صف اول نه د بیزې تیریدل د قوم دپاره مضر وې.

## باب مَنْ قَالَ الْمَرْأَةُ لَا تَقْطَعُ الصَّلَاةَ

### باب دې په بیان د هغه چا کې چې هغه ویلي دي ښځه مونځ نه قطع کوي

په دې باب کښې مصنف د عائشې ﷺ هغه مشهور حدیث ذکر فرمائیلې دې کوم چه په صحیحین کښې هم دې، هغه فرمائی چه زه به په حجره شریفه کښې د رسول الله ﷺ مخې ته ملاسته اوم چه کله به هغه د شپې د تهجدو مونځ کولو، ددې نه معلومه شوه چه د زنانه د مصلی مخې ته سملاستل هم چه قاطع صلاة نه دی حال دا چه په دې کښې د فتنې ویره زیاته ده نو د هغې مرور به په طریقه اولی قاطع صلاة نه وی، کوم خلق چه د قطع قائل دی هغوی ددې مختلف جوابات ورکوی، یو دا چه دا واقعة حال لا عموم لها د قبیل نه ده گویا دا د رسول الله ﷺ خصوصیت دې، یا دا چه د قطع روایات مطلق دی او د عائشې ﷺ دا حدیث مقید دې په زوجې سره، او بعض د اعتراض او مرور فرق کړې دې چه مخامخ کیدل قاطع نه دی مرور قاطع دې.

[٧١٠]()حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كُنْتُ بَيْنَ يَدَيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ، قَالَ شُعْبَةُ: أَحْسِبُهَا قَالَتْ: وَأَنَا حَائِضٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الزُّهْرِيُّ وَعَطَاءٌ، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ حَفْصٍ، وَهِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، وَعِرَاكُ بْنُ مَالِكٍ، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ حَفْصٍ، وَهِشَامٌ، كُلُّهُمْ عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ وَإِبْرَاهِيمُ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، وَأَبُو الضُّحَى، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، وَالْقَاسِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ، وَأَبُو سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، لَمْ يَذْكُرُوا: وَأَنَا حَائِضٌ.

**ترجمه**: د عائشې ﷺ نه روایت دې هغې ویلی دي: وم زه په مابین د نبی ﷺ او قبلې د هغه کښې. وئیلی دی شعبة: زه گمان کوم په هغې چې وئیلی دی هغې: او زه حائضه وم. وئیلی دی ابوداود: نقل کړی دی دې لره زهری او عطاء او ابوبکر بن حفص، او هشام بن عروة، او عراک بن مالک او ابو الاسود او تمیم بن سلمة ټول روایت کړی دی د عروة نه، هغه د

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٣٤٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلاة ١٩ (٣٨٢)، ٢١ (٣٨٣)، ١٠٣ (٥١٢)، ١٠٤ (٥١٣)، والوتر ٣ (٩٩٧)، والعمل في الصلاة ١٠ (١٢٠٩)، صحيح مسلم/الصلاة ٥١ (٥١٢)، والمسافرين ١٧ (١٣٥)، سنن النسائي/القبلة ١٠ (٧٦٠)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٤٠ (٩٥٦)، موطا امام مالك/صلاة الليل ١(٢)، سنن الدارمي/الصلاة ١٢٧ (١٤٥٣)، مسند احمد (٩٤/٦، ٩٨، ١٧٦) (صحيح) دون قوله: وأنا حائض

عائشي نه. او ابراهيم روايت کړی دی د اسود نه او هغه د عائشي نه. او ابو الضحی د مسروق نه او هغه د عائشي نه. او قاسم بن محمد او ابو سلمة د عائشي نه نه دی ذکر دا قول: (وَأَنَا حَائِضٌ).

[۷۱۱]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي صَلَاتَهُ مِنَ اللَّيْلِ وَهِيَ مُعْتَرِضَةٌ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ رَاقِدَةً عَلَى الْفِرَاشِ الَّذِي يَرْقُدُ عَلَيْهِ، حَتَّى إِذَا أَرَادَ أَنْ يُوتِرَ أَيْقَظَهَا فَأَوْتَرَتْ".

**ترجمه**: د عائشي رضي الله عنها نه روايت دې بيشکه رسول الله ﷺ وو چې مونځ ئې دشپې او هغه په پلنو اوده وه په مابين د نبي ﷺ او قبله کښې په فرش باندې هغه فرش چې هغه به پرې اوده کيدلو، تردې چې اراده به وکړه هغه د وترو کولو نو عائشه به ئې راويخه کړه نو هغې به هم وتر کول.

[۷۱۲]([2])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ: سَمِعْتُ الْقَاسِمَ يُحَدِّثُ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: بِئْسَمَا عَدَلْتُمُونَا بِالْحِمَارِ وَالْكَلْبِ، "لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ يُصَلِّي وَأَنَا مُعْتَرِضَةٌ بَيْنَ يَدَيْهِ، فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَسْجُدَ غَمَزَ رِجْلِي فَضَمَمْتُهَا إِلَيَّ ثُمَّ يَسْجُدُ".

**ترجمه**: د عائشي رضي الله عنها نه روايت دې هغې ويلي دي: ډير بد دی هغه شی چې تاسو ورسره مونږ برابر کړی يو د خره او د سپي سره، بيشکه ما ليدلی وو رسول الله ﷺ چې مونځ ئې کولو او زه په پلنو پرته ومه د هغه په مخه کښې چې کله به ئې اراده د سجدی وکړه نو وبه ئې سکونډله خپه زما نو مابه راجوخته کړه ځانته، بيا به ئې سجده وکړه.

**تشريح**: **قوله**: ﴿عن عائشة قالت: بئسما عدلتمونا بالحمار والكلب﴾ کوم خلق چه مرور مرأة قاطع صلاة مني، عائشه رضي الله عنها د هغوی نه ګيله کوی چه تاسو مونږ د خرو او سپو سره برابر کړو.

[۷۱۳]([3])حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ النَّضْرِ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: "كُنْتُ أَكُونُ نَائِمَةً وَرِجْلَايَ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ، فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَسْجُدَ ضَرَبَ رِجْلَيَّ فَقَبَضْتُهُمَا فَسَجَدَ".

**ترجمه**: د عائشي رضي الله عنها نه روايت دې هغې ويلي دي: وم زه چې اوده به وم او زما خپې به د رسول الله ﷺ مخې ته وې او هغه به مونځ کولو دشپې، کله چې به هغه اراده وکړه د سجدې کولو نو زما خپه به ئې ووهله نو مابه راټوله کړه هغه به سجده وکړه.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ ورجلاي بين يدي رسول الله صلى الله عليه وسلم ﴾ رسول الله ﷺ به چه په حجره شريفه کښې د شپې کوم وخت کښې تهجد کول نو عائشه رضي الله عنها فرمائی چه هغه وخت زما خپې د رسول الله ﷺ مخکښې د سجدې په ځائې کښې وې، چه کله به رسول الله ﷺ سجدې ته اورسيدو نو زما خپې به ئې زور کړې بيا به ما خپلې خپې راټولې کړې، دلته په

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٩٠٢، ١٦٣٣٣) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٥٣٧) (صحيح)

[3]: صحيح البخاري/الصلاة ١٩ (٣٨٢)، العمل في الصلاة ١٠ (١٢٠٩)، صحيح مسلم/الصلاة ٥١ (٥١٢)، سنن النسائي/القبلة ١٠ (٧٦٠)، (تحفة الأشراف: ١٧٧١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/١٤٨، ٢٢٥) (صحيح)

ظاهره کښې د بې ادبئ شبهه ده، جواب دا دې چه اول خو حجره شريفه تنګه وه، دويمه دا چه عائشه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ زوجه محترمه ده، په زوجين کښې کمال الفت او محبت او بې تکلفي پکار ده. دا د ادب خلاف نه ده، بله دا چه په هغه زمانه کښې به د شپې ډيوې روښانه نه وې په حجره کښې به تياره وه، پس په بعض رواياتو کښې خپله عائشه رضي الله عنها فرمائي ﴿البيوت يومئذ ليس فيها مصابيح﴾ لهذا د بې ادبئ هيئت نه شو.

[۷۱۴]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ ح قَالَ أَبُو دَاوُد، حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ وَهَذَا لَفْظُهُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: "كُنْتُ أَنَامُ وَأَنَا مُعْتَرِضَةٌ فِي قِبْلَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَيُصَلِّي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أَمَامَهُ، إِذَا أَرَادَ أَنْ يُوتِرَ، زَادَ عُثْمَانُ: غَمَزَنِي ثُمَّ اتَّفَقَا، فَقَالَ: تَنَحَّيْ".

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې هغې ويلي دي: زه به اوده کيدم په پلنو په قبله د رسول الله ﷺ کښې، مونځ به کولو رسول الله ﷺ او زه به د هغه مخې ته وم کله چې به هغه د وترو کولو اراده وکړه. زيادت کړې دی عثمان او قعنبي: چې زه (عائشه) به ئې وسکونډلم. بيا دواړه سره متفق شوي دي هغه به وويل: غاړې ته شه.

**تشريح: قوله:** ﴿فقال : تنحي﴾ دا د واحد مونث حاضر امر صيغه ده يعني يو طرف ته شه، او مطلب دا دې چه يو طرف ته کيدو سره د وتر مونځ اوکړه لکه چه په بعض نورو رواياتو کښې دي چه رسول الله ﷺ به د تهجدو د مونځ نه د سلام اړولو نه پس چه کله د وتر اراده فرمائيله نو هغه به ئې هم بيداره کړه چه هغه هم وتر اوکړي، په اولنو رواياتو کښې چه کوم غمز رجل ذکر شوې دې هغه خو د مونځ په حالت کښې دې او دا د مونځ نه د فارغ کيدو نه پس دی ځکه په مونځ کښې کلام چرته جائز دې.

## بَابُ مَنْ قَالَ الْحِمَارُ لَا يَقْطَعُ الصَّلَاةَ

### باب دې په بيان د هغه چا کې چې هغه ويلي دي چې خر مونځ نه قطع کوي

[۷۱۵]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: جِئْتُ عَلَى حِمَارٍ ح وحَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أَقْبَلْتُ رَاكِبًا عَلَى أَتَانٍ وَأَنَا يَوْمَئِذٍ قَدْ نَاهَزْتُ الِاحْتِلَامَ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ بِمِنًى، فَمَرَرْتُ بَيْنَ يَدَيْ بَعْضِ الصَّفِّ فَنَزَلْتُ فَأَرْسَلْتُ الْأَتَانَ تَرْتَعُ وَدَخَلْتُ فِي الصَّفِّ، فَلَمْ يُنْكِرْ ذَلِكَ أَحَدٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا لَفْظُ الْقَعْنَبِيِّ وَهُوَ أَتَمُّ، قَالَ مَالِكٌ: وَأَنَا أَرَى ذَلِكَ وَاسِعًا إِذَا قَامَتِ الصَّلَاةُ.

**ترجمه:** د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې هغه وئيلی دي: زه راغلم په خر باندې، او په بل سند باندې د ابن عباس نه روايت دې هغه وئيلی دي: زه راغلم سور په خره باندې او زه په دغه

---

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۷۵٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۲/٦) (حسن صحيح)

[2]): صحيح البخاري/العلم ۱۸ (۷٦)، والصلاة ۹۰ (٤۹۳)، والأذان ۱٦۱ (۸٦۱)، وجزاء الصيد ۲٥ (۱۸٥۷)، والمغازي ۷۷ (٤٤۱۲)، صحيح مسلم/الصلاة ٤۷ (٥۰٤)، سنن الترمذي/الصلاة ۱٤۰ (۳۳۷)، سنن النسائي/القبلة ۷ (۷٥۳)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۳۸ (۹٤۷)، (تحفة الأشراف: ٥۸۳٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/قصر الصلاة ۱۱(۳۸)، مسند احمد (۲۱۹/۱، ۲٦٤، ۳۳۷، ۳٦٥)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۲۹(۱٤٥٥) (صحيح)

وخت كښې رسيدلى وم احتلام ته او رسول الله ﷺ خلكو ته مونځ كولو په منى كښې. نو زه تېر شوم مخې د بعضې حصې د صف ته، زه خكته شوم خره مې ايله كړه چې خوراك وكړي او په صف كښې شريک شوم، يو كس هم دا بده ونه ګنړله. وئيلى دى ابوداود: دا لفظ د قعنبى دى اودا اتم دى، وئيلى دى مالک: او زه په دې كښې وسعت وينم كله چې مونځ ودرولى شي.

**تشريح: قوله:** ﴿ يصلى بالناس بمنى ﴾ د بخاري په روايت كښې هم دغه شان دى، او د مسلم په يو روايت كښې د ﴿ بمنى ﴾ په ځائې ﴿ بعرفة ﴾ دې، د امام نووي رحمه الله رائې د تعدد واقعه ده، او حافظ فرمائى چه مخرج د حديث په اتحاد سره تعدد خلاف اصل دې بلكه دا به وئيلې شى چه دويم روايت شاذ دې.

## د حديث په شرح كښې د امام بخاري او امام بيهقى رائې

د بخاري په يو روايت كښې دلته يو زيادت دې ﴿ الى غير جدار ﴾ يعنى رسول الله ﷺ په منى كښې مونځ كولو بغير د څه د يوال او سترې نه، ددې جملې امام بيهقى رحمه الله هم دا مطلب اخستلې دې، پس هغه په دې باندې ترجمه قائم كړې ده ﴿ باب الصلاة الى غير سترة ﴾ او د امام بخاري ترجمه ددې خلاف ده ﴿ باب سترة الامام لمن خلفه ﴾ لهذا ددې ترجمې په وجه باندې به د حديث مطلب دا وى چه د جدار نه علاوه د يو بل څيز ستره جوړه كړې شى نو په هغې كښې هيڅ باک نشته.

**قوله:** ﴿ فمررت بين يدى بعض الصف ﴾ د دې نه دوه خبرې معلومې شوې اول دا چه د مقتدى په وړاندې تيريدو كښې هيڅ باک نشته، د امام او د هغه د سترې ترمينځه تيريدل مضر دى، دويم دا چه مرور حمار قاطع نه دې. ﴿ قال مالک : وانا ارى ذلک واسعا اذا قامت الصلاة ﴾ د دې جملې چه كومه شرح په بذل كښې ليكلې شوې ده يعنى د مرور قاطع صلاة نه كيدل په دې كښې تسامح ده، په دې مطلب كښې ﴿ اذا اقامت الصلاة ﴾ په ظاهره كښې بې جوړه دې او صحيح مطلب ددې دا دې چه د مونځ د شروع كيدو نه پس په صف كښې د شامليدو دپاره د صفونو نه شاته كه څه لاره نه وى نو د صف نه وړاندې تيريدې شى، ددې مطلب تعيين خپله د مؤطاء امام مالک نه كيږي، ابن رسلان او صاحب منهل هم دا مطلب ليكلې دې.

[۷۱٦](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ الْجَزَّارِ، عَنْ أَبِي الصَّهْبَاءِ، قَالَ: تَذَاكَرْنَا مَا يَقْطَعُ الصَّلَاةَ عِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍ، فَقَالَ: "جِئْتُ أَنَا وَغُلَامٌ مِنْ بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ عَلَى حِمَارٍ، وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي، فَنَزَلَ وَنَزَلْتُ وَتَرَكْنَا الْحِمَارَ أَمَامَ الصَّفِّ فَمَا بَالَاهُ، وَجَاءَتْ جَارِيَتَانِ مِنْ بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَدَخَلَتَا بَيْنَ الصَّفِّ فَمَا بَالَى ذَلِكَ".

**ترجمه:** د ابو الصهباء نه روايت دې هغه وئيلى دى، مونږ مذاكره كوله د هغه شيانو چې كوم مونځ قطع كوى د ابن عباس په خوا كښې، هغه ووئيل: زه او يو هلک د بنى عبد المطلب راغلو په خر باندې او رسول الله ﷺ مونځ كولو، نو مونږ دواړه راخكته شو او مونږ خر پريخودلو د صف مخې ته، نو هغه هېڅ پروا ونه كړه، او راغلې دوه جينكۍ د بنى عبد

(١): سنن النسائي/القبلة ٧ (٧٥٥)، (تحفة الأشراف: ٥٦٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٣٥) (صحيح)

المطلب نه دواړه په صف کښې تنوتلې نو هغه هېڅ پروا پرې ونه کړه.

[۷۱۷](¹)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَدَاوُدُ بْنُ مِخْرَاقٍ الْفِرْيَابِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ بِإِسْنَادِهِ، قَالَ: فَجَاءَتْ جَارِيَتَانِ مِنْ بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ اقْتَتَلَتَا فَأَخَذَهُمَا، قَالَ عُثْمَانُ: فَفَرَّعَ بَيْنَهُمَا، وَقَالَ دَاوُدُ: فَنَزَعَ إِحْدَاهُمَا عَنِ الْأُخْرَى فَمَا بَالَى ذَلِكَ.

**ترجمه**: د منصور نه روايت دې ددې حديث په اسناد د هغې سره هغه وويل: نو راغلې دوه جينکۍ د بني عبد المطلب نه، نو دواړه ئې ونيولې، وئيلي دی عثمان: دواړه ئې جدا کړې. او وئيلي دی داود: لرې ئې کړه يوه د بلې نه، نو هغه پروا ونه کړه.

## بَابُ مَنْ قَالَ الْكَلْبُ لَا يَقْطَعُ الصَّلَاةَ

### باب دې په بيان د هغه چاکې چې وايي سپی مونځ نه قطع کوي

په شروع کښې مصنف يو حديث ذکر کړې وو چه په هغې د درې څيزونو قاطع صلاة کيدل مذکور وو، زنانه، خر او سپې، مصنف په دې درې واړو باندې جدا جدا بابونه تړلو سره ددې قاطع نه کيدل ثابت کړل.

[۷۱۸](²)حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ شُعَيْبِ بْنِ اللَّيْثِ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ جَدِّي، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عُمَرَ بْنِ عَلِيٍّ، عَنْ عَبَّاسِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أَتَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ فِي بَادِيَةٍ لَنَا وَمَعَهُ عَبَّاسٌ فَصَلَّى فِي صَحْرَاءَ لَيْسَ بَيْنَ يَدَيْهِ سُتْرَةٌ وَحِمَارَةٌ لَنَا وَكَلْبَةٌ تَعْبَثَانِ بَيْنَ يَدَيْهِ، فَمَا بَالَى ذَلِكَ".

**ترجمه**: د فضل بن عباس نه روايت دې هغه وئيلي دي: راغې مونږ ته رسول الله ﷺ او مونږ زمونږ په بانډه کښې وو او د هغه سره عباس وو. مونځ ئې وکړو په صحراء کښې چې د هغه مخې ته ستره نه وه او زمونږ خره او سپۍ دواړو لوبې کولې د هغه مخې ته نو هېڅ پروايي ونه کړه په هغې.

## بَابُ مَنْ قَالَ لَا يَقْطَعُ الصَّلَاةَ شَيْءٌ

### باب دې په بيان د هغه چاکې چې وايي: مونځ لره نه قطع کوي هېڅ شی

په اخره کښې ئې ددې سلسلې يو داسې باب راوړلو کوم چه دې ټولو قسمونو ته عام او جامع دې.

[۷۱۹](³)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنْ أَبِي الْوَدَّاكِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَقْطَعُ الصَّلَاةَ شَيْءٌ، وَادْرَءُوا مَا اسْتَطَعْتُمْ فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ".

**ترجمه**: د ابو سعيد نه روايت دې هغه وئيلي دی، چې فرمائيلي دی رسول الله ﷺ: نه قطع کوی مونځ لره هېڅ شی، لرې کړئ (دفع کړئ) څومره چې ستاسو طاقت وی بېشک هغه شيطان دی.

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٥٦٨٧) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/القبلة ٧ (٧٥٤)، (تحفة الأشراف: ١١٠٤٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢١١، ٢١٢) (ضعيف)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٩٨٩) (ضعيف)

[۷۲۰]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا مُجَالِدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْوَدَّاكِ، قَالَ: مَرَّ شَابٌّ مِنْ قُرَيْشٍ بَيْنَ يَدَيْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ وَهُوَ يُصَلِّي فَدَفَعَهُ، ثُمَّ عَادَ فَدَفَعَهُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، فَلَمَّا انْصَرَفَ، قَالَ: إِنَّ الصَّلَاةَ لَا يَقْطَعُهَا شَيْءٌ، وَلَكِنْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ادْرَءُوا مَا اسْتَطَعْتُمْ فَإِنَّهُ شَيْطَانٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: إِذَا تَنَازَعَ الْخَبَرَانِ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُظِرَ إِلَى مَا عَمِلَ بِهِ أَصْحَابُهُ مِنْ بَعْدِهِ.

**ترجمه**: د ابو الوداک نه روایت دې هغه وئیلی دي: چې تېر شو یو ځوان د قریشو نه مخې د ابو سعید الخدری ته او هغه مونځ کولو نو هغه دفع کړو بیا راغې بیا ئې دفع کړو تر دې ځلو پورې، هرکله چې هغه فارغ شو نو ویې وئیل: بیشکه مونځ لره نه قطع کوی هېڅ شی، لکن رسول الله ﷺ ویلی دي: تاسو دفع کوئ څومره چې ستاسو طاقت وی بیشکه هغه شیطان دی. وئیلی دی ابوداود: کله چې تنازع راشي په مابین د دوه خبرینو کښې نو کتل به شی عمل د صحابو ته وروسته د هغه نه.

**تشریح**: **قوله**: ﴿ مر شاب من قریش بین یدی ابی سعید الخدری ﴾ دا هم هغه حدیث دې د کوم چه څه حصه مخکښې په "باب ما یؤمر المصلی ان یدراء" د لاندې تیره شوې ده، مصنف ددې څه حصه هلته ذکر کړه او څه دلته، پوره روایت په بخاری ص۷۳ او مسلم ص۱۹۷ کښې موجود دي.

**قوله**: ﴿ قال ابوداود : اذا تنازع الخبران عن رسول الله صلی الله علیه وسلم نظر الی ما عمل به اصحابه ﴾ (۲) مصنف دا یوه اصولی خبره بیان کړې ده چه په کومه مسئله کښې احادیث مرفوعه متعارض وی نو هلته اثار صحابه او د هغوی طرز عمل ته کتل پکار دی، حضرت په بذل کښې لیکی چه په عمل صحابه کښې د نظر کولو نه معلومیږی چه بعض هغه صحابه کرام کوم چه د قطع صلاة راویان دی لکه ابن عباس، ابن عمر، عائشه، دا حضرات خپله ددې ځیزونو په مرور سره د قطع قائل نه دی، پس د بیهقی او طحاوی په یو روایت کښې دی چه د ابن عباس نه مسئله اوتپوسلې شوه چه زنانه، خر او سپې قاطع صلاة دی؟ نو هغه جواب ورکړو ﴿ الیه یصعد الکلم الطیب والعمل الصالح یرفعه ﴾ یعنی مونځ یو عمل صالح دې چه فرشتې ئې پورته اسمان ته اوړی ایا دا ځیزونه اسمان ته د اوړلو نه مانع کیدې شی؟ هم دغه شان د ابن عمر رضی الله عنه نه هم د عدم قطع صلاة فتوی منقول ده، هم دغه شان د سیدنا عائشه رضی الله عنها نه د زنانه د غیر قاطع کیدو روایت موجود دې، وړاندې حضرت فرمائی چه ددې نه علاوه چه د ډیرو صحابه کرامو نه د قطع صلاة روایات موجود دی د هغې نه دا نه لازمیږی چه د هغوی مذهب دې ضرور د قطع صلاة وی بلکه د قطع صلاة نه مراد به د هغوی قطع خشوع وی لکه چه جمهور علماء کرام فرمائی، والله اعلم بالصواب. دې ځائې ته رارسیدو سره د بذل المجهود اولنې جلد پوره شو.

اللهم تقبل منا کما تقبلت من عبادک الصالحین واجعله خالصا لوجهک الکریم

---

[۱]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۹۸۹) (ضعیف)

[۲] بالکل هم ددې په شان عبارت مصنف په دې کتاب کښې دوه ځایه نور راوړې دې مثلا په کتاب الحج کښې د صید محرم روایات مختلفه د لاندې، باب لحم الصید للمحرم کښې فرمائی: قال ابوداود واذا تنازع الخبران عن رسول الله صلی الله علیه وسلم ینظر بما اخذ به اصحابه)

# ابواب تفریع استفتاح الصلاة

## دمونځ شروع کولو احکام

### د مصنف یو عادت

ما مخکښې دا خبره بیان کړې ده چه مصنف لفظ تفریع په کثرت سره استعمالوی، د هر یومصنف یو خاص ادا او طرز تعبیر وی.
څنګه چه په لیکلو کښې مضامین مرتب وی هم دغه شان د هر یو مصنف په ذهن کښې د ابواب او مضامین یو خاص ترتیب د مخکښې نه موجود وی چه د هغې مطابق هغه تصنیف لیکی نو د تفریع مطلب دا شو چه د مصنف د ذهنی ترتیب په اعتبار سره (بلکه خارجی هم) راتلونکی ابواب په تیرو ابوابو باندې متفرع کیږی او یا داسې اوایئ چه تفریع ماخوذ دې د فرع نه چه د هغې جمع فروع راځی، فروع وئیلې شی مسائل جزئیه ته، وئیلې شی ﴿ فرعت من هذا الاصل مسائل ای استخرجت ﴾ نو مطلب دا شو چه د افتتاح الصلاة نه تر د اختتام صلاة پورې د مسائلو استخراج یعنی د احادیث نبویه نه، صرف ددې تخصیص نه بلکه د مصنف مقصد د ټولو ابوابو او کتب نه استخراج وفروع ومسائل دې.
استفتاح صلاة یعنی مونځ شروع کول، ددې ځائې نه د مونځ د داخلی څیزونو بیان شروع کیږی او اوسه پورې د مونځ متعلق د هغه احکاماتو بیان وو کوم چه خارجی دی.
اوس ددې ځائې نه مصنف د مونځ مکمل طریقه د شروع نه تر انتهاء پورې د تکبیر تحریمه نه تر سلام پورې په راتلونکو ابواب کښې بیانول غواړی، د مونځ ددې مکمل کیفیت بیان له فقهاء کرامو بلکه اکثر محدثین مصنفین هم په باب صفة الصلاة سره تعبیر کوی.

## بَابُ رَفْعِ الْيَدَيْنِ فِي الصَّلَاةِ

### باب دې په بیان رفع الیدینو کې په مانځه کې

پورته عنوان یعنی "ابواب تفریع استفتاح الصلاة" دا عنوان د کلی په درجه کښې دې، او دا باب او راتلونکی ابواب ددې کلی جزئیات دی، ښه ځان پوهه کړئ.

### د ترجمة الباب غرض

ښه ځان پوهه کړئ چه په ترجمة الباب کښې رفع الیدین مطلقا ذکر کړې شوې دی دا ئې نه ده ظاهر کړې چه کوم رفع الیدین، د ترتیب تقاضه خو دا ده چه مقصود بالبیان صرف رفع الیدین عند التحریمه وی ځکه چه د رفع الیدین نه فارغ کیدو سره مصنف وړاندې د دعاء استفتاح باب قائم کړې دې، خو چونکه ددې باب په احادیثو کښې رفع عند الرکوع وغیره هم ذکر ده، په دې وجه مصنف د رفع الیدین ټول مواضع په یوځائې بیان کړې دی، هم په دې وجه ئې د دعاء استفتاح د باب نه مخکښې د عدم رفع عند الرکوع باب قائم کړې دې، ددې نه معلومه شوه چه د مصنف مراد د رفع نه رفع عند التحریمه والرکوع وغیره ټول دی.

## د رفع اليدين متعلق مباحث خمسه

اوس تاسو د رفع اليدين متعلق احکام او مسائل واورئ کوم چه پنځه دی

۱: مواضع الرفع: په مانځه کښې رفع څو ځايونو کښې ده.
۲: کيفية الرفع: يعنی د رفع يدين طريقه.
۳: وقت الرفع: رفع يدين د تحريمه نه مخکښې پکار دی يا ددې سره.
۴: منتهی الرفع: لاسونه به د کوم ځائې پورې اوچتولې شی.
۵: حکم الرفع: د رفع يدين حکمتونه او مصلحتونه.

## البحث الاول:

په مونځ کښې رفع اليدين کوم کوم ځائې کښې کولې شی، الموضع الاول عند التحريمه د دې د سنتيت جمهور علماء کرام قائل دی په شرح مهذب کښې ددې په استحباب باندې د امت اجماع نقل کړې ده خو د ابن حزم په نزد دا رفع فرض ده بغير ددې نه به مونځ صحيح نه وی وهو رواية عن الاوزاعی، خو د امام مالک رحمه الله يو روايت د عدم استحباب دې او علامه باجی د ډيرو مالکيانو نه هم عدم استحباب نقل کړې دې خو په کتب مالکيه کښې د استحباب تصريح ده لهذا صحيح هم دا ده، او بعض علماء کرامو د فرقه زيديه نه ددې رفع عدم جواز نقل کړې دې، وثيلې شوې دی چه دا نقل صحيح نه دې، الحاصل د ائمه ثلاثه په نزد دا رفع سنت ده او هم دا قول اصح د امام مالک هم دې، او د ابن حزم او اوزاعی په نزد فرض ده، الموضع الثانی، رفع يدين عند الرکوع يعنی رکوع ته د تلو په وخت او د هغې نه د پاسيدو په وخت، ددې د سنتيت د صحابه کرامو يو جماعت قائل دی لکه ابن عمر، جابر بن عبدالله، ابوهريره، انس، ابن عباس، عبدالله بن الزبير وغيرهم قاله الترمذی فی جامعه، هم دغه شان هغه فرمائی : ومن التابعين الحسن البصری وعطاء وطاؤس ومجاهد ونافع وسالم وسعيد بن جبير وغيرهم، او په ائمه کرامو کښې امام شافعی، احمد او اسحاق بن راهويه قائل دی.

د دې بالمقابل امام ابوحنيفه، سفيان ثوری، ابراهيم نخعی، ابن ابی ليلی او د صحابه کرامو او د تابعينو يو جماعت ددې رفع د عدم استحباب قائل دی، لکه عبدالله بن مسعود، جابر بن سمرة، براء بن عازب، عبدالله بن عمر (بذل عن العينی) هم دغه شان امام طحاوی رحمه الله د عمر رضی الله عنه عمل هم د ترک رفع ثابت کړې دې، ابن بطال مالکی رحمه الله هم د عمر رضی الله عنه عمل د ترک رفع ثابت کړې دې. (حاشية فيض الباری ص ۴۵۷، ج ۲) هم دغه شان امام طحاوی رحمه الله د علی رضی الله عنه عمل هم عدم رفع ثابت کړې دې، مولانا بدر عالم صاحب په دې باندې بحث کولو سره فرمائی چه که ددې دواړو (عمر او علی) نه رفع ثابت وې نو امام ترمذی به د هغوی نومونه ضرور په قائلين رفع کښې ذکر کړې وې.

د قائلين رفع د لاندې امام ترمذی رحمه الله فرمائی : وبه يقول غير واحد من اهل العلم من اصحاب النبی صلی الله عليه وسلم والتابعين وهو قول سفيان واهل الکوفة. او صاحب بدائع د ابن عباس

رضي الله عنهم نه د عشره مبشره عمل هم عدم رفع نقل کړې دی (¹)(خو هغه ددې سند نه دې بيان کړې).

## په رفع اليدين کښې د امام مالک د مذهب تحقيق

او د امام مالک نه په دې کښې دوه روايتونه دی، د ابن القاسم په روايت سره عدم رفع دې او د ابن وهب او اشهب په روايت کښې استحباب رفع دې، خو په الشرح الکبير کښې علامه دردير رحمه الله صرف د عند التحريمه د رفع استحباب ذکر کړې دې او د رفع عند الرکوع عدم استحباب، دا الشرح الکبير د مختصر خليل شرح ده او مختصر خليل د فقه مالکيه يو مشهور او معتبر متن دې، هم دغه شان امام نووی رحمه الله په شرح مسلم کښې د احنافو د مذهب ليکلو نه پس ليکی : وهو اشهر الروايات عن مالک. هم دغه شان علامه ابن رشد مالکي په بداية المجتهد کښې ليکلي دی چه د امام مالک د عمل اهل مدينه په وجه باندې عدم رفع ته ترجيح ورکړې ده، او په مدونه کښې خپله د امام مالک نه منقول دی (کما فی الفيض السمائی ص ۲۸٤) رفع اليدين ضعيف الا فی الافتتاح خو د شرح حديث د کتلو نه معلوميږی چه د فريق مقابل کوشش دا دې چه دا ثابت کړی چه د امام مالک په نزد رفع اليدين عند الرکوع کښې قول راجح د استحباب دې، پس علامه زرقانی فرمائی چه ابن عبدالحکم وئيلې دی چه د امام مالک رحمه الله نه عدم رفع چا هم نه ده نقل کړې سوا د ابن القاسم نه، علامه انور شاه کشميری رحمه الله په نيل الفرقد کښې فرمائی چه علامه عينی په مبانی الاخبار کښې ليکی چه : وروی الشافعی عن مالک انه کان لا يرفع يديه... لهذا ابن القاسم په خپل روايت کښې متفرد نه دې بلکه امام شافعی رحمه الله هم ددې راوی دې.

## رفع اليدين د احنافو په نزد خلاف اولی دی يا مکروه؟

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه په دې کښې اختلاف دې چه دا رفع اليدين عند الرکوع خلاف اولی دی يا مکروه، طحطاوی علی المراقی کښې دې ته مکروه وئيلې دی او په يو بل ځائې کښې په مراقی الفلاح کښې هم، او په فيض الباری کښې شاه صاحب د کبيری شرح منيه او صاحب بدائع نه هم کراهت نقل کړې دې، او بل قول د احنافو په دې کښې دا دې چه دا صرف خلاف اولی دې، امام ابوبکر جصاص رازی هم دا قول اختيار کړې دې لکه چه په فيض الباری کښې دی، او هم دا شاه صاحب او حضرت اقدس گنگوهی اختيار کړې دې،

¹ ، ددې په خلاف امام بيهقی رحمه الله د حاکم نه نقل کړې دی چه په دې سنت يعنی د رفع يدين په روايت باندې عشره مبشره متفق دی، او په دې باندې امام بيهقی رحمه الله فرمائی: وهو کما قال. يعنی حاکم چه څه فرمائيلي دی هم دغه شان ده. علامه زيلعی په نصب الرايه کښې د ابن دقيق العيد نه نقل کوی چه د حاکم د عشره مبشره په روايت باندې جزم کول څه غوره خبره نه ده او هغه فرمائی: ولعله لا يصح عن جملة العشرة. يعنی د لسو واړو نه ددې ثبوت مشکل دې، او علامه فيروز آبادی خو حد کړې دې هغه په سفر السعادة کښې د رفع اليدين فی المواضع الثلاثة متعلق فرمائی چه د عشره مبشره نه روايت دې چه رسول الله ﷺ هم په دې کيفيت باندې د عمر مبارک د اخره پورې مونځ کولو. زمونږ علماء فرمائی چه داسې يو حديث هم ثابت نه دې پاتې لا دا چه د عشره مبشره روايت وی. (امانی الاحبار ص ۱۹۰، ج ۳، وفيض الباري ص ۲۵۹ ج ۲)

كما في الكوكب الدري.

**الموضع الثالث** رفع اليدين عند السجود، په ائمه اربعه كښې څوک هم ددې د استحباب قائل نه دى، البته د امام احمد يو روايت كوم چه د هغه نه ميمونى نقل كړې دې د استحباب دې، هم دغه شان په شوافعو كښې ابن المنذر او ابو علي طبرى او بعض اهل حديث هم د استحباب قائل دى هم دغه شان ابن حزم هم ددې قائل دې بلكه في كل رفع وخفض.

**الموضع الرابع** : رفع عند القيام من الركعتين... يعنى د رومبى تشهد نه د پاسيدو په وخت، د امام مالك او امام شافعي په يو قول كښې دا رفع مستحب ده، امام نووى رحمه الله فرمائى او هم دا قول صواب دې، خو حضرت شيخ فرمائى چه اكثر متون شافعيه ددې د ذكر نه خالى دى، هم دغه شان د مالكيانو او حنابله په متون كښې هم ددې ذكر نشته، لهذا د امام نووى رحمه الله دا فرمائيل چه دلته د رفع اليدين والا قول صحيح دې محل نظر دې، حضرت شيخ په اوجز المسالک كښې فرمائى چه په ظاهره امام نووى داسې مجبورا اوكړل د اشكال نه د بچ كيدو دپاره (١)، هم دغه شان ابن دقيق العيد فرمائى چه د امام شافعي رحمه الله د نظر تقاضه دا كيدل پكار دى چه دلته رفع اليدين مستحب شى ځنګه چه هغه د رفع عند الركوع وبعد الركوع قائل دې ځكه چه دليل د تولو يو دې يعنى حديث د ابن عمر رضي الله عنه، چه د هغې په بعض طرق كښې په صحيح بخاري وغيره كښې دا رفع مذكور ده، هم دغه شان هغه فرمائى چه دې ته د امام شافعي رحمه الله مذهب په دې وجه وئيل چه د هغه نه منقول دى ﴿ اذا صح الحديث فهو مذهبى ﴾ په دې كښې نظر دې، حافظ فرمائى چه په ظاهره كښې د نظر وجه دا ده چه د امام شافعي رحمه الله ددې وصيت د عمل محل هغه صورت دې چه كله دا معلومه شى چه امام شافعي رحمه الله ته به دا روايت نه وى رسيدلې، او هر كله چه دا معلومه شى چه حديث خو هغه ته رسيدلې وو خو د څه وجې نه هغه قبول نه كړو نو بيا دا صورت ددې وصيت محل نه دې او دلته معامله محتمل ده (مونږ نه شو وئيلې چه امام شافعي رحمه الله ددې زيادت نه خبر شوې وو يا نه) هم دغه شان دا رفع اختيار كړې ده امام بيهقى، دا رفع ابن خزيمه او امام بخاري وغيرهم، پس امام بخاري په دې باندې په صحيح بخاري كښې مستقل باب ترلي دې باب رفع اليدين اذا قام من الركعتين.

## البحث الثاني : (د رفع اليدين كيفيت)

د رفع اليدين په كيفيت كښې خو اقوال دى په منهل كښې ئې څلور صورتونه ليكلي دى:

١ : يرفعهما ناشرا اصابعه مستقبلا بباطن كفيه القبلة... يعنى لاسونه به پورته اوچت كړى په داسې حالت كښې چه چه د كفين باطن (د لاس تلى) به ئې د قبلې طرف ته وى، او د ګوتو سرونه به ئې د اسمان طرف ته وى.

٢ : دويمه طريقه هم دا ده خو بس دومره فرق دې چه د ګوتو سوكې ئې د قبلې طرف ته وى.

---

(١) چه هر كله په صحيح بخاري كښې د ابن عمر رضي الله عنه په روايت كښې دا رفع مذكور ده نو بيا تاسو ددې قائل ولې نه يئ؟

۳: او دریمه طریقه دا ده چه لاسونه داسې اوچت کړی چه بطون کفین ئې د اسمان طرف ته وی او ظهور کفین ئې د زمکې طرفته وی.
۴: او څلورمه طریقه د دریمې برعکس ده یعنی بطون کفین الی الارض او ظهور کفین الی السماء او دا کیفیات علامه عینی هم په شرح بخاری کښې ذکر کړې دی، اولنې کیفیت هغوی د امام طحاوی رحمه الله طرف ته منسوب کړې دې. (الفیض السمائی ص ۲۸۵)

## د رفع الیدین په وخت تفریق اصابع اولی دې یا ضم

اوس دا چه د رفع الیدین په وخت تفریق اصابع اولی دې یا ضم؟ نو په مغنی کښې لیکی چه ﴿ یستحب ضم الاصابع ﴾ (عند احمد) وقال الشافعی السنة التفریج، او د احنافو په نزد په خپل حال پریخودل اولی دی، نه دې بالقصد ضم کوی او نه دې تفریق. البته په رکوع کښې تفریج اولی دې او په سجود کښې ضم، امام ترمذی رحمه الله په دې مسئله باندې مستقل باب تړلی دې: باب فی نشر الاصابع عند التکبیر.

## البحث الثالث: (رفیع الیدین به تکبیر سره متصل وی که منفصل)

رفع الیدین کله کول پکار دی د تکبیر نه مخکښې یا د هغې سره سره؟ د شوافعو او مالکیه ؤ په نزد راجح قول مقارنت دې کما قال الزرقانی، او د حنابله په نزد هم دغه قول دې روایةً واحدةً، او د فقهاء احنافو په دې کښې اختلاف دې، صاحب بدائع او صاحب محیط مقارنت اختیار کړې دې چه د تکبیر سره سره دې رفع الیدین اوکړی، او په هدایه کښې تقدیم رفع مذکور دې، اول دې رفع الیدین اوکړی او بیا تکبیر، صاحب بحر او در مختار هم دا اختیار کړې دې.

## البحث الرابع: (لاسونه کوم ځائې پورې اوچتول پکار دی؟)

رفع الیدین د کوم ځائې پورې پکار دی، مشهوره دا ده چه د ائمه ثلاثه په نزد حذا المنکبین او د احنافو په نزد حذاء الاذنین، خو د کتب مالکیه نه معلومیږی چه دلته هم حذا الاذنین اولی دې، او د حنابله مذهب په مغنی کښې تخییر الی المنکبین او الاذنین لیکلې دې، شیخ ابن الهمام فرمائی چه دا اختلاف صرف لفظی دې ځکه چه د حذا المنکبین مطلب دا دې چه کفین د منکبین مقابل وی او اطراف اصابع د اذنین مقابل، هم دغه شان ملا علی قاری د امام شافعی نه نقل کړې دی چه کله هغه مصر ته داخل شو نو د هغه نه ددې متعلق تپوس اوشو نو هغه ورته دا پورته ذکر شوې تفصیل بیان اوفرمائیلو چه کفین حذاء المنکبین او ابهامین الی شحمة الاذنین او اطرافع اصابع الی فروع الاذنین، ځکه چه په یو حدیث کښې الی المنکبین راغلې دې او په یو کښې الی الاذنین او په بعض کښې الی فروع الاذنین. یعنی د غوږونو پورته حصه، لهذا په درې واړو روایاتو کښې تطبیق اوشو، او د زنانه په باره کښې مشهوره ده چه په دې مسئله کښې د زنانه او د سړی د فرق قائل صرف احناف دی، انها ترفع الی الثدین، خو احناف په دې کښې متفرد نه دی، په اوجز کښې لیکلې دی چه د

امام احمد رحمه الله نه په دې کښې دوه روایتونه دی، ﴿ ترفع قليلا ﴾ او بل روایت دا دې چه د زنانه په حق کښې رفع اليدين مشروع نه دی.

## البحث الخامس : په رفع اليدين کښې حکمت څه دې

حضرت شیخ په اوجز کښې لس حکمتونه ذکر کړې دی.

۱: نفی الکبریاء عن غير الله تعالى... يعنى د الله اکبر په ذریعه د الله پاک دپاره قولا لوئي والې ثابتولې شی او فعلا يعنی د لاس په اشارې سره د غير الله نه د لوئي والی نفی کولې شی،

۲: وقيل اعلام الاصم... كونړ سړې خو به د امام تکبیر وانوری خو رفع اليدين ته کتلو سره به پوهه شی چه مونځ شروع شو دا دوه حکمتونه صاحب هدايه بيان کړې دی.

۳: قيل اشارة الى طرح الدنيا الوارء والاقبال بكلية الى الله تعالى. يعنی په دې سره دنيا لره شاته د ګزارلو طرف ته اشاره ده او دا چه زه پوره طریقې سره د الله پاک طرف ته متوجه کیږم.

۴: ﴿ الاستلام ﴾ يعنی د انقیاد او تسلیم طرف ته اشاره ده چه مونږ ستا خبره منو.

۵: "استعظام ما دخل فيه" يعنی رفع اليدين فعل تعظيمی دې او په دې سره مقصود د مونځ د عظمت اظهار دې.

۶: "استعظاما لله تعالى" د الله پاک د عظمت اظهار...

۷: رفع الحجاب بين العبد والمعبود والساجد والمسجود... يعنی د رفع حجاب طرف ته اشاره ده چه الله پاک حجابات لرې کولو سره په خپل دربار کښې قرب او حضور نصيب کړی.

۸: "الاستقبال بجميع البدن" د ارسال يدين په صورت کښې د لاسونو استقبال نه کیږی نو رفع اليدين په دې وجه کولې شی ددې دپاره چه د باقی بدن سره په لاسونو سره هم استقبال اوشی.

۹: اشارة الى تمام القيام... يعنی د الله پاک په وړاندې پوره بدن سره قيام کول، او يو حکمت دا بيانولې شی چه په مکه کښې به بعض کفار قريش هم په ترخ کښې بتان نيولو سره د مسلمانانو په مانځه کښې اودريدل،

۱۰: واصنامهم تحت اباطهم... نو د رفع اليدين حکم ورکړې شو د اسقاط اصنام دپاره.

اوس پاتې شوه مسئله د دلائلو نو په دې معرکة الاراء مسئله کښې دلائل دواړو ډلو سره موجود دی او د هر يو په مستدلات باندې فردا فردا بحث او کلام هم شته، په صحاح سته کښې مجموعی حیثیت سره دواړه قسم روایات موجود دی، په سنن اربعه کښې دواړه قسم او په صحيحين کښې صرف د رفع روايات موجود دی، اخری عمل د رسول الله ﷺ په دې کښې څه دې رفع يا عدم رفع، صريحا ددې ثبوت مشکل دې، البته په سنن بيهقى کښې د ابن عمر رضي الله عنه د حديث په بعض طرق کښې دا زیادت دې ﴿ فما زالت تلک صلاته حتى لقى الله ﴾ چه د هغې نه معلومیږی چه په اخری عمر کښې د رسول الله ﷺ فعل رفع اليدين وو، خو بعض محققینو دې زیادت ته غير ثابت وئيلې دې چه دا ضعيف بلکه موضوع دې.[1]

[1] ددې حديث په سند کښې عصمة بن محمد انصاری دې، قال ابو حاتم ليس بالقوي، وقال ........←

## د احنافو په نزد د رفع اليدين نسخ او د مولانا انور شاه کشميري رائې

خو رفع اليدين په نفس ثبوت کښې د يو حنفي عالم هم تردد نشته بلکه دا حضرات د بقاء رفع او د هغې د دوام انکار کوي يعني دا منسوخ ګنړي، هم دا رائې د امام طحاوي، شيخ ابن الهمام او زمونږ په مشائخو کښې د حضرت ګنګوهي، حضرت شيخ الهند، حضرت سهارنپوري، صاحب بذل المجهود وغيرهم ده.

البته مولانا انور شاه کشميري د نسخ قائل نه دې هغه فرمائي رفع او ترک رفع دواړه د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو نه په تواتر سره ثابت ده، د رفع اليدين تواتر عملا او اسنادا دواړو طريقو سره دې او د عدم رفع تواتر عملا او طبقة دې،(۱) لهذا په دې کښې يو ته هم منسوخ نه شي وئيلې کيدې، هم دغه شان هغه فرمائي چه دا اختلاف صرف د افضليت او اولويت دې، د احنافو په نزد عدم رفع اولی ده او د شوافعو په نزد رفع، د جواز او عدم جواز او کراهت او عدم کراهت اختلاف نه دې، هغه فرمائي چه دا خبره ماته د امام ابوبکر جصاص په کلام کښې ملاؤ شوه، د امام کرخي په شان ائمه هغه په شاګردانو کښې دی لهذا د هغه مرتبه د شارح منيه او صاحب بدائع نه هم اوچته ده چا چه رفع اليدين ته عند الاحناف مکروه وئيلې دی، شاه صاحب دا هم ليکلې دی چه ددې نه پس زما د طبيعت نه د احاديث ثابته في الرفع بوجهه کوز شو. فاسترحت حيث تخلصت رقبتي من الاحاديث الثابتة في الرفع.

## د رفع اليدين په سلسله کښې د حضرت سهارنپوري رائې

حضرت سهارنپوري رحمه الله په بذل المجهود کښې د دواړو ډلو په دلائلو باندې د بحث او تحقيق کولو نه پس فرمائي چه ددې ټولو تفصيلاتو نه معلوميږي چه د رسول الله ﷺ نه رفع اليدين ثابت دی خو د يو حديث نه هم ددې دوام او دا چه رسول الله ﷺ په خپل اخری عمر کښې هم رفع اليدين کړې دی ثابت نه دی، هم دغه شان د هغه نه ترک رفع هم ثابت ده، اوس قائلين رفع خو دا وائي چه چونکه رفع اليدين سنت مؤکده نه وو، په دې وجه به رسول الله ﷺ کله کول او کله به ئې نه کول، د وجوب د ويرې نه، لهذا دا رفع سنت غير مؤکده ده. او مانعين رفع دا وائي چه د رسول الله ﷺ نه رفع او ترک رفع دواړه ثابت دی هم دغه شان د صحابه کرامو نه هم دواړه ثابت دی، اوس کتل دا دی چه د کومو صحابه کرامو نه ترک رفع ثابت ده د هغې څه وجه ده؟ دا خو کيدې نه شي چه رفع اليدين دې ددې حضراتو په علم کښې نه وی راغلې ځکه چه رفع اليدين ډير ښکاره څيز دې، امر مشاهد دې ددې د پټ

---

له........يحيي كذاب يضع الحديث، وقال العقيلي يحدث بالبواطيل عن الثقات وقال الدارقطني متروك. او ددې حديث په بل طريق کښې عبدالرحمن بن قريش الهروي دې، حافظ ذهبي په ميزان الاعتدال کښې هغه ته متهم بوضع الحديث وئيلې دې. (بذل المجهود)

۱) د تواتر طبقة مطلب دا دې چه په هره زمانه کښې راتلونکي خلقو د خپلې زمانې خلقو ته کتلو سره دا اختيار کړې دې، هم ددې نه په توارث سره هم تعبير کيدې شی، ددې مدار په مشاهده او تعامل باندې دې، په سند او روايت باندې نه.

پاتې کيدو سوال هم نه پيدا کيږي او دا هم نه شو وئيلې چه هغوی به دا سهوا او نسيانا پريخودلې وی ځکه چه بعض صحابه کرام مثلا ابن عمر خو د اتباع رسول ﷺ په معامله کښې دومره حريص او کوشش کونکې وو، او د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په باره کښې خو دا تول منې چه هغه به رفع اليدين نه کول نو ددې ترک ددې نه علاوه څه وجه کيدې شی چه دې حضراتو به دا منسوخ ګڼړلو.

## د حضرت ګنګوهی رائې

او په الکوکب الدری کښې حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه کوم صحابه کرامو د رسول الله ﷺ نه روستو رفع اليدين کول په ظاهره هغوی د استصحاب حال نه کار اخستلې دې او کوم حضراتو چه ترک رفع کوله د هغوی د عمل بنياد استصحاب حال خو نه شی کيدې ځکه چه د رسول الله ﷺ نه د رفع يدين ثبوت ډير مشهور او معروف وو بلکه د هغوی د علم په وجه باندې د علم زيادت دې چه هغوی ته مزيد د يوې خبرې علم وو يعنی دا چه رسول الله ﷺ د رفع اليدين کولو نه پس په اخر کښې دا ترک کړې وو، لهذا مانعين رفع مثبت شو هغوی يو امر زائد لره ثابتوی يعنی ترک رفع او رفع الرفع، او قائلين رفع ددې منکر دی، لهذا هغوی نافی شو، المثبت اولی من النافی. لهذا دا چه مشهوره ده چه قائلين رفع مثبت او تارکين رفع نافی دی صحيح نه ده.

## د صاحب امانی الاحبار تبصره

حضرت مولانا محمد يوسف صاحب په امانی الاحبار کښې فرمائی، امام طحاوی په شرح معانی الاثار کښې د عمر بن الخطاب، علی بن ابی طالب، عبدالله بن عمر، عبدالله بن مسعود رضی الله عنهم عمل ترک رفع ثابت کړې دې، هم دغه شان په بيهقی کښې بسند جيد د ابوبکر صديق رضي الله عنه عدم رفع روايت کړې شوې ده (ګويا د خلفاء ثلاثه ابوبکر، عمر او علی عمل هم ترک رفع شو) او امام ترمذی رحمه الله په باب رفع اليدين کښې د ابن عمر رضي الله عنه د حديث د لاندې فرمائی: وَبِهَذَا يَقُولُ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- مِنْهُمُ ابْنُ عُمَرَ وَجَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ وَأَبُو هُرَيْرَةَ وَأَنَسٌ وَابْنُ عَبَّاسٍ وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ الزُّبَيْرِ وَغَيْرُهُمْ وَمِنَ التَّابِعِينَ الْحَسَنُ الْبَصْرِيُّ وَعَطَاءٌ وَطَاوُسٌ وَمُجَاهِدٌ وَنَافِعٌ وَسَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ وَسَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ وَغَيْرُهُمْ. او بيا د عدم رفع په سلسله کښې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د حديث ذکر کولو نه پس ليکی: وَبِهِ يَقُولُ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَالتَّابِعِينَ. وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ وَأَهْلِ الْكُوفَةِ. اوګورئ امام ترمذی د رفع يدين په باره کښې د بعض الصحابه والتابعين لفظ استعمال کړې دې او په عدم رفع کښې د غير واحد لفظ استعمال کړې دې کوم چه سراسر په کثرت باندې دلالت کوی،(١) او د أهل کوفه طرف ته ئې هم عدم رفع منسوب کړې

---

(١) صاحب د امانی الاحبار فرمائی او ددې په مقابله کښې امام بخاری جزء رفع اليدين کښې داسې اوکړل چه خپل تصنيف کښې ئې د هغه صحابه کرامو شمير کوم چه قائل بالرفع وو دومره اوږد کړو چه ټول کتاب ئې د هغې نه ډک کړو او د عدم رفع د لاندې ئې صرف يو نوم د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ذکر کړو ګويا هغه په عدم رفع کښې متفرد دې، بلکه دا چه هغه د کومو صحابه کرامو نومونه........←

ده چه د هغې نه جمیع اهل کوفه مراد دی، پس ابن عبدالبر په کتاب الاستذکار کښې د محمد بن نصر المروزی نه نقل کړې دی چه زمونږ په علم کښې داسې یو ښهر نشته چه د هغې ټول اوسیدونکی ترک رفع کوی سوا د کوفې نه.

د دې نه چه یو طرف ته د اهل کوفه عدم رفع باندې متفق کیدل معلومیږی نو دا هم ترې معلومیږی چه په نورو ښهرونو کښې به هم ترک رفع کیدله خو دا ټول خلق په دې باندې متفق نه وو، او دا دې هم واضحه وی چه دا محمد بن نصر زبردست عالم وو او د مذاهب صحابه وعلماء نه ډیر زیات خبر وو.

خطیب بغدادي او ابن حبان د هغه په باره کښې لیکی : کان من اعلم الناس باختلاف الصحابة ومن بعدهم فی الاحکام. الغرض د محمد بن نصر شهادت دې چه ټول اهل کوفه په عدم رفع باندې متفق وو او په نورو ښهرونو کښې رفع او عدم رفع دواړه وه.

**فائده** : مولانا بدر عالم میرټهی په حاشیه د فیض الباری کښې لیکی، چه امام ترمذی په قائلین د رفع کښې چه د کومو صحابه کرامو نومونه ذکر کړې دی په هغوی کښې ئې ابن عمر خو ذکر کړو خو د هغه والد عمر بن الخطاب ئې ذکر نه کړو، هم دغه شان ئې علی هم ذکر نه کړو، که د امام ترمذی په نزد د هغوی نه رفع یدین ثابت وې نو بیا دا دواړه د ذکر کولو زیات مستحق وو، د امام طحاوی رحمه الله تحقیق دا دې چه دا دواړه حضراتو به رفع الیدین نه کول او بیهقی وغیره په دې باندې مصر دی چه رفع به ئې کوله، البته د ابوبکر صدیق په باره کښې ښه طریقې سره تحقیق اونشو چه هغه به رفع کوله یا ترک رفع د هغه نه دواړه منقول دی.

## د کوفه علمی مقام او د اهل کوفه په عدم رفع الیدین باندې اتفاق

د دې سره سره تاسو د کوفې علمی مرتبه او منزلت هم په ذهن کښې اوساتئ کومه چه د علی رضی الله عنه دار الخلافه وه، او امام نووی رحمه الله دې ته دار الفضل والفضلاء سره یاده کړې ده، او صاحب قاموس هغې ته "قبة الاسلام ودار هجرة المسلمن" لیکی، د سیدنا علی رضی الله عنه اکثر فیصلې هم په کوفه کښې صادر شوې دی، حضرت شاه ولی الله صاحب په حجة الله البالغة کښې فرمائی : "کان اغلب قضایاه بالکوفة"

کوفې ته د صحابه کرامو راتلل او قیام هم په کثرت سره منقول دې، ابو بشیر دولابی په کتاب الاسماء والکنی کښې لیکی : نزل الکوفة الف وخمسون رجلا من اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم واربعة وعشرون من اهل البدر. او د فن رجال امام ابو الحسن عجلی خو په خپل

---

له........ په قائلین رفع کښې په سند سره ذکر کړې دی د هغوی اقوال په مواضع رفع کښې مختلف دی، پس د بعض نه صرف په دوه ځایونو کښې رفع منقول ده، عند الافتتاح وعند الرکوع، او د بعض نه عند الافتتاح وعند الرفع من الرکوع... او بعض عند الافتتاح وعند الرکوع وعند الرفع من الرکوع او د بعض نه عند السجود او بعض بین السجدتین او د بعض نه رفع عند القیام من الرکعتین او د بعض نه فی کل رفع وخفض علی هذا القیاس، د کوم غیر صحابه او تابعینو چه هغه نومونه ذکر کړې دی د هغوی هم دغه حال دې. اماني الاحبار شرح معاني الآثار کښې مولانا محمد یوسف صاحب هغه ټول روایات ذکر کړې دی.

تاريخ کښې ددې نه هم زيات يو نيم زر ليکلې دى ﴿نزل الكوفة الف وخمس مائة من الصحابة﴾ د فيض البارى محشى د فتح القدير په حواله ليکى چه قرقيسه کومه چه د کوفې يوه قريه (بنارېه) ده هغې ته د شپږ سوه صحابه کرامو راتلل او نزول ثابت دې، چه هر کله د کوفې د يو مختصر شان کلى دا حال دې نو هم ددې نه د پوره ښهر اندازه لګيدلې شى، صاحب د امانى الاحبار ليکى چه خليفه ثانى سيدنا عمر رضي الله عنه په خپل دور خلافت کښې عبدالله بن مسعود رضي الله عنه خو خاص طور سره په کوفه کښې معلم او وزير ليږلې وو او هم دغه شان ئې عمار بن ياسر هم امير ليږلې وو، او د طبقات ابن سعد نه معلوميږى چه په کوفه کښې د خلفاء اربعه اصحاب په کثرت سره موجود وو، هسې هم کوفه د عمر رضي الله عنه په زمانه کښې معسکر (د اسلامى فوجونو مرکز) وو، په کثرت سره به صحابه کرام هلته تلل راتلل او د غزواتو دپاره به تلل.

الغرض اهل کوفه د عدم رفع طريقه حاصله کړې وه، د عمر رضي الله عنه د زمانې نه تر د على رضي الله عنه د زمانې پورې د هغه صحابه کرامو په واسطې سره کوم چه په کوفه کښې موجود وو (چه د هغوى سربراه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وو) او د هغه صحابه کرامو کوم چه هلته راتلل او په غزواتو کښې وتل د هغوى تعداد په زرګونو دې.

هم دغه شان د اهل مدينه طرز عمل هم ترک رفع وو چه په هغې باندې امام مالک د خپل مسلک بنياد کيخودلې دې، لکه چه مشهور او معروف دى او ابن رشد وغيره شارحين حديث ددې تصريح کړې ده او هم دا قول زمونږ امام ابوحنيفه او د هغه اصحابو اختيار کړې دې.

## د اهل مکه طرز عمل

مولانا انور شاه کشميرى رحمه الله فرمائى چه په صحابه کرامو کښې به عبدالله بن زبير رضي الله عنه رفع يدين کول، د چا چه مستقل قيام په مکه مکرمه کښې وو هم په دې وجه به اهل مکه هم رفع اليدين کول او چونکه د امام شافعى قيام هم په مکه کښې وو نو په دې وجه هغه د خپل مسلک بنياد د اهل مکه په عمل باندې کيخودلو.

زه وايم چه دا دې هم واضحه وى چه عبدالله بن زبير رضي الله عنه به صرف په مواضع ثلاثه کښې په رفع يدين باندې اکتفاء نه کوله بلکه رفع عند السجود او رفع عند القيام من الرکعتين به ئې هم کوله، پس وړاندې په ابوداود کښې يو روايت راروان دې چه د هغې مضمون دا دې، ميمون مکى فرمائى چه يو ځل ما عبدالله بن زبير په مانځه باندې اوليدو نو هغه بار بار رفع يدين کول، عند التحريمه، عند الرکوع، عند السجود او عند القيام من الرکعتين... هغه فرمائى چه ما دا منظر اوليدو نو د عبدالله بن عباس رضي الله عنه په خدمت کښې حاضر شوم او هغه ته مې عرض اوکړو چه ما نن عبدالله بن زبير په داسې کار کولو باندې اوليدو چه ما پرې ددې نه مخکښې څوک نه دى ليدلى. يعنى هم دا بار بار رفع يدين، نو په دې باندې ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل چه که ته د رسول الله ﷺ تابعدارى کول غواړې نو ته هم داسې مونځ کوه، ددې نه معلومه شوه چه عبدالله بن زبير او عبدالله بن عباس د رفع عند

السجود هم قائل وو چه د هغې جمهور قائل نه دی، هم دغه شان د میمون مکی د کلام نه معلومیږی چه اهل مکه به هم رفع الیدین نه کول، اګر چه دا احتمال هم شته چه د هغه مراد د مواضع ثلاثه د زائد نفی کول وی خو ابن عباس رضي الله عنه خو دې ته هم سنت وائی، دا دې هم واضحه وی چه د عبدالله بن الزبیر او عبدالله بن عباس نه د مواضع رفع په سلسله کښې روایاتو کښې مزید اختلاف دې، د بعض نه معلومیږی چه هغه به رفع صرف په دوه ځایونو کښې کوله عند الافتتاح، وعند رفع الراس من الرکوع، او په بعض کښې په مواضع ثلاثه کښې.

## د رواة رفع د تعدد او تکثر بحث[1]

حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل المجهود کښې فرمائی، امام بیهقی رحمه الله د امام بخاری رحمه الله نه نقل کړې دی چه هغه په جزء رفع الیدین کښې فرمائی چه د اولس صحابه کرامو نه نقل دی چه هغوی به رفع الیدین کول او بیا هغوی بالتفصیل هغه روایات ذکر کړې دی، او علامه شوکانی (اهل حدیث) په نیل الاوطار کښې د رفع الیدین روایات پنځویشت شمار کړې دي خو په داسې طریقه چه صرف د ابو حمید ساعدی رضي الله عنه روایت ئې د یولسو احادیثو قائم مقام ګرځولې دې، ځکه چه هغه دا خپل حدیث په خپل مجلس کښې لسو صحابه

---

[1] دا خبره په ظاهره کښې بدیهی ده چه د رفع الیدین راویان په نسبت د ترک رفع زیات دی، پس امام ترمذی په باب رفع الیدین کښې د حدیث ابن عمر د تخریج نه روستو فرمائی ﴿وَفِي الْبَابِ عَنْ عُمَرَ وَعَلِيٍّ وَوَائِلِ بْنِ حُجْرٍ وَمَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ وَأَنَسٍ وَأَبِي هُرَيْرَةَ وَأَبِي حُمَيْدٍ وَأَبِي أُسَيْدٍ وَسَهْلِ بْنِ سَعْدٍ وَمُحَمَّدِ بْنِ مَسْلَمَةَ وَأَبِي قَتَادَةَ وَأَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ وَجَابِرٍ وَعُمَيْرٍ اللَّيْثِيِّ﴾ دا ټول څوارلس راویان شو او پنځلسم ابن عمر. او د عدم رفع په سلسله کښې امام ترمذی د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د تخریج نه روستو فرمائی: ﴿وَفِي الْبَابِ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ﴾ صرف یو نوم ئې ذکر کړې دې.

مختصر طور ددې دوه حلونه دی، یو هغه کوم چه مولانا انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائیلې دي چه د رفع الیدین تواتر عملا او اسنادا دواړو طریقو سره دې او د عدم رفع تواتر عملا او طبقة کوم نه چه توارث ونیلې شی، یعنی تعامل امت د عمر رضي الله عنه د زمانې نه تردې زمانې پورې تعامل. بل جواب هغه دې کوم چه به زمونږ استاد محترم استاذ الاساتذه حضرت مولانا اسعد الله صاحب د ابوداود په سبق کښې د رفع الیدین والاحدیث په شروح کښې بیان فرمائیلې وو هغه دا چه که د یوې خبرې دوه سوه کسان دعوی کوی او یو سړې راشی او د دوه ګواهانو په موجودګئ کښې د هغوی خلاف ګواهي ورکړی نو د هغه دوه سوه کسانو دعوی به ضائع لاړه شی. استاذ موصوف انتهائی ذکی ظریف الطبع، یو جید عالم او د خپلې زمانې رئیس المناظرین وو، رفع الله مراتبه. د دې جواب حاصل هم هغه دې کوم چه امام طحاوی او زمونږ مشائخ فرمائی چه رفع الیدین منسوخ دی، فرض کړئ چه د دوه سوه احادیثو نه د رفع الیدین ثبوت دې نو ددې د نسخ دپاره دا ضروری نه ده چه دوه سوه روایات دې راوړلې شی بلکه یو صحیح حدیث چه راشی نو هم ټول منسوخ کولې شی، لکه چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ژوند کښې هغه ته د مشرکینو د بتانو په کثرت (او د هغوی په تکلیفونو) باندې د صبر تلقین د اویا نه په زیاتو آیتونو کښې کړې شوې دې او بیا د هجرة نه روستو یو آیت نازل شو او د قتال اجازت ورکړې شو، چه هغې سره ټول آیتونه منسوخ شو. او دلته په دې مسئله کښې که دا اومنلې شی چه یو صاف او صریح حدیث د نسخ موجود نه دې نو کم از کم دومره خبره ضرور ده چه مجموعه روایات مخې ته ږدلو نه قرائن وادلة علی النسخ موندلې شی، مثلا رفع عند السجود چه په ائمه اربعه کښې ددې څوک هم قائل نه دی حال دا چه د کتب صحاح په روایاتو کښې ددې ثبوت شته، هم دغه شان هغه صحابه کرام چه د هغوی نه د رفع الیدین روایات مرفوعه منقول دی خو د هغوی روستو ددې خلاف عمل کول ددې ترک ثابتوی او ددې نه انکار کول مکابره ده).

کرامو ته پیش کړو چه په هغې باندې لسو وارو سکوت اوفرمائیلو یا ئې تصدیق کړې وو (علی اختلاف الروایتین) نو ګویا د ابو حمید ساعدی رضی الله عنه د حدیث نه علاوه صرف څوارلس روایات دی څوارلس او یولس پنځویشت شو.

زمونږ حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل المجهود کښې په دې ټولو روایاتو باندې فردا فردا کلام کړې دې کوم چه د بذل المجهود تقریبا په دوه صفحاتو باندې راغلې دې، ددې روایاتو نه پنځه روایات ۱: حدیث ابن عمر، ۲: حدیث وائل بن حجر، ۳: حدیث ابوهریره، ۴: حدیث علی، ۵: حدیث مالک بن الحویرث او شپږم حدیث د ابو حمید ساعدی کوم چه په قول د شوکانی یولس احادیث شمارلې شی، دا ټول وړاندې په ابوداود کښې راروان دی، لهذا مونږ به په دې ټولو باندې کلام په خپل خپل ځائې کښې کوو، خو د حضرت د بیان کړې روایاتو جواب خو دا دې باقی ددې نه علاوه چه شوافع کومې اوچتې اوچتې دعوې کوی چه مونږ سره دومره روایات دی، مثلا حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کښې لیکې چه زمونږ شیخ حافظ عراقی فرمائی چه د رواة رفع تعداد زمونږ د لټون او تتبع مطابق پنځوس کسانو ته رسیږی، او هم دغه شان صاحب د سفر السعادة چه لیکلې دی چه د رفع الیدین په ثبوت کښې روایات او اثار څلورو سوو ته رسیدلې دی، نو مونږ د هغه صحابه کرامو د نومونو او روایاتو او د هغې د سندونو نه خبر نه یو چه د هغې په باره کښې څه اووئیلې شو.

او مولانا انور شاه کشمیری فرمائی چه د څلورو سوو روایاتو والا خبره خو باطل او بې اصله ده، او د عراقی والا پنځوس صحابه کرامو تتبع مونږ اوکړه نو په هغې کښې بعض خو داسې دی چه د هغوی نه رفع الیدین صرف په افتتاح کښې منقول دی، یعنی په مواضع رفع کښې د هغوی روایات مختلف او مضطرب دی.

او امام بیهقی د رواة رفع تعداد ثلاثین لیکلې دې، او ورسره ئې دا اعتراف هم کړې دې چه د اسانید صحیحه نه صرف پنځلس روایات ثابت دی، او ابن عبدالبر په الاستذکار کښې د دیرویشتو (۲۳) روایاتو حواله ورکړې ده، شاه صاحب فرمائی که صرف په مواضع ثلاثه کښې د رفع یدین قائل صحابه کرام اوګتلې شی نو تقریبا دولس دی، او که فی کل رفع وحفض هم واخستلې شی نو بیشکه تعداد به ددې نه زیات شی.

پاتې شوه مسئله د احادیث مرفوعه نو هغه د تحقیق نه پس صرف پنځه پاتې کیږی ۱: حدیث ابن عمر، ۲: حدیث علی، ۳: حدیث مالک بن الحویرث، ۴: حدیث وائل بن حجر، ۵: حدیث د ابو حمید ساعدی او ۶: حدیث د جابر، هغه فرمائی چه تقریبا دومره تعداد د احادیثو بل طرف ته (ترک رفع) کښې هم موجود دې، بیا وړاندې حضرت شاه صاحب فرمائی چه زما په نزد ترک رفع که هغه عملا وی یا تصدیقا ددې حضرات صحابه نه ثابت ده، عمر، علی، ابن مسعود، ابوهریره، ابن عمر، براء بن عازب، کعب به عجره رضی الله عنهم. دا حضرات خو د نوم د تصریح او تعیین سره دی، او د دوی نه علاوه هغه ټول صحابه کرام کوم چه په کوفه کښې مقیم وو چه د هغوی تعداد د سوونو نه هم زیات دې

هغوی ټول به هم په دې شمير کښې اچولې شی، ځکه چه په دې باندې د ټولو اتفاق دې چه ټول اهل کوفه په عدم رفع باندې متفق وو.

## د حضرت شاه صاحب بيان کړې يوه نکته

حضرت شاه صاحب يوه خبره بله ليکلې ده چه اصل کښې روايات درې قسمه دی، ناطق بالرفع، ناطق بعدم الرفع او ساکت. اول بيشکه زائد دی د ثانی نه خو قسم ثالث که په قسم ثانی کښې شامل کړې شی نو بيا به معامله برعکس شی او کيدل هم دغه شان پکار دی ځکه چه ﴿ السکوت فی محل البيان يفيد الحصر ﴾، کوم راويان چه د رسول الله ﷺ د مونځ پوره کيفيت بيانوی، او صرف د افتتاح الصلاة په وخت د رفع اليدين ذکر کوی نو ظاهره ده چه ددې مقتضی به په باقی مواضع کښې عدم رفع منلې شی، ددې ابتدائی مباحث او تمهيد نه روستو اوس مونږ په احاديث الباب باندې کلام کوو، د باب د ټولو نه اول حديث د ابن عمر رضي الله عنه دی.

[۷۲۱]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَفْتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ مَنْكِبَيْهِ، وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ وَبَعْدَ مَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ، وَقَالَ سُفْيَانُ مَرَّةً: وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ وَأَكْثَرُ مَا كَانَ يَقُولُ: وَبَعْدَ مَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ وَلَا يَرْفَعُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ".

**ترجمه**: سالم روايت کوی د خپل پلار نه هغه وئيلی دی ما وليدلو رسول الله ﷺ چې کله به هغه د مونځ شروع کوله لاسونه به ئې اوچت کړل تردې چې برابر به ئې کړل د اوږو سره، او چې کله به ئې اراده د رکوع وکړه او پس د سر اوچتولو نه د رکوع نه. او وئيلی دی سفيان يو ځل: او چې کله به ئې سر اوچت کړو او کثر به ئې وئيل: او پس د هغې نه چې سر اوچت کړی د رکوع نه. او لاسونه به ئې نه اوچتول د دواړه سجدو مينځ کښې.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ حدثنا احمد بن محمد بن حنبل الخ ﴾ د ټولو نه اول مصنف د رفع اليدين په سلسله کښې د ابن عمر رضي الله عنه حديث ذکر کړې دې ددې نه روستو ئې د څلورو پنځو نورو صحابه کرامو روايات هم په دې سلسله کښې ذکر فرمائيلې دی.

## د رفع اليدين په باره کښې د صحيحين روايات

خو امام ترمذی رحمه الله د رفع اليدين په باب کښې صرف هم دا د ابن عمر رضي الله عنه يو حديث ذکر کړې دې، او امام بخاری د رفع اليدين په سلسله کښې حديث ابن عمر، حديث مالک بن الحويرث صرف دوه احاديث بيان کړی دی، او امام مسلم د رفع اليدين په باب کښې صرف هم دا دوه روايات ذکر کړې دی کوم چه امام بخاری ذکر کړې دی، البته هغه د باب وضع اليمنى على اليسرى د لاندې د وائل بن حجر حديث ذکر کړې دې چه په هغې کښې رفع اليدين

[1]): صحيح البخاري/الأذان ۸۳ (۷۳۵)، ۸٤ (۷۳٦)، ۸۵ (۷۳۸)، ۸٦ (۷۳۹)، صحيح مسلم/الصلاة ۹ (۳۹۰)، سنن الترمذي/الصلاة ۷٦ (۲۵۵، ۲۵٦)، سنن النسائي/الافتتاح ۱ (۸۷۵)، ۸٦ (۱۰۲٦)، والتطبيق ۱۹ (۱۰۵۸)، ۲۱ (۱۰٦۰)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۵ (۸۵۸)، موطا امام مالک/الصلاة ٤ (۱٦)، مسند احمد (۲/ ۸، ۱۸، ٤٤، ٤۵، ٤۷، ٦۲، ۱۰۰، ۱٤۷)، سنن الدارمي/الصلاة ٤۱ (۱۲۸۵)، ۷۱ (۱۳٤۷)، (تحفة الأشراف: ٦۸۱٦، ٦۸٤۱) (صحيح)

في المواضع الثلاثة مذكور دی، په صحيحين کښې يو روايت هم داسې نشته چه په هغې کښې رفع عند السجود ذکر وی بلکه د هغې نفی موجود ده، البته په بخاری کښې د ابن عمر رضی الله عنه د حديث په يو طريق کښې رفع عند القيام من الرکعتين هم ذکر ده.

## الكلام على حديث ابن عمر

د دې حضرات مصنفينو د طرز عمل نه معلوميږی چه د رفع اليدين په سلسله کښې زيات اهم روايت د هغوی په نزد حديث د ابن عمر دې او په دويمه درجه کښې د مالک بن الحويرث حديث (١) هم په دې وجه د بخاری شيخ علی بن المدينی د حديث ابن عمر د ذکر کولو نه پس فرمائی (كما في البذل) چه زما په نزد دا حديث په ټوله دنيا باندې حجت دې چه څوک هم دا واوری نو د هغه دپاره ضروری ده چه په دې باندې عمل اوکړی ځکه چه ددې په سند کښې هيڅ کلام او تردد نشته، احناف وائی چه ددې حديث په يو طريق کښې څلورم ځائې کښې هم رفع يدين مذکور دې، په صحيح بخاری کښې يعنی عند القيام من الرکعتين... حقيقت دا دې چه په ائمه اربعه کښې څوک هم ددې قائل نه دې لکه چه د هغوی د کتب فقيه نه معلوميږی، هسې په وينا خو د حديث شارحين د اعتراض نه د بچ کيدو دپاره وائی چه امام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دې كما فعل الامام النووی لکه چه په مباحثه ابتدائيه کښې تفصيل سره تير شوې دی دلته د هغې د اعادې حاجت نشته.

## په حديث ابن عمر رضی الله عنه کښې الاضطراب في مواضع الرفع

د صحيحين نه علاوه د سنن په کتابونو کښې په حديث ابن عمر کښې د مواضع رفع په اعتبار سره سخت ترين اختلاف او اضطراب دې، پس د ابوداود په هغه اولنی روايت کښې کوم چه په طريق د سفيان عن الزهری دې، رفع يدين درې ځايونو کښې راغلې دی، او ددې نه روستو دا حديث په طريق د زبيدی عن الزهری راروان دې په هغې کښې خو په اولنی رکعت کښې رفع اليدين درې ځايه ذکر دی.

**قوله:** ﴿ عند الافتتاح، قبل الركوع وبعد الركوع ﴾ خو په رکعت ثانيه کښې رفع يدين صرف د رکوع نه روستو ذکر شوې دې، د رکوع نه مخکښې نه، هم دغه شان د څو احاديثو نه پس بيا حديث د ابن عمر راروان دې، په طريق د نافع عن ابن عمر، په دې کښې رفع يدين صرف دوه ځايه دې، عند الافتتاح او بعد الركوع او د نافع په يو بل طريق کښې کوم چه وړاندې را روان دې رفع يدين څلور ځايه ذکر شوې دې په هغې کښې رفع عند القيام من الرکعتين هم ده، او دا رفع خو د صحيح بخاری په يو طريق کښې هم موجود ده، كما تقدم، هم دغه شان ددې حديث په بعض طرق کښې عند الطبرانی رفع عند السجود هم ذکر شوې ده، او د بخاری په روايت کښې ددې نفی ده، لهذا دا حديث من حيث المتن مضطرب دې.

(١) خو د موجوده دور اهل حديث هم دې حديث ته زيات اهميت ورکونکی په نظر راځی او ددې وجه غالبا دا ده چه په حديث د ابن عمر باندې اشکالات زيات کولې شی، نو هغوی خپل عافيت هم په دې کښې ګڼړی.

## الاضطراب من حيث السند

هم دغه شان دا حديث د سند په اعتبار سره هم مضطرب دې ځکه چه ددې حديث دوه طرق دی سالم عن ابن عمر، او دويم طريق نافع عن ابن عمر، سالم دا روايت مرفوعا نقل کوی د باب اولنې حديث هم په دې طريق باندې دې، او نافع ئې موقوفا نقل کوی، بيا د نافع په شاګردانو کښې هم اختلاف دې بعض دا د نافع نه موقوفا او بعض مرفوعا ذکر کوی، دا حديث د ابن عمر په طريق د نافع هم وړاندې هم ددې باب په اخر کښې راروان دې، بيا د محدثينو په دې کښې اختلاف دې چه په طريق د نافع کښې رفع ته ترجيح ده يا وقف ته، امام ابوداود وقف ته ترجيح ورکوی (کما ياتی فی المتن) او امام بخاری‌رحمه‌الله رفع ته اصح وائی، الحاصل ددې حديث يو جواب خو دا شو چه دا سندا او متنا مضطرب دې

## د حديث ابن عمر نسخ او په هغې باندې د شوافع نقد

دويم جواب ددې هغه دې کوم چه امام طحاوی او د هغه تابعدارو اختيار کړې دې چه ابن عمر‌رضي‌الله‌عنه اګر چه د رسول الله‌ﷺ عمل رفع يدين نقل کړې دې خو خپله د هغه عمل د رسول الله‌ﷺ نه روستو عدم رفع دې، د راوی عمل چه د مروی (خپل بيان کړی روايت) خلاف دليل نسخ دې، د ابن عمر نه ددې عمل نقل کونکې د هغه خپل شاګرد مجاهد دې، دا د مجاهد اثر امام طحاوی په خپل سند سره ذکر فرمائيلې دې، علامه عينی فرمائی چه ددې سند علی شرط الشيخين دې، هم دغه شان ددې اثر مجاهد تخريج ابن ابی شيبه هم کړې دې هم په دې سند سره، د بعض مصنفين په کلام کښې قول مجاهد داسې منقول دې (بذل المجهود ص ۸) صحبت ابن عمر عشر سنين. مجاهد فرمائی چه زه د ابن عمر سره لس کاله پاتې شوې يم، ما هغه سوا د موضع اول نه په رفع يدين کولو باندې نه دې ليدلې، حقيقت دا دې چه ددې اثر مجاهد نه روستو د ابن عمر د حديث مرفوع کوم چه په رفع يدين کښې دې بالکل ختميږی او دا د مجاهد اثر يعنی د ابن عمر حديث موقوف اوس د احنافو يو مستقل دليل شو د حديث ابن مسعود په شان.

د دې حضراتو نقد په دې روايت باندې دا دې چه ددې په سند کښې ابوبکر بن عياش دې ﴿وقد اختلط فی اخره﴾ په اخره کښې د هغه حافظه کمزورې شوې وه.

## د نقد جواب

جواب دا دې چه ابوبکر بن عياش د صحيحين بلکه د صحاح سته راوی دې، امام مسلم د هغه روايت په مقدمه کښې اخستلې دې او امام بخاری د هغه روايات څو ځايونو کښې اخستلې دی، د اختلاط والا خبرې جواب دا دې چه د ﴿من اختلط فی اخره﴾ دپاره اهل اصول دا ضابطه ليکلې ده چه د هغه روايت قبل الاختلاط معتبر دې بعد الاختلاط معتبر نه دې، او دلته دا ظاهره ده چه دا روايت د قبل الاختلاط والا دې ځکه چه دا روايت د هغه نه نقل کونکې احمد بن يونس دې کوم چه د هغه په قدماء اصحاب کښې دې، د ابوبکر بن عياش روايت د احمد بن يونس په طريق سره امام بخاری‌رحمه‌الله هم په کتاب

التفسیر کښې اخستلې دې، نو بیا څه اشکال باقي پاتې شو؟

هم دغه شان د مجاهد متابعت کړې دې عبد العزیز بن حکیم لکه چه په موطاء امام محمد کښې دی.

## د اثر مجاهد معارضه په اثر طاؤس سره

دې حضراتو د ډیر غور نه روستو د مجاهد د اثر دا جواب کړې دې چه د مجاهد دویم شاګرد طاؤس فرمائي چه ما ابن عمر په رفع الیدین کولو باندې لیدلې دې، امام طحاوي په دې باندې فرمائي چه زه هم ددې روایت نه خبر یم او ددې توجیه ډیره اسانه ده او هغه دا چه ممکنه ده ابن عمر په شروع کښې رفع الیدین کول قبل تحقیق النسخ عنده. او بیا ئې روستو رفع الیدین پریخودل، امام طحاوي رحمه الله فرمائي چه دا توجیه ضروري ده ځکه چه د صحت نقل باوجود که ددې قسم تعارض توجیه حضرات محدثین نه کولې نو معلومه نه ده چه څومره احادیث او روایات به ساقط الاعتبار شوي وي، او ددې اثر طاؤس یو جواب زمونږ د طرف نه دا ورکړې وي دې چه د طاؤس نه ددې اثر نقل کولو والا ابن جریج دې او هغه اګرچه ثقه دې خو مدلس دې قبیح التدلیس کما قال الدارقطني.

او هغه دا روایت د طاؤس نه په صیغه د عن سره روایت کوی او د مدلس عنعنه معتبر نه ده، د یو منصف دپاره د حدیث ابن عمر دا جوابات ډیر کافي دی، واخلئ چه کوم حدیث په ټوله دنیا باندې حجت وو هغه صفا شو.

[۷۲۲] ([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُصَفَّى الْحِمْصِيُّ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، حَدَّثَنَا الزُّبَيْدِيُّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى تَكُونَ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ ثُمَّ كَبَّرَ، وَهُمَا كَذَلِكَ فَيَرْكَعُ، ثُمَّ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْفَعَ صُلْبَهُ رَفَعَهُمَا حَتَّى تَكُونَ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، وَلَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي السُّجُودِ، وَيَرْفَعُهُمَا فِي كُلِّ تَكْبِيرَةٍ يُكَبِّرُهَا قَبْلَ الرُّكُوعِ حَتَّى تَنْقَضِيَ صَلَاتُهُ".

**ترجمه:** د عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې، هغه وئیلی دي: وو رسول الله صلی الله علیه وسلم کله چې به ودریدلو مانځه ته نو دواړه لاسونه به ئې اوچت کړل برابر د اوږو خپلو، بیا به ئې تکبیر وکړو او هغه دواړه به همدغسې وو، بیا چې به ئې کله اراده وکړه چې ملا اوچته کړی نو اوچت به ئې کړل دواړه تردې چې شول به برابر د اوږو، بیا به ئې ووېل: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، (واوریدلو الله د هغه چا چې حمد ئې ووېلو د هغه)، او نه به ئې اوچتول دواړه لاسونه په سجده، او اوچتول به ئې په هر تکبیر کښې چې به ویلو مخکې د رکوع نه، تردې چې پوره به شو مونځ د هغه.

[۷۲۳] ([2]) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ الْجُشَمِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جُحَادَةَ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الْجَبَّارِ بْنُ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، قَالَ: كُنْتُ غُلَامًا لَا أَعْقِلُ صَلَاةَ أَبِي، قَالَ: فَحَدَّثَنِي وَائِلُ بْنُ عَلْقَمَةَ، عَنْ

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٦٨١٦، ٦٩٢٨) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الصلاة ١٥ (٤٠١)، (تحفة الأشراف: ١١٧٧٤، ١١٧٨٨)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الافتتاح ١١ (٨٩٠)، الافتتاح ١٣٩ (١١٠٣)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٣ (٨١٠)، مسند احمد (٣١٧/٤، ٣١٨)، سنن الدارمي/الصلاة ٣٥ (١٢١٧)، ٩٢ (١٣٩٧) (وليس عند أحد ذكر رفع اليدين مع الرفع من السجود) (صحيح)

أَبِي وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، قَالَ: "صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ، قَالَ: ثُمَّ الْتَحَفَ ثُمَّ أَخَذَ شِمَالَهُ بِيَمِينِهِ وَأَدْخَلَ يَدَيْهِ فِي ثَوْبِهِ، قَالَ: فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ أَخْرَجَ يَدَيْهِ ثُمَّ رَفَعَهُمَا، وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ رَفَعَ يَدَيْهِ ثُمَّ سَجَدَ وَوَضَعَ وَجْهَهُ بَيْنَ كَفَّيْهِ، وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ أَيْضًا رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى فَرَغَ مِنْ صَلَاتِهِ". قَالَ مُحَمَّدٌ: فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلْحَسَنِ بْنِ أَبِي الْحَسَنِ، فَقَالَ: هِيَ صَلَاةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَعَلَهُ مَنْ فَعَلَهُ وَتَرَكَهُ مَنْ تَرَكَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ هَمَّامٌ، عَنِ ابْنِ جُحَادَةَ، لَمْ يَذْكُرِ الرَّفْعَ مَعَ الرَّفْعِ مِنَ السُّجُودِ.

**ترجمه**: د ابو وايل بن حجر نه روايت دې هغه فرمائيلي دي چې ما مونځ وکړو د رسول الله ﷺ سره وو هغه: چې کله به ئې تکبير کولو نو دواړه لاسونه به ئې اوچت کړل، هغه وايي: بيا به ئې لاسونه پټ کړل، بيا به ئې چپ لاس په ښي لاس سره ونيولو او داخل به ئې کړو په جامه کښې، چې کله به ئې اراده وکړه د رکوع نو راوبه ئې وېستل دواړه لاسونه بيا به ئې اوچت کړل، او چې کله به ئې اراده وه چې سر اوچت کړی د رکوع نه دواړه لاسونه به ئې اوچت کړل او کيخودلو به ئې مخ خپل د دواړو ورغوو په مينځ، او چې کله به ئې سر د سجدې نه اوچت کړو همدارنګه به ئې لاسونه اوچت کړل تردې چې فارغ به شو د مانځه نه. وئيلي دي محمد: ما دا ذکر کړو حسن بن ابي الحسن ته هغه وويل: دا د رسول الله ﷺ مونځ دی وکړو دې لره چا چې وکړو او پريخودو دې لره چا چې پريخودو. وئيلي دي ابوداود: ددې حديث روايت همام کړی دی د ابن جُحادة نه ذکر کړی ئې نه دی رفع د لاسونه په وخت د رفع د سر کښې د سجدې نه.

## شرح حديث

**قوله**: ﴿ حدثنا عبيد الله بن عمر بن ميسرة الجشمي الخ ﴾ عبدالجبار فرمائي چه زه خو وړوکې او کم عمره اوم د خپل والد صاحب په مونځ باندې ښه طريقې سره نه پوهيدم، زما مشر رور علقمه بن وائل ماته بيان اوکړو، وړاندې د حديث مضمون واضح دې عن ابی وائل کښې وائل بدل واقع شوی دې د ابی نه، لفظ ابی مبدل منه دې يعني زما رور بيان اوکړو زما د والد وائل بن حجر رضي الله عنه نه، او په سند کښې چه کوم وائل بن علقمه ذکر دې دا غلط دې، په دې نوم کښې د يو راوی نه قلب واقع شوې دې، صحيح علقمه بن وائل دې، عبدالجبار او علقمه دواړه خپل مينځ کښې رونړه دی، عبدالجبار کشر او علقمه مشر، هم په دې وجه هغوی وائی چه اګر چه ما خپل پلار په مونځ کولو باندې ليدلې خو دې خو زه هغه وخت ډير وړوکې اوم ددې قابل نه اوم چه د هغه د مونځ کيفيت بيان کړې شم، په دې وجه هغه د خپل مشر رور علقمه په واسطې سره نقل کوی.

**تنبيه** : د ابوداود ددې روايت نه معلوميږی چه عبدالجبار د خپل پلار وائل رضي الله عنه په ژوند کښې موجود وو اګر چه وړوکې وو، هم په دې وجه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ددې نه د محدثينو د يو جماعت رائې غلطه ثابتيږی، لکه يحيی بن معين، ابن حبان، علی بن مدينی او امام بخاری وغيره، ددې حضراتو نه نقل دی چه د عبدالجبار پيدائش د وائل بن حجر رضي الله عنه د وفات نه روستو شوې وو او عبدالجبار د خپل پلار د وفات په وخت باندې د مور په خيټه کښې د حمل په صورت کښې وو، خو دې روايت دا ثابته کړه چه دا رائې غلطه

دده ( )

## الكلام على حديث وائل بن حجر

[۷۲٤] ( )حَدَّثَنِي عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحِيمِ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ الْحَسَنِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ النَّخَعِيِّ، عَنْ عَبْدِ الْجَبَّارِ بْنِ وَائِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّهُ أَبْصَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى كَانَتَا بِحِيَالِ مَنْكِبَيْهِ وَحَاذَى بِإِبْهَامَيْهِ أُذُنَيْهِ ثُمَّ كَبَّرَ".

**ترجمه**: عبد الجبار بن وائلؒ د خپل پلار نه روایت کوی هغه وئیلی دی، بیشکه هغه ولیدلو نبی ﷺ کله چې پاځیدلو مانځه ته نو لاسونه ئې اوچت کړل تردې چې شو هغه دواړه برابر د اوږو او برابری ئې کړی غټې ګوتې د غوږونو سره، بیا ئې تکبیر وکړو.

[۷۲۵] ( )حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ يَعْنِي ابْنَ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا الْمَسْعُودِيُّ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الْجَبَّارِ بْنُ وَائِلٍ، حَدَّثَنِي أَهْلُ بَيْتِي، عَنْ أَبِي، أَنَّهُ حَدَّثَهُمْ، أَنَّهُ "رَأَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ مَعَ التَّكْبِيرَةِ".

**ترجمه**:عبد الجبار بن وائل وایی چې حدیث بیان کړی ماته اهل بیت زما، زما د پلار نه، بیشکه هغه دوی ته حدیث بیان کړې دې، چې یقیناً هغه رسول الله ﷺ لیدلی دی چې لاسونه ئې اوچت کړل سره د تکبیر نه.

[۷۲٦] ( )حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، قَالَ: قُلْتُ لَأَنْظُرَنَّ إِلَى صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ يُصَلِّي، قَالَ: "فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ فَكَبَّرَ فَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى حَاذَتَا أُذُنَيْهِ، ثُمَّ أَخَذَ شِمَالَهُ بِيَمِينِهِ، فَلَمَّا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ رَفَعَهُمَا مِثْلَ ذَلِكَ ثُمَّ وَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ، فَلَمَّا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ رَفَعَهُمَا مِثْلَ ذَلِكَ، فَلَمَّا سَجَدَ وَضَعَ رَأْسَهُ بِذَلِكَ الْمَنْزِلِ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ، ثُمَّ جَلَسَ فَافْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُسْرَى وَحَدَّ مِرْفَقَهُ الْأَيْمَنَ عَلَى فَخِذِهِ الْيُمْنَى وَقَبَضَ ثِنْتَيْنِ وَحَلَّقَ حَلْقَةً، وَرَأَيْتُهُ يَقُولُ هَكَذَا: وَحَلَّقَ بِشْرٌ الْإِبْهَامَ وَالْوُسْطَى وَأَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ".

**ترجمه**: د وائل بن حجر نه روایت دې هغه وئیلی دي: ما وویل: زه به خامخا ګورم مانځه د رسول الله ﷺ چې هغه څنګه مونځ کوي، هغه وایي: پاځیدلو رسول الله ﷺ مخ ئې کړو قبلې ته او تکبیر ئې وویلو نو دواړه لاسونه ئې اوچت کړل تردې چې برابریی کړل دواړه د غوږونو سره، بیا ئې ونیولو چپ لاس په ښي لاس سره، کله ئې چې اراده وکړه د رکوع کولو نو دواړه اوچت کړل پشان د هغې، بیا ئې کیخودل لاسونه په زنګونانو باندې، کله چې ئې سر اوچت کړو د رکوع نه نو دواړه لاسونه ئې اوچت کړل پشان د هغې، هرکله چې ئې سجده

[۱] ) حضرت په بذل کښې ددې حضرات محدثین د طرف نه وکالت کولو سره فرمائیلي دی چه ممکنه ده چه ( لا اعقل ) معنی ( لا احفظ ) وی، اي لا احفظ صلاة ابي لاني ولدت بعد موت ابي فكيف يمكن ان اعقل واحفظ صلاة ابي فالاستدلال بهذا الكلام علي انه ولد في حيات ابيه ضعيف) لیکن زه وائم چه لا اعقل د لا احفظ په معنی کښې اخستلو سره کارنه چلیږی ځکه چه کنت غلاما به څه کوی ددې نه خو صفا معلومیږی چه دا پیدا شوې وو.

[۲] ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۷٦۱) (ضعيف)

[۳] ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۹۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۱٦/٤) (صحيح)

[٤] ): سنن النسائي/ الافتتاح ۱۱ (۸۹۰)، سنن ابن ماجه/ إقامة الصلاة ۳ (۸۱۰)، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۸۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۱٦/٤، ۳۱۷، ۳۱۸، ۳۱۹) (صحيح) ويأتي هذا الحديث عند المؤلف برقم (۹۵۷)

وکړه نو کیخودلو سر خپل په همدغه خائې په مینځ د لاسونو کښې، بیا کیناستلو خوره ئې کړه خپله چپه خپه او کیخودلو چپ لاس په ورون چپ باندې، او لرې ئې کړه څنګل د ورون نبې نه، او راغونډې ئې کړې دوارۀ ګوتې او حلقه ئې جوړه کړه. او ما ولیدلو چې هغه به وئیل داسې. او حلقه جوړه کړه بشر د ابهامې او وسطی نه او اشاره ئې اوکړه په سبابه سره.

[۷۲۷]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ فِيهِ: ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى ظَهْرِ كَفِّهِ الْيُسْرَى وَالرُّسْغِ وَالسَّاعِدِ. وَقَالَ فِيهِ: ثُمَّ جِئْتُ بَعْدَ ذَلِكَ فِي زَمَانٍ فِيهِ بَرْدٌ شَدِيدٌ فَرَأَيْتُ النَّاسَ عَلَيْهِمْ جُلُّ الثِّيَابِ تَحَرَّكُ أَيْدِيهِمْ تَحْتَ الثِّيَابِ

**ترجمه**: د عاصم بن کلیب نه روایت دې په اسناد او معنی د هغه سره، هغه وئیلی دی په هغې کې: بیا ئې کیخودلو خپل ښې لاس په شا د ورغوی چپ باندې او مړوند او بازو باندې، او هغه وئیلی دی په هغې کښې: بیا زه راغلم وروسته د هغې نه په داسې زمانه کښې سخته یخنې یکې وه ما ولیدل خلک چې هغوی باندې غټې جامې وې، خوزول به ئې لاسونه لاندې د جامو نه.

**تشریح**: دا د وائل بن حجر رضی الله عنه حدیث دې، علامه شوکانی رحمه الله دا حدیث سنن ثلاثه ابو داود نسائی، ابن ماجه طرف ته منسوب کړې دې، حال دا چه دا روایت په صحیح مسلم کښې هم موجود دې، پس علامه زیلعی ددې نسبت د مسلم طرف ته کړې ده، امام مسلم دا حدیث په ﴿باب وضع الیمنی علی الیسری﴾ کښې راوړې دې.

## (د حدیث وائل رضی الله عنه نه جواب)

په دې حدیث باندې زمونږ د طرف نه دا نقد کړې شوې دې چه په دې کښې اختلاف او اضطراب دې، مصنف دا په دوه طریقو سره ذکر کړې دې، په طریق د عبدالجبار او په طریق د عاصم بن کلیب عن ابیه، او بیا دا په هر یو طریق کښې ډیر روایات دی، په بعض طرق کښې انقطاع ده او په بعض کښې مجهول راویان هم دی، هم دغه شان ددې په یو طریق کښې رفع عند السجود هم شته، ددې تولو څیزونو په تفصیل سره حضرت په بذل کښې ذکر فرمائیلې دی، غالبا هم په دې وجوه سره امام بخاری رحمه الله ددې تخریج کړې دې.

خو واقعه دا ده چه د مجموع طرق په لحاظ سره دا حدیث صحیح او ثابت دې او د مواضع رفع په اعتبار سره هم په دې کښې زیات اضطراب نشته، په خلاف د حدیث ابن عمر چه په هغې کښې سخت اضطراب دې.

## (نور جوابونه)

لهذا د حدیث وائل جواب زمونږ د طرف نه یو خو دا شو چه ددې په بعض طرق کښې رفع عند السجود مذکور ده، او بل جواب دا دې چه زمونږ په نزد دا د حدیث عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په مقابله کښې مرجوح دې، ځکه چه د وائل بن حجر رضی الله عنه راتلل د حضرموت نه مدینې منورې ته صرف یو دوه کرته ثابت دې، امام بخاری رحمه الله د ډیر کوشش نه پس دوه

( ): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۸۱) (صحیح)

کرته ثابت کړې دې، د بهر ملک وو، د بهر اوسيدونکي په طول صحبت سره نه دی مشرف شوی، په خلاف د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه کوم چه د سابقين اولين او کبار بدريانو نه دې په حفاظ صحابه کرامو کښې د هغه شمير دې، ابن سعد په طبقات کښې من کان يفتي بالمدينة کښې د هغه شمار کړې دې او تر شلو کالو پورې د رسول الله ﷺ سفرا او حضرا ملګرې وو، په محدثينو کښې د يو لوئې جماعت رائې دا ده کومه چه قاضی ابوبکر او ابن عبدالبر وغيره نقل کړې ده چه د صحابی کيدو دپاره اوږد صحبت کيدل ضروری دی او ظاهره ده چه دا خيز وائل بن حجر رضي الله عنه ته حاصل نه وو.

## (د ابراهيم نخعي رحمه الله قول)

په طحاوی شريف کښې دی چه يو سړی د ابراهيم نخغی په وړاندې د وائل بن حجر رضي الله عنه حديث پيش کړو نو هغه اوفرمائيل چه که وائل رسول الله ﷺ يو ځل په رفع ليدلې دې نو عبدالله بن مسعود رضي الله عنه پنځوس کرته په عدم رفع باندې ليدلې دې ﴿ ان کان وائل راه مرة يفعل ذلک فقد راه عبدالله خمسين مرة لا يفعل ذلک ﴾

## (د ابرهيم نخعي رحمه الله په قول باندې د شوافعو نقد)

په دې باندې امام بخاری رحمه الله وغيره علماء شافعيه يو داسې اشکال کړې دې کوم چه د تعجب باعث دې هغه دا چه د ابراهيم نخغی څه حيثيت دې د وائل بن حجر رضي الله عنه صحابی په مقابله کښې چه د هغه په قول سره د وائل د حديث مرفوع معارضه اوکړې شی؟ جواب ظاهر دې چه د ابراهيم نخغی په قول سره د حديث مرفوع معارضه نه شی کولې بلکه د وائل بن حجر رضي الله عنه د روايت په مقابله کښې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت پيش کولې شی، او په دې کښې دوه رائې نشته چه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په علم او فضل کښې په وائل باندې فائق دې، او دويم جواب هغه کلی جواب دې کوم چه د ټولو احاديث رفع زمونږ د طرف نه ورکولې شی چه د رفع يدين د ثبوت نه زمونږ انکار نشته او نه کيدې شی خبره او بحث د رفع په دوام او بقاء کښې دې، د ابن عمر نه چه د رفع سره سره د عدم رفع کوم روايات منقول او ثابت دی د هغې انکار ديانة ممکن نه دې او بل طرف ته د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه د عدم رفع د روايت سره سره عملا د هغه نه د ترک رفع په ثبوت باندې د ټولو علماء کرامو اتفاق دې.

**قوله:** ﴿ فلما سجد وضع راسه بذلک المنزل من بين يديه ﴾ د سجدې کيفيت بيانوی او دا چه په سجده کښې ئې لاسونه چرته وو، پس دا ئې بيان کړه چه په سجده کښې ئې سر د دواړو لاسونو ترمينځه وو چه د هغې نه معلومه شوه چه د سجدې په حالت کښې يدين د اذنين په محاذات کښې پکار دی، چه کوم وخت کښې د رفع يدين په وخت باندې وی. بذلک المنزل هم دا مطلب دې.

**قوله:** ﴿ فوضع يده اليسرى على فخذه اليسرى وحد مرفقه الايمن على فخذه اليمنى ﴾ په تشهد کښې کيفيت جلوس بيانوی چه په التحيات باندې کيناستلو نو ګس لاس ئې په ګس پتون

کيخودلو، اوس وړاندې خو دا وئيل پکار وو، او ښې لاس ئې په ښى پټون باندې کيخودلو خو راوى هغه داسې بيانوى څنګه چه وړاندې په عبارت کښې ذکر دى : ﴿ وحد مرفقه الايمن الخ ﴾

## شرح حديث

ظاهره دا ده چه دا واو عاطفه دې او حد په تشديد د دال سره فعل ماضى دې، د حد معنى منع او فصل ده، ترجمه به دا وى چه د ښى لاس څنګل ئې د پټون نه جدا اوساتله په داسې حال کښې چه هغه لاس ئې په ښى پټون باندې وو، زه وائم چه کله هم زه په دې خبره باندې پوهه نه شوم چه څنګل لره د پټون نه جدا ساتلو کښې د ښى طرف تخصيص ولې اوکړې شو، حال دا چه د ګس لاس څنګل هم د پټون نه جدا وى، او يو احتمال ئې ددې لفظ په شرح کښې دا ليکلې دې چه په لفظ او حد کښې واو اصلى دې، او دا فعل ماضى ده د توحيد نه، مطلب به په دې صورت کښې هم هغه وى يعنى جدا ساتل، او دريم احتمال دا ليکلې شوې دې چه په ﴿ وحد ﴾ کښې واؤ عاطفه دې، او حد فعل ماضى نه دې بلکه اسم دې د غاړې په معنى کښې او د هغې عطف په ﴿ يده اليسرى ﴾ باندې، د عبارت تقدير به دا وى ﴿ووضع حد مرفقه الايمن على فخذه اليمنى ﴾ لفظ حد به منصوب وى بناء بر مفعوليت کوم چه مضاف کيږى د مابعد طرف ته، ترجمه به دا شى کيخودلو ګس لاس لره ﴿ فخذ يسرى ﴾ باندې کيخودلو او د مرفق ايمن په فخذ يمنى باندې، خو د احتمال ثالث په ظاهره صحيح نه دې ځکه چه وضع المرفق على الفخذ د بل يو روايت نه هم ثابت نه دې او نه د يو فقيه مذهب دې.

[۷۲۸]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حِيَالَ أُذُنَيْهِ، قَالَ: ثُمَّ أَتَيْتُهُمْ فَرَأَيْتُهُمْ يَرْفَعُونَ أَيْدِيَهُمْ إِلَى صُدُورِهِمْ فِي افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ وَعَلَيْهِمْ بَرَانِسُ وَأَكْسِيَةٌ".

**ترجمه**: د وائل بن حجر نه روايت دې هغه وئيلى دي: ما وليدلو نبى ﷺ کله چې هغه افتتاح د مانځه وکړه لاسونه ئې اوچت کړل برابر د غوږونو سره، هغه وئيلى دي: بيا زه راغلم دوى ته ما وليدل چې اوچتول ئې خپل لاسونه سينو پورې په افتتاح د مانځه کښې او هغوى چوغې او کمبلې اغوستې وې.

**تشريح**: **قوله**:﴿ ثم اتيتهم فرايتهم يرفعون ايديهم الى صدورهم ﴾ د دې نه معلومه شوه چه د هغه اول ځل راتلل د ګرمۍ په زمانه کښې شوې وو، هغه وخت صحابه کرامو رفع يدين د غوږونو پورې کول، دوباره چه کله راغلل نو هغه وخت صحابه کرامو رفع يدين په څادرو کښې دننه تر سينې پورې کول، خو دا د بعض صحابه کرامو طرز عمل وو، ددې نه وړاندې هم د وائل په روايت کښې راغلل چه رسول الله ﷺ د څادر نه لاس راويستلو سره هله به ئې اوچتولو، لهذا مسنون طريقه هم هغه ده.

(): سنن النسائي/السهو ۳۱(۱۲٦٦)، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۸۳) (صحيح)

د دې حديث نه صفا معلومه شوه چه وائل بن حجر رضي الله عنه د بهر اوسيدونکې وو.[١] مدينې منورې ته د هغه راتلل دا په دويم ځل وو.

## بَابُ افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ

### باب دې په بيان د افتتاح د مانځه کې

### د ترجمة الباب غرض:

په بعض نسخو کښې دا ترجمة الباب نشته، که نه وی نو د هيڅ بيان حاجت نشته، او که وی لکه چه زمونږ په نسخه کښې دی نو بيا به وئيلې شی چه ددې نه مخکښې باب رفع اليدين وو، او د بعض علماء کرامو په نزد رفع يدين قبل التحريمه وی او د مونځ ابتداء او افتتاح في الواقع د تکبير تحريمه نه کيږی نه د رفع يدين نه، په دې وجه دا ترجمه راوړل صحيح شو، ګويا رفع يدين عند التحريمه لره د ثابتولو نه پس د هغې د مابعد عمل لره بيانوی چه د هغې نه مونځ شروع کيږی او هغه دې تکبير تحريمه خو ددې باب چه کوم اولنې حديث دې هغه د تير شوی حديث يو طريق دې د وائل بن حجر حديث، لهذا غوره دا وه چه راتلونکې حديث د باب سابق د لاندې وې او دا د ابو حميد ساعدی رضي الله عنه د حديث نه شروع کړې شوې وې کوم چه زمونږ په نسخه کښې د اول حديث نه روستو دې.

[٧٢٩] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ، عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، قَالَ: "أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الشِّتَاءِ، فَرَأَيْتُ أَصْحَابَهُ يَرْفَعُونَ أَيْدِيَهُمْ فِي ثِيَابِهِمْ فِي الصَّلَاةِ".

**ترجمه:** د وائل بن حجر رضي الله عنه نه روايت هغه وئيلې دې: زه راغلم نبي صلى الله عليه وسلم ته په ژمی کښې نو ما وليدل ملګرې د هغه چې اوچتول ئې لاسونه خپل په څادرونو کښې په مانځه کښې.

[٧٣٠] (٣) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ الضَّحَّاكُ بْنُ مَخْلَدٍ ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، وَهَذَا حَدِيثُ أَحْمَدَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ يَعْنِي ابْنَ جَعْفَرٍ أَخْبَرَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا حُمَيْدٍ السَّاعِدِيَّ فِي عَشَرَةٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمْ أَبُو قَتَادَةَ، قَالَ أَبُو حُمَيْدٍ: أَنَا أَعْلَمُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالُوا: فَلِمَ فَوَاللَّهِ؟ مَا كُنْتَ بِأَكْثَرِنَا لَهُ تَبَعًا وَلَا أَقْدَمِنَا لَهُ صُحْبَةً، قَالَ: بَلَى، قَالُوا: فَاعْرِضْ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ، ثُمَّ يُكَبِّرُ حَتَّى يَقِرَّ كُلُّ عَظْمٍ فِي مَوْضِعِهِ مُعْتَدِلًا، ثُمَّ يَقْرَأُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ فَيَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ، ثُمَّ يَرْكَعُ وَيَضَعُ رَاحَتَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ، ثُمَّ يَعْتَدِلُ فَلَا يَصُبُّ رَأْسَهُ وَلَا يُقْنِعُ، ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ، فَيَقُولُ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، ثُمَّ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ مُعْتَدِلًا، ثُمَّ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ، ثُمَّ يَهْوِي إِلَى الْأَرْضِ فَيُجَافِي يَدَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ، ثُمَّ

---

[١] دا خبره ډيره محسوسيږی چه په صحيحين کښې د رفع اليدين په ثبوت کښې تول دوه يا درې احاديث دی چه په هغې کښې دوه راويان د بهر اوسيدونکی او د بل وطن دی.

[٢]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٧٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٦/٤) (صحيح)

[٣]: صحيح البخاري/الأذان ١٤٥ (٨٢٨)، سنن الترمذي/الصلاة ٧٨ (٣٠٤)، سنن النسائي/التطبيق ٦ (١٠٤٠)، والسهو ٢ (١١٨٢)، ٢٩ (١٢٣٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٥ (١٠٦١)، (تحفة الأشراف: ١١٨٩٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٤/٥) سنن الدارمي/الصلاة ٧٠ (١٣٤٦) (كلهم مختصراً من سياق المؤلف، وليس عند البخاري ذكر رفع اليدين ما سوى عند التحريمة) (صحيح)

يَرْفَعُ رَأْسَهُ وَيَثْنِي رِجْلَهُ الْيُسْرَى فَيَقْعُدُ عَلَيْهَا وَيَفْتَحُ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ إِذَا سَجَدَ وَيَسْجُدُ، ثُمَّ يَقُولُ: اللهُ أَكْبَرُ، وَيَرْفَعُ رَأْسَهُ وَيَثْنِي رِجْلَهُ الْيُسْرَى فَيَقْعُدُ عَلَيْهَا حَتَّى يَرْجِعَ كُلُّ عَظْمٍ إِلَى مَوْضِعِهِ، ثُمَّ يَصْنَعُ فِي الْأُخْرَى مِثْلَ ذَلِكَ، ثُمَّ إِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ كَمَا كَبَّرَ عِنْدَ افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ، ثُمَّ يَصْنَعُ ذَلِكَ فِي بَقِيَّةِ صَلَاتِهِ حَتَّى إِذَا كَانَتِ السَّجْدَةُ الَّتِي فِيهَا التَّسْلِيمُ أَخَّرَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى وَقَعَدَ مُتَوَرِّكًا عَلَى شِقِّهِ الْأَيْسَرِ"، قَالُوا: صَدَقْتَ، هَكَذَا كَانَ يُصَلِّي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه**: محمد بن عمرو بن عطاء وئيلي دی چې ما اوريدلی دی د ابو حميد الساعدي نه چې وو د لسو کسانو سره د صحابو د رسول الله ﷺ سره، بعضی د هغوی نه قتادة وو، وئيلی دی ابو حميد: زه ستاسو نه ډير پوهه يم په مانځه د رسول الله ﷺ باندې، هغوی ووېل ولې: قسم په الله ته زمونږ نه د هغه ډير تابعدار نه وې، او نه زمونږ نه مخکې وی په صحبت د هغه کښې. هغه ووېل: همداسې ده، هغوی ووېل پيش کړه، هغه ووېل: وو رسول الله ﷺ چې کله به پاڅيدلو مانځه ته نو اوچتول به ئې دواړه لاسونه ترديې چې برابر به ئې کړل د اوږو سره، بيا به ئې تکبير ويلو تردې چې قراری ونيسي هرېو هډوکی په خپل ځائې کښې برابر، بيا به ئې قرأت کولو، بيا به ئې تکبير کولو نو اوچتول به ئې دواړه لاسونه تردې چې برابر به ئې کړل د اوږو سره، بيا به ئې رکوع وکړه او دواړه ورغوی ئې په زنګونانو باندې کېخودل، بيا به معتدل شو نه به ئې سر اوچتولو او نه به ئې خکته کولو، بيا به ئې سر اوچت کړو، او وئيل به ئې سمع الله لمن حمده، بيا به ئې لاسونه اوچت کړل تردې چې د اوږو سره به ئې برابر کړل، بيا به ئې ويلو الله اکبر بيا خکته کيدلو ځمکې ته نو لرې به ئې ساتل لاسونه د تشو خپلو نه، بيا به ئې سر اوچت کړو او راغونده به ئې کړه چپه خپه نو کيناستلو به په هغې، او کولاوولی به ئې ګوتې د خپو چې کله به ئې سجده کوله، او سجده ئې وکړه او وئيل به يې: الله اکبر، او اوچتولو به ئې سر او راغوندوله به ئې خپه چپه نو کيناستلو به په هغې، تردې چې واپس به شو هر هډوکی خپل ځائې ته، بيا به ئې کولو په وروستنئ کښې پشان د هغې، بيا چې به کله هغه پاڅيدلو د دوه رکعاتو نه نو تکبير به ئې ويلو او اوچت به ئې کړل دواړه لاسونه تردې چې برابر به ئې کړل د اوږو سره لکه څنګه چې ئې تکبير ويلو په وخت د افتتاح د مانځه کښې، بيا به ئې کولو دغسې په باقی مونځ کښې تردې چې وو به رکعات هغه چې په هغې کښې به سلام وو، وروسته به ئې کړه خپه چپه او کيبناستلو په حالت د تورک کښې په چپ طرف. هغوی ووېل: تا رښتيا ووېل داسې به مونځ کولو رسول الله ﷺ.

## د حديث ابی حميد الساعدی تخريج

**قوله**: ﴿ حدثنا احمد بن حنبل الخ ﴾ دا د رفع اليدين د سلسلې د دريم صحابی حديث دې، دا د سنن اربعه او مسند احمد روايت دې، امام بخاری رحمه الله ددې صرف د شروع حصه ذکر کړې ده او عام طور سره شارحينو ددې نسبت د نسائی طرف ته نه دې کړې، حال دا چه دا حديث په هغې کښې هم دې امام نسائی هم ددې په ابواب السهو کښې مختصراً تخريج کړې دې، او په دې کښې صرف رفع عند القيام من الرکعتين مذکور دې، هم دا هغه حديث دې کوم چه علامه

شوکاني لس بلکه يولس احاديث شمار کړي دي لکه چه په ابتدائي بحثونو کښې تير شوي دي، زه په خپل سبق کښې وايم چه ګورئ! چه کله مونږ ددې حديث جواب کوو او په دې باندې کلام کوو نو صرف د يوحديث به جواب نه کوو بلکه هغه به د يولسو احاديثو جواب وي.

## د احنافو د طرف نه د دې حديث جوابات

په دې حديث باندې زمونږ د طرف نه ډير نقد ونه کړې شوي دي کوم چه حضرت سهارنپوري رحمه الله په بذل کښې مختصرا او مولانا محمد يوسف صاحب رحمه الله په اماني الاحبار کښې تفصيل سره ذکر فرمائيلي دي، په بذل کښې په دې باندې دوه ځايونو کښې کلام دي يو خو دلته د حديث د لاندې او يو باب د رفع اليدين د لاندې چرته چه حضرات فريقين په دلائل باندې کلام فرمائيلي دي، هغه نقد دا دي.

۱: ددې حديث په سند کښې عبدالحميد بن جعفر دي کوم چه ضعيف دې، يحيى بن سعيد د هغه تضعيف کړې دې.

۲: په دې حديث کښې رفع عند القيام من الرکعتين مذکور دی چه د هغې جمهور قائل نه دی.

۳: په دې حديث کښې دې حيثيت سره اختلاف او اضطراب دې چه بعض راويانو په قعده اخيره کښې تورک ذکر کړې دې، او بعض نه دې ذکر کړې، او د هغې په بعض طرق کښې په ځائي د تورک في الجلسة الاخيره... تورک في الجلوس بين السجدتين مذکور دې.

۴: دا حديث ابو حميد ساعدي رضي الله عنه د لسو صحابه کرامو په موجودګی کښې بيان فرمائيلې وو، او هم په دې وجه دا حضرات وايي چه دا حديث د لسو احاديثو قائم مقام دې.

خو دا به د لسو احاديثو قائم مقام هله وي، چه کله دا ټول حضرات ددې تصديق اوکړي، حال دا چه امام طحاوي رحمه الله فرمائي چه ددې حديث په اخير کښې ﴿ قالوا صدقت ﴾ صرف د ابو عاصم په روايت کښې دی د هغه نه علاوه چا هم دا جمله نه ده نقل کړې، الغرض ددې صحابه کرامو تصديق هم کمزورې پاتې شو، نو بيا به دا حديث د لسو احاديثو قائم مقام څنګه شي؟ زه عرض کوم چه ددې حديث د سياق تقاضه هم دا ده چه ددې صحابه کرامو د طرف نه تصديق نه دی پکار څکه چه ابو حميد ساعدي رضي الله عنه په خپل مجلس کښې د هغه لس صحابه کرامو په وړاندې په شروع کښې دا خبره فرمائيلې وه بلکه دعوی ئې کړې وه چه زه د رسول الله ﷺ د مونځ کيفيت او تفصيل نه ځومره خبره يم په تاسو کښې څوک هم دومره واقف نه دې، سامعينو په دې باندې اشکال هم اوکړو چه دا څنګه؟ نه ته د رسول الله ﷺ په صحبت کښې زمونږ نه زيات ئې او نه د هغه په تابعدارئ کښې، هغه اووې چه ددې باوجود هم هغه خبره ده کومه چه زه کوم، هغوی ورته اووې چه ښه تاسو هغه تفصيل بيان کړئ پس هغه د رسول الله ﷺ د مونځ تفصيل من اوله الى اخره بيان کړو، په دې باندې مونږ دا وايو چه د ابو حميد ساعدي رضي الله عنه دعوی د اعلميت به هم هغه وخت صحيح وي، چه ټول تفصيل سامعينو ته معلوم وی او د نه معلوميدو تقاضه دا ده چه د ټول تفصيل اوريدلو نه پس د حاضرينو د طرف نه تصديق اونشو، څکه چه تصديق بغير د علم سابق نه نه شي کيدې څکه چه په حديث د جبرائيل عليه السلام کښې راځي ﴿ فعجبنا يسأله ويصدقه ﴾ نتيجه دا راوتله چه په دې

حديث کښې قالوا صدقت نشته، او في الواقع اکثر رواياتو کښې شته هم نه، كما قاله الطحاوي... نو بيا ددې حديث نه د استدلال څه نوعيت پاتې شو چه د هغې په اوريدلو باندې ټول خاموش شو،(١) پس ددې خو يو حديث کيدل هم ګران شو پاتې لا دا چه لس شو.

## د حديث ابو حميد انقطاع

۵: يو بل قوي اشکال ددې حديث په سند باندې کوم چه امام طحاوي او د هغه متبعينو بيان کړې دې چه په دې کښې انقطاع ده، د محمد بن عمرو بن عطاء او ابو حميد ساعدي ترمينځه، چه د هغې درې قرينې دي.

### اول قرينه:

دا چه دا روايت د محمد بن عمرو نه څنګه چه عبدالحميد بن جعفر روايت کوي، کوم چه دلته د ابوداود په سند کښې موجود دې هم دغه شان دا عطاف بن خالد هم د محمد بن عمرو نه روايت کوي خو عطاف د محمد بن عمرو او ابو حميد ترمينځه د ﴿ رجل مبهم ﴾ واسطه ذکر کړې ده،﴿عن محمد بن عمرو بن عطاء عن رجل عن ابي حميد الساعدي﴾

### دويمه قرينه:

دا دې چه وړاندې خپله په کتاب کښې د عيسى بن عبدالله په روايت کښې ددې دواړو ترمينځه دعباس بن سهل واسطه موجود ده.﴿عن محمدبن عطاء عن عباس بن سهل عن ابي حميد﴾

### دريمه قرينه:

دا ده چه په دې لس صحابه کرامو کښې يو ابوقتاده رضي الله عنه هم دې حال دا چه محمد بن عمرو د هغه زمانه نه ده موندلې، د هغه وفات د محمد بن عمرو د ولادت نه مخکښې شوې وو، ابو قتاده رضي الله عنه د علي رضي الله عنه په زمانه کښې په ۳۸ هجري کښې وفات شوې دې، سيدنا علي رضي الله عنه په هغه باندې جنازه کړې ده، حافظ ابن حجر په التلخيص الحبير کښې دا خبره تسليم کړې ده، او د محمد بن عمرو بن عطاء پيدائش ۴۰ هجري کښې دې چه د هغې مطلب دا شو چه د شاګرد پيدائش د استاذ د وفات نه دوه کاله پس شوې دې بيا هغه د هغه نه روايت څنګه کولې شي ضرور به دا روايت منقطع وي.

دا چه مونږ اووې چه د محمد بن عمرو پيدائش په ۴۰ هجري کښې دې هغه ځکه چه مشهور د علماء الرجال په نزد دا دې چه د هغوی وفات ۱۲۰ هجري کښې د اتيا کالو په عمر، د شپږ شلې نه د اتيا د وضع کولو نه پس څلويښت باقي پاتې کيږي په دې حساب سره په ۴۰ هجري کښې د هغه پيدائش شوې دې يعنې د ابوقتاده د وفات نه دوه کاله پس، دا ټوله جرح امام المحدثين ابو جعفر طحاوي په شرح معاني الاثار کښې بيان فرمائيلې ده.

---

(١) که څوک اوائې چه سکوت دليل د تسليم دې او هغوی ته دا تفصيل معلوم وو نو بيا به مونږ تپوس کوو چه هغه د اعلميت دعوى چرته لاړه او دې خلقو په ابو حميد باندې اعتراض ولې اونکړو چه تاسو خو اوفرمائيل چه زه اعلم يم خو دا هر څه خو مونږ ته هم معلوم دي)

**د حافظ ابن حجر رحمه الله د طرف نه جواب انقطاع او زمونږ د طرف نه د هغې رد**

د دې انقطاع نه د خلاصئ شکل حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کښې دا اختیار کړې دې چه کیدې شی د ابو قتاده د عمر په باره کښې د ۵۴ هجری قول زیات صحیح وی لکه چه هغه د واقدی رائې ده، حافظ ابن حجر التلخیص الحبیر کښې فرمائیلې دی چه قول راجح د ابو قتاده رضی الله عنه په وفات کښې ۳۸ هجری ده لکه چه د ابن سعد رائې ده، او بیا وړاندې په فتح الباری کښې حافظ لیکی چه کیدې شی چه د محمد بن عمرو چه کومه د عمر موده بیانولې شی یعنی اتیا کاله هغه صحیح نه وی بلکه د هغه عمر ددې نه زیات وی، مثلا پنځه اتیا کاله وی نو اوس په شپږ شلې کښې د پنځه اتیا وضع کولو نه پس پنځه دیرش باقی پاتې شی نو په دې لحاظ سره به د شاګرد د پیدائش کال ۳۵ هجری وی نه څلویښت) هم دغه شان وړاندې لیکی چه دا هم ممکنه ده چه په دې لس صحابه کرامو کښې ابو قتاده رضی الله عنه شامل نه وی، او په کوم روایت کښې چه د هغه تسمیه راغلې ده هغه غلط وی، اوګورئ حافظ صاحب دا څه وائی د حمایت هم یو حد وی، ابن عبدالبر او ابن القطان او ابن سعد د واقدی شاګردان او خپله د حافظ ابن حجر رائې په التلخیص الحبیر کښې د ابو قتاده د وفات په باره کښې ۳۸ هجری ده، دویم قول د ۵۴ هجری دې کوم ته چه بیهقی ترجیح ورکړې ده، پاتې شوې دوه قرینې نو په هغې کښې عطاف بن خالد والا روایت جواب حافظ په التلخیص الحبیر کښې ورکړې دې چه محمد بن عمرو دوه دی، محمد بن عمرو بن عطاء او محمد بن عمرو بن علقمه، عطاف بن خالد چه د کوم محمد بن عمرو نه روایت کوی هغه محمد بن عمرو بن علقمه دې د هغه په روایت کښې واسطه واقعی موجود ده او کوم روایت چه بغیر د واسطې نه دې په هغې کښې د محمد بن عمرو بن عطاء دې، دا روایت بغیر د واسطې نه دې، لهذا دا دواړه سندونه جدا جدا دی په یو کښې هم انقطاع نشته، ددې جواب زمونږ د طرف نه دا ورکړې شوې دې چه دا تفریق صحیح نه دې، د عطاف بن خالد په روایت کښې هم محمد بن عمرو بن عطاء دې لکه چه د طحاوی په روایت کښې تصریح ده، او د عیسی بن عبدالله والا روایت جواب حافظ په فتح الباری کښې دا کړې دې هغه مزید فی متصل الاسانید د قبیل نه دې [1] په دې باندې علامه عینی فرمائی چه کوم د مزید فی متصل الاسانید دپاره شرط دا دې چه د اصل راوی سماع ثابته وی د خپل مروی عنه نه، او دلته داسې نه ده څکه چه شعبی کوم چه ددې فن امام دې د چا نفی چه نفی ده او اثبات اثبات، هغه فرمایی چه د محمد بن عمرو سماع د ابو قتاده نه ثابت نه ده، نو هر کله چه د اصل راوی (محمد بن عمرو) سماع د مروی عنه (ابو قتاده) نه ثابت نه ده نو بیا د واسطې والا روایت مزید فی متصل الاسانید څنګه کیدې شی، والله الموفق وهو الهادی الی سواء السبیل.

---

[1]) بعض وخت یو سند بغیر د واسطې نه متصل وی بیا د یو لفظ د زیادت د وجې نه کوم چه په اصل روایت کښې نه وو، په بل روایت کښې دی او هغه زیادت هم دې راوی ته د چا په واسطه رسیدلې دې، نو هلته د واسطې اضافه راځی حال دا چه هغه سند فی نفسه بغیر د واسطې نه هم متصل وی)

تردې خائې پورې په حديث د ابو حميد ساعدي رضي الله عنه باندې د اشكال او جواب بحث پوره شو په قول د علامه شوكاني رحمه الله چه دا حديث د لسو احاديثو قائم مقام وو، لهذا دا اعتراضات او جوابات هم په يو حديث باندې نه دى بلكه ستاسو په لس وارو احاديثو باندې دى.

## شرح حديث

**قوله:** ﴿ فلا يصب راسه ولا يقنع ﴾ د ركوع په حالت كښې به ئې نه خپل سر ښكته كولو او نه به ئې اوچتولو، فقهاء كرامو ليكلې دى چه په ركوع كښې كوناتى، ملا او سر درې واړه برابر كول پكار دى ملا يا سر به نه ډير ښكته كوى او نه به ئې ډير اوچت ساتى.

**قوله:** ﴿ ويفتخ اصابع رجليه ﴾ دا د فتخ نه دې په خاء منقوطه سره چه د هغې معنى نرم او مائل كولو ده، يعنى د سجدې په حالت كښې د خپو د ګوتو رخ واپس كولو سره د قبلې طرف ته راړول. ﴿ ويثنى رجله اليسرى فيقعد عليها ﴾ يعنى په اول ركعت كښې به د سجده ثانيه نه روستو كيناستلو دې ته جلسه استراحت وئيلې شى، په جلسه استراحت باندې مصنف روستو مستقل ترجمه قائم كړې ده، په باب النبوض فى الفرد كښې، په دې باندې به كلام هم هلته راځى. ﴿ حتى اذا كانت السجدة التى فيها التسليم اخر رجله اليسرى وقعد متوركا على شقه الايسر ﴾ هم ددې نوم تورك دې، افتراش خو دا دې چه ګسه خپه خوره كړى او په هغې باندې كينى، او په تورك كښې دا وى چه په ګسه خپه باندې د كيناستلو په ځائې هغه ښى طرف ته اوباسى او كوناتى په زمكه باندې كيخودلې شى.

## په هيئة الجلوس فى التشهد كښې د علماؤ اختلاف

په جلوس فى التشهد كښې افتراش اولى دې يا تورك، مسئله مختلف فيه ده، د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد مطلقا افتراش دې او د امام مالك رحمه الله په نزد مطلقا تورك. او د امام شافعى او امام احمد په نزد په قعده اولى او اخره كښې فرق دې په قعده اولى كښې افتراش اولى دې او په قعده اخرى كښې تورك،[1] كوم مونځونه چه د دوه تشهدو والا دى په هغې كښې خو به داسې وى، او په كوم مونځ كښې چه صرف يو تشهد وى لكه صلاة جمعه او صلاة فجر، په هغې كښې به د امام شافعى په نزد يو تورك وى او د امام احمد په نزد نشته، لهذا د امام شافعى په نزد تورك مطلقا په قعده اخيره كښې وى اګر چه قعده ثانيه نه وى، او د امام احمد رحمه الله په نزد د دويم قيد دې، كه په يو مونځ كښې يوه قعده وى نو په هغې كښې به نه وى.

---

[1] بعض فقهاء كرامو ليكلى دى چه د امام شافعى رحمه الله په نزد د تورك سبب جلوس دې نو ګويا اصل افتراش شو خو چونكه په افتراش كښې لږ شان مشقت وى، څكه چه مختصر په قعده كښې نور طويل قعده كښې تورك اختيار كړې شوې دې، او د امام احمد په نزد منشاء تورك تميز بين القعدة الاولى والاخيره دې، ددې دپاره چه مسجد ته روستو راتلونكى ته خپله معلومه شى چه امام په قعده اولى كښې دې يا اخيره كښې او په كومو مونځونو كښې چه صرف يوه قعده ده هلته د تميز ضرورت نه وى.

## دلائل الفريقين

د شوافعو دليل په دې مسئله کښې د ابوحميد ساعدی رضی الله عنه حديث دې او د احنافو دپاره ډير احاديث دی، اول د عائشې رضی الله عنها کوم چه په مسلم، ابوداود او مسند احمد کښې روايت دې، بل د وائل بن حجر رضی الله عنه حديث کوم چه په ابوداود، نسائی او مسند احمد کښې دې، او دريم د رفاعه بن رافع حديث يعنی حديث المسیء فی الصلاة په دې ټولو احاديثو کښې مطلقا افتراش مذکور دې هم دا خبره احنافو اختيار کړې ده، ﴿ لكن هذا عند نافی الرجال واما المرأة فتقعد متوركة ﴾ ځکه چه په دې کښې تستر زيات دې کوم چه د زنانه د حال مناسب دې.

[۷۳۱](١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ يَزِيدَ يَعْنِي ابْنَ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو الْعَامِرِيِّ، قَالَ: كُنْتُ فِي مَجْلِسٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَذَاكَرُوا صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ أَبُو حُمَيْدٍ: فَذَكَرَ بَعْضَ هَذَا الْحَدِيثِ، وَقَالَ: فَإِذَا رَكَعَ أَمْكَنَ كَفَّيْهِ مِنْ رُكْبَتَيْهِ وَفَرَّجَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ ثُمَّ هَصَرَ ظَهْرَهُ غَيْرَ مُقْنِعٍ رَأْسَهُ وَلَا صَافِحٍ بِخَدِّهِ، وَقَالَ: فَإِذَا قَعَدَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ قَعَدَ عَلَى بَطْنِ قَدَمِهِ الْيُسْرَى وَنَصَبَ الْيُمْنَى، فَإِذَا كَانَ فِي الرَّابِعَةِ أَفْضَى بِوَرِكِهِ الْيُسْرَى إِلَى الْأَرْضِ وَأَخْرَجَ قَدَمَيْهِ مِنْ نَاحِيَةٍ وَاحِدَةٍ.

**ترجمه:** محمد بن عمرو العامری وايي: وم زه په يو مجلس کښې د صحابو د رسول الله ﷺ، نو هغوی مذاکره وکړه د مونځ د رسول الله ﷺ، وئيلی دی ابو حيمد: ذکر ئې کړو بعضې حصه ددې حديث، هغه ووېل: کله چې به هغه رکوع وکړه مضبوط به ئې کړل خپل ورغوی د زنګونانو سره او کولاو به ئې کړې ګوتې د لاسونو، بيا به ئې خکته کړه شا خپله چې بره ئې اونه ساتلو سر خپل، او نه ئې مخ اخوا ديخوا وارولو، او هغه ووېل: کله چې به کيناستلو په دوه رکعاتو کيناستلو به په خيټه د چپې خپې او ودروله به ئې ښې خپه، کله چې به شو په څلورم رکعات کښې نزدې به ئې کړو خپل چپ کوناټی ځمکې ته او وېستلی به ئې دواړه خپې يو طرف ته.

## د تورک مختلف شکلونه

**قوله:** ﴿ واخرج قدميه من ناحية واحدة ﴾ د روايت نه معلوميږی چه د تورک دوه طريقې دی يو دا چه ګسه خپه خورولو سره ښی طرف ته ويستلې شی او ښئ خپه ولاړه اودرولې شی، د بخاری د ابو حميد ساعدی په حديث کښې هم دغه شان مذکور دی، او بله طريقه هغه ده کومه چه دلته په حديث کښې ذکر شوې ده چه ښئ خپه دې هم خوره کړې شی، او يوه دريمه طريقه د تورک بله ده کومه چه د مسلم شريف په روايت کښې ذکر شوې ده هغه دا چه ښئ خپه دې ګس طرف ته د راويستلو په ځائې هغه په ښی پټون او پنډئ په مينځ کښې ګيره کړې شی، د تورک په باره کښې مختلف روايات او د هغې متعدد شکلونه ډير په تفصيل سره په الحل المفهم کښې بيان کړې شوې دی.

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۸۹۷) (صحيح)

[٧٣٢]([1])حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْمِصْرِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنِ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ مُحَمَّدٍ الْقُرَشِيِّ، وَيَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، نَحْوَ هَذَا، قَالَ: فَإِذَا سَجَدَ وَضَعَ يَدَيْهِ غَيْرَ مُفْتَرِشٍ وَلَا قَابِضِهِمَا، وَاسْتَقْبَلَ بِأَطْرَافِ أَصَابِعِهِ الْقِبْلَةَ.

**ترجمه**: د محمد بن عمرو بن عطاء نه روايت دې په مثل ددې هغه وئيلي دي: كله چې به ئې سجده وكړه كيخودل به ئې دواړه لاسونه چې خواره به نه وو او نه به راغونډ وو، او مخامخ به ئې كړې ګوتې خپلې قبلې ته.

[٧٣٣]([2])حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبُو بَدْرٍ، حَدَّثَنِي زُهَيْرٌ أَبُو خَيْثَمَةَ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الْحُرِّ، حَدَّثَنِي عِيسَى بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ أَحَدِ بَنِي مَالِكٍ، عَنْ عَبَّاسٍ، أَوْ عَيَّاشِ بْنِ سَهْلٍ السَّاعِدِيِّ، أَنَّهُ كَانَ فِي مَجْلِسٍ فِيهِ أَبُوهُ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِي الْمَجْلِسِ أَبُو هُرَيْرَةَ، وَأَبُو حُمَيْدٍ السَّاعِدِيُّ، وَأَبُو أُسَيْدٍ، بِهَذَا الْخَبَرِ يَزِيدُ أَوْ يَنْقُصُ، قَالَ فِيهِ: ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ يَعْنِي مِنَ الرُّكُوعِ، فَقَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ وَرَفَعَ يَدَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُ أَكْبَرُ فَسَجَدَ فَانْتَصَبَ عَلَى كَفَّيْهِ وَرُكْبَتَيْهِ وَصُدُورِ قَدَمَيْهِ وَهُوَ سَاجِدٌ، ثُمَّ كَبَّرَ فَجَلَسَ فَتَوَرَّكَ وَنَصَبَ قَدَمَهُ الْأُخْرَى، ثُمَّ كَبَّرَ فَسَجَدَ، ثُمَّ كَبَّرَ فَقَامَ وَلَمْ يَتَوَرَّكْ، ثُمَّ سَاقَ الْحَدِيثَ، قَالَ: ثُمَّ جَلَسَ بَعْدَ الرَّكْعَتَيْنِ حَتَّى إِذَا هُوَ أَرَادَ أَنْ يَنْهَضَ لِلْقِيَامِ قَامَ بِتَكْبِيرَةٍ، ثُمَّ رَكَعَ الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ، وَلَمْ يَذْكُرِ التَّوَرُّكَ فِي التَّشَهُّدِ.

**ترجمه**:د عباس او يا عياش بن سهل الساعدى نه روايت دې بيشكه هغه وو په يو مجلس كښې چې په هغې كښې د هغه پلار وو او وو د صحابو د نبي ﷺ نه، او په مجلس كښې ابو هريرة او ابو حميد الساعدى وو. او ابو أسيد په دې خبر كښې زيادت او نقصان كولو هغه وئيلي دي په هغې كښې: بيا ئې اوچت كړو سر خپل يعنى د ركوع نه هغه وويل: واوريدل الله د هغه چا چې د هغه حمد ئې ووېلو ، اى الله زمونږ ربه تالره حمد دى. او لاسونه ئې اوچت كړل، بيا ئې ووېل: الله اكبر نو سجده ئې وكړه ودريدلو په ورغوو باندې او په زنګونانو باندې او په سينو قدمونو او هغه په سجده كښې وو، بيا ئې تكبير ووېلو كيناستلو د تورك په شكل او ويې دروله بله خپه، بيا ئې تكبير وكړو او سجده ئې وكړه، بيا ئې تكبير ووېلو او پاڅيدلو او تورک ئې ونه كړو، بيا ئې حديث بيان كړو، هغه وايي: بيا كيناستلو وروسته د دوه ركعاتونو نه تردې چې كله هغه اراده وكړه چې پاڅيږي قيام ته پاڅيدلو د تكبير سره، بيا ئې وكړل دوه وروستنې ركعاتونه او ذكر ئې نه كړو تورک په تشهد كښې.

[٧٣٤]([3])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو، أَخْبَرَنِي فُلَيْحٌ، حَدَّثَنِي عَبَّاسُ بْنُ سَهْلٍ، قَالَ: اجْتَمَعَ أَبُو حُمَيْدٍ، وَأَبُو أُسَيْدٍ، وَسَهْلُ بْنُ سَعْدٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ فَذَكَرُوا صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ أَبُو حُمَيْدٍ: أَنَا أَعْلَمُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ بَعْضَ هَذَا، قَالَ: ثُمَّ رَكَعَ فَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ كَأَنَّهُ قَابِضٌ عَلَيْهِمَا وَوَتَّرَ يَدَيْهِ فَتَجَافَى عَنْ جَنْبَيْهِ، قَالَ: ثُمَّ سَجَدَ فَأَمْكَنَ أَنْفَهُ وَجَبْهَتَهُ وَنَحَّى يَدَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ وَوَضَعَ كَفَّيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ حَتَّى رَجَعَ كُلُّ عَظْمٍ فِي مَوْضِعِهِ حَتَّى فَرَغَ، ثُمَّ جَلَسَ فَافْتَرَشَ رِجْلَهُ

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٨٩٧) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ٧٨ (٢٦٠)، ٨٦ (٢٧٠)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٥ (٨٦٣)، (تحفة الأشراف: ١١٨٩٢) (ضعيف)

[3]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٨٩٢) (صحيح)

الْيُسْرَى وَأَقْبَلَ بِصَدْرِ الْيُمْنَى عَلَى قِبْلَتِهِ وَوَضَعَ كَفَّهُ الْيُمْنَى عَلَى رُكْبَتِهِ الْيُمْنَى وَكَفَّهُ الْيُسْرَى عَلَى رُكْبَتِهِ الْيُسْرَى وَأَشَارَ بِإِصْبَعِهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عُتْبَةُ بْنُ أَبِي حَكِيمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عِيسَى، عَنْ الْعَبَّاسِ بْنِ سَهْلٍ، لَمْ يَذْكُرِ التَّوَرُّكَ، وَذَكَرَ نَحْوَ حَدِيثِ فُلَيْحٍ، وَذَكَرَ الْحَسَنُ بْنُ الْحُرِّ نَحْوَ جِلْسَةِ حَدِيثِ فُلَيْحٍ، وَعُتْبَةَ.

**ترجمه:** حديث بيان کړې دې ماته عباس بن سهل هغه وئيلي دي: راجمع شول ابو حميد او ابو أسيد او سهل بن سعد او محمد بن مسلمة، هغوى ذکر کړو مونځ د رسول الله ﷺ، ووئيله ابو حميد: زه د تاسو نه ښه پوهه يم په مانځه د رسول الله ﷺ باندې، نو ذکر ئې کړو بعضې د هغې نه، هغه ووئيل: بيا ئې ر کوع وکړه نو کيخودل ئې لاسونه خپل په زنګونانو باندې ګويا چې هغه نيوونکې دی د دواړو، او کاږه ئې کړل لاسونه او جدا ئې اوساتل د اړخونو نه، هغه وايي: بيا ئې سجده وکړه نو کيخوده هغه پوزه خپله او تندی خپل او جدايي کړل دواړه لاسونه د اړخونو خپلو نه او کيخودل هغه ورغوی خپل برابر د اوږو، بيا ئې سر اوچت کړو تردې چې واپس شو هريو هډوکی خپل ځائي ته تردې چې فارغ شو، بيا کيناستلو او خوره ئې کړه خپله چپه خپه او مخامخ ئې کړه سينه د ښي خپې قبلې ته او کيخودلو هغه ورغوی ښي په خپل ښي زنګون باندې، او ورغوی چپ په زنګون چپ باندې او اشاره ئې وکړه په خپله ګوته. وئيلي دی ابوداود: ددې حديث روايت عتبة بن الحکم کړې دی د عبد الله بن عيسى نه او هغه د عباس بن سهل نه، دوی نه دی ذکر کړې تورک، البته عتبه ذکر کړې ئې دی پشان د حديث د فليح، او ذکر کړې دی حسن بن الحر پشان د جلسې د حديث د فليح او عتبة.

**تشريح: قوله:** ﴿وهو ساجد ثم کبر فجلس فتورک ونصب قدمه الاخرى﴾ دا تورک بين السجدتين دې.

**قوله:** ﴿فوضع يديه على رکبتيه الخ﴾ د رکوع هيئت بيانولي شي چه د رکوع په حالت کښې يدين لره په رکبتين باندې ډير په مضبوطيا سره کيږدی لکه چه په لاسونه ئې په کونډو باندې کيخودلې وی. ﴿ووتر يديه﴾ دا د وتر نه اخستلې شوی دې، ليندې ته وئيلې شی يعنی د رکوع په حالت کښې به دواړه لاسونه بالکل نيغ ساتی لکه څنګه چه د ليندې مزې وی، ددې دپاره چه دواړه لاسونه د غيږ نه جدا وی، او که هغه سست پريخودلې شی نو لاسونه به د اړخونو سره اولګی.

[۷۳۵]()حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، حَدَّثَنِي عُتْبَةُ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عِيسَى، عَنْ الْعَبَّاسِ بْنِ سَهْلٍ السَّاعِدِيِّ، عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: وَإِذَا سَجَدَ فَرَّجَ بَيْنَ فَخِذَيْهِ غَيْرَ حَامِلٍ بَطْنَهُ عَلَى شَيْءٍ مِنْ فَخِذَيْهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ابْنُ الْمُبَارَكِ، حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ، سَمِعْتُ عَبَّاسَ بْنَ سَهْلٍ يُحَدِّثُ فَلَمْ أَحْفَظْهُ، فَحَدَّثَنِيهِ أُرَاهُ ذَكَرَ عِيسَى بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّهُ سَمِعَهُ مِنْ عَبَّاسِ بْنِ سَهْلٍ، قَالَ: حَضَرْتُ أَبَا حُمَيْدٍ السَّاعِدِيَّ بِهَذَا الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** د ابو حميد نه روايت دې ددې حديث هغه وئيلي دي او چې کله به ئې سجده وکړه کولاو والی به ئې راوستو په مابين د ورنونو کښې چې نه به ئې باروله خيټه خپله په ورنونو باندې. وئيلي دی ابوداود: نقل کړې دی ابن المبارک. هغه وئيلي دی حديث بيان کړې دې مونږ ته فليح، ما اوريدلي دی د عباس بن سهل نه. هغه حديث بيان کړو ما ياد نه کړو ماته

(): انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ۱۱۸۹۲) (ضعيف)

هغه حديث بيان كړو، زه ګمان كوم چې ذكريې كړو عيسى بن عبد الله، بيشكه هغه اوريدلى دى د عباس بن سهل نه، هغه وايي: زه حاضر شوم ابو حميد الساعدي ته په دې حديث سره.

**تشريح: قوله:** ﴿ واذا سجد فرج بين فخذيه ﴾ په باب صفة السجود كښې ددې خلاف راځي په هغې كښې داسې دى ﴿ وليضم فخذيه ﴾ چونكه ددې تعلق د صفة سجود سره دې په دې وجه دې باندې به كلام هم هلته راځي.

## ركوع نه سجدې ته تلو او بيا د سجدې نه پاسيدو په كيفيت كښې اختلاف

**قوله:** ﴿ فلما سجد وقعتا ركبتاه الى الارض قبل ان تقع كفاه ﴾ د ركوع نه د پاسيدو نه پس سجدې ته د تلو مسنون طريقه د جمهورو او ائمه ثلاثه په نزد هم دا ده كومه چه دلته ذكر شوې ده يعنى سجدې ته د تلو په وخت به اول دواړه كونډې په زمكه باندې كيږدى او بيا دواړه لاسونه، په دې كښې د امام مالك او امام اوزاعى اختلاف دې د هغه په نزد ددې برعكس دې چه سجدې ته د تلو په وخت دې اول په زمكه باندې دواړه لاسونه كيږدى روستو كونډې، څنګه چه دا اختلاف سجدې ته په تلو كښې دې هم دغه شان د سجدې نه په پاسيدو كښې دې، جمهور وائى چه د سجدې نه پاسيدو په وخت به اول د زمكې نه دواړه لاسونه اوچتيږى او روستو ركبتين، د مالكيانو په نزد دې وخت هم برعكس دې چه اول كونډې اوچتې كړى او روستو لاسونه، سجدې ته د تلو او د هغې نه د اوچتيدلو دا كيفيت وړاندې په يو حديث كښې راروان دې چه په هغې باندې مصنف ترجمه قائم كړې ده ﴿ باب كيف يضع ركبتيه قبل يديه ﴾ د وائل بن حجر رضي الله عنه حديث دې چه د هغې الفاظ دا دى ﴿ رايت النبى صلى الله عليه وسلم اذا سجد وضع ركبتيه قبل يديه واذا نهض رفع يديه قبل ركبتيه ﴾ دا هم هغه كيفيت دې كوم چه جمهورو او ائمه ثلاثه اختيار كړې دې، د امام مالك رحمه الله دليل هم په دې راتلونكى باب كښې روستو راروان دې د هغې انتظار اوكړئ.

### (دريم اختلاف)

دلته يو دريم اختلاف دې او هغه دې چه د سجدې نه د سر اوچتولو نه پس د اودريدو په وخت به د لاسونو اعتماد په ركبتين باندې وى يا په زمكه باندې، د احنافو او حنابله په نزد د كونډو په زور اودريدل سنت دى، او د امام شافعي رحمه الله په نزد په زمكه باندې اعتماد كولو سره پاسيدل سنت دى، ددې مسئلې ذكر وړاندې په حديث الباب كښې داسې راروان دې ﴿واذا نهض نهض على ركبتيه واعتمد على فخذه ﴾ دا د احنافو او حنابله دليل دې او د مالكيانو په نزد چونكه د سجدې نه د سر اوچتولو په وخت د زمكې نه لاس نه شى اوچتولې د هغه په نزد د شروع نه تر اخره پورې لاس په زمكه باندې وى، لهذا د هغه په مسلك كښې دا سوال هم نه پيدا كيږى چه د اودريدو په وخت ﴿ اعتماد اليدين على الارض ﴾ وى يا ﴿ على الركبتين ﴾، د هغه په نزد خو لاسونه د اول نه اخر پورې په زمكه باندې وى، هم دغه شان حضرت شيخ په حاشيه د لامع كښې په مذاهب ائمه باندې بحث كولو سره فرمائيلې دى چه د مالكيانو نه

دلته د سجدې نه د اوچتیدو په وخت اعتماد علی الارض سنت مستقله نه دې، بعض شارحینو چونکه په دې دریمه مسئله کښې د امام شافعي رحمه الله سره امام مالک هم ذکر کړې دې په دې وجه مونږ دهغې وضاحت اوکړو، ددې مسئلې اختلاف په تجزیه سره بیانول او پوهیدل زیات اسان دی کینې کوم شارحین حدیث چه دا دواړه مسئلې جدا جدا نه دی بیان کړې د هغوی په مضمون کښې خلط راغلې دې (١) او په دې اختلاف باندې پوهیدل ګران شو، کما یظهر بالرجوع الی الشروح، والله سبحانه تعالی اعلم بالصواب. د دې مسئلې څه اندازه وضاحت حضرت شیخ رحمه الله په حاشیه د لامع (٣٢٩) کښې فرمائیلې دې.

[٧٣٦](٢)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جُحَادَةَ، عَنْ عَبْدِ الْجَبَّارِ بْنِ وَائِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: فَلَمَّا سَجَدَ وَقَعَتَا رُكْبَتَاهُ إِلَى الْأَرْضِ قَبْلَ أَنْ تَقَعَ كَفَّاهُ، قَالَ: فَلَمَّا سَجَدَ وَضَعَ جَبْهَتَهُ بَيْنَ كَفَّيْهِ وَجَافَى عَنْ إِبْطَيْهِ، قَالَ حَجَّاجٌ: وَقَالَ هَمَّامٌ وَحَدَّثَنَا شَقِيقٌ، حَدَّثَنِي عَاصِمُ بْنُ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمِثْلِ هَذَا، وَفِي حَدِيثِ أَحَدِهِمَا وَأَكْبَرُ عِلْمِي أَنَّهُ حَدِيثُ مُحَمَّدِ بْنِ جُحَادَةَ، وَإِذَا نَهَضَ نَهَضَ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَاعْتَمَدَ عَلَى فَخِذِهِ.

**ترجمه:** د عبد الجبار بن وائل نه روایت دې، هغه روایت کړی دی د خپل پلار نه، او هغه د نبی صلی الله علیه وسلم نه په دې حدیث کښې، کله چې هغه سجده وکړه واقع شول زنګونان د هغه په ځمکه باندې مخکې د واقع کیدو د ورغوو نه، هغه وئیلی دي: هرکله چې ئې سجده وکړه کیخوده هغه تندی خپل په مینځ د ورغوو کښې او لرې ئې کړل د تخرګونو نه. وئیلی دی حجاج: وئیلی دی همام: او حدیث بیان کړې دې مونږ ته شقیق، حدیث بیان کړې دې ماته عاصم بن کلیب او هغه ته خپل پلار، او هغه ته نبی صلی الله علیه وسلم په مثل د دې، او په حدیث د یو ددې دواړو کښې او زما ډیر علم دادی چې هغه حدیث د محمد بن جُحادة دی: او چې کله به هغه پاڅیدلو نو پاڅیدلو به په زنګونانو باندې او تکیه به ئې کوله په ورنونو باندې.

**تشریح: قوله:** ﴿ وفی حدیث احدهما واکبر علمي انه فی حدیث محمد بن جحادة ﴾ دا د همام مقوله ده، د همام په دې حدیث کښې دوه استاذان دی، محمد بن جُحاده او شقیق، نو همام دا وایی چه هغه زیادت کوم چه زه وراندې ذکر کوم په دې دواړو کښې د یو حدیث دې او ظن غالب دا دې چه د محمد بن جُحاده په حدیث کښې دی "حدثنا عبد المالک بن شعیب بن اللیث الخ"

---

(١) پس په راتلونکې باب کښې به حدیث وائل چه د هغې الفاظ مونږ پورته لیکلې دی او دا ئې د جمهورو د مسلک مطابق وئیلې دی، ددې په باره کښې حضرت په بذل المجهود کښې لیکلې دی ﴿وبه قال ابو حنیفه وخالفه الشافعي﴾ حال دا چه د نورو شارحینو د کلام نه معلومیږی چه دا حدیث د جمهورو د مسلک مطابق دې، د شوافع د مسلک خلاف نه دې، او زمونږ رائې هم دا ده څکه چه په دې حدیث کښې اوله مسئله یعنې د سجدې نه د سر اوچتولو په وخت کښې چه کوم کیفیت پکار دې هغه ئې بیان کړې دې، او په دې کښې د جمهورو او ائمه ثلاثه په نزد هم دا دې چه رفع الیدین قبل الرکبتین پکار دی کوم چه ډیرو شارحینو لیکلې دې، او بیا روستو شوافع، د احنافو او حنابله نه جدا شو یعنې د سجدې نه د پاسیدو په وخت په دې کښې چونکه د امام شافعي په نزد په ځمکه باندې اعتماد سنت دې، په دې وجه کوندې د لاسونو نه مخکښې پاسیږی او د امام مالک رحمه الله په نزد دلته خو لاس د شروع نه تر د اخیره پورې په ځمکه وی، فتدبر وتشکر.

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٧٦٢) (ضعیف)

[٧٣٧]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ فِطْرٍ، عَنْ عَبْدِ الْجَبَّارِ بْنِ وَائِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْفَعُ إِبْهَامَيْهِ فِي الصَّلَاةِ إِلَى شَحْمَةِ أُذُنَيْهِ".

**ترجمه:** عبد الجبار بن وائل روايت كوى د خپل پلار نه، هغه وئيلى دي: ما وليدلو رسول الله ﷺ چې اوچتولى ئې خپلې غتې گوتې په مانځه كښې نرمو د غوږونو ته.

[٧٣٨]()حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ شُعَيْبِ بْنِ اللَّيْثِ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ جَدِّي، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَيُّوبَ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ جُرَيْجٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّهُ قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَبَّرَ لِلصَّلَاةِ جَعَلَ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ، وَإِذَا رَكَعَ فَعَلَ مِثْلَ ذَلِكَ، وَإِذَا رَفَعَ لِلسُّجُودِ فَعَلَ مِثْلَ ذَلِكَ، وَإِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ فَعَلَ مِثْلَ ذَلِكَ".

**ترجمه:** د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې، بيشكه هغه وئيلى دي: وو رسو ل الله ﷺ چې كله به ئې تكبير وكړو د مانځه لپاره وبه ئې گرځول خپل دواړه لاسونه برابر د اوږو، او چې كله به ئې ركوع وكړه كول به ئې په مثل د هغې، او چې كله به ئې اوچت كړو د سجدې لپاره كول به ئې پشان د هغې، او چې كله به پاڅيدلو د دوه ركعاتو نه نو كول به ئې په مثل د هغې.

## د رفع يدين خلورم حديث

دا د رفع اليدين په سلسله كښې د څلورم صحابي ابوهريره رضي الله عنه حديث دې په دې كښې رفع يدين في المواضع الأربعة ذكر شوې دې، يو رفع عند القيام من الركعتين دې ددې په سند كښې يحيى بن ايوب راوى دې كوم چه متكلم فيه دې، هم دغه شان په دې كښې ابن جريج دې كوم چه مدلس دې او په عن سره روايت كوى. ﴿ حدثنا قتيبة بن سعيد ﴾ دا هم هغه د ميمون مكى والا حديث دې چه په هغې باندې زمونږ په نزد كلام په مباحث ابتدائيه كښې تير شوې دې.

[٧٣٩]()حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ أَبِي هُبَيْرَةَ، عَنْ مَيْمُونٍ الْمَكِّيِّ، أَنَّهُ رَأَى عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ وَصَلَّى بِهِمْ، يُشِيرُ بِكَفَّيْهِ حِينَ يَقُومُ وَحِينَ يَرْكَعُ وَحِينَ يَسْجُدُ وَحِينَ يَنْهَضُ لِلْقِيَامِ فَيَقُومُ فَيُشِيرُ بِيَدَيْهِ، فَانْطَلَقْتُ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، فَقُلْتُ: إِنِّي رَأَيْتُ ابْنَ الزُّبَيْرِ صَلَّى صَلَاةً لَمْ أَرَ أَحَدًا يُصَلِّيهَا، فَوَصَفْتُ لَهُ هَذِهِ الْإِشَارَةَ، فَقَالَ: "إِنْ أَحْبَبْتَ أَنْ تَنْظُرَ إِلَى صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاقْتَدِ بِصَلَاةِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ".

**ترجمه:** د ميمون المكى نه روايت دې بيشكه هغه وليدلو عبد الله بن الزبير: او مونځ ئې وكړو دوى ته چې اشاره ئې كوله په خپلو لاسونو كله چې به پاڅيدلو او چې كله به ئې ركوع كوله او چې كله به ئې سجده كوله او چې كله به پاڅيدلو قيام ته، نو پاڅيدلو او اشاره به ئې كوله په لاسونو باندې. زه لاړم ابن عباس ته ما ورته وويل: ما ليدلى دى ابن الزبير ويې كړو يو مونځ ما نه دى ليدلى هېڅوک چې كړى ئې دى هغې لره نو ما ورته بيان كړه دغه اشاره هغه وويل: كه چېرته ستا خوښه وى چې ته اوگورى مونځ د رسو ل الله ﷺ ته، نو اقتداء وكړه د مونځ په عبد الله بن الزبير پسې.

[1]): سنن النسائي/الافتتاح ٥(٨٨٣)، (تحفة الأشراف: ١١٧٥٩) (ضعيف)

[2]): صحيح البخاري/الأذان ١١٧ (٧٨٩)، صحيح مسلم/الصلاة ١٠ (٣٩٢)، سنن الترمذي/الصلاة ٦٣ (٢٣٩)، سنن النسائي/الافتتاح ١٨٠ (١١٥١)، (تحفة الأشراف: ١٤٨٦٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٧٠، ٤٥٤) (ضعيف)

[3]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٥٠٩) (صحيح)

[٧٤٠] (¹) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ أَبَانَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا النَّضْرُ بْنُ كَثِيرٍ يَعْنِي السَّعْدِيَّ، قَالَ: "صَلَّى إِلَى جَنْبِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ طَاوُسٍ فِي مَسْجِدِ الْخَيْفِ فَكَانَ إِذَا سَجَدَ السَّجْدَةَ الْأُولَى فَرَفَعَ رَأْسَهُ مِنْهَا رَفَعَ يَدَيْهِ تِلْقَاءَ وَجْهِهِ، فَأَنْكَرْتُ ذَلِكَ، فَقُلْتُ لِوُهَيْبِ بْنِ خَالِدٍ، فَقَالَ لَهُ وُهَيْبُ بْنُ خَالِدٍ: تَصْنَعُ شَيْئًا لَمْ أَرَ أَحَدًا يَصْنَعُهُ، فَقَالَ ابْنُ طَاوُسٍ: رَأَيْتُ أَبِي يَصْنَعُهُ، وَقَالَ أَبِي: رَأَيْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يَصْنَعُهُ، وَلَا أَعْلَمُ إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُهُ".

**ترجمه:** حديث بيان كړې دي مونږ ته نضر بن كثير يعني السعدي، هغه وئيلي دي: مونځ وكړو زما اړخ ته عبد الله بن طاوس په مسجد خيف كښې، نو وو هغه چې كله به ئې سجده وكړه اولنئ نو اوچت ئې كړو سر خپل د هغې نه او اوچت ئې كړل لاسونه برابر د مخ خپل. نو ما ناآشنا وګڼړه دغه، ما ووېل وهيب بن خالد ته: نو هغه ووېل هغه ته: وهيب بن خالده! ته يو شي كوې ما هېڅوک نه دی ليدلي چې كولو ئې، نو ووېل ابن طاوس: ما خپل ليدلي وو چې كولويې، او ووېل زما پلار: ما ليدلي وو ابن عباس چې كولو ئې، او ما ته علم نشته مګر دا چې هغه وئيل: وو نبي ﷺ چې كولو يې.

[٧٤١] (²) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّهُ كَانَ إِذَا دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَإِذَا رَكَعَ، وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، وَإِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ رَفَعَ يَدَيْهِ"، وَيَرْفَعُ ذَلِكَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: الصَّحِيحُ قَوْلُ ابْنِ عُمَرَ لَيْسَ بِمَرْفُوعٍ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرَوَى بَقِيَّةُ أَوَّلَهُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، وَأَسْنَدَهُ وَرَوَاهُ الثَّقَفِيُّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ وَأَوْقَفَهُ عَلَى ابْنِ عُمَرَ، قَالَ فِيهِ: وَإِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ يَرْفَعُهُمَا إِلَى ثَدْيَيْهِ، وَهَذَا هُوَ الصَّحِيحُ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرَوَاهُ اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، وَمَالِكٌ، وَأَيُّوبُ، وَابْنُ جُرَيْجٍ مَوْقُوفًا، وَأَسْنَدَهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ وَحْدَهُ، عَنْ أَيُّوبَ، وَلَمْ يَذْكُرْ أَيُّوبُ، وَمَالِكٌ الرَّفْعَ: إِذَا قَامَ مِنَ السَّجْدَتَيْنِ، وَذَكَرَهُ اللَّيْثُ فِي حَدِيثِهِ، قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ فِيهِ: قُلْتُ لِنَافِعٍ: أَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَجْعَلُ الْأُولَى أَرْفَعَهُنَّ؟ قَالَ: لَا سَوَاءً، قُلْتُ: أَشِرْ لِي، فَأَشَارَ إِلَى الثَّدْيَيْنِ أَوْ أَسْفَلَ مِنْ ذَلِكَ.

**ترجمه:** د ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دې بېشكه هغه وو چې كله به داخل شو په مانځه كښې تكبير به ئې وېلو او لاسونه به ئې اوچتول او چې كله به ئې ركوع كوله، او چې كله به ئې ووېل سمع الله لمن حمده، او چې كله به پاڅيدلو د دوه ركعاتو نه نو لاسونه به ئې اوچت كړل، او مرفوع كوی دغه رسول الله ﷺ ته. وئيلی دی ابوداود: صحيح داده چې قول د ابن عمر مرفوع نه دی. وئيلی دی ابوداود: او روايت كړی دی بقيه اول ددې حديث د عبيد الله نه او مسند كړی ئې دی، او نقل كړی دی ثقفي د عبيد الله نه او موقوف كړی دی ابن عمر، هغه وئيلی دی په هغې كښې: او چې كله به پاڅيدلو د دوه ركعاتو نه نو اوچتول به ئې تر سېنی پورې. او همدا صحيح ده. وئيلی دی ابوداود: او نقل كړی دی ابن سعد او مالک او ايوب او ابن جريج موقوف، او مسند ذكر كړی دی حماد بن سلمه يواځې د ايوب نه، او نه دی ذكر كړی ايوب او مالک رفع چې كله به پاڅيدلو د دوه سجدو نه. او ذكر كړی دی ليث په خپل حديث كښې، وئيلی دی ابن جريج په هغې كې: ما ووېل نافع ته ايا وو ابن مر چې

¹): سنن النسائي/الافتتاح ١٧٧ (١١٤٧)، (تحفة الأشراف: ٥٧١٩) (صحيح)
²): صحيح البخاري/الأذان ٨٣ (٧٣٩)، (تحفة الأشراف: ٨٠١٧، ٨٣٩٦) (صحيح)

ګرځولو به ئې اولنی اوچت؟ هغه ووېل: نه برابر، ما ووېل ماته اشاره وکړه نو هغه اشاره وکړه ثدیینو ته او یا لاندې د هغې نه.

## حديث ابن عمر رضي الله عنه بطريق نافع

**قوله:** ﴿ حدثنا نصر بن علي اخبرنا عبد الاعلى ﴾ دا د ابن عمر هغه دويم حديث دې کوم چه په طريق د نافع دې، بالکل په شروع کښې چه مرفوعا راغلې وو هغه په طريق د سالم وو او دا موقوف دې، بيا د نافع په شاګردانو کښې هم اختلاف دې بعض دا حديث د نافع نه مرفوعا او بعض موقوفا روايت کوی، پس د مصنف د بيان مطابق ليث بن سعد، مالک بن انس، ايو سختياني، ابن جريج، دا ټول ئې د نافع نه موقوفا روايت کوی، د نافع يو شاګرد بل دې عبيدالله د هغه روايت مختلف دې، د عبيدالله د شاګردانو اختلاف دې، پس عبدالاعلى دا حديث د عبيدالله نه مرفوعا او عبدالوهاب الثقفي موقوفا نقل کړې دې، امام بخاري رحمه الله په صحيح بخاری کښې د عبدالاعلى روايت اخستلې دې، او ددې په تائيد کښې حماد بن سلمه عن ايوب عن نافع روايت پيش کړې شوې دې ځکه چه حماد هم دا د ايوب نه مرفوعا روايت کړې دې، د امام ابوداود رحمه الله د کلام نه معلومېږی چه د ايوب سختياني ټول شاګردان دا حديث موقوفا روايت کوی، سوا د حماد نه چه هغه دا روايت د ايوب نه مرفوعا نقل کړې دې.

الغرض د امام ابوداود په نزد د نافع د روايت موقوف کېدل اصح دی په نسبت د مرفوع کېدو، او د امام بخاري رحمه الله رائې ددې برعکس ده، خو د امام ابوداود رائې د کثرت متابعات د وجې نه زياته قوی معلومېږی.

[۷۴۲] (¹)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، "أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ كَانَ إِذَا ابْتَدَأَ الصَّلَاةَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ، وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ رَفَعَهُمَا دُونَ ذَلِكَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَمْ يَذْكُرْ رَفَعَهُمَا دُونَ ذَلِكَ أَحَدٌ غَيْرُ مَالِكٍ فِيمَا أَعْلَمُ.

**ترجمه:** د نافع نه روايت دې، بيشکه عبد الله بن عمر وو چې کله به ئې شروع کولو مونځ نو اوچتول به ئې لاسونه برابر د اوږو، او چې کله به ئې اوچت کړو سر خپل د رکوع نه نو دواړه به ئې اوچتول کم د هغې نه. وئيلی دی ابوداود: نه دی ذکر کړی هغه «رفعهما دون ذلک» هېڅا بغير د مالک نه څومره چې ماته پته ده.

## باب بلا ترجمة

په بعض نسخو کښې ترجمة الباب مذکور دې، باب من ذكر انه يرفع يديه اذا قام من الثنتين يعنی رفع عند القيام من الرکعتين، د اول تشهد نه د پاسيدو په وخت باندې رفع يدين کول،

[۷۴۳] (²)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الْمُحَارِبِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ كَبَّرَ

¹): انظر حديث رقم: (۷۲۱)، (تحفة الأشراف: ۸۰۱۷، ۸۳۹۶) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۴۱۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۴۵)، البخاري في رفع اليدين (۲۵) (صحيح)

وَرَفَعَ يَدَيْهِ".

**ترجمه**: د ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دي هغه وئيلى دي: وو رسول الله ﷺ چې کله به پاڅيدلو د دوه رکعاتو نه تکبير به ئې ووئيلو او لاسونه به ئې اوچت کړل.

**تشريح**: مصنف په دې باب کښې اولا د ابن عمر رضي الله عنه حديث ذکر کړو چه په هغې باندې کلام زمونږ د طرف نه په شروع کښې راغلې دې، او دويم ئې د علي رضي الله عنه حديث ذکر کړو. ﴿عن علي بن ابى طالب رضى الله عنه عن رسول الله صلى الله عليه وسلم انه كان اذا قام الى الصلاة المكتوبة ...الخ﴾

[٧٤٤]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْهَاشِمِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْفَضْلِ بْنِ رَبِيعَةَ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَنَّهُ كَانَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ، وَيَصْنَعُ مِثْلَ ذَلِكَ إِذَا قَضَى قِرَاءَتَهُ وَأَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ، وَيَصْنَعُهُ إِذَا رَفَعَ مِنَ الرُّكُوعِ، وَلَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي شَيْءٍ مِنْ صَلَاتِهِ وَهُوَ قَاعِدٌ، وَإِذَا قَامَ مِنَ السَّجْدَتَيْنِ رَفَعَ يَدَيْهِ كَذَلِكَ وَكَبَّرَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد فِي حَدِيثِ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ حِينَ وَصَفَ صَلَاةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ كَمَا كَبَّرَ عِنْدَ افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ.

**ترجمه**: علي بن ابى طالب رضي الله عنه روايت کوي د رسول الله ﷺ نه بيشکه هغه وو چې کله به پاسيدلو فرض مونځ ته نو تکبير به ئې ووئيلو اولاسونه به ئې اوچت کړل برابر د اوږو، او کول به ئې داسې چې کله به ئې خپل قرأت پوره کړو او اراده د رکوع به ئې وکړه، او کول به ئې چې کله به اوچت شو د رکوع نه، او نه به ئې اوچتول لاسونه په هيڅ ځائې د مانځه کښې په داسې حال کښې چې هغه به ناست وو، او چې کله به ودريدو د دوه سجدو نه نو اوچت به ئې کړل لاسونه همدغه رنګ او تکبير به ئې ويلو. وئيلى دى ابوداود په حديث د ابو حميد الساعدى کښې چې کله ئې طريقه بيانوله د مونځ د نبي ﷺ: کله چې به هغه پاڅيدلو د دوه رکعاتو نه تکبير به ئې ويلو او لاسونه به ئې اوچت کړل ترديې چې برابر به ئې کړل د اوږو سره لکه څرنګه چې به ئې تکبير ويلو په وخت د افتتاح د مانځه کښې.

## د رفع يدين پنځم حديث، حديث علي رضي الله عنه

په دې حديث کښې د مواضع ثلاثه نه علاوه رفع عند القيام من السجدتين ذکر شوې دې چه د هغې په ائمه اربعه کښې څوک هم قائل نه دى، دا ډير قوى اشکال دې هم په دې وجه اکثر محدثين ددې تاويل کوى چه د سجدتين نه مراد رکعتين دې، البته خطابى دا تاويل نه دې کړې هغه سجدتين په خپله معنى کښې ساتلو سره اشکال کړې دې ﴿لا اعلم احدا من الفقهاء قال به﴾، ابن رسلان وئيلې دى چه د سجدتين نه مراد رکعتين دى، او خطابى په طرق حديث باندې خبر نه شو ګينې هغه به دا په رکعتين باندې محمول کړې وې

(): صحيح مسلم/المسافرين ٢٦ (٧٧١)، سنن الترمذي/الدعوات ٣٢ (٣٤٢١، ٣٤٢٢، ٣٤٢٣)، سنن النسائي/الافتتاح ١٧(٨٩٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٥(٨٦٤)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٢٨)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ٤(١٦)، مسند احمد (٩٣/١) سنن الدارمي/الصلاة ٣٣(١٢٧٤) (حسن صحيح)

## د حديث علي رضي الله عنه جوابات

بهرحال د قائلين رفع په نزد دا لفظ موجب خلجان وتشويش دې، چه د هغې تاويل باندې هغوی مجبور دی ګيني دا حديث به د هغوی خلاف وي، بل جواب دا دې چه ددې حديث په سند کښې عبدالرحمن بن ابى الزناد دې کوم چه ضعيف دې ﴿ قال ابو حاتم لا يحتج به﴾ په تقريب التهذيب کښې ليکلې دی صدوق تغير حفظه لما قدم بغداد، دريم جواب هغه دې کوم چه ابن التركمانى د سنن بيهقى په حاشيه الجوهر النقى فى الرد على البيهقى کښې ورکړې دې چه دا حديث د موسى بن عقبه نه ابن جريج د ابن ابى الزناد خلاف روايت کړې دې.

پس د هغه په روايت کښې رکوع ته د تلو په وخت او د رکوع نه د پاسيدو په وخت رفع يدين مذکور نه دې، حال دا چه ابن جريج د ابن ابى الزناد نه ډير اوچت دې.

## د امام طحاوي رحمه الله رائې

او څلورم جواب ددې حديث هغه دې کوم چه امام طحاوی رحمه الله اختيار کړې دې هغه د علي رضي الله عنه ددې حديث معارضه کړې ده د علي رضي الله عنه د هغه روايت فعلى سره کوم چه عاصم بن کليب روايت کوی د خپل پلار نه ﴿ ان عليا كان يرفع يديه فى اول تكبيرة من الصلاة ثم لا يرفع ﴾ امام طحاوی رحمه الله فرمائى چه هر کله علي رضي الله عنه خپله د رفع اليدين والا حديث مرفوع راوی دې او بيا ددې خلاف عمل کوی نو دا سراسر د نسخ دليل دې ځکه چه دا ممکنه نه ده چه علي رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم په رفع اليدين کولو باندې وينى او بيا بغير د علم بالنسخ نه ترک کړی.

**قوله:** ﴿ قال ابوداود فى حديث ابى حميد الساعدى الخ ﴾ مصنف فرمائى چه په حديث د علي رضي الله عنه کښې د سجدتين نه مراد رکعتين دی لکه چه د ابو حميد په روايت کښې ددې تصريح ده خو مونږ وايو چه ايا په ډيرو احاديثو کښې رفع عند السجود نه ده ذکر شوې؟ ايا په ټولو ځايونو کښې به تاسو داسې کوئ او په کومو رواياتو کښې چه دواړه ذکر شوې دی هلته به څه کيږی.

## د رفع يدين حديث سادس

[٧٤٥] (١) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ نَصْرِ بْنِ عَاصِمٍ، عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ، قَالَ: "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِذَا كَبَّرَ وَإِذَا رَكَعَ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ حَتَّى يَبْلُغَ بِهِمَا فُرُوعَ أُذُنَيْهِ".

**ترجمه:** د مالک بن الحويرث نه روايت دې نه روايت دې هغه وئيلی دی، ما وليدلو رسول الله صلى الله عليه وسلم چې اوچتول ئې لاسونه خپل چې کله به ئې تکبير وکړو او چې کله به ئې رکوع وکړه، او چې کله به ئې سر اوچت کړو د رکوع نه تردې چې وبه ئې رسول دواړه څوکو د غوږونو ته.

(١): صحيح مسلم/الصلاة ٩ (٣٩١)، سنن النسائي/الافتتاح ٤ (٨٨١)، ٨٥ (١٠٢٥)، التطبيق ١٨ (١٠٥٧)، ٣٦ (١٠٨٦)، ٨٤ (١١٤٤)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٥ (٨٥٩)، (تحفة الأشراف: ١١١٨٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأذان ٨٤ (٧٣٧)، مسند احمد (٤٣٦/٣، ٤٣٧، ٥٣/٥)، سنن الدارمي/الصلاة ٤١ (١٢٨٦) (صحيح)

تشريح: قوله: ﴿ واذا رفع راسه من الركوع حتى يبلغ بهما فروع اذنيه ﴾ دا د رفع يدين د سلسلې شپږم حديث دې، ددې تخريج امام بخاري او امام مسلم هم کړې دې، امام بخاري رحمه الله خو په صحيح بخاري کښې د رفع اليدين په باره کښې صرف دوه احاديث بيان کړې دى يو حديث د ابن عمر او بل حديث د مالک بن الحويرث، او امام مسلم رحمه الله ددې دواړو نه علاوه يو دريم روايت هم ذکر کړې دې، حديث د وائل بن حجر رضي الله عنه هغه ټول درې روايتونه ذکر کړې دى.

## په صحيح بخاري او صحيح مسلم کښې د رفع اليدين د رواياتو تعداد

هم ددې نه اندازه اولګوئ چه د امام بخاري رحمه الله په نزد د رفع اليدين په سلسله کښې صحيح او قابل اعتماد صرف دوه احاديث دى،او د امام مسلم په نزد درې، د حديث ابن عمر حال خو مخکښې معلوم شوې دې چه په هغې کښې سخت اضطراب او اختلاف دې سندا هم او متنا هم، او دويم حديث دا د مالک بن الحويرث رضي الله عنه دې په دې کښې اګر چه سخت اختلاف خو نشته په دې کښې هم، ځکه چه ددې حديث په بعض طرق کښې د نسائي په نزد رفع عند السجود موجود ده چه د هغې څوک هم قائل نه دى.

مالک بن الحويرث رضي الله عنه د بنو ليث په وفد کښې د هجرت په نهم کال باندې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو، په داسې حالت کښې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د غزوه تبوک تيارى کوله، په بخاري شريف کښې دى چه هغه په مدينه منوره کښې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې شل ورځې قيام اوکړو او د هغې نه روستو ئې بصرې ته تشريف يوړلو تردې چه هم هلته وفات شو.

## د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د حديث وجه د ترجيح

اوس تاسو اوګورئ چه قيام خو ئې په مدينه منوره کښې شل ورځې وو، اخر د بهر سړې وو او بهر ته لاړو او هم دا حال د دريم صحابي وائل بن حجر رضي الله عنه دې لکه چه د هغه د روايت د لاندې مونږ ليکلې دى او بل طرف ته تاسو عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته اوګورئ کوم چه قديم الاسلام او د کبار مهاجرين والبدريين نه دې، په جنګ بدر او په ټولو جنګونو کښې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره شريک شوې دې صاحب سِرّ رسول الله صلى الله عليه وسلم او صاحب السواک والنعلين والمطهرة د هغه القاب دى، شلو کالو پورې سفرا او حضرا د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره وو چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه په باره کښې اوفرمائيل: ﴿ رضيت لامتي ما رضى لها ابن ام عبد وسخطت لها ما سخط لها ابن ام عبد ﴾ سيدنا عمر رضي الله عنه هغه د کوفې قاضى او معلم جوړ کړې وو او د هغه ځائې د بيت المال خزانچى، خلفاء راشدين د هغه نه احاديث روايت کوى، اوس تاسو ته اختيار دې چه تاسو د يو داسې صحابي روايت اخلئ کوم چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې صرف شل ورځې پاتې شوې وى او که د داسې صحابي کوم چه تر شلو کالو پورې مسلسل په خدمت کښې حاضر وو.

نحن بما عندنا وانت بما عندک راض والراى مختلف

او ګوري امام بخاري رحمه الله په جزء رفع اليدين کښې که هر څومره روايات راجمع کړي وي خو هغه په صحيح بخاري کښې د خپل ځان سره صرف دوه رواياتو ته د صحت حق ادا کړو او هغه ئې ذکر کړل، او امام مسلم په دې باندې د يو حديث اضافه فرمائي.

[٧٤٦](١) حَدَّثَنَا ابْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي. ح وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ مَرْوَانَ، حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ يَعْنِي ابْنَ إِسْحَاقَ الْمَعْنَى، عَنْ عِمْرَانَ، عَنْ لَاحِقٍ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ نَهِيكٍ، قَالَ: قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ "لَوْ كُنْتُ قُدَّامَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَرَأَيْتُ إِبِطَيْهِ"، زَادَ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، قَالَ: يَقُولُ لَاحِقٌ: أَلَا تَرَى أَنَّهُ فِي الصَّلَاةِ، وَلَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يَكُونَ قُدَّامَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ وَزَادَ مُوسَى بْنُ مَرْوَانَ الرَّقِّيُّ يَعْنِي: إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ.

**ترجمه**: د بشير بن نهيک نه روايت دې هغه وئيلي دي، چې وئيلي دي ابوهريرة: که چرې وم زه مخې د نبي ﷺ ته نو ما به خامخا ليدلي وو تخرګونه د هغه. زيادت کړې دی عبيد الله بن معاذ، هغه به وئيل چې دا لاحِقْ دې، ايا ته نه ګورې چې هغه په مانځه کښې دې او طاقت نه لري چې د رسول الله ﷺ مخې ته شي، او زيادت کړې دی موسى بن مروان الرقي، يعنى کله چې به ئې تکبير وکړو نو لاسونه به ئې اوچت کړل.

## شرح حديث

**قوله**:﴿ قال ابوهريره لو کنت قدام النبي صلى الله عليه وسلم لرايت ابطيه ﴾ يعنی رسول الله ﷺ به د تکبير تحريمه په وخت لاس ښه طريقې سره اوچتولو په داسې طريقه چه که يو سړې نبي ﷺ ته مخامخ اودريږي او د رفع په وخت د هغه نظر په نبي ﷺ باندې وی نو هغه سړې د هغه ترخونو ته کتلې شي، مګر چونکه د مونځ په حالت کښې مقتدی د امام نه وړاندې کيدې نه شي نوځکه ﴿ لو کنت ﴾ وائي.

**قوله**:﴿ وزاد موسى يعني اذا کبر رفع يديه ﴾ د مصنف استاذ په اول سند کښې ابن معاذ دې، او دويم سند کوم چه د حاء تحويل نه روستو دې په هغې کښې موسى بن مروان دې، نو مصنف وائي د موسى په روايت کښې دا زيادت "يعني اذا کبر رفع يديه" او دا تشريح په ظاهره کښې د ابوهريره رضي الله عنه نه لاندې راوی بشر بن نهيک د طرف نه ده، بشير بن نهيک د ابوهريره رضي الله عنه د بيان کړی روايت توضيح کوی، چه د ابوهريره رضي الله عنه مراد دا دې.

## حديث ابن مسعود بطريق عبدالله بن ادريس

[٧٤٧](٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: "عَلَّمَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلَاةَ، فَكَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ، فَلَمَّا رَكَعَ طَبَّقَ يَدَيْهِ بَيْنَ رُكْبَتَيْهِ"، قَالَ: فَبَلَغَ ذَلِكَ سَعْدًا، فَقَالَ: صَدَقَ أَخِي، قَدْ كُنَّا نَفْعَلُ هَذَا ثُمَّ أُمِرْنَا بِهَذَا، يَعْنِي الْإِمْسَاكَ عَلَى الرُّكْبَتَيْنِ.

**ترجمه**: وئيلي دی عبد الله اوښودلو مونږ ته رسول الله ﷺ مونځ او تکبيريې وکړو او لاسونه ئې اوچت کړل، چې کله ئې رکوع وکړه نو لاسونه ئې جوخت کړل په مابين د

(١): سنن النسائي/التطبيق ٥١ (١١٠٨)، (تحفة الأشراف: ١٢٢١٥) (صحيح)
(٢): سنن النسائي/التطبيق ١ (١٠٣٢)، (تحفة الأشراف: ٣٩٠٧، ٩٤٦٩) (صحيح)

زنګونانو کښې. هغه وویل: دا خبره ورسیده سعد بن ابی وقاص ته، هغه وویل: رشتیا وئیلی دی زما ورور، یقینا وو مونږ چې مونږ به رومبې داسې کول بیا ئې راته حکم وکړو په دې، یعني: نېول د زنګونانو.

**تشریح:** دا د باب رفع الیدین اخری حدیث دې، خو په دې کښې رفع الیدین عند الرکوع نشته ځکه چه دا د عبدالله بن مسعود ﷛ حدیث دې، ، او د هغه په یو روایت کښې هم د تکبیر تحریمه نه علاوه رفع الیدین نشته. بیا مصنف دا روایت په دې باب کښې دلته ولې راوړې دې، شارحینو ددې سره هیڅ قسم تعرض نه دې لرلې، د بنده خیال دا دې چه مقصد په ظاهره کښې دا دې چه اوس ددې نه پس متصلا عدم رفع الیدین باب راروان دې چه په هغې کښې مصنف د عبدالله بن مسعود ﷛ حدیث راوړې دې، په دې حدیث کښې د فریق مخالف د طرف نه چه کوم اعتراضات دی په هغې کښې یو اعتراض دا دې چه په دې حدیث کښې سفیان ثوری ته وهم راغلې دې، اصل حدیث داسې نه دې ځنګه چه هغه بیان کړې دې بلکه صحیح هغه دې کوم چه ابن ادریس د عاصم بن کلیب نه بیانوی، پس دا حدیث کوم چه مصنف دلته په دې باب کښې راوړې دې هغه د ابن ادریس په طریق سره دې او په هغې کښې د عدم رفع الیدین صرف تطبیق فی الرکوع مذکور دې، لهذا د عبدالله بن مسعود ﷛ کوم حدیث چه احناف پیش کوی هغه بالکل غلط دې [1] اوس دا چه د مصنف رائې په دې کښې څه ده نو ممکنه ده چه مصنف هم دې طرف ته اشاره کوی چه اصل روایت خو د ابن ادریس دې خو ظاهره دا ده چه مصنف دا وئیل غواړی چه دا دواړه احادیث مستقل او جدا جدا دی، د سفیان روایت ته وهم وئیل غلط دی. والله تعالی اعلم ١٢

## د تطبیق فی الرکوع نسخ

د دې نه پس په دې ځان پوهه کړئ چه تطبیق عند الرکوع د جمهورو په نزد منسوخ دې، خو ابن مسعود ﷛ به کولو هم دغه شان په مصنف ابن أبی شیبه کښې د مصنف نه تخییر منقول دې، هغه فرمائی چه مصلی ته اختیار دې، په رکوع کښې که وضع الایدی علی الرکب کوی یا تطبیق، ددې نه معلومیږی چه هغه هم د جواز تطبیق قائل وو (کذا فی البذل عن العینی) لهذا دا چه اهل حدیث وائی چه ممکنه ده د ابن مسعود ﷛ نه به رفع الیدین هیر شوې وی ځنګه چه ترې تطبیق هیر شوې وو سراسر غلط دې، اوګورئ د علی ﷛ نه هم تخییر منقول دې.

## بَابُ مَنْ لَمْ يَذْكُرِ الرَّفْعَ عِنْدَ الرُّكُوعِ

**باب دې په بیان د هغه چا کې چې نه یې دی ذکر کړی رفع الیدین په وخت د رکوع کې**

[٧٤٨] [2] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَاصِمٍ يَعْنِي ابْنَ كُلَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ: "أَلَا أُصَلِّي بِكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ:

---

[1] د اعتراض جواب او د هغې تحقیق په راروان باب کښې په تفصیل سره راځی. ١٢

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ٧٩ (٢٥٧)، سنن النسائي/الافتتاح ٨٧ (١٠٢٧)، التطبيق ٢٠ (١٠٥٩)، (تحفة الأشراف: ٩٤٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٨٨، ٤٤١)، وقد أخرجه البخاري في رفع اليدين (٣٢) (صحيح)

فَصَلَّى، فَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ إِلَّا مَرَّةً"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا حَدِيثٌ مُخْتَصَرٌ مِنْ حَدِيثٍ طَوِيلٍ وَلَيْسَ هُوَ بِصَحِيحٍ عَلَى هَذَا اللَّفْظِ.

**ترجمه**: د علقمة نه روایت دې هغه وئیلی دی، چې وئیلی دی عبد الله بن مسعود: ایا زه تاسو ته ونه کړم مونځ د رسول الله ﷺ هغه وویل: نو مونځ ئې وکړو او لاسونه ئې اوچت نه کړل مګر یو ځل. وئیلی دی ابوداود: دا حدیث مختصر کړې شوې دې د اوږد نه او دا په دې الفاظو سره صحیح نه دی.

**تشریح**: **قوله**:﴿ الا اصلی بکم صلاة رسول الله صلی الله علیه وسلم ﴾ د دې حدیث تخریج د مصنف نه علاوه امام ترمذی او امام نسائی دواړو کړې دې، هم دغه شان دا روایت په مسند احمد، طحاوی شریف، سنن بیهقی او مصنف ابن ابی شیبة کښې دی، امام نسائی خو ددې تخریج مکرر په دوه بابونو کښې کړې دې او په دواړو باندې ئې د ترک رفع باب قائم کړې دې.

## د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په حدیث باندې اعتراضات او د هغې جوابات

په دې حدیث باندې د فریق مخالف نه ډیر اعتراضات کړې شوې دی، کوم چه مونږ ترتیب وار سره د جواب نه ذکر کوو، والله التوفیق

## النقد الاول:

امام ترمذی، جامع ترمذی کښې فرمائی : قال عبدالله بن المبارک قد ثبت حدیث من یرفع وذکر حدیث الزهری عن سالم عن ابیه، ولم یثبت حدیث ابن مسعود ان النبی صلی الله علیه وسلم لم یرفع الا فی اول مرة. زمونږ د طرف نه ددې درې جوابونه ورکړې شوې دی، حضرت ګنګوهی په کوکب کښې جواب کړې دې چه دا جرح مبهم ده، فلا یعتبر. هم په دې وجه باندې امام ترمذی رحمه الله هم دې طرف ته التفات نه دې کړې او د حدیث ابن مسعود رضی الله عنه تحسین ئې فرمائیلې دې، دویم جواب هغه دې کوم چه علامه شوق نیموی وغیره علماء احناف د کلام نه معلومیږی، هغه دا چه د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه دوه قسم روایتونه روایت شوې دی یو روایت د هغه نه د روایة الفعل د قبیل نه دې کوم چه مرفوع صریح دې ﴿ ان النبی صلی الله علیه وسلم لم یرفع یدیه الا مرة ﴾ او دویم روایت د هغه نه په طور د حکایة الفعل دې چه د هغې الفاظ دا دی ﴿ الا اصلی بکم صلاة رسول الله صلی الله علیه وسلم قال : فصلی فلم یرفع یدیه الا فی اول مرة ﴾ دا مرفوع حکمی دې، امام ابوداود، ترمذی او نسائی دا حدیث داسې روایت کړې دې نو د عبدالله بن مبارک نقد په مرفوع صریح باندې دې په دې دویم روایت باندې نشته، ځکه چه دویم روایت عبدالله بن مبارک خپله روایت کوی د سفیان نه لکه چه د نسائی په روایت کښې دی. بیا چه کوم حدیث هغه خپله روایت کوی هغه دې ته غیر ثابت څنګه وئیلې شی، دې خبرې طرف ته اشاره د امام ترمذی رحمه الله د کلام نه هم مستفاد کیږی، ځکه چه امام ترمذی رحمه الله د عبدالله بن مبارک نقد چه په کوم حدیث باندې نقل کړې دې دهغې الفاظ هغوی دا نقل کړې دی چه د هغې په اعتبار سره هغه مرفوع صریح دې او بیا

وړاندې تلو سره امام ترمذی د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه هغه حديث ذکر فرمائيلې دې، کوم چه مرفوع حکمی دې او دهغې په باره کښې فرمائی چه حديث ابن مسعود رضي الله عنه حديث حسن، په دې صورت کښې امام ترمذی رحمه الله او د عبدالله بن مبارک په قول کښې به تخالف هم نه وی، او دريم جواب ددې دا دې کوم چه ابن دقيق العيد مالکی ثم الشافعی د خپل کتاب "الامام فی احاديث الاحکام" کښې ورکړې دې چه ددې حديث د عبدالله بن مبارک په نزد ثابت نه کيدل، زمونږ ددې په سند کښې نظر کولو نه مانع نه دې، مونږ ګورو چه ددې حديث مدار په عاصم بن کليب باندې دې او يحيی بن معين ئې توثيق کړې دې، زه وائم چه عاصم بن کليب سنن اربعه او د مسلم په راويانو کښې دی لکه چه په الکاشف کښې دی، او د تقريب التهذيب او خلاصه نه معلوميږی چه د هغوی روايت امام بخاری رحمه الله تعليقا اخستلې دې، هم دغه شان د علی بن المدينی رائې د هغوی په باره کښې دا ده چه که عاصم متفرد نه وی نو حجت دې، او دلته هغه متفرد نه دې بلکه د هغه متابعت په دارقطنی او بيهقی وغيره کښې موجود دې.

## النقد الثاني :

حافظ منذری فرمائی چه ﴿ لم يسمع عبدالرحمن بن علقمة ﴾ لهذ د حديث په سند کښې انقطاع ده ددې جواب ابن دقيق العيد دا ورکوی "هذا النقد عن رجل مجهول وقد تتبعت هذا القائل فلم اجده" چه دا اشکال د يو مجهول سړی د طرف نه دې مونږ ته ددې د قائل پته نشته چه څوک دې، هم دغه شان دا سند ابن ابی حاتم په مراسيل کښې نه دې ذکر کړې، که سماع ثابت نه وې نو هغه به ضرور په داسې مراسيل کښې ذکر کړې وې، او؛ البته کتاب الجرح والتعديل کښې ذکر کړې دې، او هلته ليکلې دی چه عبدالرحمن بن الاسود عائشه رضي الله عنها په وړوکوالی کښې ليدلې وه، او د هغې نه ئې هيڅ نه دی اوريدلی، بيا وړاندې ليکی ﴿ وروی عن ابيه وعلقمة ﴾ او دا ئې نه دی وئيلی ﴿ مرسلا ﴾

ابن دقيق العيد فرمائی چه په سماع کښې څه تردد دې او د عبدالرحمن او ابراهيم النخعی همزولې دې او د ابراهيم نخعی سماع د علقمه نه بالاتفاق ثابت ده او د ټولو باوجود دا دې چه خطيب بغدادی په کتاب المتفق والمفترق کښې د عبدالرحمن په ترجمه کښې تصريح کړې ده، انه سمع اباه وعلقمة.

## النقد الثالث :

يحيی القطان په کتاب الوهم والايهام کښې ليکلې دی چه امام ترمذی د ابن مبارک نه اګر چه نقل کړې دی چه دا حديث د وکيع صحيح نه دې، خو زما په نزد صحيح دې په دې کښې قابل اشکال څيز په وکيع باندې د ﴿ ثم لا يعود ﴾ زيادت دې، او دارقطنی هم ددې قسم خبره ليکلې ده، او امام احمد رحمه الله هم زمونږ د طرف نه دا جواب کړې دې چه وکيع په دې کښې متفرد نه دې بلکه ددې متابعت ئې کړې دې په دې کښې ابن المبارک عند النسائی او معاويه او خالد بن عمرو او ابوحذيفه درې واړو د سنن ابی داود په روايت کښې.

## النقد الرابع

امام بخاري او ابو حاتم رازي په دې حديث باندې دا اعتراض کړې دې چه په دې حديث کښې سفيان ثوري ته وهم راغلې دې، اصل حديث هغه دې کوم چه عبدالله بن ادريس نقل کړې دې د عاصم بن کليب نه، دا دواړه ابن ادريس او ثوري د عاصم شاګردان دي، سفيان ثوري دا حديث د هغه نه بل شان روايت کوي او عبدالله بن ادريس بل شان، د ابن ادريس والا روايت هم هغه دې کوم چه مونږ سره د باب سابق بالکل اخر کښې تير شو چه د هغې په باره کښې مونږ وئيلې وو چه مصنف دا حديث دلته د سفيان ثوري رحمه الله د روايت د تقابل دپاره راوړې دې، او په دې حديث کښې د عدم رفع اليدين هيڅ ذکر نشته بلکه تطبيق في الرکوع مذکور دې چه د هغې عبدالله بن مسعود رضي الله عنه قائل وو.

## حفظ راوي ته د هغه په کتاب باندې ترجيح ده يا برعکس

او د حديث ابن ادريس وجه ترجيح امام بخاري رحمه الله دا بيان فرمائيلې دې ﴿ انه عن کتاب والکتاب احفظ ﴾ چه د ابن ادريس والا حديث د کتاب ابن ادريس مطابق دې [1] او سفيان ثوري ئې د خپل حفظ نه بيانوي، لهذا ما في الکتاب ته به په ما في الحفظ باندې ترجيح وي، ددې جواب زمونږ د طرف نه دا کړې شوې دې چه اول خو دا صحيح نه ده چه ﴿ الکتاب احفظ﴾ بلکه د جمهور اهل اصول مسلک دا دې چه "حفظ الرجل مقدم على کتابه اذا سمع من فم الشيخ" يعنى که د يو راوي حفظ او کتاب کښې تخالف وي نو په دې صورت کښې به ما في الحفظ مقدم وي په ما في الکتاب باندې په دې شرط چه هغه د خپل شيخ نه بالمشافه اوريدلې وي او د حفظ بناء په کتاب باندې نه وي، او که اومنلې شي چه کتاب ته په حفظ باندې ترجيح وي، نو خپل کتاب ته به په خپل حفظ باندې ترجيح وي نه د بل يو راوي په حفظ باندې، بيا د ابن ادريس کتاب ته د ثوري په حفظ باندې ترجيح څنګه کيدې شي، فيا للعجب! او بيا دا کتل پکار دي چه د سفيان ثوري مقام څه دې، هغه د ابن ادريس نه اوچت دې، دغه شان په دې هم نه پوهيږو چه آخر د ابن ادريس د روايت د سفيان ثوري د روايت سره تقابل ولې کولې شي حال دا چه د دواړو مضمون مختلف دې، ايا دا دواړه مستقل جدا جدا احاديث نه شي کيدې چه د ترجيح سوال هم پيدا نه شي، او که بيا دواړه احاديث متحد ساتئ نو د سفيان ثوري حديث ته ترجيح ورکول پکار دي د ابن ادريس په حديث باندې، ايا د امين بالجهر په مسئله کښې د شعبه او سفيان ثوري په اختلاف کښې تاسو د سفيان ثوري روايت ته د شعبه په روايت باندې ترجيح نه ده ورکړې؟ حال دا چه شعبه خپله د سفيان برابر دې هلته خو امام بيهقى وغيره فرمائيلې وو چه د ټولو علماء کرامو په دې باندې اتفاق دې چه کله په سفيان او شعبه کښې اختلاف وي نو فالقول قول سفيان، نو هر کله چه د شعبه په مقابله کښې د سفيان روايت ته ترجيح ورکولې شي نو د ابن ادريس په

[1] يحيى بن ادم وائي چه ما د ابن ادريس کتاب اوليدو نو په هغې کښې مې دا روايت هم دغه شان بيا موندلو.

مقابله کښې خو په طریق اولی ورکول پکار دی.
او ددې يو جواب هغه دې کوم چه علامه زيلعی اختيار کړې دی هغه دا چه امام بخاری او امام ابو حاتم رازی فرمائی چه په دې کښې سفيان ته وهم راغلې دې، او بل طرف ته ابن القطان فرمائی چه دا حديث خو صحيح دې خو وکيع ته په دې کښې وهم شوې دې، اوس به د چا خبره منلې شی د ناقدين په قول کښې خپله تعارض دې، کوم چه د تساقط سبب دې، لهذا اصل حديث طرف ته به رجوع کولې شی، او هغه صحيح دې لوروده عن الثقات، ځکه چه ددې حديث ټول راويان سوا د عاصم بن کليب نه د صحيحين راويان دی او عاصم احد الصحيحين يعنی د مسلم راوی دې.

## قصة الامام الاوزاعی مع الامام ابی حنيفة

هم دغه شان ددې حديث يو بل سند دې چه هغې سره دې ته مزيد تقويت ملاويږی او هغه په دې قصه کښې ملاويږی کومه چه د امام اوزاعی د امام ابوحنيفه سره پيښه شوې وه، قصه مشهوره ده کومه چه علامه ابن الهمام په فتح القدير کښې ذکر کړې ده، او په امانی الاحبار کښې مولانا محمد يوسف صاحب د جامع مسانيد الامام په حوالې سره نقل کړې ده، هغه دا چه يو ځل امام صاحب د امام اوزاعی سره په مکه مکرمه دار الحناطين کښې جمع شو، امام اوزاعی د امام صاحب نه تپوس اوکړو چه تاسو رفع اليدين ولې نه کوئ؟ امام صاحب اوفرمائيل، ځکه چه دا د رسول الله ﷺ نه ثابت نه دی، په دې باندې اوزاعی اوفرمائيل : ﴿ وکيف لم يصح وقد حدثنی الزهری عن سالم عن ابيه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم الحديث ﴾ په دې باندې امام صاحب اوفرمائيل ﴿حدثنا حماد عن ابراهيم عن علقمه عن الاسود عن عبد الله بن مسعود ﴾ د امام اوزاعی د نقد حاصل دا دې چه زه چه کوم حديث پيش کوم يعنی حديث ابن عمر د هغې سند عالی دې، په هغې کښې زما او د صحابی ترمينځه صرف دوه واسطې دی او ته چه کوم حديث پيش کوې د هغې سند سافل دې په هغې کښې درې واسطې دی، په دې باندې امام صاحب اوفرمائيل چه زما د سند راويان افقه دی ستا د سند د راويانو نه، پس حماد افقه دې د زهری نه، ابراهيم نخعی افقه دې د سالم نه او علقمه د ابن عمر نه کم نه دې ﴿ من حيث الفقه ﴾ اګر چه د ابن عمر درجه د صحبت د وجې نه اوچته ده ﴿ وعبدالله عبدالله ﴾ او د عبد الله بن مسعود به څه وائې! د هغه فضيلت بيان ته محتاج نه دې.

## النقد الخامس :

د علامه شوکانی وغيره بعض متاخرين اهل حديث د طرف نه دا اشکال کولې شی چه دې حديث ته امام ابوداود وغيره هم غير صحيح وئيلې دې پس په بعض نسخو کښې دی ﴿قال ابوداود هذا حديث مختصر من حديث طويل وليس هو بصحيح على هذا اللفظ على هذا المعنى ﴾ د دې په باره کښې عرض دا دې چه حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې ليکی چه دا عبارت نه خو په يوه نسخه هنديه مطبوعه کښې شته او نه په نسخه مصريه کښې، صرف د نسخه مجتبائيه په حاشيه باندې ليکلې شوې دې، لهذا ددې عبارت د مصنف د طرف نه په

کیدو کښې قوی شک دې، ظاهره ده چه دا عبارت مدسوس دې چه په دې کښې د کوم خائې نه دسیسه (دهوکه) شوې ده،او که دا ثابت اومنلې شی نو دا به وئیلې شی چه د مصنف غرض د صحت اصطلاحی نفی ده کوم چه د حدیث د حسن کیدو منافی نه دې، حدیث صحیح او حسن دواړه متقابل قسمونه دی، پس امام ترمذی هم ددې حدیث تحسین کړې دې، حضرت خو په بذل کښې هم دا لیکلې دی، زه وائم چه د امام ابوداود ددې تضعیف ذکر ماته په متقدمینو لکه د امام بیهقی او حافظ ابن حجر وغیره په کلام کښې ملاؤ نه شو، که د هغه حضراتو په نسخه کښې عبارت وې نو ظاهره ده چه هغوی به هم دا کلام نقل کړې وې، حضرت چه دا لیکلې دی چه د صحت اصطلاحیه نفی ده ددې ډیرو علماء کرامو تصریح کړې ده چه په احادیث د احکام او سنن کښې چه کله ﴿لیس بصحیح﴾ وئیلې شی نو په دې سره مقصود د صحت اصطلاحیه نفی وی، البته په کتب موضوعات کښې چه کله دا لفظ وئیلې شی نو ددې نه بې اصل او باطل کیدل مراد وی خو زما خیال دا دې چه د امام ابوداود ددې عبارت د نقد حاصل هم هغه دې کوم چه امام بخاری او ابو حاتم کړې دې، چه اصل حدیث هغه دې کوم چه ابن ادریس روایت کړې دې، او غالبا مصنف د ابن ادریس حدیث ته د سفیان ثوری د روایت نه مخکښې د تیر شوی باب په اخر کښې هم په دې وجه ذکر کړې دې، خو اصل جواب هم دا دې چه دا عبارت الحاقی دې، د مصنف د طرف نه معلومیږی، ددې یوه قرینه دا هم ده چه وړاندې تلو سره مصنف دا حدیث په بل طریق سره ذکر کوی، چه په هغې کښې دې حدیث لره د سفیان نه روایت کونکې د وکیع نه علاوه نور راویان دی، معاویه، خالد بن عمرو او ابوحذیفه، که دا دعوی د عدم صحت د مصنف د طرف نه وې نو حدیث لره په طریق اخر سره د راوړلو څه معنی؟ بس صحیح ان شاء الله هم دا ده چه دا حدیث د امام ابوداود، ترمذی او نسائی درې واړو په نزد صحیح او ثابت دې، امام نسائی په دې حدیث باندې هیڅ قسم کلام نه دې کړې او د هغه عادت مستمره دې چه کوم حدیث د هغه په نزد خطاء وی په هغې باندې تنبیه کوی.

## النقد السادس:

امام بیهقی د حاکم نه چه صاحب د مستدرک دې نقل کوی چه ددې حدیث په سند کښې عاصم بن کلیب ضعیف دې، په صحیحین کښې د هغه نه چا هم روایت نه دې کړې، علامه زیلعی په نصب الرایه کښې ددې جواب د ابن دقیق العید نه دا نقل کړې دې چه د حاکم دا خبره صحیح نه ده، امام مسلم رحمه الله د هغه د حدیث تخریج کړې دې، پس د سیدنا علی رضی الله عنه حدیث کوم چه د ﴿هدی﴾ په باره کښې دې، نور هم ددې نه علاوه د نورو روایاتو په سند کښې عاصم بن کلیب دې، دویم دا چه دا کله ضروری ده چه د هر ثقه راوی روایت دې په صحیح بخاری او صحیح مسلم کښې موجود وی، هغه خپله په خپل مستدرک کښې د ډیرو داسې راویانو نه روایت راوړې دې چه د هغوی یو روایت هم په صحیحین کښې په یو کښې هم نشته، او د هغې باوجود هغه سند ته علی شرط الشیخین وائی.
بس صحیح صورتحال دا دې چه ددې حدیث د سند ټول راویان بیشکه ثقه او د صحیحین

راويان دی او د عاصم بن کليب روايت امام بخاري رحمه الله په تعليقات کښې اخستلې دې په اماني الاحبار کښې د عاصم توثيق د ډيرو ائمه حديث نه نقل کړې دې او په اخر کښې د علي بن المديني دا رائې چه عاصم که په کوم روايت کښې متفرد وی نو هغه حجت نه دې، او دلته هغه په دې حديث کښې متفرد نه دې بلکه د هغه متابعت د دارقطني، بيهقي او ابن عدي په روايت کښې موجود دې او په هغه متابعاتو باندې کوم چه د هغوی د طرف نه کلام دې، ددې ټولو جواب اماني الاحبار کښې تفصيل سره مذکور دې، دلته د هغې ټولو د ذکر کولو ګنجائش نشته، دا نيم درجن اشکالات او د هغې جوابات مونږ پوره په احتياط او تحقيق سره ذکر کړل، يو اعتراض بل باقي پاتې شو کوم چه ددې قابل خو نه دې چه هغې ته تعرض اوکړې شي خو په کتابونو کښې مذکور دې په دې وجه به ئې ذکر کړو.

## النقد السابع:

امام بيهقي د بعض علماء کرامو نه نقل کړې دی ﴿لعل ابن مسعود نی رفع اليدين کما نسی نسخ التطبيق وغيره﴾ جواب ظاهر دې چه کوم کار روزانه بلکه هر وخت وی په هغې کښې نسيان څنګه کيدې شی، هلته خو چه څه هم کيږی هغه به عمدا وی، امام بخاري رحمه الله خو د هغه معروف اثر کوم چه د ابن عمر نه په عدم رفع کښې روايت شوې دې هم دا جواب کړې دې چه ابن عمر نه څه وخت کښې رفع اليدين هير شوې وی، دواړه خبرې داسې دی، د ابن عمر رضي الله عنه خو دا حال وو چه رسول الله ﷺ که په يوځائې کښې د سفر دوران کوزيدو سره اودس مات کړې وی نو هغه به ئې هم نه هيرولو بيا يو سنت څنګه هيرولې شی، حضرت سهارنپوري رحمه الله ليکلې دی چه د ابن عمر نسيان والا خبره نو هغه هم داسې ده لکه چه څوک زمونږ د طرف نه د رفع اليدين په سلسله کښې داسې اوائی چه هغه به کله کله د مچ پاسولو د پاره لاس اوچتولو.

[٧٤٩]([1]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ، وَخَالِدُ بْنُ عَمْرٍو، وَأَبُو حُذَيْفَةَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بِإِسْنَادِهِ بِهَذَا، قَالَ: فَرَفَعَ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ مَرَّةٍ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: مَرَّةً وَاحِدَةً.

**ترجمه:** حسن بن علي وايي مونږ ته حديث بيان کړې دې معاوية او خالد بن عمرو او حذيفه ټولو ويلی دي: مونږ ته حديث بيان کړې دې سفيان په خپل اسناد سره د دې، هغه وئيلی دي: اوچت به ئې کړل لاسونه خپل په اول ځل کښې. او وئيلی دی بعضو: يو ځل.

[٧٥٠]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيْهِ إِلَى قَرِيبٍ مِنْ أُذُنَيْهِ ثُمَّ لَا يَعُودُ".

**ترجمه:** د براء نه روايت دې بيشکه رسول الله ﷺ ويلی دي: وو چې کله به ئې شروع د مانځه کوله نو لاسونه به ئې اوچت کړل نزدې د غوږونو ته، بيا به نه واپس کيدلو.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٢/٤، ٣٠١، ٣٠٢، ٣٠٣) (ضعيف)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٧٨٥) (ضعيف)

[۷۵۱]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الزُّهْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ يَزِيدَ، نَحْوَ حَدِيثِ شَرِيكٍ، لَمْ يَقُلْ: ثُمَّ لَا يَعُودُ، قَالَ سُفْيَانُ، قَالَ لَنَا بِالْكُوفَةِ بَعْدُ: ثُمَّ لَا يَعُودُ، قَالَ أَبُو دَاوُد، وَرَوَى هَذَا الْحَدِيثَ هُشَيْمٌ، وَخَالِدٌ، وَابْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ يَزِيدَ لَمْ يَذْكُرُوا: ثُمَّ لَا يَعُودُ.

**ترجمه:** د یزید نه روایت دې پشان د حدیث د شریک، هغه پکښې نه دی (ثم لا یعود) سفیان فرمائی چه بیا ئې مونږ ته په کوفه کښې روایت بیان کړو نو ﴿ثم لا یعود﴾ لفظ ئې بیان کړو. امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دا حدیث هشیم، خالد او ابن ادریس د یزید نه روایت کړې دې خو هغه حضرات د ﴿ثم لا یعود﴾ لفظ نه دې ذکر کړې.

## د عدم رفع حدیث ثانی، حدیث البراء رضی الله عنه

**قوله:** ﴿عن البراء ان رسول الله صلی الله علیه وسلم﴾ دا ددې باب دریم حدیث دې چه د هغې راوی براء بن عازب رضی الله عنه په دې کښې صرف یو ځل رفع یدین مذکور دی، د ابوداود نه علاوه دا حدیث طحاوی، دارقطنی، بیهقی، مصنف ابن ابی شیبه کښې موجود دې. مصنف حدیث البراء په درې طریق سره ذکر کړې دې. ۱: یزید بن ابی زیاد عن عبدالرحمن بن ابی لیلی عن البراء. ۲: عیسی بن عبدالرحمن بن ابی لیلی عن ابیه عن البراء. ۳: حکم بن عتیبة عن عبدالرحمن بن ابی لیلی عن البراء... په طریق اول کښې د یزید نه روایت کونکې متعدد دی بعض د یزید نه ﴿ثم لا یعود﴾ روایت کړې دې او بعض نه دې کړې.

## په حدیث البراء باندې د محدثینو کلام او د هغې جواب

پس شریک د یزید نه دا زیادت روایت کړې دې او ابن عیینه د هغوی نه دا زیادت نه ې نقل کړې بلکه دا ئې وئیلې دی چه یزید به په شروع کښې خو ﴿ثم لا یعود﴾ نه وئیل بیا چه کله په کوفه کښې هغه دیره شو او هلته ئې حدیث روایت کړو نو د اهل کوفه په تلقین ئې ﴿ثم لا یعود﴾ وئیل شروع کړل، امام ابوداود رحمه الله فرمائی هم دغه شان هشیم، خالد او ابن ادریس هم د یزید نه دا زیادت نه دې نقل کړې،

## (دوه اشکالات)

خلاصه دا چه دلته دوه اشکاله دی اول خو تفرد او دویم دا یزید یزید،

## (د ړومبی اشکال نه جواب)

زمونږ د طرف نه ددې جواب دا کړې شوې دې (کما فی البذل عن الجوهر النقی) چه شریک متفرد نه دې، پس ابن عدی په الکامل کښې لیکی: رواه هشیم وشریک وجماعة معهما عن یزید باسناده وقالوا فیه ثم لا یعود... هم دغه شان اسماعیل بن زکریا او ابو اسحاق متابعت کړې دې د شریک لکه چه د بیهقی او دارقطنی په روایت کښې دی،

[۱]: انظر حدیث رقم: (۷۴۸)، (تحفة الأشراف: ۹۴۶۸) (صحیح)

## (د دويم اشكال نه جواب)

او دويم اشكال يعنى د تلقين يزيد جواب حضرت په بذل كښې دا وركړې دې چه دا حديث د عبدالرحمن بن ابى ليلى نه د يزيد نه علاوه دوه روايت كونكى نور دى خپله هم په دې كتاب (ابوداود) كښې اول "عيسى بن عبدالرحمن بن ابى ليلى" او دويم الحكم بن عتيبه او دا دواړه ثقه راويان دى، د حكم په ترجمه كښې په تقريب كښې دى ﴿ ثقة ثبت فقيه من الخامسة ﴾ او د عيسى په ترجمه كښې ئې ليكلې دى ﴿ ثقة من السادسة ﴾ لهذا د تلقين يزيد اشكال هم صحيح نه دې، يو اعتراض دا هم كولې شى چه يزيد راوى ضعيف دې، جواب دا دې چه يزيد اګرچه ضعيف دې خو بهرحال متروک نه دې "ففى التهذيب قال ابوداود لا اعلم احدا ترک حديثه"

البته په دويم او دريم طريق كښې محمد بن عبدالرحمن بن ابى ليلى دې چه د هغه په باره كښې مشهوره دا ده چه هغه سئ الحفظ دې خو د هغه په صداقت، فقاهت او ديانت كښې د چا هم كلام نشته، صرف په ضبط او حفظ كښې ئې نقص دې، د هغه په باره كښې حافظ په تقريب كښې ليكلې دى ﴿ صدوق سئ الحفظ جدا ﴾ او حافظ ذهبى رحمه الله په ميزان الاعتدال كښې ليكى: صدوق امام سئ الحفظ وقد وثق... او امام ابو حاتم رازى د هغه په باره كښې د بعض ائمه كرامو نه نقل كړې دى ﴿ حسنه الترمذى وضعفه عبدالحق وابن القطان من جهة ابن ابى ليلى ثم قال وقول الترمذى اولى ﴾ اوګورئ د حافظ ذهبى او ترمذى په نزد د هغه حديث د حسن درجه لرى. (كذا فى الامانى ۱۹۶/۳) لهذا زمونږ دا حديث البراء هم حسن دې.

[۷۵۲]([1])حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا وَكِيعٌ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أَخِيهِ عِيسَى، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَيْهِ حِينَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ ثُمَّ لَمْ يَرْفَعْهُمَا حَتَّى انْصَرَفَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا الْحَدِيثُ لَيْسَ بِصَحِيحٍ.

**ترجمه:** د براء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلى دى ما وليدلو رسول الله ﷺ چې لاسونه ئې اوچت كړل كله چې ئې د مونځ شروع كوله، بيا ئې اوچت نه كړل تردې چې فارغ شو. وئيلى دى ابوداود: دا حديث صحيح نه دى.

## په سند كښې يو غلطى او د هغې اصلاح

**قوله:**﴿ عن ابى ليلى عن اخيه عيسى عن الحكم ﴾ دلته يو ضرورى او قابل تنبيه امر دا دې كوم چه حضرت په بذل كښې ليكلې دې چه د ابوداود په موجوده نسخو كښې هم دغه شان دى ﴿ عن اخيه عيسى عن الحكم ﴾ خو دا غلط دې صحيح وعن الحكم دې، حرف عطف سره لكه چه په طحاوى او د مصنف ابن ابى شيبه په روايت كښې دى، او الجوهر النقى كښې چه كوم د ابوداؤد د روايت حواله وركړې ده، دهغې تقاضه هم دا ده چه دلته واو پكار دې، په واو نه كيدو سره خو به دا لازم شى چه عيسى د حكم نه روايت كوى او حكم د عبدالرحمن

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۸۶) (ضعيف)

بن ابی لیلی نه، حال دا چه داسې نه ده بلکه ابن ابی لیلی روایت کوی د عیسی او حکم دواړو نه، لهذا د عبدالرحمن بن ابی لیلی نه روایت کونکی دوه کسان شو یو عیسی او بل حکم.

**قوله:** ﴿ قال ابوداود : هذا الحديث ليس بصحيح ﴾ د مصنف دعوی د عدم صحت په ظاهر کښې ددې نه سوا هیڅ نه ده چه ددې په سند کښې ابن ابی لیلی دې، او ددې جواب مونږ پورته کړې دې، هم دغه شان مونږ مخکښې وئیلې دی چه احادیث الاحکام او د سنن په کتابونو کښې د ﴿ ليس بصحيح ﴾ نه د صحت اصطلاحیه نفی مراد وی، صحیح ورته مونږ هم نه وایو خو حسن ئې ضرور منو.

## په حديث البراء باندې د حاکم يو نقد او د هغې جواب

په دې حدیث باندې یو اعتراض دا کولې شی چه حاکم صاحب مستدرک د براء ددې حدیث معارضه کړې ده، د هغوی په نزد دویم حدیث چه په هغې کښې رفع یدین فی المواضع الثلاثه مذکور دې، ددې جواب دا دې چه دا حدیث دغه شان د سفیان بن عیینه نه روایت کونکې د ابراهیم بن بشار مادی نه علاوه بل څوک نشته، لکه چه حاکم هم ددې اعتراف کړې دې، او ابراهیم بن بشار راوی ضعیف دې "قال ابن معين ليس بشئ لم يكن يكتب عنه سفيان وما رايت فى يده قلما قط" هم دغه شان امام احمد او نسائی هم د هغه تضعیف کړې دې.

[٧٥٣](١)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ سَمْعَانَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ مَدًّا".

**ترجمه:** د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلی دي: وو رسول الله ﷺ چې کله به داخل شو په مانځه کښې نو لاسونه به ئې اوچت کړل ډير.

## د عدم رفع د سلسلې مزيد نور روايات

د عدم رفع په سلسله کښې حضرت په بذل المجهود کښې ددې دواړو احادیثو نه علاوه کوم چه پورته په متن کښې راغلې دی نور هم ډیر احادیث مرفوعه او اثار ذکر فرمائیلې دی، هم دغه شان علامه شوق نیموی د عمر رضي الله عنه عمل ترک رفع په صحیح سند سره ثابت کړې دې کوم چه امام طحاوی او امام ابوبکر بن ابی شیبه روایت کړې دې او ابن الترکمانی په الجوهر النقی کښې فرمائی چه دا سند د مسلم په شرط باندې دې، حافظ ابن حجر رحمه الله هم په درایه کښې لیکلې دی چه ﴿ رجاله ثقات ﴾ او حاکم چه ددې کومه معارضه کړې ده د طاؤس په روایت سره چه په هغې کښې دا دی چه عمر رضي الله عنه به په مواضع ثلاثه کښې رفع یدین کول، ددې جواب علامه شوق نیموی په اثار السنن کښې ډیر په تحقیق سره ورکړې دې او دا ئې ثابت کړې دی چه د طاؤس دا روایت د عمر رضي الله عنه په باره کښې نه دې بلکه د ابن عمر په باره کښې دې.

(١): سنن الترمذي/الصلاة ٦٣ (٢٤٠)، سنن النسائي/الافتتاح ٦ (٨٨٤)، (تحفة الأشراف: ١٣٠٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٧٥/٢، ٤٣٤، ٥٠٠)، سنن الدارمي/الصلاة ٣٢ (١٢٧٣) (صحيح)

هم دغه شان علامه نيموي د سيدنا علي ﷺ عمل عدم رفع د طحاوي، بيهقي او ابوبكر بن ابي شيبه په روايت سره نقل كړې دې، او وئيلې ئې دي چه ددې حديث سند صحيح دې، حافظ ابن حجر په درايه كښې ليكي چه ﴿ رجاله ثقات ﴾، علامه زيلعي ليكي ﴿ وهو اثر صحيح ﴾ او علامه عيني په شرح بخاري كښې ليكلي دي چه ﴿ صحيح على شرط مسلم ﴾ او دارمي چه په دې باندې كوم اشكال كړې دې چه ددې په سند كښې ابوبكر بن عبدالله النهشلي دې، وهو ممن لا يحتج به... ددې جواب علامه نيموي د ابن التركماني نه دا نقل كړې دې چه د نهشلي روايت امام مسلم او امام نسائي وغيره اخستلې دې، او امام احمد بن حنبل او يحيى بن معين ئې توثيق كړې دې.

هم دغه شان درامي ﷺ دا خبره كړې ده چه زمونږ په علي ﷺ باندې دا حسن ظن دې چه هغه به خپل فعل ته د رسول الله ﷺ په فعل باندې ترجيح نه وركوي، ددې جواب ابن دقيق العيد مالكي دا وركړې دې چه زمونږ په علي ﷺ باندې دا حسن ظن دې چه هغه به د عدم رفع ارتكاب بغير د علم بالنسخ نه نه كوي.

## د عدم رفع په باره كښې احاديث قوليه

ددې روايات فعليه نه علاوه احنافو سره دوه احاديث قوليه هم دي او د فريق مخالف سره ددې سلسلې هيڅ قسم قولي حديث نشته، اول حديث ابن عباس كوم چه طبراني مرفوعا نقل كړې دې : عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: لا تُرْفَعُ الأَيْدِي إِلا فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ حِينَ يَفْتَتِحُ الصَّلاةَ وَحِينَ يَدْخُلُ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ فَيَنْظُرُ إِلَى الْبَيْتِ، وَحِينَ يَقُومُ عَلَى الصَّفَا، وَحِينَ يَقُومُ عَلَى الْمَرْوَةِ، وَحِينَ يَقِفُ مَعَ النَّاسِ عَشِيَّةَ عَرَفَةَ وبِجَمْعٍ، وَالْمَقَامَيْنِ حِينَ يَرْمِي الْجَمْرَةَ... او امام طحاوي دا د ابن عباس ﷺ نه مرفوعا په مذكوره سند سره او د ابن عمر نه موقوفا، په طريق د ابن ابي ليلى عن نافع عن ابن عمر روايت كړې دې، خو د طحاوي په روايت كښې په ځائې د ﴿ لا ترفع الايدى ﴾... ﴿ ترفع الايدى ﴾ دې.

## په حديث لا ترفع الايدي الا فى سبع مواطن باندې بحث

زمونږ د طرف نه دا حديث په استدلال كښې صاحب هدايه هم پيش كړې دې، په دې وجه زمونږ په نزد دا حديث ډير اهم دې، په دې حديث باندې د فريق ثاني نه څه اعتراضات هم دي، دا اعتراضات او جوابات ډير تفصيل غواړي، اجمالا به مونږ د اشكالاتو او جواباتو طرف ته اشاره اوكړو.

## (ړومبې اشكال)

اول اشكال دا دې چه په دې باندې ابن ابي ليلى متفرد دې كوم چه ضعيف دې، ددې جواب دا دې چه ابن ابي ليلى متروك راوي نه دې، بعض اهل رجال د هغوي په باره كښې ډير اوچت كلمات وئيلي دي لكه چه د حديث البراء د كلام د لاندې تير شوې دې، هم دغه شان د هغې متابع هم موجود دې، ورقاء د هغه متابعت كړې دې عند الطبراني ورقاء عن عطاء بن السائب عن سعيد بن جبير عن ابن عباس... او دا ورقاء راوي صدوق دې، امام احمد او يحيى

بن معین د هغه توثیق کړې دې، البته د هغه چه کوم روایت د منصور نه وی، په هغه کښې ضعف دې، کما فی التقریب.

## (دویم اشکال)

بل اشکال پرې دا کړې شوې دې چه وکیع دا د ابن ابی لیلی نه موقوفا روایت کوی، جواب دا دې وکیع دا د ابن ابی لیلی نه مرفوعا هم روایت کوی، کما رواه البخاری فی جزء رفع الیدین، لهذا کیدې شی چه حدیث دواړو طریقو سره نقل وی لکه چه خپله د ابن عمر د روایت هم دغه حال دې چه سالم ئې مرفوعا روایت کوی او نافع موقوفا، او ددې حدیث خو وقف هم د رفع په حکم کښې دې ځکه چه دا خبره چه په مونځ کښې رفع یدین دومره ځایونو کښې دې یو راوی هم په خپل اجتهاد سره نه شی کولې، دا ځیز غیر مدرک بالرائي دې.

## (دریم اشکال)

یو اشکال په دې کښې دا کړې شوې دې چه د شعبه نه نقل دی چه حکم د مقسم نه صرف څلور احادیث اوریدلې دی او دا حدیث د هغه څلورو نه نه دې، لهذا حدیث منقطع دې، جواب دا دې چه د شعبه په کلام کښې حصر استقرائی دې، شعبه کله دا وائی چه ﴿لم یسمع الحکم عن مقسم الا خمسة احادیث﴾ لکه چه په ترمذی کښې یوځائې کښې دی، او ددې باوجود ډیر زیات احادیث دی کوم چه امام ترمذی رحمه الله عن الحکم عن مقسم روایت کړې دې او په هغې کښې په اکثر کښې لفظ د سماع او تحدیث موجود دې، او بیا د هغې نه علاوه دا ده چه مرسل د ثقات مقبول دې.

## (څلورم اشکال)

یو اشکال دا کړې شوې دې چه په دې حدیث کښې په مواضع سبعه کښې انحصار مراد نه دې، او مراد کیدې هم نه شی ځکه چه د مواضع سبعه نه علاوه هم په نورو بعض ځایونو کښې رفع الیدین کیږی لکه په قنوت او عیدین وغیره کښې، او هم دغه شان په بعض روایاتو کښې د ﴿لا ترفع﴾ په ځائې ﴿ترفع الایدی﴾ راغلې دې، بغیر د حصر نه، ددې جواب دا کړې شوې دې چه که دا حدیث مونږ موقوف منو نو بیا خو کیدې شی چه صحابی ته د قنوت او عیدین د رفع الیدین علم نه وی، د عام مونځونو کوم چه په هره ورځ کښې بار بار کولې شی هم د هغې په اعتبار سره حصر مراد وی، او که دا حدیث مرفوع اومنلې شی نو بیا به دا وئیلې شی چه بعض مواضع کوم چه په دې حدیث کښې د بیان نه پاتې شو د هغې ثبوت به د نورو مستقل دلائلو نه وی.

## (پنځم اشکال)

یو اشکال دا کړې شوې دې چه د ابن عباس عمل ددې خلاف منقول دې چه هغه به رفع الیدین کول، او د راوی عمل د خپل مروی خلاف مضر دې، جواب دا دې چه مضر هله دې چه کله دا معلومه شی چه هغه عمل د هغه بعد الروایة وی، او که د هغه دا عمل قبل الروایة

وي يا ئې د تقدم يا تاخر علم نه وي نو بيا مضر نه دی، او دلته هم دغه شان ده.

## ما لي اراكم رافعي ايديكم الحديث باندې بحث

او دويم قولي حديث د مسلم او ابوداود په روايت مرفوعه کښې دی کوم چه هغه د جابر بن سمره رضي الله عنه نه روايت کوی ﴿ عَنْ تَمِيمٍ الطَّائِيِّ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَالنَّاسُ رَافِعُو أَيْدِيهِمْ - قَالَ زُهَيْرٌ أُرَاهُ قَالَ - فِي الصَّلاَةِ فَقَالَ « مَا لِي أَرَاكُمْ رَافِعِي أَيْدِيكُمْ كَأَنَّهَا أَذْنَابُ خَيْلٍ شُمُسٍ اسْكُنُوا فِي الصَّلاَةِ ﴾ په دې حديث کښې د بار بار رفع اليدين نه صراحتا منع کړې شوې ده او دا چه په مونځ کښې د سکون حالت اختيار کړئ.

## (د احنافو په دليل باندې د امام بخاري رحمه الله اشکال)

په دې استدلال باندې د امام بخاری وغيره محدثينو د طرف نه دا اشکال دې چه دا حديث د رفع عند السلام په سلسله کښې دې، صحابه کرامو به د سلام په وخت په لاس سره اشاره کوله نو رسول الله ﷺ ددې رفع نه منع اوفرمائيله د رفع يدين عند الرکوع سره ددې تعلق نشته، زمونږ د طرف نه ددې جواب دا دې چه په دې سلسله کښې دوه احاديث په مختلف سياق او سباق سره روايت شوې دی، يو هغه کوم چه تاسو بيانوئ چه د هغې راوی عبيد الله بن القبطيه دې چه د هغې الفاظ دا دی ﴿ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَكُنَّا إِذَا سَلَّمْنَا قُلْنَا بِأَيْدِينَا السَّلاَمُ عَلَيْكُمُ السَّلاَمُ عَلَيْكُمْ فَنَظَرَ إِلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ مَا شَأْنُكُمْ تُشِيرُونَ بِأَيْدِيكُمْ كَأَنَّهَا أَذْنَابُ خَيْلٍ شُمُسٍ ﴾ د دې حديث تعلق بيشکه د رفع عند السلام سره دې او رومبې حديث ددې نه بالکل مختلف دې، په هغې کښې د سلام هيڅ قسم ذکر نشته بلکه دا دی چه خلقو په مونځ کښې رفع اليدين کول چه په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ اسکنوا في الصلاة ﴾... ظاهره ده چه دا رفع يدين د مونځ د مينځ والا دی هم په دې وجه رسول الله ﷺ ﴿ اسکنوا في الصلاة ﴾ اوفرمائيلو، او د دويم روايت تعلق چونکه د سلام سره دې هم په دې وجه باندې رسول الله ﷺ هلته ﴿ اسکنوا في الصلاة ﴾ او نه فرمائيلو ځکه چه د سلام حالت د مونځ نه د بهر راتلو دې عين د مونځ حالت نه دې.

دا خبره قابل غور ده چه بار بار په مونځ کښې اودريدو او ښکته کيدو کښې رفع يدين کول خو دې د خيل شمس د فعل مشابه نه وی، او د سلام په وخت دې په ناسته ناسته صرف د لاس په اشارې سره د خيل شمس د فعل مشابه شی، حال دا چه خيل شمس خو هميشه په ولاړه ولاړه باندې لکئ خوزوی، بلکه مشهوره خو دا ده چه اس بالکل کينی نه، دويمه خبره دا ده چه قاعده ده چه العبرة لعموم اللفظ لا لخصوص السبب، پس که اومنلې شی چه ددې حديث تعلق د رفع عند السلام سره دې نو بيا هم د سکون حکم خو عام دې او په دې باندې به دا نه شی وئيلې چه بيا خو رفع اليدين عند التحريمه هم نه دی پکار او دا په دې وجه صرف په يو ځل حرکت باندې تشبيه مذکور نه صادق کيږی، د مطلق حرکت نه منع مقصود نه ده صرف يو ځل رفع يدين کوم چه فعل تعظمی دې د هغې مثالونه موجود دی عند رؤية

البيت وغيره هلته هم بار بار رفع يدين نه كيږي، پاتې شوه مسئله د صلاة العيد پس هغه حكم په مصالح باندې مبنى دې او نه هلته اختلاف روايات دې.

## ختام مسلک

په اخر كښې د ختام مسلک په طور دوه روايتونه ذكر كوو چه د هغې تخريج امام بيهقي رحمه الله په خلافيات كښې كړې دې او علامه زيلعي دا په نصب الرايه كښې هم په دې حوالې سره نقل كړې دې.

١: چه د هغې الفاظ دا دي، پوره سند په نصب الرايه كښې موجود دې ﴿عن عباد بن الزبير أن رسول الله صلى الله عليه وسلم، كان إذا افتتح الصلاة رفع يديه في أول الصلاة، ثم لم يرفعها في شيء حتى يفرغ﴾ ابن دقيق العيد فرمائي ﴿وعباد هذا تابعي فهو مرسل﴾، علامه عيني رحمه الله فرمائي ﴿مرسل الثقات مقبول محتج به﴾.

٢: ﴿عن عبدالله بن عون الحراز عن مالك عن الزهري عن سالم عن ابن عمر ان النبي صلى الله عليه وسلم كان يرفع يديه اذا افتتح الصلاة ثم لا يعود﴾.

الله پاک دې امام بيهقي رحمه الله ته جزاء خير وركړي، واقعي دې حضراتو هر چه د روايت د نقل كولو تعلق دې نو په هغې كښې ئې د ديانت حق ادا كړې دې اوس چه وړاندې هغه په دې باندې كوم نقد كوي او چه څه هم كوي هغه جدا خبره ده، هغه د دويم لائن څيزونه دي چه په هغې كښې عام طور خلق مجبوره كيږي يعني د مدد نصرت او په دې كښې ضروري نه ده چه هغه د حد اعتدال او انصاف نه خارج نه شي پس هغه ددې حديث په باره كښې وئيلې دي، ﴿قال الحاكم هذا باطل موضوع ولا يجوز ان يذكر الا على سبيل القدح﴾ او بيا وړاندې فرمايي چه مونږ ته چه د امام مالک نه كوم روايات په صحيح سندونو سره رارسيدلې دي هغه ددې خلاف دي، او كه دا روايت د امام مالک نه نقل وې نو امام دارقطني به ضرور دا په غرائب مالک كښې ذكر كړې وې، په دې باندې علامه عيني د طحاوي په شرح نخب الافكار كښې فرمائي، وهذا مجرد دعوى عن الحاكم لانه لم يبين وجه البطلان ما هو، ولا يلزم من عدم ذكر الدارقطني هذا في غرائب حديث مالک ان يكون هذا باطلا.

زه وائم چه امام طحاوي رحمه الله د ابن عمر رضي الله عنه چه كوم عمل رفع اليدين د مجاهد نه نقل كړې دې، د ابن عمر حديث مرفوع ددې عمل منشاء كيدې شي او ددې اثر د مجاهد نه انكار څه اسان كار نه دې كما تقدم في محله. هم دغه شان د امام مالک رحمه الله نه مشهوره ده چه هغه د رفع اليدين قائل نه دې ددې وجه هم دا روايت كيدې شي ﴿وقد تقدم في بيان المذاهب ما قال مالک في المدونة الكبرى رفع اليدين في غير التحريمة ضعيف والله تعالى اعلم بالصواب، وهذا اخر ما اردت ايراده في هذا المبحث﴾

## بَابُ وَضْعِ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى فِي الصَّلَاةِ

### باب دې په بيان د كېښودلو د ښې لاس په چپ لاس

مصنف د مونځ كيفيت د اول نه واخله تر اخره پورې بيانوي په ابتداء صلاة كښې د رفع

یدین او تکبیر تحریمه بیان خو اوشو اوس ددې خائې نه دا بیانوی چه د رفع یدین کولو نه پس به لاسونو سره څه کوی هسې به پریخودلې شی یا که هغه به تړلې شی.

## مسائل الباب

دلته درې بحثونه دی اول دا چه په مونځ کښې به د قیام په حالت کښې وضع الیدین وی یا ارسال، او دویم بحث دا دې چه که وضع وی نو محل د وضع څه دې، او دریم بحث دا چه حکمت د وضع څه دې؟

[۷۵۴]([1])حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا أَبُو أَحْمَدَ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ زُرْعَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ الزُّبَيْرِ، يَقُولُ: "صَفُّ الْقَدَمَيْنِ وَوَضْعُ الْيَدِ عَلَى الْيَدِ مِنَ السُّنَّةِ".

**ترجمه**: زرعة بن عبد الرحمن وئیلی دی ما اوریدلی دی دا بن الزبیر نه هغه به وئیل: برابرول د قدمونو او کیخودل د لاس په لاس باندې سنت دې.

[۷۵۵]([2])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكَّارِ بْنِ الرَّيَّانِ، عَنْ هُشَيْمِ بْنِ بَشِيرٍ، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ أَبِي زَيْنَبَ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، "أَنَّهُ كَانَ يُصَلِّي فَوَضَعَ يَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى الْيُمْنَى، فَرَآهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى الْيُسْرَى".

**ترجمه**: د ابن مسعود نه روایت دې بیشکه وو هغه چې مونځ به ئې کولو نو کیخودلو به ئې چپ لاس په ښي لاس، نو ولیدلو هغه لره نبی ﷺ نو کیخودلو دهغه ښي لاس په چپ لاس.

## البحث الاول : (وضع یا ارسال؟)

جمهور صحابه، تابعین او ائمه ثلاثه رحمهم الله په حالت قیام کښې د وضع الیمنی علی الیسری د سنت کیدو قائل دی او د امام مالک نه په دې کښې درې روایتونه دی، اول د وضع الیدین مستحسن کیدل په فرضو او نفلو کښې رواه ابن الماجشون عنه. دویم دا چه انه لا باس فی الوضع مطلقا فی الفرض والنفل رواه اشهب عن مالک، او دریم روایت کراهة الوضع فی الفرض دون النفل رواه ابن القاسم عن مالک. ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی ﴿ لیس فیه عن النبی صلی الله علیه وسلم خلاف وهو الذی ذکره مالک فی الموطاء ﴾ یعنی په دې سلسله کښې په روایت حدیثیه کښې هیڅ اختلاف نشته، یعنی ددې په مسنون کیدو کښې او هم دا حدیث ذکر کړې دې امام مالک په موطاء کښې، او د حسن بصری، ابراهیم نخعی او لیث بن سعد نه ارسال منقول دې او د امام اوزاعی رحمه الله نه التخییر فی الوضع والارسال، او د فرقه هادویه په نزد وضع غیر مشروع بلکه مفسد صلاة ده ﴿ لکونه عملا کثیرا ﴾

[۷۵۶]([3])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوبٍ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ، أَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "مِنَ السُّنَّةِ وَضْعُ الْكَفِّ عَلَى الْكَفِّ فِي الصَّلَاةِ تَحْتَ السُّرَّةِ".

---

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۲۶۰) (ضعيف)

[2]): سنن النسائي/الافتتاح ۱۰ (۸۸۹)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۳ (۸۱۱)، (تحفة الأشراف: ۹۳۷۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۳۴۷) (حسن)

[3]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۱۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۱۱۰) (ضعيف)

**ترجمه:** د ابو جحیفة نه روایت دې بیشکه علی رضی الله عنه ویلی دي: د سنت نه دا خبره ده چې کیخودل د ورغوی دی په ورغوی باندې په مانځه کښې لاندې د نامه نه.

[٧٥٧](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ قُدَامَةَ يَعْنِي ابْنَ أَعْيَنَ، عَنْ أَبِي بَدْرٍ، عَنْ أَبِي طَالُوتَ عَبْدِ السَّلَامِ، عَنْ ابْنِ جَرِيرٍ الضَّبِّيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "رَأَيْتُ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يُمْسِكُ شِمَالَهُ بِيَمِينِهِ عَلَى الرُّسْغِ فَوْقَ السُّرَّةِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرُوِيَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ فَوْقَ السُّرَّةِ، قَالَ أَبُو مِجْلَزٍ: تَحْتَ السُّرَّةِ، وَرُوِيَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَلَيْسَ بِالْقَوِيِّ.

**ترجمه:** د ابن جریر الضبی نه روایت دې هغه روایت کوی د خپل پلار نه هغه وئیلی دي: ما ولیدلو علی رضی الله عنه چې نیولی ئې وو چپ لاس په ښي لاس د مړوند نه بره د نامه نه. وئیلی دی ابوداود: او روایت شوی دی د سعید بن جُبیر نه د نامه دپاسه، وئیلی دی ابو مجلز: لاندې د نامه نه، او روایت شوی دی د ابوهریره نه هم، او دا قوی نه دی.

[٧٥٨](٢)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ الْكُوفِيِّ، عَنْ سَيَّارٍ أَبِي الْحَكَمِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، قَالَ: قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: "أَخْذُ الْأَكُفِّ عَلَى الْأَكُفِّ فِي الصَّلَاةِ تَحْتَ السُّرَّةِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ يُضَعِّفُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ إِسْحَاقَ الْكُوفِيَّ.

**ترجمه:** د ابو وایل نه روایت دې، هغه وایی چې ابو هریرة ویلی دي: نو نیول د ورغوو په ورغوو سره په مانځه کښې لاندې د نامه نه. وئیلی دی ابوداود: ما اوریدلی دی د احمد بن حنبل نه چې ضعیف کولو به ئې عبد الرحمن بن اسحاق الکوفی.

[٧٥٩](٣)حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ، حَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ يَعْنِي ابْنَ حُمَيْدٍ، عَنْ ثَوْرٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُوسَى، عَنْ طَاوُسٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى يَدِهِ الْيُسْرَى ثُمَّ يَشُدُّ بَيْنَهُمَا عَلَى صَدْرِهِ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ".

**ترجمه:** د طاوس نه روایت دې هغه وئیلی دي: وو رسول الله صلی الله علیه وسلم چې کیخودلو به ئې خپل ښي لاس په چپ لاس، بیا به ئې دواړه ترل په سینه او هغه به په مانځه کښې وو.

## البحث الثاني : محل الوضع

فعند الحنفية تحت السرة وعند الشافعية فوق السرة وتحت الصدر، وعن الحنابلة روايتان وعن المالكية اما الارسال واما مثل الشافعية يعني فوق السرة.

## البحث الثالث : (حکمت وضع)

**قوله:** ﴿ قالوا هو هيئة السائل الذليل ﴾ یعنی دا د سائل او فقیر هیئت دې هم دغه شان ﴿ امنع من العبث واقرب الى الخشوع ﴾ او هم دې طرف ته ئې اشاره کړې ده، امام بخاری رحمه الله په دې وجه ددې نه روستو متصلا په صحیح بخاری کښې ﴿ باب الخشوع فى الصلاة ﴾ قائم کړې دې.

١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٠٣٠) (ضعيف)
٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٤٩٤) (ضعيف)
٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٨٢٩) (صحيح)

## په وضع تحت السرة او الصدر کښې دلائل الفريقين

مسئله ثانيه يعنی محل وضع مشهور اختلافی مسئله ده په دې سلسله کښې مختصرا د فريقين دلائل ذکر کوو په دې مسئله کښې شوافعو د وائل بن حجر د حديث نه استدلال کړې دې چه په هغې کښې ﴿ ثم وضعهما على صدره ﴾ لفظ راغلې دې، دا روايت په صحيح ابن خزيمه کښې دې، حافظ ابن حجر په بلوغ المرام کښې او امام نووی رحمه الله په خلاصه کښې او علامه شوکانی اهل حديث په نيل الاوطار کښې او ابن دقيق العيد په الامام کښې هم ددې حديث نه استدلال کړې دې خو ددې په سند کښې مؤمل بن اسماعيل دې کوم چه مکمل ضعيف دې او هم هغه په لفظ د ﴿ على صدره ﴾ سره متفرد دې، د هغه نه سوا بل چا دا حديث نه دې نقل کړې لکه چه اعتراف کړې دې ددې خبرې ابن القيم په اعلام الموقعين کښې، امام بخاری د هغه په باره کښې فرمائی ﴿ منکر الحديث ﴾، او ابن سعد فرمائی ثقة کثير الغلط، دارقطنی فرمائی ثقة کثير الخطاء. حافظ په تقريب کښې ليکی : صدوق سیئ الحفظ، نقل دی چه هغه خپل کتابونه دفن کړې وو او د خپل حفظ نه به ئې بيان کولو په دې وجه ترې خطاء ډيره شوې ده.

اصل استدلال ددې حضراتو هم ددې روايت نه دې چه د هغې حال تاسو ته معلوم شو، ددې حضراتو سره يو بل روايت مرفوع دې چه د هغې راوی والد قبيصه هلب طائی دې، دا په حديث په مسند احمد کښې دې بهذا السند ﴿ يحيى بن سعيد عن سفيان عن سماک عن قبيصة بن هلب عن ابيه ﴾ په دې روايت کښې هم د على صدر لفظ موجود دې، علامه شوق نيموی فرمائی چه دا زيادت محفوظ نه دې، يحيى بن سعيد په دې سره متفرد دې د هغه نه علاوه د سفيان په شاګردانو کښې چا هم دا زيادت نه دې نقل کړې، پس عبدالرحمن بن مهدی او وکيع دا د سفيان نه روايت کوی بدون ددې زيادت نه، هم دغه شان امام ترمذی او ابن ماجه دا حديث په طريق د ابو الاحوص عن سماک روايت کړې دې، په هغې کښې هم د على صدر لفظ نشته، هم دغه شان امام احمد دا په طريق د شريک عن سماک روايت کوی په هغې کښې هم على صدر لفظ نشته، هم دغه شان سماک راوی ضعيف دې، صاحب د تحفة الاحوذی (مشهور اهل حديث عالم) باندې تعجب دې چه هغه په خپلو مستدلاتو کښې دا حديث پيش کولو سره ددې حديث هر هر راوی ثقاهت او عدالت د کتب رجال نه ثابتولو سره د خپلې شرح ځلورمه حصه صفحه توره کړې ده او په دې کښې تول اختلاف او اضطراب کوم چه پورته بيان شو، ددې ئې هيڅ معقول جواب نه دې ورکړې.

دا حضرات په دې سلسله کښې (مرسل طاؤس) هم پيش کوی کوم چه د ابوداود په بعض نسخو کښې دی چه په هغې کښې ﴿ على صدره ﴾ لفظ موجود دې خو هغه د مرسل کيدو نه علاوه ضعيف دې دهغې په سند کښې ابن الهيثمه بن حميد دې کوم چه ضعيف دی، هم دغه شان سلمان بن موسی هغه هم متکلم فيه دی.

.........

## د احنافو دلائل

او د احنافو د طرف نه د ټولو نه اهم کوم چه حدیث مرفوع پیش کولې شی هغه د وائل بن حجر رضی الله عنه حدیث دې کوم چه ابن ابی شیبه بسنده روایت کړې دې ﴿ رایت النبی صلی الله علیه وسلم یضع یمینه علی شماله فی الصلاة تحت السرة ﴾ په دې باندې دا اشکال کولې شی چه دمصنف ابن ابی شیبه په صحیح نسخو کښې د تحت السرة زیادت موجود نه دې او صحیح صورت حال دا دې چه مصنف ابن ابی شیبة کښې ددې حدیث نه روستو اثر نخغی ذکر دې چه د هغې په اخر کښې د ﴿ فی الصلاة ﴾ لفظ دې، نو دا سې معلومیږی چه د کاتب نظر خطاء شوې دې، ددې اثر نخغی لفظ ﴿ تحت السرة ﴾ د دې برابر کښې چه کوم حدیث وائل مذکور وو په هغې کښې ئې لفظ اولیکلو، ددې نه علاوه ددې نور قرائن هم پیش کوی، مثلا دا چه دا حدیث هم په دې سند سره په مسند احمد کښې هم دې، هلته هم دا لفظ نه دې مذکور، زمونږ د طرف نه علامه شوق نیموی په اثار السنن کښې د بعض علماء کرامو نه نقل کړې دی چه هغه خپله په بعض صحیح نسخو کښې دا زیادت په خپلو سترګو باندې لیدلې دې، هم دغه شان قاسم بن ابن قطلوبغا هم ددې حدیث دې زیادت سره حواله ورکړې ده، هسې ددې حدیث سند صحت لره فریق مخالف هم تسلیم کوی په خلاف د علی الصدر والا روایت چه په هغې باندې سخت ترین کلام دې، ددې نه علاوه بعض نور اثار صحیحه دی "اثر ابراهیم النخغی" مصنف ابن ابی شیبة کښې په حسن سند سره، او هم دغه شان اثر ابی مجلز بسند صحیح کوم چه ابن ابی شیبه موصولا او امام ابوداود تعلیقا ذکر کړې دې، او هم دغه شان حدیث علی کوم چه د ابوداود په بعض نسخو کښې دې ﴿ من السنة وضع الکف علی الکف فی الصلاة تحت السرة وسنده ضعیف ﴾

صحیح خبره دا ده چه په دې سلسله کښې د هر دواړو فریقو په دلائلو باندې کلام دې چا سره هم یو حدیث مرفوع صحیح کوم ته چه واجب العمل اووئیلې شی موجود نه دې کما قال ابن الهمام. البته د فقهاء کرامو د روایاتو په ترجیح کښې اختلاف دې، احناف د تحت السرة او شوافع د تحت الصدر روایاتو ته ترجیح ورکوی، زمونږ د طرف نه وئیلې شوې دی چه مونځ مظهر تعظیم دې او قیام تعظیمی کښې معهود وضع تحت السرة دې، او د اظهار عشق په صورت کښې وضع علی الصدر وی ﴿ قال المتنبی حاولن تفدیتی وخفن مراقبا، فوضعن ایدیهن فوق ترائب ﴾ دحضرت مولانا اعزاز علی صاحب رحمه الله په درس کښې د وضع علی الصدر په تائید کښې یو طالب علم دا شعر پیش کړو، په دې باندې ورته مولانا موصوف فوراجواب ورکړوچه د نبی په مقابله کښې د متنبی قول پیش کوې؟ لا حول ولا قوة الا بالله.

# بَابُ مَا يُسْتَفْتَحُ بِهِ الصَّلَاةُ مِنَ الدُّعَاءِ

## باب دې په بیان د هغه دعا کې چې مونځ ورپا ندې شروع کولی شي

## په دعاء استفتاح کښې اختلاف علماء

**رومبې اختلاف:** د تکبیر تحریمه نه روستو د قرأت نه مخکښې په مینځ کښې څه دعاء شته یا نه، مسئله مختلف فیه دې، جمهور علماء کرام ائمه ثلاث د دعا استفتاح قائل دی او امام مالک په مشهور قول کښې ددې قائل نه دې، شروح بخاری، فتح الباری، عینی وغیره هم دا لیکلې دې، او صاحب منهل په یو روایت کښې د امام مالک رحمه الله نه هم استحباب نقل کړې دې په حواله د علامه زرقانی ﴿ فی شرحه علی مختصر الخلیل ﴾، دویم اختلاف دا دې چه کومه دعا اولی مختار ده، ځکه چه په کتب حدیث کښې ددې سلسلې مختلف دعاګانې منقول دی، مصنف هم په دې باب کښې ډیرې دعاګانې ذکر کړې دی چه په هغې کښې د بعض محل متعین دې یعنی د تکبیر تحریمه نه پس او بعض روایات مصنف داسې ذکر کړې دی چه په هغې کښې د محل دعا تعیین صراحة په روایت کښې نشته [1] لکه د جبیر بن مطعم حدیث چه په هغې کښې تکبیرات مذکور دی، الله اکبر کبیرا (درې کرته) الحمد لله کثیرا (درې کرته) ﴿ سبحان الله بکرة واصیلا الی اخره ﴾ په دې روایت کښې راوی د دعا محل نه دې ذکر کړې، په دې کښې چه د ټولو نه اول مصنف کوم روایت ذکر کړې دې هغه دعاء التوجه ده کوم ته چه دعا التوجیه هم وئیلې شی ﴿ وجهت وجهی للذی فطر السماوات والارض حنیفا وما انا من المشرکین الی اخره ﴾ د دې باب نه روستو مصنف یو بل باب قائم کړې دې چه په هغې کښې ﴿ سبحانک اللهم وبحمدک الی اخره ﴾ ذکر کړې دې، ګویا خاص ددې دعا دپاره ئې مستقل ترجمه قائم کړې ده، ددې دعاء نه بعض شارحینو په دعاء تسبیح سره تعبیر کړې دې، ددې دواړو نه علاوه یوه بله دعاء استفتاح هم ده کومه چه د بخاری او مسلم متفق علیه روایت دې ﴿ اللَّهُمَّ بَاعِدْ بَيْنِي وَبَيْنَ خَطَايَايَ كَمَا بَاعَدْتَ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ اللَّهُمَّ نَقِّنِيْ مِنْ خَطَايَايَ كَم يُنَقَّى الثَّوْبِ الأَبْيَضِ مِنَ الدَّنَسِ اللَّهُمَّ اغْسِلْنِي بِالثَّلْجِ وَالْمَاءِ وَالْبَرَدِ ﴾ [2] دا حدیث مونږ سره په ابوداود کښې په باب السکتة عند الافتتاح کښې هم راروان دې.

## د کوم امام په نزد کومه دعاء استفتاح مختار ده

په دې دعاګانو کښې د احناف او حنابله په نزد مختار او اولی ﴿ سبحانک اللهم الخ ﴾ ده، حافظ ابن القیم رحمه الله په زاد المعاد کښې لیکی ﴿ اختاره احمد لعشرة وجوه ﴾ چه امام احمد دا د لسو وجو نه اختیار کړې ده، او د امام شافعی رحمه الله په نزد مختار دعا دعاء التوجه ده لکه

[1] بلکه احتمال دې چه د افتتاح صلاة نه پس به قبل القرأت لوستل مراد وی یا قبل التحریمه یا درمیان صلاة د قومې په حالت کښې.

[2] دا په حدیث د ابوهریره رضي الله عنه کښې نقل ده، حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی "حدیث ابی هریرة اصح ما ورد فی ذلک" خو په بذل المجهود کښې لیکی دا روایت اګر چه متفق علیه دې خو په خصوصیت سره یو امام هم دا نه دې اختیار کړې.

چه په متن د ابی شجاع وغیره کتب شافعیه کښې مذکور دي، امام شافعي رحمه الله په کتاب الام کښې هم دغه شان ذکر فرمائیلي دي، په بذل کښې لیکي چه مزنی د امام شافعي نه هم دا نقل کړي دي، او دویم روایت د امام شافعي نه دا دې ﴿ ان المصلی یاتی بالاذکار کلها فی الفریضة والنافلة ﴾ د دې دعاء توجه په احنافو کښې امام ابویوسف رحمه الله هم قائل دې چه د ﴿سبحانک اللهم ﴾ سره دې دا هم شامل کړی، او هم دا یو روایت د امام شافعي رحمه الله نه دی، پس په فتح الباری کښې دی﴿ ونقل الساجی عن الشافعی استحباب الجمع بین التوجه والتسبیح﴾

[٧٦٠]()حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَمِّهِ الْمَاجِشُونِ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ كَبَّرَ، ثُمَّ قَالَ: وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضَ حَنِيفًا مُسْلِمًا وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ، إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ لَا شَرِيكَ لَهُ وَبِذَلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ، اللَّهُمَّ أَنْتَ الْمَلِكُ لَا إِلَهَ لِي إِلَّا أَنْتَ أَنْتَ رَبِّي وَأَنَا عَبْدُكَ ظَلَمْتُ نَفْسِي وَاعْتَرَفْتُ بِذَنْبِي فَاغْفِرْ لِي ذُنُوبِي جَمِيعًا إِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ، وَاهْدِنِي لِأَحْسَنِ الْأَخْلَاقِ لَا يَهْدِي لِأَحْسَنِهَا إِلَّا أَنْتَ، وَاصْرِفْ عَنِّي سَيِّئَهَا لَا يَصْرِفُ سَيِّئَهَا إِلَّا أَنْتَ، لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ وَالْخَيْرُ كُلُّهُ فِي يَدَيْكَ وَالشَّرُّ لَيْسَ إِلَيْكَ أَنَا بِكَ وَإِلَيْكَ تَبَارَكْتَ وَتَعَالَيْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ، وَإِذَا رَكَعَ، قَالَ: اللَّهُمَّ لَكَ رَكَعْتُ وَبِكَ آمَنْتُ وَلَكَ أَسْلَمْتُ، خَشَعَ لَكَ سَمْعِي وَبَصَرِي وَمُخِّي وَعِظَامِي وَعَصَبِي، وَإِذَا رَفَعَ، قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ مِلْءَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمِلْءَ مَا بَيْنَهُمَا وَمِلْءَ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ، وَإِذَا سَجَدَ، قَالَ: اللَّهُمَّ لَكَ سَجَدْتُ وَبِكَ آمَنْتُ وَلَكَ أَسْلَمْتُ، سَجَدَ وَجْهِي لِلَّذِي خَلَقَهُ وَصَوَّرَهُ فَأَحْسَنَ صُورَتَهُ وَشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ وَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ، وَإِذَا سَلَّمَ مِنَ الصَّلَاةِ، قَالَ: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ وَمَا أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ وَمَا أَسْرَفْتُ وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي، أَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَالْمُؤَخِّرُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ".

**ترجمه:** د علي بن ابی طالب رضي الله عنه نه روایت هغه وئیلی دی، وو رسول الله صلی الله علیه وسلم چې کله به پاڅیدلو مانځه ته، نو هغه به وئیل: «وجهت.......» ما مخامخ کړی دی مخ خپل هغه ذات ته چې اسمانونه او ځمکه ئې پیدا کړې ده په داسې حال چې مائل یم توحید ته، مسلمان یم او زه نه یم د مشرکانو نه، بیشکه زما مونځ او قربانی او ژوند او مرګ خاص الله لره دی چې رب د مخلوقاتو دی، شریک ورسره نشته او په دې باندې ماته امر شوی دی او زه د مسلمانانو نه یم، ای الله ته بادشاه ئې نشته لائق د عبادت مګر ته ئې، ته زما رب ئې زه ستا بنده یم، ما ظلم کړی دی په خپل نفس باندې، او اعتراف مې کړی دی په خپله ګناه ماته وبخښې ګناهونه زما ټول، بیشکه نه بخښي ګناهونه مګر ته، او هدایت وکړی ماته ښائسته اخلاقو ته چې هدایت نشي کولی ښائسته اخلاقو ته مګر ته، او لرې کړی زمانه بد د هغې نشي اړولی بد د هغې مګر ته، ربه زه حاضر یم تاته او خیر ټول ستا په لاسونو کښې دی، او د شر نسبت تاته نه کېږي، زما اعتماد په تا باندې او تاته دی، ته برکت والا ئې او اوچت ئې، تانه بخښنه غواړم تاته توبه اوکاږم، او چې کله به ئې رکوع وکړه نو وئیل به یې: اې الله

[1]: صحیح مسلم/المسافرین ٢٦ (٧٧١)، سنن الترمذي/الدعوات ٣٢ (٣٤٢١، ٣٤٢٢)، سنن النسائي/ الافتتاح ١٧ (٨٩٨)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٥، (٨٦٤)، ٧٠ (١٠٥٤)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٢٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٩٣، ٩٥، ١٠٢، ١٠٣، ١١٩)، سنن الدارمي/الصلاة ٣٣ (١٢٧٤)، ويأتي هذا الحديث برقم: (١٥٠٩) (صحيح)

ما تاته رکوع وکړه او په تا باندې مې ایمان دی او تاته تسلیم یم، تابعدار دی تاته غوږونه زما او سترګې زما او دماغ زما او هډوکې زما او پلې زما، او چې کله به ئې سر اوچت کړو نو وئیل به یې: واوریدلو الله د هغه چا چې د هغه حمدیې وویلو، ای ربه زمونږ ستا لپاره حمد په اندازه د ډکوالی د اسمانونو او د ځمکې او په اندازه د ډاکوالی د مابین ددې دواړو، او ډاکوالی دهغې چې ستا خوښه وی دځه شی نه وروسته.اوچې کله بی سجده وکړه نو وئیل به یې: اې الله ما تاته سجده وکړه او په تا مې ایمان دی او تاته مې غاړه ایخې ده، سجده وکړه مخ زما هغه ذات ته چې هغه پیدا کړی دی او شکل ئې ورکړی دی ښائسته کړی ئې دی شکل د هغه او چولی ئې دی غوږونه او سترګې د هغه، او برکتونو والا دی الله چې بهترین پیدا کونکی دی. او چې کله به ئې سلام وګرځولو د مانځه نه هغه به وئیل: اې الله ماته وبخښې زما هغه (ګناهونه) چې ما مخکښې لیږلی دی او هغه (ګناهونه) چې ما وروسته کړی دي، او هغه چې ما پټ کړی دی او هغه چې ما ښکاره کړی دي، او هغه چې ته پرې زما نه ښه عالم ئې، ته مخکې کونکی او وروسته کونکی ئې نشته لائق د عبادت مګر ته یې.

(**اشکال**): د﴿ وانا من المسلمین ﴾ په بعض روایاتو کښې په ځائې ددې ﴿ وانا اول المسلمین ﴾ هم راځی، رسول الله ﷺ به کله داسې لوستل او کله هغه شان، د هغه په حق کښې خو هیڅ اشکال نشته چه دا دواړه خبرې صادق راځی خو د هغه نه علاوه نورو ته څه وئیل پکار دی؟

(**جواب**): جمهور دا وائی چه نورو ته ﴿ وانا من المسلمین ﴾ وئیل پکار دی، زمونږ د بعض مشائخو په نزد ﴿ وانا اول المسلمین ﴾ وئیلو سره مونځ فاسدیږی خو صحیح دا ده چه نه فاسد کیږی، خو په دې صورت کښې مقصود تلاوت یا حکایت وی او اخبار عن نفسه مقصود نه وی ګینې یقینا به فاسد شی، او بعض علماء فرمائی چه په ﴿ انا اول المسلمین ﴾ وئیلو سره به مونځ نه فاسد کیږی ځکه چه ددې دا مطلب نه دې چه زه د ټولو نه اول مسلمان یم، بلکه دا عبارت کنایه ده د مبادرت او مسارعت نه یعنی زه په عجلت، په شوق او رغبت سره په اسلام کښې داخلیدونکې یم لکه چه په دې آیت کریمه کښې دی. ﴿ قل ان کان للرحمن ولد فانا اول العابدین ﴾.

## یو اشکال او د هغې جواب

**قوله**:﴿ والشر لیس الیک ﴾ په دې باندې ډیر اشکال دې چه د ټولو اهل سنت عقیده ده چه خیر او شر دواړه د الله پاک د طرف نه دی، او دا خبره چه خیر د الله پاک د طرف نه او شر د غیر الله دطرف نه دې، د اهل اعتزال مسلک دا دې، ددې مختلف توجیهات کړې شوې دی.

١: مراد دا دې ﴿ والشر لیس شرا بالنسبة الیک ﴾ چه د الله پاک په اعتبار سره هیڅ شر نشته، دا د خیر او شر تقسیم د مخلوق په اعتبار سره دې د خالق په اعتبار سره نه، د خالق په اعتبار سره خو ځنګه چه دخیر په تخلیق کښې مصلحت دې هم دغه شان په شر کښې هم دې، دواړه څیزونه د حکمت نه خالی نه دی.[1]

[1] علامه شمس الحق افغانی رحمه الله په دې باندې په درس فاتحه کښې د امام غزالی رحمه الله ......٦٦

۲: ﴿ الشر ليس مما يقترب به اليک ﴾ يعني اې الله! د شر په ذريعه ستا قرب نه شي حاصليدي.

۳: مراد دا دي ﴿ الشر المحض ليس ينبغي ان ينسب اليک ﴾ يعني د الله پاک طرف ته خالص د شر نسبت كول لكه څوک اوائي چه يا خالق الخنزير يا خالق الشر... دا مناسب نه ده بلكه دا خلاف ادب ده بلكه خير او شر لره مجموعي طور هغه طرف ته منسوب كړې شي. مثلا خالق الخير والشر.

[٧٦١]() حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْهَاشِمِيُّ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْفَضْلِ بْنِ رَبِيعَةَ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ كَانَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ، وَيَصْنَعُ مِثْلَ ذَلِكَ إِذَا قَضَى قِرَاءَتَهُ وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ، وَيَصْنَعُهُ إِذَا رَفَعَ مِنَ الرُّكُوعِ، وَلَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي شَيْءٍ مِنْ صَلَاتِهِ وَهُوَ قَاعِدٌ، وَإِذَا قَامَ مِنَ السَّجْدَتَيْنِ رَفَعَ يَدَيْهِ كَذَلِكَ وَكَبَّرَ، وَدَعَا نَحْوَ حَدِيثِ عَبْدِ الْعَزِيزِ فِي الدُّعَاءِ يَزِيدُ وَيَنْقُصُ الشَّيْءَ وَلَمْ يَذْكُرْ: وَالْخَيْرُ كُلُّهُ فِي يَدَيْكَ وَالشَّرُّ لَيْسَ إِلَيْكَ، وَزَادَ فِيهِ: وَيَقُولُ عِنْدَ انْصِرَافِهِ مِنَ الصَّلَاةِ: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ وَمَا أَسْرَرْتُ وَأَعْلَنْتُ، أَنْتَ إِلَهِي لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ.

**ترجمه**: علي بن ابی طالب رضی الله عنه روايت كوي د رسول الله ﷺ نه، بيشكه هغه وو چې كله به پاڅيدلو فرض مونځ ته نو تكبير به ئې وويلو او لاسونه به ئې اوچت كړل برابر د اوږو خپلو، او كول به ئې داسې چې كله بې ئې قرأت پوره كړو او اراده د ركوع به ئې وكړه، نو داسې به ئې بيا هم كول چې كله به اوچت شو د ركوع او نه به ئې اوچتول لاسونه په هيڅ ځائې كښې د مانځه نه چې كله به هغه ناست وو، او چې كله به پورته شو د دوه سجدو نه لاسونه به ئې اوچت كړل همدغسې او تكبير به ئې ويلو او دعا به ئې وكړه، پشان د حديث د عبد العزيز په دعاء كښې بعضې زياتوالې او كموالې به ئې پكې كولو، او ذكر كړې ئې نه دی (وَالْخَيْرُ كُلُّهُ فِي يَدَيْكَ وَالشَّرُّ لَيْسَ إِلَيْكَ) او زيادت ئې كړی دی په هغې كښې او وئيل به ئې په وخت د فارغيدلو كښې د مانځه نه: اې الله وبخښې ماته هغه (گناهونه) كوم چې ما مخكښې لېږلې دی او هغه چې روسته به ئې كوم، او هغه چې ما پټ كړی دی او هغه چې ما ښكاره كړی دي، ته زما الله ئې نشته لائق د عبادت مگر هم دا ته يې.

---

ـــ......په حوالې سره يو عجيبه مثال ذكر كړې دې (خو مختصر دهغې لړ وضاحت راقم په خپلو الفاظو كښې داسې ذكر كوي.) مثلا دغلا تصور چه دا الله تعالى پيدا كړې دې نو په دې كښې يقينا د انسانانو دپاره تول خيردي، ځكه چه دا وخت په زرګونو نه بلكه په لكهونو خلق د څوكيدارئ پيشې سره متعلق دی او حلاله روزی گټی، كه د غلا تصور نه وي نو د څوكيدار ساتلو ضرورت به چاته وو؟. دغسې ډير خلق د تالو (قفل) په فيكتريانو (كارخانو) كښې كار كوي او حلال روزی گټی، كه د غلا تصورنه وي نو د تالو ضرورت به هم نه وي، دغسې كوم خلق چه د دوكان او كور جوړولو دپاره غټې او مضبوطې دروازې جوړوی او لگوي چه ددې كار كونكي جوړونكي د لكهونو په تعداد كښې دی دغسې كومې المارئ وغيره چه جوړولې شی وغيره، پس دغلا تصور (چه دا الله تعالى پيدا كړې دې) په وجه په كروړونو خلقو ته حلال رزق ملاويږي خوكه هم دا غلا بنده اختيار كړی نو اوس به دا شر جوړيږی چه ددې نه شريعت منع فرمائيلې ده.

(): انظر حديث رقم: (٧٤٤)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٢٨) (حسن صحيح)

[٧٦٢]()حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا شُرَيْحُ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنِي شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، قَالَ: قَالَ لِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ، وَابْنُ أَبِي فَرْوَةَ وغيرهما من فقهاء أهل المدينة فإذا قُلْتَ أَنْتَ ذَاكَ، فَقُلْ: وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ يَعْنِي قَوْلَهُ: وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ.

**ترجمه**: فقهاو د مدينې وئيلي دي کله چې تا وويل دغه نو ته ووايه (و انا من المسلمين) زه د مسلمانانو نه يم. يعنې قول د هغه (وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ) زه اول د مسلمانانو نه يم.

[٧٦٣]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، أَخْبَرَنَا حَمَّادٌ، عَنْ قَتَادَةَ، وَثَابِتٍ، وَحُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، "أَنَّ رَجُلًا جَاءَ إِلَى الصَّلَاةِ وَقَدْ حَفَزَهُ النَّفَسُ، فَقَالَ: اللَّهُ أَكْبَرُ الْحَمْدُ لِلَّهِ حَمْدًا كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ، فَلَمَّا قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاتَهُ، قَالَ: أَيُّكُمُ الْمُتَكَلِّمُ بِالْكَلِمَاتِ فَإِنَّهُ لَمْ يَقُلْ بَأْسًا، فَقَالَ الرَّجُلُ: أَنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ، جِئْتُ وَقَدْ حَفَزَنِي النَّفَسُ فَقُلْتُهَا، فَقَالَ: لَقَدْ رَأَيْتُ اثْنَيْ عَشَرَ مَلَكًا يَبْتَدِرُونَهَا أَيُّهُمْ يَرْفَعُهَا"، وَزَادَ حُمَيْدٌ فِيهِ: وَإِذَا جَاءَ أَحَدُكُمْ فَلْيَمْشِ نَحْوَ مَا كَانَ يَمْشِي فَلْيُصَلِّ مَا أَدْرَكَهُ وَلْيَقْضِ مَا سَبَقَهُ.

**ترجمه**: د انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دی، بيشکه يو سړی راغي مانځه ته او په مشقت کښې اچولی وو هغه لره سا، هغه وويل: الله اکبر حمد دی الله لره ډير او پاک او د برکت والا، هرکله چې رسول الله ﷺ پوره کړو مونځ خپل، وبې وئيل: په تاسو کښې دغه کلمات چا وويل؟ هغه څه بده وينا ونه کړه. نو هغه سړي وويل: ما ای د الله رسوله، زه راغلم او سا مې ستړې شوی وه ما وويل، نو هغه وفرمائيل: ما وليدل دولس فرښتې چې جلتې ئې کوله چې کوم يو به ئې پورته کوي. او زيادت کړی دی حميد په دې کښې: کله چې يو د تاسو نه راشي نو څې دې پشان د هغې چې هغه وو چې تلو به، ودې کړي مونځ کوم چې بيامونځی او قضايي دې راوړي د هغې چې تربنه فوت شوی دی.

[٧٦٤]()حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مَرْزُوقٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَاصِمٍ الْعَنَزِيِّ، عَنِ ابْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ رَأَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي صَلَاةً، قَالَ عَمْرٌو: لَا أَدْرِي أَيَّ صَلَاةٍ هِيَ، فَقَالَ: "اللَّهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا اللَّهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا اللَّهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ كَثِيرًا وَالْحَمْدُ لِلَّهِ كَثِيرًا وَالْحَمْدُ لِلَّهِ كَثِيرًا، وَسُبْحَانَ اللَّهِ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ثَلَاثًا، أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ مِنْ نَفْخِهِ وَنَفْثِهِ وَهَمْزِهِ، قَالَ: نَفْثُهُ الشِّعْرُ، وَنَفْخُهُ الْكِبْرُ، وَهَمْزُهُ الْمُوتَةُ".

**ترجمه**: د ابن جبير نه روايت دی هغه روايت کوی د خپل پلار نه، بيشکه هغه رسول الله ﷺ وليدلوچې مونځ ئې کولو. وئيلي دي عمرو: زه نه پوهېږم چې هغه کوم مونځ وو. نو هغه وويل: الله اکبر کبيرًا....... **ترجمه**: الله لوی دی په لويې سره، الله لوی دی په لويې سره، الله لوی دی په لوی سره، او حمد دی الله لره زيات، او حمد دی الله لره زيات، او حمد دی الله لره زيات، او پاکي ده الله لره صبا بيګاه، درې ځله. پناه نيسم زه په الله پورې د شيطان نه د پوکې د هغه نه او د توک د هغه نه او د ټوټګې د هغه نه هغه وايي چې نفث ئې شعر دی، او

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٤٢٣) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/المساجد ٢٧ (٦٠٠)، سنن النسائي/الافتتاح ١٩ (٩٠٢)، (تحفة الأشراف: ٣١٣، ١١٥٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٧/٣، ١٦٨، ١٨٨، ٢٥٢) (صحيح)

[3]: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٢ (٨٠٧)، (تحفة الأشراف: ٣١٩٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٠/٣، ٨٣، ٨٥، ٨٠/٤، ٨٢، ٨٥) (ضعيف)

نفخ ئې کبر دی، او همزیې مشقت دی.

[٧٦٥]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ فِي التَّطَوُّعِ ذَكَرَ نَحْوَهُ.

**ترجمه**: نافع بن جبیر د خپل پلار نه روایت کوی هغه وئیلی دي: ما اوریدلی دی د نبی ﷺ نه چې هغه به وئیل: په نفلو کښې، ذکر ئې کړو پشان د هغې دعا.

[٧٦٦]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، أَخْبَرَنِي مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، أَخْبَرَنِي أَزْهَرُ بْنُ سَعِيدٍ الْحَرَازِيُّ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ حُمَيْدٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ: بِأَيِّ شَيْءٍ كَانَ يَفْتَتِحُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِيَامَ اللَّيْلِ؟ فَقَالَتْ: لَقَدْ سَأَلْتَنِي عَنْ شَيْءٍ مَا سَأَلَنِي عَنْهُ أَحَدٌ قَبْلَكَ، "كَانَ إِذَا قَامَ كَبَّرَ عَشْرًا وَحَمِدَ اللَّهَ عَشْرًا وَسَبَّحَ عَشْرًا وَهَلَّلَ عَشْرًا وَاسْتَغْفَرَ عَشْرًا، وَقَالَ: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي وَاهْدِنِي وَارْزُقْنِي وَعَافِنِي، وَيَتَعَوَّذُ مِنْ ضِيقِ الْمَقَامِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ خَالِدُ بْنُ مَعْدَانَ، عَنْ رَبِيعَةَ الْجُرَشِيِّ، عَنْ عَائِشَةَ، نَحْوَهُ.

**ترجمه**: د عاصم بن حُمید نه روایت دې هغه وئیلی دي: ما تپوس وکړو د عائشې نه په کوم شي به رسول الله ﷺ قیام اللیل شروع کولو، هغې ووېل: تا مانه د داسې شي تپوس وکړو چې مانه ددې هیڅا تپوس نه دی کړی مخکښې ستا نه، وو هغه چې کله به پاڅیدلو نو تکبیر به ئې ویلو لس ځله، او حمد د الله به ئې ویلو لس ځله، او تسبیح به ئې وئیله لس ځله، او تهلیل به ئې ویلو لس ځله، او استغفار به ئې ویلو لس ځله، او هغه به ووېل: اې الله ما وبخښې او هدایت وکړې ماته، او رزق راکړې ماته او عافیت راکړې ماته. او پناه به ئې غوښتله د ځائې د تنګوالی نه په ورځ د قیامت کښې. وئیلی دی ابوداود: او ددې روایت خالد بن معدان کړی دی د ربیعة بن الجرشی نه او هغه د عائشې نه په شان د هغې.

[٧٦٧]()حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ: بِأَيِّ شَيْءٍ كَانَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْتَتِحُ صَلَاتَهُ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ؟ قَالَتْ: "كَانَ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَفْتَتِحُ صَلَاتَهُ: اللَّهُمَّ رَبَّ جِبْرِيلَ، وَمِيكَائِيلَ، وَإِسْرَافِيلَ، فَاطِرَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ أَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ، اهْدِنِي لِمَا اخْتُلِفَ فِيهِ مِنَ الْحَقِّ بِإِذْنِكَ إِنَّكَ أَنْتَ تَهْدِي مَنْ تَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ".

**ترجمه**: د عبد الرحمن عوف نه روایت دې هغه وئیلی دی ما تپوس وکړو د عائشې نه په کوم شي باندې به د الله نبی ﷺ شروع کولو مونځ خپل چې کله به د شپې بیدار شو؟ هغې ووېل: وو چې کله به بیدار شو د خوب نه نو شروع کولو به ئې مونځ خپل: اې الله رب د جبریل او میکائیل او د اسرافیل دی، اې پیدا کونکی دا سمانونو او د ځمکې پوهه په غیبو او په ښکارو ته فیصله کونکی ئې په مابین د بندګانو خپلو کښې په هغه څه کښې چې د دوی

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٣١٩٩) (ضعيف)

[2]: سنن النسائي /قيام الليل ٩ (١٦١٨)، سنن ابن ماجه /إقامة الصلاة ١٨٠ (١٣٥٦)، (تحفة الأشراف: ١٦٠٨٢، ١٦١٦٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٣/٦)، ويأتي عند المؤلف برقم: (٥٠٨٥) (حسن صحيح)

[3]: صحيح مسلم /صلاة المسافرين ٢٦ (٧٧٠)، سنن الترمذي /الدعوات ٣١ (٣٤٢٠)، سنن النسائي /قيام الليل ١١ (١٦٢٦)، سنن ابن ماجه /إقامة الصلاة ١٨٠ (١٣٥٧)، (تحفة الأشراف: ١٧٧٧٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٥٦) (حسن)

پکې اختلاف دی، هدایت وکړی ماته هغه څه ته چې په هغې کښې اختلاف شوی دی د حق نه په اذن ستا سره، بیشکه ته هدایت کوی هغه چاته چې ته ئې وغواړی سمې لارې.

[٧٦٨]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو نُوحٍ قُرَادٌ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ، بِإِسْنَادِهِ بِلَا إِخْبَارٍ وَمَعْنَاهُ، قَالَ: كَانَ إِذَا قَامَ بِاللَّيْلِ كَبَّرَ، وَيَقُولُ:

**ترجمه:** د عکرمه نه روایت دې د هغه په اسناد سره بغیر د اخبار نه او په معنی د هغې سره، هغه وئیلی دي: وو کله چې به پاڅیدلو د شپې نو تکبیر ئې ویلو او وئیل به یې.

[٧٦٩]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، قَالَ: لَا بَأْسَ بِالدُّعَاءِ فِي الصَّلَاةِ فِي أَوَّلِهِ وَأَوْسَطِهِ وَفِي آخِرِهِ فِي الْفَرِيضَةِ وَغَيْرِهَا.

**ترجمه:** د مالک نه روایت دې هغه وئیلی دي: پروا نشته په دعاء باندې په مونځ کښې په اول کښې او په مینځ کښې او په اخیر کښې په فرضو کښې او په نفلو کښې.

## دعاء في الصلاة کښې د امام مالک مسلک

**قوله:** ﴿ حدثنا القعنبی عن مالک قال : لا باس بالدعاء فی الصلاة ﴾ د امام مالک رحمه الله په نزد د مونځ په هر حالت کښې او ددې په هر رکن کښې که هغه مونځ فرض وی یا نفل، د دعا غوښتلو اجازت دې ﴿ سواء تعلق بحوائج الدنیا او الاخرة ولو بالتعیین ﴾، د امام مالک دا مذهب په مدونه کښې هم مذکور دی خو په دې کښې ئې د رکوع استثناء کړې ده چه د رکوع نه علاوه باقی ټولو ځایونو کښې دعا غوښتلې شی، د هغوی په نزد د چا نوم اخستلو سره هم په مونځ کښې دعا غوښتل جائز دی، په منهل کښې د هغوی مذهب ډیر په تفصیل سره لیکلې دې، زه وایم چه د رکوع استثناء هغه غالبا ددې حدیث په بناء فرمائیلې ده کوم چه هغه به زمونږ په نزد وړاندې راشی چه په هغې کښې دی ﴿ فاما الرکوع فعظموا الرب فیه واما السجود فاجتهدوا فی الدعاء فقمن ان یستجاب لکم ﴾ د دې نه معلومیږی چه رکوع محل دعا نه ده، په خلاف د سجدو والله تعالی اعلم. دا قول شو د امام مالک او وړاندې هم په دې کتاب کښې څو پاڼړې پس د ﴿ باب الدعاء فی الصلاة ﴾ په اخر کښې دا راځی، ﴿ قال احمد : یعجبنی فی الفریضة ان یدعو بما فی القران ﴾ یعنی په فرض مونځ کښې به هم هغه دعاګانې غوښتلې شی کوم چه ماثور دی په دې کښې نور اختلاف او بیان مذاهب ﴿ باب التشهد : ثم لیتخیر احدکم من الدعاء اعجبه الیه ﴾ د لاندې راشی.

[٧٧٠]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نُعَيْمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْمُجْمِرِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ يَحْيَى الزُّرَقِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ الزُّرَقِيِّ، قَالَ: "كُنَّا يَوْمًا نُصَلِّي وَرَاءَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا رَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ، قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، قَالَ رَجُلٌ وَرَاءَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٧٧٧٩) (حسن)

[2]: موطا امام مالک/کتاب القرآن ٩، عقیب حدیث (٣٩) (صحیح)

[3]: صحیح البخاري/الأذان ١٢٦ (٧٩٩)، سنن النسائي/الافتتاح ٣٦ (٩٣٢)، التطبيق ٢٢ (١٠٦٣)، (تحفة الأشراف: ٣٦٠٥)، موطا امام مالک/القرآن ٧ (٢٥)، مسند احمد (٤/٣٤٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ١٨٤ (٤٠٤) (صحیح)

اللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ حَمْدًا كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ، فَلَمَّا انْصَرَفَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: مَنِ الْمُتَكَلِّمُ بِهَا آنِفًا؟ فَقَالَ الرَّجُلُ: أَنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَقَدْ رَأَيْتُ بِضْعَةً وَثَلَاثِينَ مَلَكًا يَبْتَدِرُونَهَا أَيُّهُمْ يَكْتُبُهَا أَوَّلُ".

**ترجمه:** د رفاعة بن رافع الزرقي نه روایت دې هغه وئیلي دي: وو مونږ یوه ورځ چې مونځ کولو مونځ وروسته د رسول الله ﷺ نه، هرکله چې رسول الله ﷺ خپل سر اوچت کړو د رکوع نه نو ویې وئیل: (سمع الله لمن حمده) وویل یو سړي وروسته د رسول الله ﷺ نه: (ای الله تا لره حمد دی حمد ډیر پاک او د برکت والا) هرکله چې فارغ شو رسول الله ﷺ هغه وویل: څوک وو خبرې کونکی لګ مخکې؟ وویل سړي زه یم ای د الله رسوله! نو وویل رسول الله ﷺ: بیشکه ما ولیدل څه دپاسه دېرش ملائک چې جلتي ئې کوله چې کوم یو ئې اول ولیکي.

**تشریح: قوله:** ﴿ حدثنا القعنبي... لقد رایت بضعة وثلاثین ملکا یتدرونها ﴾ کوم سړی چه په هغه پسې شاته په مونځ کښې د رکوع نه د پاسیدو نه پس کلمات مذکوره فی الحدیث لوستلې وو د هغه په باره کښې هغه فرمائی چه ما هغه وخت د دېرشو نه زیاتې فرښتې اولیدې چه د هغه کلماتو اعداد او حروف هم دومره دی، ددې نه مخکښې په یو روایت کښې په ځائې د درې دېرش اثنی عشر ملکا راغلي دي، او دې کښې حکمت علامه عیني ﷫ دا بیان فرمائیلي دي چه کلمات مذکوره فی الحدیث شپږ دی ګویا د هرې کلمې د اخستلو دپاره دوه ملائکو منډه کړې،

## (تعارض مع تطبیق)

خو ددې دواړو احادیثو د عدد په اعتبار سره تعارض دې، حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې لیکي چه حافظ ابن حجر او علامه عیني دواړه اګرچه د اتحاد واقعه قائل دی خو د اختلاف عدد ئې هیڅ توجیه نه ده فرمائیلې، البته صاحب د فیض الباری ددې په جواب کښې تعدد واقعه اختیار کړې ده، او زما دا خیال دې چه که دا دواړه واقعات جدا جدا دی نو اوس ئې هیڅ اشکال نشته، او که یوه واقعه وی نو بیا به دا وئیلې شي چه احدی الروایتین وهم دې، دا معلومه نه ده چه کوم یو، والله اعلم، ځکه چه د سند په اعتبار سره دواړه احادیث صحیح دی.

[٧٧١](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ مِنْ جَوْفِ اللَّيْلِ، يَقُولُ: اللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ نُورُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ قَيَّامُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلَكَ الْحَمْدُ أَنْتَ رَبُّ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ فِيهِنَّ، أَنْتَ الْحَقُّ وَقَوْلُكَ الْحَقُّ وَوَعْدُكَ الْحَقُّ وَلِقَاؤُكَ حَقٌّ وَالْجَنَّةُ حَقٌّ وَالنَّارُ حَقٌّ وَالسَّاعَةُ حَقٌّ، اللّٰهُمَّ لَكَ أَسْلَمْتُ وَبِكَ آمَنْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْكَ أَنَبْتُ وَبِكَ خَاصَمْتُ وَإِلَيْكَ حَاكَمْتُ، فَاغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَأَخَّرْتُ وَأَسْرَرْتُ وَأَعْلَنْتُ، أَنْتَ إِلٰهِي لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ".

---

[١]: صحیح مسلم/المسافرین ٢٦ (٧٦٩)، سنن الترمذي/الدعوات ٢٩ (٣٤١٨)، سنن النسائي/قیام اللیل ٩ (١٦٢٠)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٨٠ (١٣٥٥)، (تحفة الأشراف: ٥٧٥١)، موطا امام مالك/القرآن ٨ (٣٤)، مسند احمد (١/٢٩٨، ٣٥٨، ٣٦٦)، سنن الدارمي/الصلاة ١٦٩ (١٥٢٧)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/التهجد ١ (١١٢٠)، والدعوات ١٠ (٦٣١٧)، والتوحید ٨ (٧٣٨٥)، ٢٤ (٧٤٤٢)، ٣٥ (٧٤٩٩) (صحیح)

**ترجمه**: د ابن عباس ﷺ نه روايت دي بيشکه رسول الله ﷺ وو چې کله به پاڅيدلو مانځه ته په څه حصه د شپه کښې نو وئيل به يې: اې الله تالره حمد دی، ته نور د اسمانونو او د ځمکې ئې، او تالره حمد دی، ته ټينګونکی د اسمانونو او د ځمکې ئې، او تالره حمد دی، ته رب د اسمانونو او د ځمکې ئې او د هغه څه چې په دی کښې دي، ته حق ئې او ستا قول حق دی او ستا وعده حقه ده او تاسره ملاقات حق دی او جنت حق دی او جهنم حق دی او قيامت حق دی، اې الله ما تاته غاړه ايښې ده او په تا ايمان لرم او په تا باندې توکل کوم او تاته رجوع کوم، او جګړه کوم ستا دپاره، او تاته فيصله راوړم، ماته بخښنه وکړی د هغې چې ما مخکې کړی دی او وروسته مې کړی دی او پټ مې کړی دی او ښکاره مې کړی دي، ته زما اله ئې، نشته لائق د عبادت مګر ته يې.

[٧٧٢](¹)حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ يَعْنِي ابْنَ الْحَارِثِ، حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مُسْلِمٍ، أَنَّ قَيْسَ بْنَ سَعْدٍ حَدَّثَهُ، قَالَ: حَدَّثَنَا طَاوُسٌ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي التَّهَجُّدِ يَقُولُ بَعْدَ مَا يَقُولُ اللَّهُ أَكْبَرُ، ثُمَّ ذَكَرَ مَعْنَاهُ.

**ترجمه**: د ابن عباس ﷺ نه روايت دي بيشکه رسول الله ﷺ وو چې وئيل ئې په تهجدو کښې: پس د هغې نه چې الله اکبر به ئې ووېلو، بيا ذکر کړه معنی د هغې.

[٧٧٣](²)حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَسَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الْجَبَّارِ، نَحْوَهُ، قَالَ قُتَيْبَةُ: حَدَّثَنَا رِفَاعَةُ بْنُ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ عَمِّ أَبِيهِ مُعَاذِ بْنِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "صَلَّيْتُ خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَطَسَ رِفَاعَةُ لَمْ يَقُلْ قُتَيْبَةُ رِفَاعَةُ، فَقُلْتُ: الْحَمْدُ لِلَّهِ حَمْدًا كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ مُبَارَكًا عَلَيْهِ كَمَا يُحِبُّ رَبُّنَا وَيَرْضَى فَلَمَّا صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْصَرَفَ، فَقَالَ: مَنِ الْمُتَكَلِّمُ فِي الصَّلَاةِ؟" ثُمَّ ذَكَرَ نَحْوَ حَدِيثِ مَالِكٍ وَأَتَمَّ مِنْهُ.

**ترجمه**: معاذ بن رفاعة بن رافع د خپل پلار نه روايت کوی هغه وايي: ما مونځ وکړو وروسته د رسول الله ﷺ نه نو انتوشي وکړو رفاعة. قتيبة نه دی ويلي: چې رفاعه وو. نو ما ووېل: حمد دی الله لره حمد ډير پاک او د برکت والا او چې برکت وراباندې ايخودی شوی وی لکه څنګه چې ئې خوښوی رب زمونږ او هغه پرې راضی کېږي. هرکله چې مونځ وکړو رسول الله ﷺ نو راوګرځيدلو، ويې وئيل: مانځه کښې چا خبرې وکړي؟ بيا ئې ذکر کړو پشان د حديث د مالک او ډير پوره د هغې نه.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ حدثنا قتيبة بن سعيد...... فعطس رفاعة فقلت : الحمد لله حمدا كثيرا طيبا مباركا فيه مباركا عليه الخ ﴾ د دې حديث راوی رفاعه بن رافع دې، هغه د خپل ځان نه په غائب سره تعبير کوی، مباركا فيه، مباركا عليه... د دواړو په مفهوم کښې فرق دا ليکلې شوې دې چه د اول نه مراد زيادت دې او د ثاني نه مراد بقاء ده يعنی داسې حمد چه په هغې کښې زيادت کيږی او هميشه باقي پاتې کيدونکې وی.

¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٥٧٠٢، ٥٧٤٤) (صحيح)

²): سنن الترمذي/الصلاة ١٨٠ (٤٠٤)، سنن النسائي/الافتتاح ٣٦ (٩٣٢)، (تحفة الأشراف: ٣٦٠٦، ٩٨٠) (حسن)

## د مونځ په حالت کښې حمد عاطس

په دې حديث کښې دا دی چه دې صحابی باندې په مونځ کښې پرنجې راغلو چه په هغې باندې هغه په خپلې ژبې سره حمد ادا کړو، سوال دا دې چه مسئله څه ده، عاطس لره په مونځ کښې الحمد لله وئيل پکار دی يا نه، نو د احنافو يو قول دا دې چه په ﴿ الحمد لله ﴾ وئيلو سره به مونځ فاسد شی خو اصح قول د عدم فساد دې بيا وئيلې شوې دی څکه چه مناسب دا ده چه خاموش دې پاتې شی، او وئيلې شوې دی چه په زړه کښې دې حمد کوی ﴿قيل يسكت وقيل يحمد فی نفسه ﴾، او امام ترمذی په دې حديث باندې دا ليکلې دی چه د اکثر علماء کرامو په نزد دا حديث په تطوع باندې محمول دې څکه چه د هغوی په نزد په فرض مونځ کښې د حمد فی نفسه نه د زائد گنجائش نشته، يعنی په ژبې سره د ادا کولو گنجائش نشته خو وړاندې په روايت کښې راځی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿من القائل الكلمة فانه لم يقل باسا ﴾ د دې نه خو په ظاهره معلوميږی چه په فرضو کښې هيڅ حرج نشته، د صاحب منهل رائې هم دا ده، او هغوی د حافظ په حوالې سره نقل کړې دی چه په يو روايت کښې تصريح ده ددې خبرې چه دا د ماښام د مونځ واقعه ده، او د جمهورو مذهب هم هغه دې کوم چه امام ترمذی رحمه الله فرمائيلې دې لهذا ﴿ لم يقل باسا ﴾ تاويل ته محتاج دې، مثلاً دا چه د معصيت نفی ده يا دا چه د عدم علم د وجې نه هغه معذور اوگڼړلې شو.

[٧٧٤](1)حَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "عَطَسَ شَابٌّ مِنَ الْأَنْصَارِ خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ، فَقَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ حَمْدًا كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ حَتَّى يَرْضَى رَبُّنَا وَبَعْدَ مَا يَرْضَى مِنْ أَمْرِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، فَلَمَّا انْصَرَفَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: مَنِ الْقَائِلُ الْكَلِمَةَ؟ قَالَ: فَسَكَتَ الشَّابُّ، ثُمَّ قَالَ: مَنِ الْقَائِلُ الْكَلِمَةَ؟ فَإِنَّهُ لَمْ يَقُلْ بَأْسًا، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَنَا قُلْتُهَا لَمْ أُرِدْ بِهَا إِلَّا خَيْرًا، قَالَ: مَا تَنَاهَتْ دُونَ عَرْشِ الرَّحْمَنِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى".

**ترجمه**: د عبد الله بن عامر بن ربيعة نه روايت دې هغه د خپل پلار نه روايت کوی هغه وئيلی دي: انتوشی وکړو يو ځوان د انصارو نه وروسته د رسول الله ﷺ نه او هغه په مونځ کښې وو، نو هغه ووېل: حمد دی الله لره حمد ډېر پاک او د برکت والا او چې برکت وربانديې ايخودی شوی وی لکه څنگه چې ئې خوښوی رب زمونږ او هغه پرې راضی کېږی د کار د دنيا او د اخرت نه. هرکله چې فارغ شو رسول الله ﷺ ويې وئيل: څوک دی ويونکی کلمو لره؟ هغه ووېل: چوپ شو ځوان، بيا ئې ووېل: څوک دی ويونکی کلمو لره؟ هغه بده خبره نده کړې. نو هغه ووېل ای د الله رسوله! ما ووېلې زما اراده نه وه مگر د خير، هغه وفرمائيل: بندې نه شوې ديخوا د الله د عرش نه چې برکت والا دی او لوی دی.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٠٣٨) (ضعيف)

## باب مَنْ رَأَى الاسْتِفْتَاحَ بِسُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ

### باب دې په بيان د هغه چا کې کښې استفتاح په سبحانک اللهم وبحمدک سره

[۷۷۵]()حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ مُطَهَّرٍ، حَدَّثَنَا جَعْفَرٌ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَلِيٍّ الرِّفَاعِيِّ، عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ النَّاجِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ كَبَّرَ، ثُمَّ يَقُولُ: سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالَى جَدُّكَ وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ، ثُمَّ يَقُولُ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، ثَلَاثًا، ثُمَّ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا، ثَلَاثًا، أَعُوذُ بِاللَّهِ السَّمِيعِ الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ مِنْ هَمْزِهِ وَنَفْخِهِ وَنَفْثِهِ، ثُمَّ يَقْرَأُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا الْحَدِيثُ يَقُولُونَ هُوَ عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَلِيٍّ، عَنِ الْحَسَنِ، مُرْسَلًا الْوَهْمُ مِنْ جَعْفَرٍ.

**ترجمه:** د ابو سعيد الخدرى رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلى دي: وو رسول الله صلى الله عليه وسلم چې کله به پاڅيدلو د شپې الله اکبر به ئې وويلو، بيا به ئې وئيله (پاکي ده تالره اى الله او ثنا ده تالره اى الله او برکت والا دې نوم ستا، او لوى دى شان ستا، او نشته لائق د عبادت بغير د تانه. بيابه ئې وئيل: لا اله الا الله درې ديرش ځل، بيا به ئې وئيل: الله اکبر درې ديرش ځله (زه پناه غواړم په الله باندې چې سميع او عليم دى د شيطان رټلى شوى نه د وسوسې د هغه نه او د پوکې د هغه نه او توک د هغه نه. بيا به ئې قرأت لوستلو. وئيلى دى ابوداود: او دې حديث باره کښې وايي دوى: هغه د على بن على نه نقل دى او هغه د حسن نه مرسل نقل دى، وهم د جعفر دطرف نه دى.

### تخريج حديث او په دې باندې کلام

په دې باب کښې مصنف دې دعا ته کومو ته چه بعض علماء د دعاء تسبيح په نوم سره موسوم کړې ده، ابو سعيد خدرى رضي الله عنه او عائشه رضي الله عنها په روايت باندې مرفوعا نقل دى، په دې دواړو کښې اولنې حديث خو په سنن اربعه کښې موجود دې، او حديث عائشه د سنن ثلاثه روايت دې، امام نسائى ددې تخريج نه دې کړې البته حاکم دا مرفوعا روايت کړې دې، وقال صحيح الاسناد. امام ترمذى رحمه الله په دعا استفتاح کښې صرف هم دا يوه دعا ذکر فرمائيلې ده، د ابوسعيد خدرى او عائشه رضي الله عنها دواړو د روايت نه، ددې دواړو د روايتونو په الفاظو کښې چه کوم فرق دې هغه هم دوى نه دې بيان کړې، هغه فرق دا دې چه د ابو سعيد خدرى رضي الله عنه په روايت کښې ﴿ ولا اله غيرک ﴾ نه پس نور هم زيات دې لکه چه په سنن ابى داود کښې هم دى، او هغه زيادت دا دې ﴿ ثم يقول : الله اکبر کبيرا ثلاثا اعوذ بالله السميع العليم من الشيطان الرجيم من همزه ونفخه ونفثه ﴾ امام ترمذى رحمه الله فرمائى چه بعض اهل علم دا پوره دعا اختيار کړې ده، خو اکثر اهل علم صرف دومره حصه اختيار کړې ده کوم چه په حديث عائشه کښې ده، يعنى ﴿ ولا اله غيرک ﴾ پورې، خو بعض محدثينو چه په هغې کښې امام ابوداود او امام ترمذى هم دې په دې دواړو روايتونو باندې کلام کړې دې، صاحب منهل فرمائى حق دا دې چه دا حديث په متعدد طرق سره مرفوعا روايت شوې دې، اگر چه

[1]: سنن الترمذي/الصلاة ٦٥ (٢٤٢)، سنن النسائي/الافتتاح ١٨ (٩٠١)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١ (٨٠٤)، (تحفة الأشراف: ٤٢٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٥٠، ٦٩)، سنن الدارمي/الصلاة ٣٣ (١٢٧٥) (صحيح)

په بعض طرق کښې دهغه کلام هم دې خو په کثرت طرق سره دضعف انجبار راځی هم دغه شان حضرت په بذل کښې ليکی چه دا دعا د ډيروصحابه کرامونه نقل ده چه د هغې روايات د دارقطنی، بيهقی، سنن سعيد بن منصور نه نقل دی، بعض موقوفا او بعض مرفوعا، هم دغه شان دا دعا په صحيح مسلم کښې هم موجود ده چه د هغې الفاظ دا دی ﴿أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ كَانَ يَجْهَرُ بِهَؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ يَقُولُ سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالَى جَدُّكَ وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ ﴾ او دا مخکښې ذکر شوې چه ابن القيم ددې د ترجيح لس وجوه ذکر کړې دی.

## د باب په اول حديث د مصنف نقد

**قوله:**﴿ قال ابوداود: وهذا الحديث الخ ﴾ يعنی پورته ذکر شوې سند صحيح نه دې، ﴿ عن علی بن علی عن ابی المتوکل الناجی عن ابی سعيد الخدری ﴾ بلکه صحيح دا ده چه علی بن علی دا د حسن بصری نه مرسلا روايت کوی بغير د صحابی د ذکر کولو نه، خو حضرت په بذل کښې دجعفر بن سليمان چه د هغه طرف ته مصنف د وهم نسبت کړې دې د کتب رجال نه د هغه ثقاهت ثابت کړې دې.

[٧٧٦]()حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا طَلْقُ بْنُ غَنَّامٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَرْبٍ الْمُلَائِيُّ، عَنْ بُدَيْلِ بْنِ مَيْسَرَةَ، عَنْ أَبِي الْجَوْزَاءِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَفْتَحَ الصَّلَاةَ، قَالَ: سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالَى جَدُّكَ وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا الْحَدِيثُ لَيْسَ بِالْمَشْهُورِ عَنْ عَبْدِ السَّلَامِ بْنِ حَرْبٍ، لَمْ يَرْوِهِ إِلَّا طَلْقُ بْنُ غَنَّامٍ، وَقَدْ رَوَى قِصَّةَ الصَّلَاةِ عَنْ بُدَيْلٍ جَمَاعَةٌ لَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ شَيْئًا مِنْ هَذَا.

**ترجمه:** د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې هغې ويلي دي: وو رسول الله ﷺ چې کله به ئې مونځ شروع کولو وئيل به يي: (پاکي ده تالره ای الله او ثنا ده تالره ای الله او برکت والا دی نوم ستا، او لوی دی شان ستا، او نشته لائق د عبادت بغير د تانه. وئيلی دی ابوداود: او دا حديث مشهور نه دی د عبد السلام بن حرب نه، نه دی نقل کړی مگر طلق بن غنام او په تحقيق سره نقل کړې ده قصه د مونځ د بديل نه يو جماعت هغوی هيڅ شی نه دی ذکر کړی په هغې کښې ددې نه.

## په حديث ثانی باندې د مصنف نقد او د هغې جواب

**قوله:**﴿ قال ابوداود : وهذا الحديث ليس بالمشهور عن عبدالسلام بن حرب ﴾ امام ابوداود رحمه الله په دې حديث باندې کلام کولو سره فرمائی چه دا حديث شاذ او غريب دې، دا حديث دغه شان د بديل بن ميسره نه روايت کولو کښې عبدالسلام متفرد دې، او خپله د عبدالسلام نه ددې په روايت کولو کښې طلق بن غنام متفرد دې، خو شارحين حديث لکه چه په بذل المجهود کښې دی، فرمائی چه دا دواړه راويان ثقه دی، عبدالرحمن بن حرب د رجال صحيحين نه دې او طلق بن غنام د بخاری او سنن اربعه د راويانو نه دې، او د ثقه زيادت معتبر وی، حافظ فرمائی ﴿ رجال اسناده ثقات ولکن فيه انقطاع ﴾ او دليل د انقطاع دا دې چه

[١]: سنن الترمذي/الصلاة ٦٧ (٢٦٣)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١ (٨٠٤)، (تحفة الأشراف: ١٦٠٤١) (صحيح)

جعفر فريابي دا حديث په كتاب الصلاة كښې روايت كړې دې چه په هغې كښې داسې دي ﴿عن ابي الجوزاء قال ارسلت رسولا الى عائشة يسالها الخ﴾ د دې نه معلوميږي چه د ابو الجوزاء او عائشې ﷺ ترمينځه واسطه ده خو په دې حديث كښې د امام بخاري ﷺ د مذهب مطابق خو د انقطاع خبره كولې شو د امام مسلم او جمهورو د مذهب مطابق نه شو كولې، ځكه چه كيدې شي ابو الجوزاء عائشې ﷺ ته تلو سره د هغې نه بالمشافهه دا حديث اوريدلې وي لاجل امكان اللقاء بسبب وجود المعاصرة بينهما.

## بَابُ السَّكْتَةِ عِنْدَ الِافْتِتَاحِ

### باب دې په بيان د سكتې كې په وخت د افتتاح كې

[٧٧٧]([1])حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ الْحَسَنِ، قَالَ: قَالَ سَمُرَةُ "حَفِظْتُ سَكْتَتَيْنِ فِي الصَّلَاةِ: سَكْتَةً إِذَا كَبَّرَ الْإِمَامُ حَتَّى يَقْرَأَ، وَسَكْتَةً إِذَا فَرَغَ مِنْ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَسُورَةٍ عِنْدَ الرُّكُوعِ"، قَالَ: فَأَنْكَرَ ذَلِكَ عَلَيْهِ عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ، قَالَ: فَكَتَبُوا فِي ذَلِكَ إِلَى الْمَدِينَةِ إِلَى أُبَيٍّ، فَصَدَّقَ سَمُرَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: كَذَا قَالَ حُمَيْدٌ فِي هَذَا الْحَدِيثِ: وَسَكْتَةً إِذَا فَرَغَ مِنَ الْقِرَاءَةِ.

**ترجمه:** وئيلې دې سمرة: ما يادې كړې دې د رسول الله ﷺ نه په مانځه كښې دوه سكتې، يوه سكته داده چې كله به تكبير ووئيلو امام تر قرأت شروع كولو پورې، او بله سكته چې كله فارغ به شو د فاتحة الكتاب نه او د سورت نه د ركوع په وخت كښې. هغه وئيلې دې: نو ددې خبرې انكار وكړو عمران بن حصين، هغه وئيلې دې: دوى وليكل په دې كښې مدينې كښې ابى ته نو هغه د سمرة تصديق وكړو. وئيلې دې ابوداود: دارنګه وئيلې دې حماد په دې حديث كښې: او يوه سكته دا ده چې كله به فارغ شو د قرأت نه.

[٧٧٨]([2])حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ خَلَّادٍ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ أَشْعَثَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ كَانَ يَسْكُتُ سَكْتَتَيْنِ إِذَا اسْتَفْتَحَ وَإِذَا فَرَغَ مِنَ الْقِرَاءَةِ كُلِّهَا، فَذَكَرَ مَعْنَى حَدِيثِ يُونُسَ.

**ترجمه:** د سمرة بن جندب نه روايت دې هغه روايت كوى د نبى ﷺ نه بيشكه هغه وو چې دوه سكتې به ئې كولې: چې كله به ئې شروع د مانځه كوله او چې كله به فارغ شو د ټول قرأت نه. نو ذكريې كړه معنى د حديث د يونس.

[٧٧٩]([3])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنِ الْحَسَنِ، أَنَّ سَمُرَةَ بْنَ جُنْدُبٍ، وَعِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ تَذَاكَرَا، فَحَدَّثَ سَمُرَةُ بْنُ جُنْدُبٍ "أَنَّهُ حَفِظَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَكْتَتَيْنِ: سَكْتَةً إِذَا كَبَّرَ وَسَكْتَةً إِذَا فَرَغَ مِنْ قِرَاءَةِ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ سورة الفاتحة آية ٧"، فَحَفِظَ ذَلِكَ سَمُرَةُ وَأَنْكَرَ عَلَيْهِ عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ، فَكَتَبَا فِي ذَلِكَ إِلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، فَكَانَ فِي كِتَابِهِ إِلَيْهِمَا أَوْ فِي رَدِّهِ عَلَيْهِمَا: أَنَّ سَمُرَةَ قَدْ حَفِظَ.

[1]: سنن الترمذي/الصلاة ٧٤ (٢٥١)، سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ١٢ (٨٤٥)، (تحفة الأشراف: ٤٦٠٩)، مسند احمد (١١/٥، ٢١، ٢٣) (ضعيف)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٥٧٦)، مسند احمد (١٥/٥، ٢٠، ٢١، ٢٢) (ضعيف)

[3]: انظر حديث رقم: (٧٧٧)، (تحفة الأشراف: ٤٥٨٩، ٤٦٠٩) (ضعيف)

**ترجمه:** بيشکه سمرة بن جندب او عمران بن حصين دواړو مذاکره وکړه، حديث بيان کړو سمرة بن جندب، چې بيشکه هغه يادې کړې دی د رسو ل الله ﷺ نه دوه سکتې: يوه دا وه چې کله به ئې تکبير وويلو، او بله سکته دا وه چې کله به فارغ شو د لوستلو د غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ نه، دا خبره سمرة ته ياده وه او عمران انکار وکړو، نو دواړو ليکل وکړه أبي بن کعب ته نو په خط د هغه کښې هغو دواړو ته او يا په جواب د هغه کښې په دواړو باندې، بيشکه سمرة خبره ياده کړې ده.

[٧٨٠]()حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ بِهَذَا، قَالَ: عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، قَالَ: "سَكْتَتَانِ حَفِظْتُهُمَا عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ فِيهِ: قَالَ سَعِيدٌ: قُلْنَا لِقَتَادَةَ: مَا هَاتَانِ السَّكْتَتَانِ؟ قَالَ: إِذَا دَخَلَ فِي صَلَاتِهِ وَإِذَا فَرَغَ مِنَ الْقِرَاءَةِ، ثُمَّ قَالَ بَعْدُ: وَإِذَا قَالَ: غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ سورة الفاتحة آية ٧".

**ترجمه:** د سمرة نه روايت دې هغه وئيلي دي: دوه سکتې دی چې ما يادې کړې دی د رسول الله ﷺ نه، هغه وئيلي دی په هغې کې: چې وئيلي دی سعيد: مونږ وويل قتادة ته: دا دواړه سکتې کومې دې؟ هغه وويل: کله چې به داخل شو مانځه کښې او چې کله به فارغ شو د قرأت نه، بيا هغه وروسته وويل: اوچې کله به ئې وئيله(غير المغضوب عليهم ولاالضالين).

## د مونځ په سکتات کښې روايات او د فقهاء کرامو اختلاف

په رواياتو کښې د څو سکتاتو ذکر راځي چه په هغې کښې سکته عند الافتتاح دصحيحين په رواياتو کښې ثابت ده، او د سنن روايت کوم چه مصنف هم ذکر کړې دې، د سکتتين ثبوت د هغې نه کيږي يعنی يوه سکته عند الافتتاح او يوه بعد الفراغ من القراءة، او بيا ددې دويمې سکتې په رواياتو کښې هم اضطراب دې د بعض نه معلوميږی بعد الفراغ من الفاتحة، او د بعض نه معلوميږی بعد الفراغ من القراءة، يعنی مطلق قرأت چه د هغې مطلب دا دې بعد الفراغ من السورة،او يو احتمال دا هم دې چه دوه سکتات مستقل وی يعنی ﴿ بعد الفراغ من الفاتحة وبعد الفراغ من السورة ﴾ په دې صورت کښې به کل سکتات درې شی، دوه دا او يو عند الافتتاح.

دا خو شو اختلاف من حيث الروايات واما الفقهاء الکرام فهم ايضا مختلفون في ذلک... پس امام مالک خو مطلقا د سکتې انکار فرمائی د هغه په نزد سکتة الافتتاح هم نشته په دې وجه هغه د دعا استفتاح هم قائل نه دی، کما تقدم في الباب السابق، او امام شافعي او امام احمد د سکتتين قائل دې چه په هغې کښې سکته اولی د دعاء افتتاح دپاره ده او سکته ثانيه بعد الفاتحه، خو د سکته ثانيه چه په کوم نوع سره شوافع قائل دی په هغې سره د هغوی مقصد نه حل کيږی څکه چه هغوی خو دا وائی چه دا دويمه د امام سکته ددې دپاره ده چه مقتدی د فاتحې قرأت اوکړې شی خو ددې دپاره سکته طويله پکار ده چه د هغې ثبوت د رواياتو نه نشته د رواياتو نه صرف د سکته لطيفه ثبوت دې، او د احنافو په نزد دا سکته د امام د امين دپاره ده څکه چه زمونږ په نزد امين په پټه دې، او د حنابله په نزد دا

() انظر حديث رقم: (٧٧٧)، (تحفة الأشراف: ٤٥٨٩، ٤٦٠٩) (ضعيف)

سکته د قرأت فاتحه دپاره خو کیدې نه شي ځکه چه هغوی د قرأت خلف الامام في الجهرية قائل نه دی صرف په سریه کښې قائل دی او ددې سکتې تعلق دې د جهری مونځونو سره، او نه دا سکته د هغوی په نزد د امين دپاره ده ځکه چه د هغوی په نزد امين بالجهر دې ﴿فيمكن ان تكون للفصل بين الفاتحة والسورة﴾ په سکتات باندې کلام په فتح الملهم شرح مسلم کښې هم تفصيلا موجود دې.

ځان پوهه کړه چه ددې بحث ضرورت په قرأت خلف الامام کښې راپيښيږی لهذا دا دې محفوظ اوساتلې شي.

[٧٨١](1)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ عُمَارَةَ. ح وحَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ، عَنْ عُمَارَةَ، الْمَعْنَى عَنْ أَبِي زُرْعَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَبَّرَ فِي الصَّلَاةِ سَكَتَ بَيْنَ التَّكْبِيرِ وَالْقِرَاءَةِ، فَقُلْتُ لَهُ: بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي، أَرَأَيْتَ سُكُوتَكَ بَيْنَ التَّكْبِيرِ وَالْقِرَاءَةِ، أَخْبِرْنِي مَا تَقُولُ، قَالَ: اللَّهُمَّ بَاعِدْ بَيْنِي وَبَيْنَ خَطَايَايَ كَمَا بَاعَدْتَ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ، اللَّهُمَّ أَنْقِنِي مِنْ خَطَايَايَ كَالثَّوْبِ الْأَبْيَضِ مِنَ الدَّنَسِ، اللَّهُمَّ اغْسِلْنِي بِالثَّلْجِ وَالْمَاءِ وَالْبَرَدِ".

**ترجمه**: د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلی دی: وو رسول الله ﷺ چې کله به ئې تکبير ويلو په مانځه کښې سکته ئې وکړه په مينځ د تکبير او قرأت کښې. ما وويل هغه ته: زما مور او او پلار دې د تانه قربان شي، ما خبر کړه په چپ کيدلو ستا په مابين د تکبير او قرأت کښې خبر راکړه ماته چې ته څه وايې؟ هغه وفرمائيل: اې الله لرې والی راولی په مابين زما او زما د ګناهونو کښې کې لکه څرنګه چې تا لرې والی راوستی دی په مابين د مشرق او مغرب کښې، ای الله ما پاک کړی د ګناهونو زما نه پشان د سپينې جامې د خېرې نه، ای الله ما وينځې په واوره او اوبو او په ګلئ سره.

**تشريح**: قوله:﴿ حدثنا احمد بن ابى شعيب... اذا كبر فى الصلاة سكت بين التكبير والقراءة.... قال اللهم باعد بينى وبين خطاياى الخ ﴾ دا ده دعاء استفتاح چه د هغې حواله زمونږ په نزد په تير باب کښې ورکړې شوې ده.

**قوله**:﴿ اللهم اغسلنى بالثلج والماء والبرد ﴾ ﴿ برد ﴾ د راء په فتحې سره په معنی د ګلئ

## شرح حديث

دلته يو طالب علمانه سوال دا دې هغه دا چه په کپړه يا بدن صفا کولو کښې چه ګرمې اوبه مفيد او مددګارې وی دومره يخې نه وی لکه چه ظاهره ده، نو بيا دلته واوره او ګلئ ولې خاص طور سره اختيار کړې شوې ده، جواب دا دې چه دلته په حديث کښې د بدن ظاهری خيرو صفائي خو مراد نه ده دلته خو مقصود د ګناهونو او خطايانو ازاله ده چه دا موجب نار دی نو معاصی ته عين د نار درجه ورکولو سره د هغې د ازالې دپاره دا مبردات ذکر کړې شوې دی، کوم چه د ازاله نار دپاره عين مناسب دی، كذا قالوا.

(1): صحيح البخاري/الأذان ٨٩ (٧٤٤)، صحيح مسلم/المساجد ٢٧ (٥٩٨)، سنن النسائي/الافتتاح ١٥ (٨٩٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١ (٨٠٥)، (تحفة الأشراف: ١٤٨٩٦)، مسند احمد (٢/٢٣١، ٤٤٨، ٤٩٤)، سنن الدارمي/الصلاة ٣٦ (١٢٨٠) (صحيح)

## بَابُ مَنْ لَمْ يَرَ الْجَهْرَ بِـ {بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ}

**باب دې په بیان د هغه چا کښې نه وینې جهر په بسم الله الرحمن الرحیم با ندې**

دلته دوه مسئلې دی په مونځ کښې د سورة فاتحه په شروع کښې به ﴿ بسم الله ﴾ لوستلې شی یا نه، او که لوستلې شی نو پټه یا ښکاره؟

### المسئلة الاولى : د فاتحې په اول کښې بسم الله وئيل

د فاتحې په شروع کښې بسمله د امام شافعی رحمه الله په نزد واجب ده بلکه داسې اواییځ چه فرض ده ځکه چه بسم الله د هغه په نزد د فاتحې جزء دې او قرأت فاتحه د هغوی په نزد فرض دې، لهذا ﴿ بسم الله ﴾ لوستل به فرض وی، او د احناف او حنابله په نزد ددې لوستل مستحب دی، او د امام مالک رحمه الله په نزد ددې لوستل مکروه دی. "يعنى فى الفريضة ورخص فى النافلة"

اصل کښې په دې کښې اختلاف دې چه ﴿ بسم الله ﴾ د قران کریم یا د یو سورة جزء دې یا نه؟ د حضرت امام شافعی رحمه الله په دې کښې دوه اقوال دی یو دا چه د هر یو سورت جزء دې، دویم قول دا دې چه صرف د سورة فاتحه جزء دې او د احنافو او حنابله په نزد دا مستقل یو آیت دې د یو سورت جزء نه دې او دا اختلاف ددې بسم الله نه په علاوه کښې دې کوم چه په سورة النمل کښې دې دې باره کښې د ټولو اتفاق دې چه هغه ددې سورة جزء دې.

### المسئله الثانيه : بسم الله په جهر سره وئيل

یعنی جهر بالبسملة د جمهور صحابه کرامو او خلفاء راشدینو (كما قال الترمذى) هم دغه شان جمهور علماء احناف وحنابله او اسحاق بن راهويه د عدم الجهر بالبسملة قائل دی، او هم دې طرف ته دې میلان د امام بخاري، او د یو مختصر شان جماعت لکه عطاء، طاؤس، مجاهد د جهر بالبسمله د استحباب قائل دی او هم د هغوی نه یو امام شافعی رحمه الله هم دې، علامه زیلعی رحمه الله په نصب الرایه کښې دریم مذهب د تخيير بين الجهر والسر لیکلې دې، او دا چه دا د اسحاق بن راهويه او ابن حزم قول دې او دا خبره خو ظاهره ده چه ددې اختلاف تعلق صلاة جهریه سره دې، په سری مونځونو کښې بسمله بالاتفاق سرا ده.

په دې موضوع باندې بعض محدثینو مستقل تصنیفات هم لیکلې دی لکه امام بیهقی رحمه الله او دارقطنی وغیره كما فى نصب الراية، وقد بسط هو الكلام عليه اشد البسط بما لا مزيد عليه.

### الكلام على دلائل الباب

اوس پاتې شوه مسئله د دلائلو پس هغه په کتاب کښې راروان دی پس د باب اولنې روایت کوم چه راروان دې هغه د جمهورو مستدل دې.

[٧٨٢]()حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ كَانُوا يَفْتَتِحُونَ الْقِرَاءَةَ بِـ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ سورة الفاتحة آية ٢".

**ترجمه**: د انس ﷺ نه روایت دي، بیشکه نبي ﷺ او ابوبکر او عمر او عثمان وو چې افتتاح د قرأت به ئې کوله په (الحمد لله رب العالمین) باندې.

**تشریح**: **قوله**: ﴿عن انس رضی الله عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم وابابکر وعمر وعثمان﴾ دا حدیث په صحیحین کښې هم دغه شان راغلې دې او د مسلم په روایت کښې دا زیادت دې ﴿فلم اسمع احدا منهم یقراء ببسم الله الرحمن الرحیم﴾ د مسلم دا روایت په عدم الجهر بالبسمله کښې صریح دې، او د بخاری په حدیث کښې چونکه دا زیادت نشته په دې وجه په دې کښې د عدم الجهر ثبوت په طریق د استنباط دې چه هر کله راوی دا وائی چه رسول الله ﷺ د قرأت ابتداء د ﴿الحمد لله رب العالمین﴾ نه کوله نو ددې نه خپله معلومه شوه چه بسم الله به ئې بالجهر نه لوستله وړاندې په کتاب کښې دویم حدیث د عائشې ﷺ راروان دې چه د هغې الفاظ دا دی ﴿کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یفتح الصلاة بالتکبیر والقراءة ب الحمد لله رب العالمین﴾ ددې نه علاوه د جمهورو سره د عبدالله بن مغفل ﷺ حدیث دې کوم چه د سنن ثلاثه روایت دې ﴿عن عبدالله بن مغفل قال سمعنی ابی وانا فی الصلاة اقول بسم الله الرحمن الرحیم فقال لی یا بنی محدث﴾ د ابن عبدالله نوم دلته په روایت کښې مذکور نه دې د هغه نوم یزید دې. کما فی الطبرانی ومسند ابی حنیفة.

او امام ابوداود د جهر بالبسمله په باره کښې هیڅ صریح حدیث نه دې ذکر کړې، البته امام ترمذی د جهر او عدم جهر دواړو دپاره جدا جدا ابواب قائم کړي دی، د جهر په سلسله کښې هغه د ابن عباس ﷺ حدیث ذکر کړې دې ﴿قال کان النبی صلی الله علیه وسلم یفتتح صلاته ببسم الله الرحمن الرحیم﴾ دا حدیث اول خو صراحة په جهر باندې دلالت نه کوی، بله دا چه دا روایت ضعیف دې په دې کښې اسماعیل بن حماد راوی ضعیف دې او ابو خالد مجهول دې، او یو بل حدیث دې د شوافعو سره، د نعیم بن عبدالله المجمر چه د هغې تخریج امام نسائی او ابن خزیمه او ابن حبان کړې دې ﴿صلیت وراء ابی هریرة فقراء بسم الله الرحمن الرحیم﴾ دا حدیث هم اول خو صراحة په جهر باندې دلالت نه کوی پس علامه سندهی لیکی: ﴿لا یدل علی الجهر بل علی نفس القراءة﴾ او علامه زیلعی فرمائی: الحدیث معلل بثلاثة علل... د علل ثلاثه تفصیل په امانی الاحبار کښې کتلې کیدې شی.

او امام دارقطنی خو په یو موقع باندې ددې خبرې اعتراف کړې دې، پس په بذل المجهود کښې (ج ٢ ص ٥٣) کښې دی، علامه عینی فرمائی چه بعض حضراتو د دارقطنی سره په دې خبره باندې استحلاف کړې دې چه ددې باره کښې یو حدیث شته یا نه نو په دې باندې باندې هغه اوفرمائیل: لیس فیه حدیث صحیح.

---

[١]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٨٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأذان ٨٩ (٧٤٣)، صحيح مسلم/الصلاة ١٣ (٣٩٩)، سنن الترمذي/الصلاة ٦٨ (٢٤٦)، سنن النسائي/الافتتاح ٢٠ (٩٠٣)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٤ (٨١٣)، موطا امام مالك/الصلاة ٦ (٣٠)، مسند احمد (١٠١/٣، ١١١، ١١٤، ١٨٣، ٢٧٣)، سنن الدارمي/الصلاة ٣٤ (١٢٧٦) (صحيح)

[٧٨٣]( ) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ حُسَيْنٍ الْمُعَلِّمِ، عَنْ بُدَيْلِ بْنِ مَيْسَرَةَ، عَنْ أَبِي الْجَوْزَاءِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْتَتِحُ الصَّلَاةَ بِالتَّكْبِيرِ وَالْقِرَاءَةِ بِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ سورة الفاتحة آية ٢، وَكَانَ إِذَا رَكَعَ لَمْ يُشْخِصْ رَأْسَهُ وَلَمْ يُصَوِّبْهُ وَلَكِنْ بَيْنَ ذَلِكَ، وَكَانَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ لَمْ يَسْجُدْ حَتَّى يَسْتَوِيَ قَائِمًا، وَكَانَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ لَمْ يَسْجُدْ حَتَّى يَسْتَوِيَ قَاعِدًا، وَكَانَ يَقُولُ فِي كُلِّ رَكْعَتَيْنِ التَّحِيَّاتُ، وَكَانَ إِذَا جَلَسَ يَفْرِشُ رِجْلَهُ الْيُسْرَى وَيَنْصِبُ رِجْلَهُ الْيُمْنَى، وَكَانَ يَنْهَى عَنْ عَقِبِ الشَّيْطَانِ وَعَنْ فَرْشَةِ السَّبُعِ، وَكَانَ يَخْتِمُ الصَّلَاةَ بِالتَّسْلِيمِ".

**ترجمه**: د عائشې رضي الله عنها نه روايت دې هغې ويلې دې: وو رسول الله ﷺ چې افتتاح د مونځ به ئې كوله په تكبير سره، او افتتاح د قرأت به ئې كوله په (الحمد لله رب العالمين) سره. او وو چې كله به ئې ركوع كوله سر به ئې نه خكته كولو او نه به ئې نيغ نيولو لكن درميانه به وو، او وو چې كله به ئې سر د ركوع نه اوچت كړو نو سجده به ئې نه كوله تردې چې برابر شي په ولاړه، او وو چې وئيل به ئې په هر دوه ركعاتونو كښې: التحيات، او وو چې كله به كيناستلو نو خوروله به ئې خپله چپه خپه او ودروله به ئې ښي خپه، او وو چې منع به ئې كوله پشان د كيناستلو د شيطان نه، او د لاسونو د خورولو پشان د درنده ځناور نه، او وو چې مونځ ئې ختمولو په سلام سره.

**تشريح**: **قوله**:﴿ وكان ينهى عن عقب الشيطان وعن فرشه السبع ﴾... د عقب الشيطان نه مراد اقعاء ده چه دهغې باب دخو ابوابو نه روستو مستقل راروان دې ﴿باب الاقعاء بين السجدتين﴾ په دې باندې به كلام هم هلته راشي.

[٧٨٤]( ) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ، عَنِ الْمُخْتَارِ بْنِ فُلْفُلٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أُنْزِلَتْ عَلَيَّ آنِفًا سُورَةٌ، فَقَرَأَ: بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ سورة الكوثر آية ١ حَتَّى خَتَمَهَا، قَالَ: هَلْ تَدْرُونَ مَا الْكَوْثَرُ؟ قَالُوا: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، قَالَ: فَإِنَّهُ نَهْرٌ وَعَدَنِيهِ رَبِّي فِي الْجَنَّةِ".

**ترجمه**: مختار بن فلفل وايي چې ما اوريدلى دى انس بن مالك نه چې **هغه** به وئيل: وئيلى دى رسول الله ﷺ: نازل شو په ما باندې اوس يو سورت نو ويې لوستلو: بسم الله الرحمن الرحيم انا اعطيناكَ الكوثر تردې چې ختم ئې كړو. **هغه** وويل: ايا تاسو پوهېږئ چې كوثر څه شي دى؟ هغوى وويل: الله او د **هغه** رسول ښه پوهېږي، **هغه** وويل: بيشكه **هغه** يو نهر دى چې ماسره زما رب د هغې وعده كړې ده په جنت كښې.

## د حديث د ترجمة الباب سره مناسبت

**قوله**:﴿ قال رسول الله صلى الله عليه وسلم انزلت على انفا سورة الخ ﴾ دا حديث په ظاهره د ترجمة الباب سره مناسبت نشته، په دې كښې په جهر يا عدم جهر باندې هيڅ قسم دلالت نه

[1]: صحيح مسلم/الصلاة ٤٦ (٤٩٨)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٤ (٨١٢)، (تحفة الأشراف: ١٦٠٤٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١/٦، ١١٠، ١٧١، ١٩٤، ٢٨١)، سنن الدارمي/الصلاة ٣١ (١٢٧٢) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الصلاة ١٤ (٤٠٠)، الفضائل ٩ (٢٣٠٤)، سنن النسائي/الافتتاح ٢١ (٩٠٥)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٥)، مسند احمد (١٠٢/٣، ٢٨١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/تفسير الكوثر (٣٣٥٩)، ويأتي عند المؤلف في السنة برقم: (٤٧٤٧) (حسن)

شي بيا موندلې، البته په تکلف سره په دې کښې دلالت راوتلې شي هغه دا چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په ما باندې يو سورت نازل شوې دې او بيا د هغې په تشريح کښې رسول الله ﷺ د بسم الله سره سورة ﴿انا اعطيناک الکوثر﴾ اولوستلو، نو ګويا وئيلې کيدې شي چه کله د سورة په مصداق کښې بسم الله شامل کړې شي نو بسم الله د سورة جزء شو او دا مسئله د جهر او عدم جهر په دې باندې متفرع ده، خو په دې صورت کښې به ددې مقتضى دا وى چه ﴿بسم الله﴾ جهرا پکار ده کوم چه د ترجمة الباب خلاف دې، نو ددې توجيه دا ده ﴿باب من لم ير الجهر ببسم الله الرحمن الرحيم ومن راى الجهر بها﴾ ځکه چه بعض وخت د احد الضدين په ذکر باندې اکتفاء کوى.

[۷۸۵]([1])حَدَّثَنَا قَطَنُ بْنُ نُسَيْرٍ، حَدَّثَنَا جَعْفَرٌ، حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ الْأَعْرَجُ الْمَكِّيُّ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، وَذَكَرَ الْإِفْكَ، قَالَتْ: جَلَسَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَشَفَ عَنْ وَجْهِهِ، وَقَالَ: "أَعُوذُ بِالسَّمِيعِ الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوا بِالْإِفْكِ عُصْبَةٌ مِنْكُمْ سورة النور آية 11 الْآيَةَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ، قَدْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ جَمَاعَةٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، لَمْ يَذْكُرُوا هَذَا الْكَلَامَ عَلَى هَذَا الشَّرْحِ، وَأَخَافُ أَنْ يَكُونَ أَمْرُ الِاسْتِعَاذَةِ مِنْ كَلَامِ حُمَيْدٍ.

**ترجمه:** ابن شهاب د عروة نه روايت دې کړې دى هغه د عائشې نه، او ذکر ئې کړو افک، هغې ووئيل: کيناستلو رسول الله ﷺ او خپل مخ ئې ښکاره کړو، او ويې وئيل: (أَعُوذُ بِالسَّمِيعِ الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوا بِالْإِفْكِ عُصْبَةٌ مِنْكُمْ) الآية، وئيلى دى ابوداود: او دا منکر حديث دى، يو جماعت دا حديث د زهرى نه ذکر کړى دى او دا کلام ئې نه دى ذکر کړى په دې طريقې سره، او زه ويريږم چې وې به امر د استعاذى د کلام د حميد.

**تشريح: قوله:** ﴿وقال : اعوذ بالسميع العليم من الشيطان الرجيم ان اللذين جاؤوا بالافک عصبة منکم﴾ (الاية) دا د حديث الافک يوه ټکړه ده چه د هغې تفصيل د حديث په نورو کتابونو صحيحين او ترمذى وغيره کښې دې، قصه ډيره مشهوره ده، د واقعې د راپيښيدو نه پس چه د رسول الله ﷺ د کورنۍ دپاره کوم زبردست امتحان وو، د تهمت صفائى او د عائشې رضي الله عنها د براءت په باره کښې چه کوم آيتونه نازل شوې دى په دې حديث کښې د هغې ذکر دې، هغه دا چه د براءت په سلسله کښې چه کله په رسول الله ﷺ باندې وحى نازله شوه او رسول الله ﷺ د خپل مخ مبارک نه نقاب لرې کړو کوم چه به هغه د وحى د نزول په وخت په مخ مبارک باندې اچولو، نو رسول الله ﷺ دغه آيتونه د تعوذ نه روستو اولوستل، پس مصنف صرف دومره ذکر کړو.

## د حديث د ترجمة الباب سره مناسبت

د دې حديث د ترجمة الباب سره مطابقت په ظاهره هيڅ نه دې، يو مطابقت د دقيق استنباط په طور کيدې شى هغه دا چه په دې موقع باندې رسول الله ﷺ د آيتونو په شروع کښې بسم الله او نه لوستله، که د بسم الله لوستل د سورتونو په ابتداء کښې صرف د تبرک دپاره وې نو رسول الله ﷺ به دلته هم هغه لوستلې وې، معلومه شوه چه د سورتونو په شروع کښې د

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٤٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/١٩٧) (ضعيف شاذ)

بسم الله د جزء کیدو په حیثیت سره لوستلې شي او جر بالبسمله والاختلاف هم په دې باندې متفرع دې (کذا فی البذل) دا مناسبت په راښکلو دې کيني دا هم وئیلې شي چه د سورتونو په شروع کښې بسم الله د فصل دپاره ده، او دلته د فصل حاجت نه وو، بهرحال پو لحاظ سره د حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت پیدا شو.

## د مصنف د کلام شرح

**قوله:**﴿ قال ابوداود وهذا حدیث منکر ﴾ د مصنف غرض د احادیث الافک په ټولو احادیثو باندې نقد کول نه دی هغه خو مشهور او متفق علیه حدیث دې، صرف هغه ټکړه چه کومه دلته مذکور ده په هغې باندې اشکال ذکر کوی ځکه چه په روایت مشهوره کښې داسې نه ده چه هغه اولا تعوذ اولوستلو د هغې نه روستو ئې آیتونه اولوستل بلکه صرف دومره دی ﴿ وانزل الله تعالی ان الذین جائوا بالافک الایة ﴾

## بَابُ مَنْ جَهَرَ بِهَا

### باب دې په بیان د هغه چاکې چې جهرېې کړی دی په هغې سره

دا د جهر بالبسمله باب دې په دې کښې مصنف څه صریح حدیث نه دې ذکر کړې، مثلا د ابن عباس هغه حدیث دکوم چه امام ترمذی رحمه الله تخریج کړې دې چه د هغې حواله مونږ سره په تیر باب کښې راغلې دې، چونکه هغه حدیث ډیر ضعیف دې، د مصنف د شرط مطابق په ظاهره کښې نه وو په دې وجه ئې هغه دلته نه دې راوړې.

[٧٨٦]([1]) أَخْبَرَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ عَوْفٍ، عَنْ يَزِيدَ الْفَارِسِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ، قَالَ: قُلْتُ لِعُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ مَا حَمَلَكُمْ أَنْ عَمَدْتُمْ إِلَى بَرَاءَةَ وَهِيَ مِنَ الْمِئِينَ وَإِلَى الْأَنْفَالِ وَهِيَ مِنَ الْمَثَانِي، فَجَعَلْتُمُوهُمَا فِي السَّبْعِ الطِّوَالِ وَلَمْ تَكْتُبُوا بَيْنَهُمَا سَطْرَ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ؟ قَالَ عُثْمَانُ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّا تَنَزَّلُ عَلَيْهِ الْآيَاتُ فَيَدْعُو بَعْضَ مَنْ كَانَ يَكْتُبُ لَهُ، وَيَقُولُ لَهُ: ضَعْ هَذِهِ الْآيَةَ فِي السُّورَةِ الَّتِي يُذْكَرُ فِيهَا كَذَا وَكَذَا، وَتَنْزِلُ عَلَيْهِ الْآيَةُ وَالْآيَتَانِ، فَيَقُولُ مِثْلَ ذَلِكَ، وَكَانَتِ الْأَنْفَالُ مِنْ أَوَّلِ مَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ بِالْمَدِينَةِ، وَكَانَتْ بَرَاءَةُ مِنْ آخِرِ مَا نَزَلَ مِنَ الْقُرْآنِ، وَكَانَتْ قِصَّتُهَا شَبِيهَةً بِقِصَّتِهَا فَظَنَنْتُ أَنَّهَا مِنْهَا، فَمِنْ هُنَاكَ وَضَعْتُهَا فِي السَّبْعِ الطِّوَالِ وَلَمْ أَكْتُبْ بَيْنَهُمَا سَطْرَ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ".

**ترجمه:** یزید الفارسی وئیلی دی، چې ما اوریدلی دی د ابن عباس نه، هغه وایې چې ما وویل عثمان بن عفان ته: تاسو باندې څه باعث وو چې قصد مو وکړو سورة براءة ته او هغه د مئینی نه دی، او انفال ته او هغه د مثانیو نه دی تاسو هغه دواړه وګرځول سبع طوالو نه او تاسو ونه لیکه د دواړو په مینځ کښې کرخه د بسم الله الرحمن الرحیم، عثمان ووئیل وو نبی ﷺ د هغې نه چې نازلیدل به په هغه باندې ایتونه نو راغوښتلو به ئې بعضې هغه کسان چې لیکل به ئې کول، او فرمائیل به ئې هغه ته: دا ایت کیده په هغه سورت کښې چې داسې داسې پکښې ذکر دې او نازلیدل به په هغه باندې یو ایت او دوه ایتونه نو هغه به فرمائیل په مثل د هغې، او وو انفال د اولنو هغه سورتونو نه چې په هغه نازل شوی وو په

[1]: سنن الترمذي/تفسير القرآن ١٠ (٣٠٨٦)، (تحفة الأشراف: ٩٨١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٥٧، ٦٩) (ضعيف)

مدینه کښې او وو سورة براءة د اخیرنو هغه نو چې نازل شوي دي د قرآن نه، او وه قصه د هغې مشابه د قصې د هغې سره نو ما گمان وکړو چې دا د هغې نه جزء دی، ددې وجې نه ما هغه کیخودله په سبع طوالو کښې او ما ونه لیکله کرخه د بسم الله الرحمن الرحیم.

## په حدیث کښې مذکور سوال او جواب او د هر دواړو تشریح

**قوله:** ﴿ سمعت ابن عباس قال: قلت لعثمان بن عفان الخ ﴾ تاسو ته معلومه ده چه د سورة براءة په شروع کښې ﴿ بسم الله ﴾ لیکلې شوې نه ده او د هر سورة په شروع کښې ﴿ بسم الله ﴾ لیکلې شوې ده لهذا یو اشکال خو دا شو او دا خبره معلومه ده چه د سورتونو ترتیب داسې دې (خصوصا په اوائل قران کښې) لوئې سورتونه مقدم او واړه مؤخر دی، پس د ټولو نه لوئې سورة سورة البقره دې، هغه په ترتیب کښې د ټولو نه اول دې د هغې نه روستو آل عمران وهکذا، په سورة الانفال او براءة کښې دا اشکال دې چه په دې کښې وړوکې سورة سره د وړوکوالی نه مقدم دې او دویم یعنی سورة براءة سره د لوئې والی نه مؤخر دې، اولنې او دویم اشکال دواړه ترجمان القران سیدنا ابن عباس رضی الله عنه د جامع القران عثمان رضی الله عنه مخې ته کیخودلو چه ددې څه وجه ده؟

په سوال او د هغې په جواب دواړو باندې د پوهیدلو دپاره ضروری ده چه اول په دې باندې ځان پوهه کړې شی چه علماء او قاریانو د قران کریم د سورتونو د وړوکوالی او لوئې والی په اعتبار سره درې حصې کړې دی پس د شروع حصه چه په هغې کښې اته سورتونه دی، د سورة البقره نه تر سورة البراءة پورې دې ته سبع طوال[1] بیا ددې نه روستو یولس سورتونه داسې دی کوم چه په سلو آیتونو یا ددې نه په زیات باندې مشتمل دی هغې ته ذوات المئین وئیلې شی، د هغې نه روستو شل سورتونه داسې دی چه د هغې آیتونه د سلو نه کم دی هغې ته مثانی وئیلې شی، او د هغې نه پس اخری شپږ اویا سورتونو ته مفصل وئیلې شی، ددې تمهید نه روستو اوس په اشکال باندې ځان پوهه کړئ، هغه دا چه ددې ترتیب تقاضه دا وه چه په سبع طوال کښې په ځائې د انفال صرف سورة براءة کیخودلې شوې وې ځکه چه د سورة براءة نه پس بلکه وړاندې ټلو سره د مئین د سلسله ختمیدو نه پس د کوم ځائې نه چه مثانی شروع کیږی هلته کیخودلې شی ځکه چه د سورة براءة آیتونه یو سل او دیرش او د سورة انفال آیتونه صرف پنځه اویا دی، ددې شمار خو په مئین کښې هم کیدل نه دی پکار پاتې لا دا چه په سبع طوال کښې، د جواب حاصل دا دې چه ستا اشکال مبنی دې په دې باندې چه ستا دا خیال دې چه انفال او براءة دوه مستقل سورتونه دی، حال دا چه دا یقینی نه ده ځکه چه نه خو رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته د براءة په شروع کښې د ﴿ بسم الله ﴾ لیکلو حکم فرمائیلې وو او چه د هغې نه مونږ په دې باندې پوهه شوی وې چه دا مستقل سورة دې، او دا ئې ارشاد اوفرمائیلو چه براءة د انفال جزء دې، او چونکه مضمون د دواړو

---

[1] سره ددې چه اته دی خو سبع طوال ورته په دې وجه وائی د اخری دوه سورتونو یعنی انفال او براءة دوه کیدل متیقن نه دی ۱۲

سورتونو يو شان دي په دې وجه مونږ دواړه متصلا يوځائې کښې بغير د بسم الله نه اوليکلو، اوس دا چه ددې برعکس ئې ولې اونکړل انفال به ئې د وړوکوالی د وجې نه مؤخر کړې وې او براءة به ئې د لوئې والی د وجې نه مقدم کړې وې نو هغه په دې وجه چه انفال په نزول کښې په براءة باندې مقدم وو په دې وجه په وضع کښې هم هغه مقدم کړې شو، ددې تقرير نه د دواړو اشکالاتو جواب راوتلو، د ﴿ بسم الله ﴾ نه ليکلو جواب دا چه زمونږ ددې خبرې يقين هم نه وو چه د براءة نه مستقل سورة شروع کيږي، او احتمال ثانی يعنی د دوه سوتونو د مستقل کيدو تقاضه اګر چه دا وه چه براءة مقدم کړې شوې وې په انفال باندې، خو د ترتيب نزول رعايت مانع شو د داسې کولو نه، والله تعالی اعلم، شارحين حديث او مفسرينو د خپل خپل ذوق مطابق اشکال او جوابات ليکلې دی، حضرت اقدس تهانوی رحمه الله هم په بيان القرآن کښې داسې ليکلې دی، مونږ په هغې کښې د مختصر نه مختصر تقرير لره اختيار کړو.

**قوله:** ﴿ ضع هذه الاية في السورة التي يذكر فيها كذا وكذا الخ ﴾ يعنی کوم آيتونه چه به په رسول الله ﷺ باندې نازليدل، رسول الله ﷺ به خپل کاتبين وحی ته فرمائيل چه دا آيت په دې سورة کښې اوليکه چه په هغې کښې دا مضمون دې، او دا آيت په دې سورة کښې اوليکه چه په هغې کښې دا مضمون دې، ددې نه علماء کرامو دا ثابته کړې ده چه د آيتونو ترتيب توقيفی دې يعنی د شارع د طرف نه متعين دې په خلاف د ترتيب سور چه هغه د صحابه کرامو اجتهادی عمل دې.

[٧٨٧]()حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ يَعْنِي ابْنَ مُعَاوِيَةَ، أَخْبَرَنَا عَوْفٌ الْأَعْرَابِيُّ، عَنْ يَزِيدَ الْفَارِسِيِّ، حَدَّثَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ، بِمَعْنَاهُ، قَالَ فِيهِ: فَقُبِضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يُبَيِّنْ لَنَا أَنَّهَا مِنْهَا، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: قَالَ الشَّعْبِيُّ، وَأَبُو مَالِكٍ، وَقَتَادَةُ، وَثَابِتُ بْنُ عُمَارَةَ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكْتُبْ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ حَتَّى نَزَلَتْ سُورَةُ النَّمْلِ هَذَا مَعْنَاهُ.

**ترجمه:** حديث بيان کړې دې مونږ ته ابن عباس په معنی د هغې سره، هغه ﭘﮑﮯ ويلی دي: وفات شو رسول الله ﷺ او بيان ئې نه کړو مونږ ته چې دا د هغې نه دی. وئيلی دی ابوداود: وئيلی دی شعبی او ابو مالک او قتادة او ثابت بن عمارة: بيشکه نبی ﷺ نه وه ليکلی بسم الله الرحمن الرحيم تردې چې نازل شو سورة النمل، دا معنی د دې ده.

## شرح حديث مع اشکال او جواب

**قوله:** ﴿ ان النبی صلی الله عليه وسلم لم يکتب بسم الله الرحمن الرحيم حتی نزلت سورة النمل ﴾ يعنی رسول الله ﷺ به د سورتونو په شروع کښې ﴿ بسم الله ﴾ نه ليکله تردې چه سورة نمل پرې نازل شو د هغې نه روستو ئې د سورتونو په شروع کښې بسم الله ليکل شروع کړل، په سورة نمل کښې د سليمان عليه السلام د هغه خط ذکر دې کوم چه هغه د بلقيس په نوم باندې ليکلې وو چه د هغې په شروع ﴿ بسم الله الرحمن الرحيم ﴾ وو.

[١]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٨١٩) (ضعيف)

دا خو ددې حديث معنى شوه خو په دې باندې دا اشكال دې چه د دې نه روستو راتلونكى حديث ابن عباس رضي الله عنهما كښې دى. ﴿ كان النبي صلى الله عليه وسلم لا يعرف فصل السورة حتى تنزل عليه بسم الله الرحمن الرحيم ﴾ ځكه چه ددې نه معلوميږى چه په رسول الله ﷺ باندې به د هر سورة په شروع كښې ﴿ بسم الله ﴾ نازليده، او هغه ته به د يو سورة د شروع كيدو علم د بسم الله د نزول نه كيدو چه اوس ددې ځائې نه سورة شروع كيږى.

جواب د دې اشكال جواب دا دې چه په دې اول حديث كښې د كتابت بسمله نفى ده، د نزول نفى پكښې نشته، كيدې شى چه بسم الله خو به نازليده خو رسول الله ﷺ به ئې په شروع كښې د ليكلو حكم نه كولو، او د سورة نمل د نزول نه روستو به ئې د ليكلو حكم كولو. او يو بل جواب دا دې چه د ﴿ لم يكتب ﴾ نه مراد ﴿ في اوائل السور ﴾ نه دې، ﴿ بل في الكتب والرسائل ﴾ يعنى د خطونو او ليک په شروع كښې به هغه د سورة النمل د نزول نه مخكښې بسم الله نه ليكله، او ددې سورة د نازليدو نه پس به رسول الله ﷺ د خطونو په شروع كښې بسم الله ليكله.

[۷۸۸] ([۱])حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَابْنُ السَّرْحِ، وَأَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرٍو، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، قَالَ قُتَيْبَةُ فِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَعْرِفُ فَصْلَ السُّورَةِ حَتَّى تَنَزَّلَ عَلَيْهِ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ" ،وَهَذَا لَفْظُ ابْنِ السَّرْحِ.

**ترجمه:** د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې هغه وئيلى دې: وو نبى ﷺ چې نه ئې پيژندلو فصل د سورة تردې چې نازل شو په هغه باندې بسم الله الرحمن الرحيم. اودا الفاظ د ابن السرح دى.

## بَابُ تَخْفِيفِ الصَّلَاةِ لِلْأَمْرِ يَحْدُثُ

### باب دې په بيان د تخفيف د مانځه كې د وجې د يو كار نه چې پيښ شي

يعنى د يو عارض د راپيښيدو په وجه باندې مونځ مختصر كول

[۷۸۹] ([۲])حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ، وَبِشْرُ بْنُ بَكْرٍ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنِّي لَأَقُومُ إِلَى الصَّلَاةِ وَأَنَا أُرِيدُ أَنْ أُطَوِّلَ فِيهَا، فَأَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ فَأَتَجَوَّزُ كَرَاهِيَةَ أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمِّهِ".

**ترجمه:** د عبد الله بن ابى قتادة نه روايت دې هغه روايت كوى د خپل پلار نه هغه وئيلى دى چې فرمائيلى دى رسول الله ﷺ: بيشكه زه پاځيږم مانځه ته او زما اراده دا وى چې اوږدېى وكړم نو زه واورم ژړا د ماشوم نو زه تخفيف وكړم په هغې كښې، د وجې د بد ګڼړلو نه چې په امت باندې سختى وكړم.

**تشريح: قوله:**﴿ قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لانى لاقوم الى الصلاة وانا اريد ان اطول فيها فاسمع بكاء الصبى فاتجوز الخ ﴾ رسول الله ﷺ فرمائى چه ډير كرته زه د مونځ دپاره اودريږم

[۱]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۵۸۴، ۱۸۶۷۸) (صحيح)

[۲]: صحيح البخاري/الأذان ۶۵ (۷۰۷)، ۱۶۳ (۸۶۸)، سنن النسائي/الإمامة ۳۵ (۸۲۶)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۴۹ (۹۹۱)، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۱۰)، وقد أخرجه: (حم ۵/۳۰۵) (صحيح)

او د مخکښي نه مې اراده د مونځ د اوږدولو وی خو د يو ماشوم د ژړا اواز واورم (چه د هغه مور په مونځ کښې شريکه وی) په دې وجه مونځ مختصر کړم چه د ماشوم مور ته به تکليف وی.

## (د اطالة الركوع للجائي مسئله)

د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت ظاهر دې، ددې حديث نه بعض علماء کرامو په يوه بله مسئله باندې استدلال کړې دې يعنى اطالة الركوع للجائي، پس خطابى فرمائى چه ددې نه معلومه شوه چه امام ته که د رکوع په حالت کښې دا محسوس شي چه يو سړې مونځ ته د شرکت دپاره راروان دې نو امام د هغه د ادراک رکعت دپاره رکوع اوږدولې شي، ځکه چه د يو دنيوی مصلحت دپاره مونځ مختصر کيدې شي نو د دينى مصلحت دپاره هغه ولې نه شي اوږدولې، مسئله مختلف فيه ده، علامه عينى رحمه الله فرمائى چه بعض علماء لکه شعبى، حسن بصرى او عبدالرحمن بن ابى ليلى دې ته جائز وئيلې دى او هم دا رائې د امام احمد، اسحاق او ابوثور هم ده، خو د يو قيد سره چه ﴿ ما لم يشق على اصحابه ﴾ او د جمهور علماء ثلاثه په نزد داسې کول جائز نه دى،[1] د شوافعو په دې کښې دوه اقوال دى ﴿ قال الحافظ عند الشافعية فيه اختلاف وتفصيل ﴾ د جمهورو د طرف نه د خطابى د استدلال جواب دا دې چه دا استدلال بې محل او قياس مع الفارق دې يعنى تطويل لره په تخفيف باندې قياس کول، د تخفيف ائمه د مخکښې نه مامور او مکلف دى، نو بيا تطويل په دې باندې څنګه قياس کيدې شي.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي نُقْصَانِ الصَّلَاةِ

### باب دې په بيان د هغې کښې چې راغلى دى په بيان د نقصان د مانځه کښې

[٧٩٦] ([2]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ بَكْرٍ يَعْنِي ابْنَ مُضَرَ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْحَكَمِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَنَمَةَ الْمُزَنِيِّ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ الرَّجُلَ لَيَنْصَرِفُ وَمَا كُتِبَ لَهُ إِلَّا عُشْرُ صَلَاتِهِ تُسْعُهَا ثُمْنُهَا سُبْعُهَا سُدُسُهَا خُمْسُهَا رُبْعُهَا ثُلُثُهَا نِصْفُهَا".

**ترجمه:** د عمار بن ياسر نه روايت دې هغه وئيلى دى چې ما اوريدلى دى د رسول الله ﷺ نه هغه به وئيل: بيشکه سړى فارغيږى او نه وې ليکل شوى د هغه لپاره مګر لسمه حصه د مونځ، نهمه حصه، اتمه حصه، اومه حصه، شپږمه حصه، پنځمه حصه، څلورمه حصه، دريمه حصه، نيم د هغې.

---

[1] په بذل کښې ليکى چه زمونږ په نزد د امام اطالة الركوع کول که صرف د ادراک رکعت دپاره وی نه د الله د الله پاک د تقرب دپاره نو دا مکروه تحريمى دې او ډير د خطرى ځيز دې خو ددې په وجه باندې به کافر نه وى ځکه چه ددې اطالة د هغه غرض د غير الله عبادت نه دې، او يو قول دا دې چه که د راتلونکى سره د امام پيژنګلو نه وى نو بيا هيڅ باک نشته، خو اصح دا ده چه په دې صورت کښې هم ددې ترک اولى دې او هغه چه وړاندې د عبدالله بن اوفى په روايت کښې راغى ﴿ ان النبي صلي الله عليه وسلم كان يقوم في الركعة الاولي من صلاة الظهر حتي لا يسمع وقع قدم ﴾ د دې جواب دا دې چه ددې په سند کښې يو راوى مجهول دې او يا مؤول دې چه دلته تطويل صلاة مراد نه دې بلکه د مونځ په شروع کولو کښې انتظار مراد دې ۱۲)

[2] ): سنن النسائي الكبري: كتاب السهو ١٣٠ (٦١٢)، (تحفة الأشراف: ١٠٣٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢١/٤) (حسن)

**تشریح: قوله:** ﴿ عن عمار بن یاسر قال ﴾ د حدیث مطلب واضح دې چه د خشوع او خضوع د کمی او زیادت په اعتبار سره د مونځ په ثواب کښې کمې او زیاتې کیږی، په خشوع او خضوع کښې چه څومره کمال وی په ثواب کښې به هم دومره اضافه وی، او په دې کښې چه څومره نقصان وی دومره به په ثواب کښې هم کمې راځی، پس د بعض دپاره عشر ثواب لیکلې شی او د بعض دپاره د ثواب نهمه حصه او د چا دپاره د ثواب اتمه حصه او د چا دپاره اوومه حصه. وهکذا.

## د خشوع فی الصلاة په حکم کښې اختلاف علماء

زه وائم چه ددې حدیث نه معلومیږی چه په مونځ کښې خشوع فرض نه ده او د کمال سبب ضرور دې، او که فرض وې نو بیا مونځ صحیح کیدل هم نه وو پکار، امام بخاری رحمه الله هم باب الخشوع فی الصلاة ترجمه قائم کړې ده، حافظ فرمائی چه امام نووی رحمه الله په دې باندې اجماع نقل کړې ده، او محب طبری ددې توجیه دا کړې ده چه د هغه مراد دا دې چه فی الجمله په مونځ کښې د خشوع کیدل ضروری دی نه په ټول مونځ کښې، او ابن بطال فرمائی چه خشوع فی الصلاة فرض ده خو هغه ورسره دا هم وئیلې دی چه د خشوع نه مراد دا دې چه مونځ صرف د الله پاک د رضا د حاصلولو دپاره اوکړی یعنی د خیالاتو نه راتلل او د حضور قلب حاصلیدل د خشوع نه مراد نه دې ځکه چه دا څیز غیر اختیاری دې. (ه ا ملخصا من الفتح) خلاصه دا شوه چه د خشوع نه مراد که د نیت برابر والې وی یعنی صرف د الله پاک دپاره مونځ کول نو بیا خو دا بالاجماع فرض دې او که ددې نه مراد سکون او حضور قلب او انتفاء خواطر وی نو هغه د جمهورو په نزد صرف موجب فضل وکمال دې نه واجب، البته بعض علماء لکه قاضی حسین او ابو زید مروزی نه ددې وجوب منقول دې.

## بَابٌ فِي تَخْفِيفِ الصَّلَاةِ

### باب دې په بیان د تخفیف د مونځ کښې

په دې باب کښې مصنف د معاذ بن جبل رضی الله عنه د مونځ واقعه ذکر کړې ده دا حدیث په ابواب الامامة کښې د ﴿ امامة من صلی بقوم وقد صلی تلک الصلاة ﴾ د لاندې تیر شوې دې، په دې باندې دې کلام هم هلته اوکتلې شی.

[٧٩٠] (1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرٍو، وَسَمِعَهُ مِنْ جَابِرٍ، قَالَ: "كَانَ مُعَاذٌ يُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ يَرْجِعُ فَيَؤُمُّنَا، قَالَ مَرَّةً: ثُمَّ يَرْجِعُ فَيُصَلِّي بِقَوْمِهِ، فَأَخَّرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً الصَّلَاةَ، وَقَالَ مَرَّةً: الْعِشَاءَ، فَصَلَّى مُعَاذٌ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ جَاءَ يَؤُمُّ قَوْمَهُ فَقَرَأَ الْبَقَرَةَ، فَاعْتَزَلَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ فَصَلَّى، فَقِيلَ: نَافَقْتَ يَا فُلَانُ، فَقَالَ: مَا نَافَقْتُ، فَأَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنَّ مُعَاذًا يُصَلِّي مَعَكَ، ثُمَّ يَرْجِعُ فَيَؤُمُّنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَإِنَّمَا نَحْنُ أَصْحَابُ نَوَاضِحَ وَنَعْمَلُ بِأَيْدِينَا، وَإِنَّهُ جَاءَ يَؤُمُّنَا فَقَرَأَ بِسُورَةِ الْبَقَرَةِ، فَقَالَ: يَا مُعَاذُ، أَفَتَّانٌ أَنْتَ، أَفَتَّانٌ أَنْتَ، اقْرَأْ بِكَذَا، اقْرَأْ بِكَذَا، قَالَ أَبُو الزُّبَيْرِ: بِ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى، وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى". فَذَكَرْنَا لِعَمْرٍو، فَقَالَ: أُرَاهُ قَدْ ذَكَرَهُ.

(1): انظر حديث رقم: (٦٠٠)، (تحفة الأشراف: ٢٥٣٣) (صحيح)

**ترجمه**: وو معاذ چې مونځ ئې کولو د نبي ﷺ سره، بيا به واپس شو امامتي به ئې کوله مونږ ته. کله به ئې وئيل: بيا به واپس شو مونځ به ئې کولو خپل قوم. وروسته کړو نبي ﷺ مونځ يوه شپه. او کله به ئې وئيل: د ماسخوتن. نو مونځ وکړو معاذ د رسول الله ﷺ سره، بيا راغلو چې امامت ئې کولو خپل قوم ته نو ويې لوستله بقره نو جدا شو يو سړی د قوم نه او مونځ ئې خانله وکړو، نو هغه ته وويل شول: ته منافق شوی ای فلانی! هغه وويل: منافق شوی نه يم، نو راغي رسول الله ﷺ ته هغه وويل: بيشکه معاذ مونځ کوی تاسره بيا واپس کېږي او امامت کوی مونږ ته ای د الله رسوله! او بيشکه مونږ خاوندان د اوښو يو او کارونه کوو په لاسونو باندې، او بيشکه دا راغي امامت ئې کولو مونږ ته نو ويې لوستله سورة البقرة، نو هغه ورته وفرمائيل: ای معاذ ايا فتنه اچونکی ته؟ ايا فتنه اچونکی ئې ته؟ ولوله فلانی، ولوله فلانی. وئيلی دی ابو الزبير: سبح اسم ربک الاعلی، والليل اذا يغشی. نو مونږ ذکر وکړو عمرو ته هغه وويل: زما گمان دی چې هغه ذکر کړی دی هغه.

**تشريح**: **قوله**:﴿ حدثنا احمد بن حنبل حدثنا سفيان عن عمرو بن دينار ﴾ په دې حديث کښې د سفيان استاذ عمرو بن دينار دې او د عمرو بن دينار په روايت کښې د سورتونو تعيين نشته خو سفيان ته دا روايت د ابو الزبير نه هم رسيدلې دې او د هغه په روايت کښې د سورتونو تعيين وو، په دې وجه سفيان عمرو بن دينار ته عرض اوکړو چه زمونږ دويم استاذ يعنی ابو الزبير د سورتونو تعيين کړې دې او تا نه دې کړې نو په دې باندې هغه اوفرمائيل چه او ماته هم ياديږي چه سيدنا جابر رضي الله عنه (چه د عمرو بن دينار استاذ دې) ددې سورتونو نومونه اخستلې وو.

[٧٩١]([1])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا طَالِبُ بْنُ حَبِيبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ جَابِرٍ، يُحَدِّثُ، عَنْ حَزْمِ بْنِ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، أَنَّهُ أَتَى مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ وَهُوَ يُصَلِّي بِقَوْمٍ صَلَاةَ الْمَغْرِبِ فِي هَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا مُعَاذُ لَا تَكُنْ فَتَّانًا، فَإِنَّهُ يُصَلِّي وَرَاءَكَ الْكَبِيرُ وَالضَّعِيفُ وَذُو الْحَاجَةِ وَالْمُسَافِرُ".

**ترجمه**: د حزم بن ابي بن کعب نه روايت دې بيشکه هغه راغې معاذ بن جبل ته او هغه مونځ کولو قوم ته د ماښام په دې خبر کښې، هغه وئيلی دې: چې وفرمائيل رسول الله ﷺ: اې معاذ ته مه کېږه فتنه اچونکی، بيشکه مونځ کوی وروسته ستا نه بوډا او کمزوری او د حاجت والا او مسافر هم.

[٧٩٢]([2])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ، عَنْ زَائِدَةَ، عَنْ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِرَجُلٍ: "كَيْفَ تَقُولُ فِي الصَّلَاةِ؟" قَالَ: أَتَشَهَّدُ، وَأَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْجَنَّةَ وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ النَّارِ، أَمَا إِنِّي لَا أُحْسِنُ دَنْدَنَتَكَ وَلَا دَنْدَنَةَ مُعَاذٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "حَوْلَهَا نُدَنْدِنُ".

**ترجمه**: ابو صالح روايت کوي د بعضو ملگرو د رسول الله ﷺ نه، هغه وايي: چې وويل نبي ﷺ يو سړی ته: ته په مانځه کښې څه وايې؟ هغه وويل: زه تشهد وايم او بيا دا وايم: (ای

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٣٩٩) (منكر)

[2]: تفرد به أبو داود، مسند احمد ٤٧٤/٣، (تحفة الأشراف: ١٥٥٦٥)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٢٦ (٩١٠) (صحيح)

الله نه سوال کوم تانه د جنت، او پناه غواړم تا پورې د اور نه؛ هر چې زه یم ښه مې یاده نه ده لهجه او اواز ستا او نه لهجه د معاذ (چه زمونږ امامتي کوی)، نو وويل نبي ﷺ: د دېنه ګير چاپېره مونږ اواز کوو (یعني د جنت دعاګانې غواړو).

**تشريح: قوله:** ﴿ اما اني لا احسن دندنتک ولا دندنة معاذ فقال النبي صلى الله عليه وسلم حولها ندندن ﴾ (١) د حديث مضمون دا دې چه يو سړي د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه ته په مونځ کښې څه لولې هغه اووې چه زه تشهد لولم او بيا دا دعا کوم ﴿ اللهم اني استلک الجنة واعوذبک من النار ﴾ بيا هغه د معذرت په طور عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ ماته صحيح معلوم نه دی چه تاسو څه لولئ بس زه خو دا مختصر شان دعا لولم. مطلب دا وو چه اصل خو هغه دې کوم چه تاسو لولئ خو زه دا لولم، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه بس صحيح ده مونږ هم دا لولو او داسې دعا کوو. ﴿ دندنة ﴾ هغه کلام ته وئيلې شي چه اوريدلې خو شي خو څوک پرې پوهيږی نه چه هغې ته ګنګوسې وئيلې شي (خو چه کله مونږ په اردو کښې وايو چه "فلاں گنگنا رہا ہے یا دمدنا رہا ہے" نو معنی دا وی چه ډير زوردار تقرير کوی) ددې حديث د ترجمة الباب سره مناسبت يعني تخفيف صلاة واضح دې څکه چه په دې کښې ډيره مختصر دعا کړې شوې ده.

[٧٩٣] (٢) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَبِيبٍ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَجْلَانَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ مِقْسَمٍ، عَنْ جَابِرٍ، ذَكَرَ قِصَّةَ مُعَاذٍ، قَالَ: وَقَالَ يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْفَتَى: "كَيْفَ تَصْنَعُ يَا ابْنَ أَخِي إِذَا صَلَّيْتَ؟ قَالَ: أَقْرَأُ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ، وَأَسْأَلُ اللَّهَ الْجَنَّةَ، وَأَعُوذُ بِهِ مِنَ النَّارِ، وَإِنِّي لَا أَدْرِي مَا دَنْدَنَتُكَ وَلَا دَنْدَنَةُ مُعَاذٍ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنِّي وَمُعَاذٌ حَوْلَ هَاتَيْنِ، أَوْ نَحْوَ هَذَا".

**ترجمه:** د جابر رضي الله عنه نه روايت دې. ذکر ئې کړه قصه د معاذ. هغه وئيلی دي: وفرمائيل هغه: يعني نبي ﷺ خوان ته. څنګه کوې ته اې وراره کله چې ته مونځ کوې؟ هغه وويل: زه لولم سورة فاتحه او د الله نه سوال کوم د جنت، او پناه ترېنه غواړم د اور نه او زه نه پوهېږم ستا په لهجه او نه په لهجه د معاذ، نو وويل رسول الله ﷺ: زه او معاذ ددې دواړه نه چاپېره يو. او يا په مثل د دې ئې اووئيل.

[٧٩٤] (٣) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ لِلنَّاسِ فَلْيُخَفِّفْ، فَإِنَّ فِيهِمُ الضَّعِيفَ وَالسَّقِيمَ وَالْكَبِيرَ، وَإِذَا صَلَّى لِنَفْسِهِ فَلْيُطَوِّلْ مَا شَاءَ"

(١) او ددې نه په وړاندې روايت کښې حولها هاتين مذکور دې، د هاتين نه مراد خو ﴿ کلمتين ﴾ دی کوم چه پورته په دعا کښې ذکر شو په يو کښې د جنت طلب او په دويم کښې د جهنم نه پناه او يا د هاتين نه مراد خپله جنت او جهنم دی يعني مونږ هم ددې دواړو کلماتو يعني جنت او جهنم نه تاوېږو او دا يادوو د يو طلب او د بل نه پناه غواړو.

(٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢٣٩١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠٢/٣) (صحيح)

(٣): صحيح البخاري/الأذان ٦٢ (٧٠٣)، سنن النسائي/الإمامة ٣٥ (٨٢٤)، (تحفة الأشراف: ١٣٨١٥)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الصلاة ٣٧ (٤٦٧)، سنن الترمذي/الصلاة ٦٣ (٢٣٦)، موطا امام مالك/صلاة الجماعة ٤ (١٣)، مسند احمد (٢/ ٢٥٦، ٢٧١، ٣١٧، ٣٩٣، ٤٨٦، ٥٠٢، ٥٣٧) (صحيح)

**ترجمه:** د ابو هريرة رضي الله عنه روايت دې بيشکه نبي ﷺ ويلي دي: کله چې مونځ کوي يو کس ستاسو نه خلقو ته نو تخفيف دې وکړي بيشکه په هغوی کښې ضعيف او مريض او بوډا وي، او چې کله ځانله مونځ کوي نو اوږد دې کړي څومره چې ئې خوښه وي.

[٧٩٥]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ ابْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ لِلنَّاسِ فَلْيُخَفِّفْ، فَإِنَّ فِيهِمُ السَّقِيمَ وَالشَّيْخَ الْكَبِيرَ وَذَا الْحَاجَةِ".

**ترجمه:** د ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دې، بيشکه نبي ﷺ وويل: کله چې مونځ کوي يو کس ستاسو نه نو تخفيف دې وکړي ځکه چې په هغوی کښې مريض او بوډا او د حاجت والا وي.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْقِرَاءَةِ فِي الظُّهْرِ

### باب دې په بيان د هغې کې چې راغلی دی د ماسپخين د قراءت باره کې

د دې ځائې نه ابواب القراءة في الصلاة شروع کيږي.

### د قراءت في الصلاة په حکم کښې د علماء کرامو اختلاف

ځان پوهه کړه چه قراءة في الصلاة عند الجمهور والائمة الاربعة رکن او فرض دې بيا وړاندې تفصيل دې، فعند الشافعي واحمد في جميع الرکعات وعند مالک في الاکثر، او عند الحنفية في رکعتين وعند زفر والحسن البصري في رکعة واحدة. او د ابوبکر بن الاصم او سفيان بن عيينه او ابن عليه په نزد قراءة في الصلاة فرض نه دې بلکه سنت دې، او يو قول په دې کښې هغه دې کوم چه د ابن عباس او عمر رضي الله عنهما نه نقل دې چه په سري مونځونو کښې قرأت نشته، خو د ابن عباس رضي الله عنه نه چه رجوع ثابت ده د هغې تفصيل په دريم باب کښې راځي.

### محل قراءت کوم رکعتونه دي

زمونږ د فقهاء کرامو ترمينځه اختلاف دې چه محل د قرأت کوم دوه رکعتونه دی، راجح قول دا دې چه رکعتين اولين دويم قول دې مطلقا رکعتين که اوليين وی يا اخريين، په دې باندې بحث او دلائل په بذل المجهود کښې په حديث د المسیء في الصلاة د لاندې مذکور دی.

[٧٩٧]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ قَيْسِ بْنِ سَعْدٍ، وَعُمَارَةَ بْنِ مَيْمُونٍ، وَحَبِيبٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: "فِي كُلِّ صَلَاةٍ يُقْرَأُ، فَمَا أَسْمَعَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْمَعْنَاكُمْ، وَمَا أَخْفَى عَلَيْنَا أَخْفَيْنَا عَلَيْكُمْ".

**ترجمه:** د عطاء بن ابي رباح نه روايت دې، بيشکه ابو هريرة ويلي دي: په هر مانځه کښې قرأت دی کوم ئې چې مونږ ته اورولی دی مونږ ئې تاسو ته اوروو او کوم ئې چې مونږ نه پټ کړی دی مونږيې پټوو په تاسو.

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٣٠٤، ١٥٢٨٨) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الصلاة ١١ (٣٩٦)، (تحفة الأشراف: ١٤١٧٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأذان ١٠٤ (٧٧٢)، سنن النسائي/الافتتاح ٥٤ (٩٧٠)، مسند احمد (٢/٢٥٨، ٢٧٣، ٢٨٥، ٣٠١، ٣٤٣، ٣٤٨، ٤١١، ٤١٦، ٤٣٥، ٤٨٧) (صحيح)

**تشريح: قوله:** ﴿ ان ابا هريرة قال في كل صلاة يقراء الخ ﴾ سيدنا ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چه په هر يو مونځ کښې قرأت وي (په بعض کښې سرا او په بعض کښې جهرا) بس په کوم مونځونو کښې چه رسول الله ﷺ مونږ ته قرأت اورولې دې هغه به تاسو ته هم جهرا کوو او په کوم کښې چه ئې قرأت پټ کړې دې په هغې کښې به مونږ هم اخفاء کوو ﴿ في كل صلاة يقراء ﴾ دوه مطلبه کيدې شي، يو دا چه په هر يو مونځ کښې که ورځ وي يا شپه وي يا داسې اوايه چه سرى وي يا جهرى وي قرأت فرض دې، او دويم مطلب دا کيدې شي چه په پوره مونځ کښې قرأت دې يعنى په هر هر رکعت کښې، متبادر معنى اوله ده، مسئله اختلافي ده، اختلاف مخکښې تير شو.

[۷۹۸]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ هِشَامِ بْنِ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ الْحَجَّاجِ، وَهَذَا لَفْظُهُ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ، قَالَ ابْنُ الْمُثَنَّى وَأَبِي سَلَمَةَ: ثُمَّ اتَّفَقَا عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُصَلِّي بِنَا، فَيَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ، وَسُورَتَيْنِ، وَيُسْمِعُنَا الْآيَةَ أَحْيَانًا، وَكَانَ يُطَوِّلُ الرَّكْعَةَ الْأُولَى مِنَ الظُّهْرِ، وَيُقَصِّرُ الثَّانِيَةَ، وَكَذَلِكَ فِي الصُّبْحِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: لَمْ يَذْكُرْ مُسَدَّدٌ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُورَةً.

**ترجمه:** د ابو قتادة نه روايت دې، هغه وئيلي دي: وو رسول الله ﷺ چې مونځ ئې کولو مونږ ته نو لوستلو به ئې په ماسپخين او مازيګر کښې په دوه اولنو رکعاتونو کښې سورة فاتحه او دوه نور سورتونه، او کله به ئې مونږ يو ايت اورولو، او وو چې اوږدولو به ئې اولني رکعات د ماسپخين نه او کمولو به ئې دويم، او همدارنګه په سحر کښې وو. وئيلى دي ابوداود: نه دى ذکر کړى مسدد: فاتحة الكتاب او سورت.

**تشريح: قوله:** ﴿ ويسمعنا الاية احيانا ﴾ يعنى په سرى مونځونو کښې به رسول الله ﷺ کله کله يو نيم آيت جهرا هم اولوستلو، په دې باندې شيخ ابن حجر مکى شافعى ليکى چه يا خو د غلبه استغراق في التدبر د وجې نه داسې کيدلې شو يا قصدا لبيان الجواز. او يا ددې ويناً دپاره چه په سرى مونځونو کښې هم قرأت شته، او يا ددې وينا دپاره چه کوم سورت تلاوت کوى، په دې باندې ملا على قارى حنفى رحمه الله فرمائي چه د احنافو په نزد به د بيان جواز توجيه صحيح نه وى ځکه چه د هغوى په نزد په جهرى کښې جهرا او په سرى کښې سرا لوستل واجب دى مگر دا چه اووئيلې شى چه مراد دا دي چه په قرأت سريه کښې د يو يا دوه آيتونو جهر کيدل هغه د سر منافي نه دى ﴿ لا يخرجها عن السر ﴾ او د امام نووى رحمه الله د کلام نه معلوميږى لکه چه په منهل کښې دى چه د شوافعو په نزد په سرى مونځونو کښې سرا او په جهرى کښې جهرا لوستل د سنت د قبيل نه دى واجب نه دى.

[1]): صحيح البخاري/الأذان ٩٦ (٧٥٩)، ٩٧ (٧٦٢)، ١٠٧ (٧٧٦)، ١٠٩ (٧٧٩)، ١١٠ (٧٧٩)، صحيح مسلم/الصلاة ٣٤ (٤٥١)، سنن النسائي/الافتتاح ٥٦ (٩٧٥)، ٥٧ (٩٧٦)، ٥٨ (٩٧٧)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٨ (٨٢٩)، (تحفة الأشراف: ١٢١٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٣/٤، ٢٩٥/٥، ٢٩٧، ٣٠٠، ٣٠١، ٣٠٥، ٣٠٧، ٣٠٨، ٣١٠، ٣١١، ٣٨٣) (صحيح)

[٧٩٩](١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، وَأَبَانُ بْنُ يَزِيدَ الْعَطَّارُ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِيهِ، بِبَعْضِ هَذَا، وَزَادَ فِي الْأُخْرَيَيْنِ: بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ، وَزَادَ. عَنْ هَمَّامٍ، قَالَ: "وَكَانَ يُطَوِّلُ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى مَا لَا يُطَوِّلُ فِي الثَّانِيَةِ، وَهَكَذَا فِي صَلَاةِ الْعَصْرِ، وَهَكَذَا فِي صَلَاةِ الْغَدَاةِ".

**ترجمه**: عبد الله بن ابی قتادة د خپل پلار نه روایت کوي، په بعضی حصی ددې سره، او هغه زیادت کړی دی په وروستنو دوو کښې فاتحة الکتاب، او زیادت ئې کړی دی د همام نه، هغه وئیلی دي: او وو چې اوږدوالی به ئې کولو په اولنی رکعات کښې هغومره چې په دویم کښې به ئې نه کولو، اوهمداسې د مازیګر په مونځ کښې، او همدارنګه د سحر په مونځ کښې.

## تطویل القراءة فی الرکعة الاولی کښې اختلاف علماء

**قوله**: ﴿ وکان یطول فی الرکعة الاولی ما لا یطول فی الثانیة ﴾ امام محمد او هم دغه شان مالکیان او د شوافعو په یو قول کښې اطالة الاولی په ټولو مونځونو کښې مستحب دې، امام نووی رحمه الله فرمائی چه د تطویل اولی والا قول صحیح او مختار دې، او بعض علماء کرام چه په هغوی کښې امام ابوحنیفه او ابویوسف هم دی فرمائی چه اولی او مستحب په قرأت کښې تسویه بین الاولیین ده لکه چه د ډیرو روایاتو نه معلومیږی مثلاً په راتلونکی باب کښې د ابوسعید خدری رضی الله عنه په حدیث کښې دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به د قراءت ظهر په رکعتین اولیین کښې د دیرشو آیتونو په اندازه وو، البته شیخین صرف په صلاة فجر کښې د اطالة الاولی قائل دی ځکه چه هغه د نوم او غفلت وخت دې.

## (د حدیث الباب نه جواب)

او د فریق ثانی په نزد د حدیث الباب جواب دا دې چه دا اطالت د قرأت د وجې نه نه وو بلکه د دعاء استفتاح او تعوذ د وجې نه، او امام بیهقی د احادیث تطویل والتسویة ترمینځه جمع داسې کړې ده چه تطویل په هغه صورت کښې دې په داسې حال کښې چه امام ته د چا انتظار وی کینې تسویه اولی ده، بعض توجیه دا کړې ده چه اطالة اولی د ترتیل فی القراءة د وجې نه معلومیږی نه د مقدار مقرؤ د زیادت د وجې نه.

[٨٠٠](٢) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: فَظَنَنَّا أَنَّهُ يُرِيدُ بِذَلِكَ أَنْ يُدْرِكَ النَّاسُ الرَّكْعَةَ الْأُولَى.

**ترجمه**: عبد الله بن قتادة د خپل پلار نه روایت کوي، هغه وئیلی دي: زمونږ دا ګمان وو چې د هغه دا اراده وه په دې سره چې خلک اولنی رکعت راګیر کړي.

## په تطویل اولی کښې حکمت

**تشریح: قوله**: ﴿ فظننا انه یرید بذلک ان یدرک الناس الرکعة الاولی ﴾ د دې نه د بیهقی والا توجیه فی الجمله تائید کیږی کوم چه اوس نزدې تیر شو، دغه شان د اطالة اولی والا حکمت یو خو دا شو کوم چه صحابی ذکر کوی چه راتلونکې مسبوق نه شی او یو حکمت بعض علماء

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٢١٠٨) (صحيح)

(٢): انظر حديث رقم: ٧٩٨، (تحفة الأشراف: ١٢١٠٨) (صحيح)

کرامو دا بیان کړې دې چه ددې وجه دا ده چه د مونځ په شروع کښې تازګی زیاته وی نو نو په دې کښې خشوع او خضوع هم زیاته وی او هم دا مقصود هم دې، په خلاف د روستو رکعتونو، الغرض د ملل د ویرې د وجې نه روستو رکعتونو کښې ترک اطالة مشروع ده، مصنف ابن ابی شیبة (کما فی الفتح ص ۱۶۹ ج ۲) کښې یو روایت دې ﴿ کانوا یتمون ویوجزون ویبادرون الوسوسة ﴾ یعنی صحابه کرامو به مونځ کامل کولو او ورسره به ئې د ایجاز او اختصار لحاظ ساتلو چه په مونځ کښې وسوسه رانشی، ما د خپل والد مرحوم نه واوریدل چه حضرت مولانا الیاس صاحب رحمه الله به فرمائیل چه په مختصر مونځ کښې توجه زیاته وی.

[۸۰۱]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ، قَالَ: قُلْنَا لِخَبَّابٍ "هَلْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ؟ قَالَ: نَعَمْ، قُلْنَا: بِمَ كُنْتُمْ تَعْرِفُونَ ذَاكَ؟ قَالَ: بِاضْطِرَابِ لِحْيَتِهِ".

**ترجمه:** د ابو معمر نه روایت دې هغه وایې: چې مونږ وویل خباب ته، ایا وو رسول الله ﷺ چې قرأت ئې کولو په ماسپخین او مازیګر کې؟ هغه وویل: آو. مونږ وویل: تاسو دا په څه شی معلوموله؟ هغه وویل: په خوزیدلو د ګیرې د هغه سره.

**تشریح: قوله:** ﴿ قلنا لخباب هل کان رسول الله صلی الله علیه وسلم : یقراء فی الظهر والعصر ﴾ سیدنا خباب رضی الله عنه فرمائی چه د رسول الله ﷺ ګیره مبارکه به په حالت قیام کښې خوزیدله، د استدلال دپاره به د اضطراب لحیه سره یوه بله مقدمه هم شاملول وی هغه دا چه قیام محل قرأت دې، څنګه چه رکوع او سجود محل اذکار، ګینې نفس اضطراب نه د مطلق لوستلو ثبوت کیږی برابره خبره ده که تسبیح وی یا تلاوت قران.

[۸۰۲]([2]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جُحَادَةَ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يَقُومُ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى مِنْ صَلَاةِ الظُّهْرِ حَتَّى لَا يُسْمَعَ وَقْعُ قَدَمٍ".

**ترجمه:** د عبد الله بن ابی اوفی نه روایت دې، بیشکه نبی ﷺ وو چې ودریدلو به د ماسپخین په مانځه کښې تردې چې د چا د خپې اواز به ئې وانه وریده.

**تشریح: قوله:**﴿ حتی لا یسمع وقع قدم ﴾ په دې باندې کلام زمونږ په نزد ﴿ انی لا قوم الی الصلاة وانا ارید ان اطول فیها فاسمع بکاء الصبی ﴾ د لاندې تیر شوې دې.

## بَابُ تَخْفِيفِ الْأُخْرَيَيْنِ

### باب دې په بیان د تخفیف د وروستنو رکعاتونو کې

په اخریین کښې تخفیف په دې وجه وی چه په دې کښې د سورتونو ضم نه دې پس د جمهور علماء او ائمه ثلاثه مذهب هم دا دې، د امام شافعی رحمه الله قول قدیم هم دا دې هغوی په قول جدید کښې ضم سورت فی الاخریین هم مستحب دې.

[1]: صحیح البخاري/الأذان ۹۱ (۷٤٦)، ۹٦ (۷٦۰)، ۹۷، ۱۰۸ (۷۷۷)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۷ (۸۳٦)، (تحفة الأشراف: ۳۵۱۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۰۹/۵، ۱۱۰، ۱۱۲، ۳۹۵/٦) (صحيح)

[2]: تفرد به أبوداو، (تحفة الأشراف: ۵۱۸۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۵٦/٤) (ضعيف)

## په مونځ کښې د فاتحې سره د سورة په ضم کولو کښې اختلاف

اوس پاتې شوه دا مسئله چه په اولیین کښې د سورة ضم کول واجب دی یا سنت نو په دې کښې اختلاف دې د احناف او بعض مالکیانو په نزد لکه ابن کنانه په نزد ضم سورة في الأولیین واجب دې، او د باقي ائمه ثلاثه په نزد مستحب دې.

[٨٠٣](¹)حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ أَبِي عَوْنٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: قَالَ عُمَرُ لِسَعْدٍ: قَدْ شَكَاكَ النَّاسُ فِي كُلِّ شَيْءٍ حَتَّى فِي الصَّلَاةِ، قَالَ: "أَمَّا أَنَا فَأَمُدُّ فِي الْأُولَيَيْنِ، وَأَحْذِفُ فِي الْأُخْرَيَيْنِ، وَلَا آلُو مَا اقْتَدَيْتُ بِهِ مِنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: ذَاكَ الظَّنُّ بِكَ".

**ترجمه:** د جابر بن سمرة نه روایت دې هغه وئیلی دي: وویل عمر سعد ته: یقیناً شکایت کړې دی د تانه خلقو په هر شي کښې تردې چې په مانځه کښې هم، هغه وویل: هر چې زه یم: زه اوږدوالی کوم په دوه اولنو کښې، او اختصار کوم په وروستنو دوو کښې، او زما هیڅ پروا نشته تر کومه چې زه اقتداء کوم د رسول الله د مانځه پسې. هغه وایي: چې زما هم دا گمان وو په تا.

## شرح حدیث

**قوله:**﴿ قد شكاک الناس في كل شئ حتى في الصلاة ﴾ د سیدنا عمر رضي الله عنه په زمانه کښې سیدنا سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه د کوفې والي وو د هغه ځائې د بعض خلقو د هغه نه شکایت پیدا شو، کوم چه عمر رضي الله عنه ته رارسیدلو، په دې ورته عمر رضي الله عنه فرمائی چه دا څه خبره ده چه خلق یعنی اهل کوفه ستا نه په هر یو ځیز کښې شکایت کوی تردې چه د مونځ په باره کښې هم (چه ښه طریقې سره ئې نه ادا کوی) نو په دې باندې ورته هغه عرض اوکړو چه زه مونځ داسې ورکوم چه په اولیین کښې قرأت اوږد کوم او په اخریین کښې مختصر ﴿ ولا آلو ما اقتديت به الخ ﴾ دا د مضارع منفی واحد متکلم صیغه ده ﴿ الا يالوا الوا ﴾ نه چه د هغې معنی د تقصیر او کوتاهی ده. کما فی قوله تعالی ﴿ يالونكم خبالا ﴾ یعنی زه کوتاهی نه کوم، زه په داسې مونځ ورکولو کښې څنگه چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم په اقتداء کښې مونځ کړې دې بلکه څنگه چه به رسول الله صلی الله علیه وسلم ورکولو په هغه طریقه زه هم مونځ ورکوم، او هغه طریقه هم هغه ده کومه چه پورته ذکر کړې شوه. تطويل الاولیین وتخفیف الاخريين وغیره، په ظاهره کښې داسې معلومیږی چه معترضین د تسویه بین الاولیین قائل وی، عمر رضي الله عنه د هغه جواب اوریدلو سره اوفرمائیل چه زمونږ په تا هم دغه شان ښه گمان وو، دا حدیث دلته مختصر دې، په صحیحین کښې تفصیل سره دې، د بخاری شریف په روایت کښې دی چه سیدنا عمر رضي الله عنه د شکایت د تحقیق کولو دپاره د سیدنا سعد رضي الله عنه سره څو کسان کوفې ته اولیږل، پس هغوی هلته تلو سره په هر هر مسجد کښې د هغه په باره کښې تحقیق او تفتیش اوکړو او په جواب کښې ئې هر چا تعریف اوکړو او دا چه دا ټول شکایات غلط دی، تردې چه هغه

(¹): صحيح البخاري/الأذان ٩٥ (٧٥٥)، ١٠٣ (٧٧٠)، صحيح مسلم/الصلاة ٣٤ (٤٥٣)، سنن النسائي/الافتتاح ٧٤ (١٠٠٣)، (تحفة الأشراف: ٣٨٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٧٥، ١٧٦، ١٧٩، ١٨٠) (صحيح)

د قبيله بنو عبس قبيلې ته راغلل نو په هغوی کښې يو سړې چه د هغه نوم اسامه بن قتاده وو هغه اودريدو او هغه د هغه شکايتونه اوکړل او وې وئيل چه ﴿ لا يسير بالسرية ولا يقسم بالسوية ولا يعدل في القضية ﴾ چه دې خپله يوې سريه ته نه اوځي، او په مال غنيمت وغيره تقسيمولو کښې عدل نه کوی او دغه شان په فيصلو کښې هم انصاف نه کوی، په دې اوريدلو سره سيدنا سعد ﷺ هغه ته ښو خيرې اوکړې چه اې الله! که دا شکايات غلط وی نو ﴿ فاطل عمره واطل فقره فعرضه بالفتن ﴾ شکايات چونکه غلط وو په دې وجه د سيدنا سعد ﷺ دا خيرې په هغه او لګيدې، پس راوی وائي چه ما خپله اوليدل هغه سړې چه د هغه عمر ډير اوږد شو او ترديې چه روځې ئې سپينې شوې، په فقر کښې اخته شو او په لارو او کوڅو کښې به ئې خير غوښتلو او جينکۍ به ئې چيړلې او ذليل او رسوا به ګرځيدو، الله پاک دې مونږ د اهل الله د خيرو نه اوساتي.

[٨٠٤]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ يَعْنِي النُّفَيْلِيَّ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا مَنْصُورٌ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ مُسْلِمٍ الْهُجَيْمِيِّ، عَنْ أَبِي الصِّدِّيقِ النَّاجِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "حَزَرْنَا قِيَامَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ، فَحَزَرْنَا قِيَامَهُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ قَدْرَ ثَلَاثِينَ آيَةً قَدْرَ الم تَنْزِيلُ السَّجْدَةِ، وَحَزَرْنَا قِيَامَهُ فِي الْأُخْرَيَيْنِ عَلَى النِّصْفِ مِنْ ذَلِكَ، وَحَزَرْنَا قِيَامَهُ فِي الْأُولَيَيْنِ مِنَ الْعَصْرِ عَلَى قَدْرِ الْأُخْرَيَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ، وَحَزَرْنَا قِيَامَهُ فِي الْأُخْرَيَيْنِ مِنَ الْعَصْرِ عَلَى النِّصْفِ مِنْ ذَلِكَ".

**ترجمه**: د ابو سعيد الخدری ﷺ نه روايت هغه وئيلی دي: مونږ د رسول الله ﷺ قيام اټکل اوکړو، نو مونږ اټکل ولګوه د قيام د هغه په اولنو دوه رکعاتونو کښې د ماسپخين په اندازه د ديرشو رکعاتو د الم تنزيل السجدة هومره، او د هغه قيام مونږه اټکل کړو په وروستنو دوه رکعاتونو کښې په نيم د هغې، او مونږ اټکل اوکړو قيام د هغه په اولنو دوه د مازيګر کښې په اندازه د وروستنو دوه رکعاتونو د ماسپخين، او مونږ اټکل ولګوه په وروستنو دوه رکعاتونو کښې د مازيګر کښې په نصف د هغې باندې.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ حزرنا قيام رسول الله صلى الله عليه وسلم في الظهر والعصر ﴾ د دې حديث نه درې خبرې معلومې شوې.

۱: عدم اطالة الاولى، اى لتسويه بين الركعتين في القراءة كما هو مسلک الشيخين واحد قولی الشافعی کما تقدم.

۲: د ماسپخين په اولنو دوه رکعتونو کښې په هر يو کښې د ديرشو آيتونو په اندازه لوستل لکه چه د مسلم په روايت کښې ددې تصريح ده.

## ضم سورة فى الاخريين

۳: ضم سورت فى الاخريين، ځکه چه د ديرشو نصف پنځلس وی ددې نه معلومه شوه چه د ماسپخين په هر دوه رکعتونو کښې پنځلس آيتونه تلاوت فرمائيل او په سورة فاتحه کښې

---

[1]: صحيح مسلم/الصلاة ٣٤ (٤٥٢)، سنن النسائي/الصلاة ١٦ (٤١٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٧ (٨٢٨)، (تحفة الأشراف: ٣٩٧٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣)، سنن الدارمي/الصلاة ٦٢ (١٣٢٥) (صحيح)

صرف اووه آيتونه دي، خو دا د جمهورو د مسلک خلاف ده ځکه چه عند الجمهور والائمة الثلاثة ضم سورة في الاخريين... غير مستحب دې او قول قديم د امام شافعي هم دا دې، خو د هغه په قول جديد کښې مستحب دې،

**(د ضم سورت في الاخريين د فائدې نه جواب)**

په بذل کښې ددې دوه جوابونه ليکلي دي اول احتمال دا دې چه رسول الله ﷺ به په اخريين کښې فاتحه په ترسيل سره لوستله لهٰذا دا د راوي ګمان دې،
او دويم جواب ئې دا ليکلي دې چه ممکنه ده د بيان جواز دپاره ئې داسې کړې وي ځکه چه د احنافو په نزد دا صرف مکروه تنزيهي دي. (١)
في الاخريين من العصر على النصف من ذلک... د دې نه معلوميږي چه د مازيګر په اخريين کښې هغه سورة ضم نه کړو.

## بَابُ قَدْرِ الْقِرَاءَةِ فِي صَلَاةِ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ

**باب دې په بيان د مقدار د قراءت کې په ماسپخين او ماښام کې**

د دې ځائې نه مصنف په صلوات خمسه کښې د قرأت مستحبه مقدار بيان فرمائيل غواړي، په دې سلسله کښې روايات مرفوعه هم دي او موقوفه هم، پورته د ابو سعيد خدري رضي الله عنه روايت تير شوې دې چه ماسپخين او مازيګر کښې رسول الله ﷺ د ﴿ الم تنزيل السجدة ﴾ برابر قرأت کولو، دا روايت په مسلم شريف کښې هم دې، او بل روايت د جابر بن سمرة رضي الله عنه دې کوم چه د سنن ثلاثه روايت دې، امام ابوداود، ترمذي او نسائي دا روايت کړې دی چه رسول الله ﷺ به په ماسپخين او مازيګر کښې د سورة بروج او سورة طارق برابر سورتونه لوستل.

**د قراءت مستحبه په باره کښې د عمر رضي الله عنه اثر**

او په احاديث موقوفه کښې مشهور په دې سلسله کښې هغه د عمر رضي الله عنه اثر دې کوم چه په مصنف عبدالرزاق کښې دې، او امام ترمذي رحمه الله هم په هر يو باب کښې جدا جدا ددې تکړې تعليقا ذکر کړې دی پس هغه ليکي : ﴿ وروى عن عمر انه كتب الى ابى موسى ان اقرأ في الظهر باوساط المفصل ﴾ دا د عمر رضي الله عنه اثر صاحب هدايه هم ذکر کړې دې، په نصب الرايه کښې ددې تفصيل دې.
اوس دلته دوه څيزونه قابل تحقيق دي اول د طوال، اوساط او قصار مصداق او د هغې تعيين او دويم په صلوات خمسه کښې قرأت مستحبه د ائمه اربعه په نزد.

---

١) او د بذل په حاشيه باندې د حافظ ابن القيم رحمه الله د کتاب الصلاة نه ددې جواب دا نقل کړې شوې دې، هغه فرمائي چه اګر چه حديث ضم سورة في الاخريين باندې صريح الدلالة دې خو حديث د ابو قتادة رضي الله عنه کوم چه متفق عليه دې هغه ددې معارض دې ﴿ انه عليه السلام كان يقرأ في الاولين بفاتحة الكتاب وسورتين وفي الاخريين بفاتحة الكتاب فذكر السورتين في الاولين والاقتصار على الفاتحة في الاخريين تدل على الاختصاص وحديث الباب ليس صريحا حرز وتخمين. ١٢)

## په صلوات خمسه کښې قراءت مستحبه عند الائمة الاربعة

د احنافو په نزد د طوال مفصل ابتداء د سورة حجرات نه د سورة بروج د اخره پورې دې، او د اوساط مفصل د سورة طارق نه تر د ﴿ لم يكن ﴾ د اخره پورې، او قصار د ﴿ اذا زلزلت ﴾ نه د قران کريم د اخره پورې، او د مالکيانو او شوافعو په نزد د طوال ابتداء د حجرات نه ده او د حنابله په نزد د سورة ق نه، بيا د شوافع او حنابله په نزد ﴿ عم يتساءلون ﴾ پورې، او د مالکيانو په نزد تر د والنازعات پورې، بيا د هغې نه وړاندې د ﴿ والليل ﴾ پورې د درې واړو ائمه کرامو په نزد اوساط مفصل دی او د ﴿ والضحى ﴾ نه اخر پورې قصار، او په مسئله ثانيه کښې اختلاف داسې دې[1] په دې خو د ټولو اتفاق دې چه په مونځونو کښې په يو مونځ کښې د يو سورت تخصيص واجب نه دې، البته استحبابا د تخصيص اکثر علماء قائل دی، په دې باندې خو اتفاق دې چه د سحر په مونځ کښې به طوال مفصل او ماښام کښې قصار لوستل مستحب دی او په ماسپخين کښې دوه اقوال دی، طوال مفصل، يا اوساط، او مازيګر او ماسخوتن کښې د جمهورو په نزد اوساط مفصل او د مالکيانو په نزد په مازيګر کښې هم د ماښام په شان د قصار لوستل اولى دی.

[٨٠٥](٢)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ بِـ وَالسَّمَاءِ وَالطَّارِقِ، وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْبُرُوجِ وَنَحْوِهِمَا مِنَ السُّوَرِ".

**ترجمه**: د جابر بن سمرة نه روايت دې بيشکه رسول الله ﷺ وو چې لوستلويې په ماسپخين او مازيګر کښې په والسماء و الطارق او والسماء ذات البروج او په مثل د هغو دواړو د سورتونو نه.

[٨٠٦](٣)حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سِمَاكٍ، سَمِعَ جَابِرَ بْنَ سَمُرَةَ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا دَحَضَتِ الشَّمْسُ صَلَّى الظُّهْرَ، وَقَرَأَ بِنَحْوٍ مِنْ وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى، وَالْعَصْرَ كَذَلِكَ، وَالصَّلَوَاتِ كَذَلِكَ إِلَّا الصُّبْحَ فَإِنَّهُ كَانَ يُطِيلُهَا".

**ترجمه**: د سمرة نه روايت دې هغه وئيلي دي: وو رسول الله ﷺ چې کله به مائل شو نمر نو مونځ د ماسپخين به ئې وکړو او لوستلو به ئې په اندازه د و الليل اذا يغشى باندې، او د مازيګر هم دغسې، او نور مونځونه هم دغسې، مګر د سحر مونځ بيشکه هغه به اوږدولو.

[1] د ائمه ثلاثه د مذهب تفصيل داسې دې د مالکيانو په نزد چه په ماسپخين کښې د سحر د مونځ نه لږ شان کم، او په ماسخوتن کښې اوساط مفصل او په مازيګر او ماښام کښې قصار مفصل او د حنابله په نزد (کما في الرض المربع) د سحر په مونځ کښې طوال مفصل او مغرب کښې قصار او باقى درې مونځونه، ماسپخين، مازيګر او ماسخوتن کښې اوساط مفصل، ا و د شوافعو په نزد دا دې چه په ماسپخين کښې قرات سحر ته نزدې نزدې او مازيګر او ماسخوتن کښې اوساط او په ماښام کښې قصار. ١٢)

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ١١٧ (٣٠٧)، سنن النسائي/الافتتاح ٦٠ (٩٨٠)، (تحفة الأشراف: ٢١٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠١/٥، ١٠٣، ١٠٦، ١٠٨) (حسن صحيح)

[3]: صحيح مسلم/المساجد ٣٣ (٦١٨)، سنن النسائي/الإفتتاح ٦٠ (٩٨١)، سنن ابن ماجه/الصلاة ٣ (٦٧٣)، (تحفة الأشراف: ٢١٧٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٦/٥، ٨٨، ١٠١، ١٠٦، ١٠٨) (صحيح)

[۸۰۷]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا مُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، وَيَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، وَهُشَيْمٌ، عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أُمَيَّةَ، عَنْ أَبِي مِجْلَزٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "سَجَدَ فِي صَلَاةِ الظُّهْرِ، ثُمَّ قَامَ فَرَكَعَ، فَرَأَيْنَا أَنَّهُ قَرَأَ تَنْزِيلَ السَّجْدَةِ". قَالَ ابْنُ عِيسَى: لَمْ يَذْكُرْ أُمَيَّةَ أَحَدٌ إِلَّا مُعْتَمِرٌ.

**ترجمه:** د ابن عمر ﷺ نه روايت دې، بيشكه نبي ﷺ سجده وكړه په د ماسپخين په مونځ كښې، بيا پاځيدلو نو ركوع ئې وكړه نو مونږ ته ښكاره شوه چې هغه تنزيل السجده ولوستلو. وئيلي دي ابن عيسى: اميه چا نه دي ذكر كړې مگر معتمر.

[۸۰۸]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ مُوسَى بْنِ سَالِمٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فِي شَبَابٍ مِنْ بَنِي هَاشِمٍ، فَقُلْنَا لِشَابٍّ مِنَّا: سَلِ ابْنَ عَبَّاسٍ "أَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ؟ فَقَالَ: لَا، لَا. فَقِيلَ لَهُ: فَلَعَلَّهُ كَانَ يَقْرَأُ فِي نَفْسِهِ، فَقَالَ: خَمْشًا هَذِهِ شَرٌّ مِنَ الْأُولَى كَانَ عَبْدًا مَأْمُورًا، بَلَّغَ مَا أُرْسِلَ بِهِ، وَمَا اخْتَصَّنَا دُونَ النَّاسِ بِشَيْءٍ إِلَّا بِثَلَاثِ خِصَالٍ: "أَمَرَنَا أَنْ نُسْبِغَ الْوُضُوءَ، وَأَنْ لَا نَأْكُلَ الصَّدَقَةَ، وَأَنْ لَا نُنْزِيَ الْحِمَارَ عَلَى الْفَرَسِ".

**ترجمه:** عبد الله بن عبيد الله وايي چې زه راغلم ابن عباس ته او هغه د څه ځوانانو د بني هاشمو سره وو، ما وويل يو ځوان ته زمونږ نه، تپوس وكړه د ابن عباس نه، ايا وو رسو ل الله ﷺ چې لوستلويې په ماسپخين او مازيگر كې؟ هغه وويل: نه، نه، هغه ته وويل شول: كيدى شي چې هغه به په خپل نفس كښې قرأت كولو، هغه وويل: مخ دې زخمي شه دا خو د اول نه ډيره بده ده، هغه يو بنده مامور وو، وبې رسولو هغه چې په څه شي رالېږلى شوى وو، او هغه مونږ نه يو خاص كړى په څه شي سره بغير د نورو خلقو نه مگر په درې كارونو سره: هغه مونږ ته امر كړى دى چې اودس پوره په ښه طريقه وكړو، او صدقه ونه خورو، او خر په اس باندې سور نه كړو.

## شرح حديث

**قوله:**﴿ حدثنا مسدد... حدثنا عبدالله بن عبيدالله قال: دخلت على ابن عباس في شباب من بني هاشم ﴾ د عبدالله بن عباس ﷺ نمسي چه د هغه نوم عبدالله دې هغه فرمائي چه زه د بنو هاشم د څو ځوانانو سره، د ابن عباس ﷺ په خدمت كښې راورسيدو او د هغه نه ئې سوال اوكړو چه ايا رسول الله ﷺ به د ماسپخين او مازيگر په سرى مونځونو كښې قرأت فرمائيلو هغه اوفرمائيل نه، نه! هغه ته اووئيلې شو چه كيدې شي سرا ئې لوستلو نو هغه په دې باندې ناراضه شو. ﴿ فقال : خمشا هذه شر من الاولى ﴾ ستا خوله دې ماته شي، په اصل كښې وو ﴿ تخمش خمشا ﴾ او وې فرمائيل چه دا خبره يعنى قرأت سر، اوله خبره يعنى د عدم قرأت نه بد دې ځكه چه هغه د الله پاک بنده وو كوم چه د تبليغ احكام مامور او مكلف وو، په ظاهره كښې مطلب دا دې چه كه په دې دواړو مونځونو كښې قرأت وې نو

[¹]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۸۵۵۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۸۳/۲) (ضعيف)

[²]: سنن الترمذي/الجهاد ۲۳ (۱۷۰۱)، سنن النسائي/الطهارة ۱۰۶ (۱۴۱)، والخيل ۹ (۳۶۱۱)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۴۹ (۴۲۶)، (تحفة الأشراف: ۵۷۹۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۳۲، ۲۳۵، ۲۴۹) (صحيح)

هغه به مونږ ته دا خبره ضرور بيان کړې وې او مونږ ته به ئې څه وئيلي وې بلکه ټولو ته به ئې بيان کړې وې ځکه چه احکام شرع عام دی د چا سره خاص نه دی او البته بعض احکام دی کوم چه د بنو هاشم سره خاص دی، او بيا وړاندې هغوی درې احکامات بيان کړې دی.

﴿ امرنا ان نسبغ الوضوء وان لا ناكل الصدقة وان لا ننزی الحمار على الفرس ﴾ په دې درې څيزونو کښې درمياني څيز خو واقعي د بنو هاشم سره خاص دې او اول او دريم يعنی اسباغ وضوء او انزاء الحمار على الخيل د چا سره خاص نه دې، اوس به يا خو دا وئيلي شی چه هغه دا دوه د خپل علم په اعتبار سره خاص منی، يا ممکنه ده ددې دواړو سره هغه بنو هاشم لره تاکيد سره مخاطب فرمائيلي وی.

د دې نه پس ځان پوهه کول پکار دی چه د رسول الله ﷺ په حق کښې خو صدقه نافله او فرض دواړه حرام وو، او په آل د بنو هاشم په حق کښې د صدقه مفروضه په باره کښې خو اتفاق دې چه هغه د هغه دپاره جائز نه وو، البته د صدقه نافله په جواز او عدم جواز کښې اختلاف دې هم دا زمونږ مذهب دې او هم دا د شافعيه.

انزاء الحمار على الخيل چه هغې سره بغل يعنی خچر په وجود کښې راځی، د ټولو علماء کرامو په نزد جائز دې سوا د عمر بن عبدالعزيز، چه د هغوی نه کراهت منقول دې، لهذا دا حديث به صرف په خلاف اولی باندې محمول کولې شی ځکه چه دا د استبدال الادنی بالخير د قبيل نه دې، غوره څيز په کمزوری سره بدلول، ځکه چه ظاهره ده چه بغل د خيل نه ادنی دې اوګوری آس په جهاد کښې چه څومره په کار راتلې شی دومره خچر نه شی راتلې هم په دې وجه د هغه مال غنيمت کښې مستقل حصه هم وی، هم دغه شان د بعض رواياتو نه معلوميږی چه په جنت کښې به د فرس وجود وی، امام ترمذی رحمه الله مستقل باب تړلې دې، باب ما جاء في صفة خيل الجنة.

[٨٠٩](1) حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا حُصَيْنٌ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "لَا أَدْرِي أَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ أَمْ لَا".

**ترجمه:** د ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې هغه وئيلی دي: زه نه پوهيږم ايا وو رسول الله ﷺ چې ماسپخين او مازيگر کښې ئې قرأت کولو او که نه؟

## په سرې مونځونو کښې د قراءت ثبوت

**قوله:** ﴿ حدثنا زياد بن ايوب الخ ﴾ ددې روايت نه معلومه شوه چه اولا ابن عباس په ظهرين کښې د قرأت انکار کولو او څو ورځې پس په هغې کښې تردد راغلو چه کله د نورو صحابه کرامو نه به ددې خلاف په اوريدلو کښې راغلې وی او بيا څو ورځې پس په دې دواړو مونځونو کښې د قرأت قائل شوې وو. كما حققه الطحاوی فی شرح معانی الاثار.

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٦٠٣٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٤٩، ٢٥٧) (صحيح)

# بَابُ قَدْرِ الْقِرَاءَةِ فِي الْمَغْرِبِ

## باب دې په بیان دا ندازه د قراءت کې په ماښام کې

[٨١٠]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ "أُمَّ الْفَضْلِ بِنْتَ الْحَارِثِ سَمِعَتْهُ وَهُوَ يَقْرَأُ وَالْمُرْسَلَاتِ عُرْفًا، فَقَالَتْ: يَا بُنَيَّ، لَقَدْ ذَكَّرْتَنِي بِقِرَاءَتِكَ هَذِهِ السُّورَةَ، إِنَّهَا لَآخِرُ مَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ بِهَا فِي الْمَغْرِبِ".

**ترجمه**: د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې، بیشکه ام الفضل چې لور د حارث ده، هغې اوریدلی وو د هغه نه او هغه لوستلو و المرسلات عُرفًا، هغې وویل: اې زویه یقینا تا ماته رایاد کړو په لوستلو ددې سورت سره، بیشکه دا اخرنی سورت وو چې ما اوریدلی وو د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه چې لوستلو ئې په ماښام کښې.

**قوله**:《 عن ابن عباس ان ام الفضل بنت الحارث الخ 》 ام الفضل د ابن عباس رضی الله عنهما مور او د سیده میمونه رضی الله عنها خور ده، هغې یوه ورځ د ابن عباس رضی الله عنهما قرأت واوریدو او حال دا چه هغه سورة المرسلات تلاوت کولو، په دې اوریدلو سره هغې اوفرمائیل چه بچیه! تا په دې سورت لوستلو سره ماته یوه خاص واقعه رایاده کړه، هغه دا چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ټولو نه اخری قرأت واوریدو هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم دې سورة لره لوستل وو کوم چه هغه د ماښام په مونځ کښې لوستلې وو. د بخاری په یو روایت کښې تصریح ده هغې به فرمائیل چه دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم اخری مونځ وو، د هغې نه روستو رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې د مونځ موقع رانغله.

## د آخر ما صلی په باره کښې اختلاف روایات

ځان پوهه کړه چه دا روایت هم دغه شان په بخاری کښې موجود دې او د بخاری په یو بل روایت کښې چه د عائشې رضی الله عنها نه روایت دې چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم اخری مونځ د ماسپخین دې، اوس په دې دواړو روایتونو کښې په ظاهره تعارض دې، جواب دا دې چه د عائشې رضی الله عنها مراد دا دې چه د هغه اخری هغه مونځ کوم چه ئې اخری په مسجد کښې د جماعت سره ادا کړې دې هغه ماسپخین دې (٢) او د ام الفضل مراد صلاة المغرب فی البیت دې نو ګویا د هر یو اخر کیدل په دوه مختلف اعتبارو سره دی او د رسول الله صلی الله علیه وسلم اخری مونځ کوم چه هر اعتبار سره اخری وو هغه ظاهره ده چه د ګل په ورځ د سحر مونځ دې کوم چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په کور کښې منفردا ادا کړې وو لکه چه دا خبره ثابته کړې ده امام ابن کثیر رحمه الله په البدایه والنهایه کښې، د بخاری او مسلم روایاتو ته کتلو سره، په دې کښې د امام بیهقی رحمه الله رائې بالکل جدا ده، د بعض روایاتو ظاهر ته کتلو سره هغه فرمائی چه د هغه اخری مونځ د ګل د ورځې د سحر مونځ وو کوم چه ئې په ابوبکر صدیق رضی الله عنه پسې کړې وو، حافظ ابن کثیر ددې رائې سخت تردید کړې دې، دا ټول بحث په الفیض السمائی

[1]: صحیح البخاري/الأذان ٩٨ (٧٦٣)، والمغازي ٨٣ (٤٤٢٩)، صحیح مسلم/الصلاة ٣٥ (٤٦٢)، سنن الترمذي/الصلاة ١١٨ (٣٠٨)، سنن النسائي/الافتتاح ٦٤ (٩٨٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٩ (٨٣١)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٥٢)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ٥ (٢٤)، مسند أحمد (٦/٣٣٨، ٣٤٠)، سنن الدارمي/الصلاة ٦٤ (١٣٣١) (صحیح)

[2] اودا واقعه دیوم الخمیس ده یعنی د وفات نه څلور ورځې مخکښې کما اثبته الحافظ ابن کثیر بروایة البخاري ١٢)

کښې ډیر په تفصیل کښې مذکور دي.

[۸۱۱]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَقْرَأُ بِالطُّورِ فِي الْمَغْرِبِ".

**ترجمه:** د محمد بن جبیر بن نه روایت دي هغه د خپل پلار نه روایت کړی دی، بیشکه هغه وئیلی دي: ما اوریدلی دی د رسول الله ﷺ نه چې لوستلو سورة الطور په ماښام کښې.

**تشریح: قوله:** ﴿ يقرا بالطور فی المغرب ﴾ د دې حدیث په باره کښې د امام دارقطنی رائې دا ده لکه چه ابن رسلان لیکلې دی ﴿ وهم فيه بعض الرواة وانما هو فى الركعتين بعد المغرب وقال الترمذی کره مالک الطوال فى المغرب ﴾ (حاشية البذل)

د کومو روایاتو نه د ماښام په مونځ کښې کښې تطویل قرأت ثابتیږی، علماء کرامو ددې مختلف جوابات کړې دی. ۱: لبيان الجواز، ۲: لعدم المشقة على القوم، ۳: منسوخ، ۴: لعله يقراء بعض السورة الطويلة، قاله الطحاوی وابن الجوزی، او خاص طور سره د جبیر بن مطعم د حدیث جواب د دارقطنی د طرف نه تیر شو.

## ایا د ماښام په مونځ کښې د تطویل قراءة ثبوت شته

دا خبره مخکښې تیره شوې ده چه د سحر په مونځ کښې تطویل او د ماښام په مونځ کښې تقصیر فی القرأت متفق علیه دي خو په ماښام کښې د بعض علماء کرامو اختلاف منقول دې، او امام ترمذی د امام شافعی نه نقل کړې دی چه امام مالک رحمه الله په تطویل فی المغرب مکروه ګنړلو، امام شافعی رحمه الله فرمائی خو زه دا مکروه نه ګنړم بلکه مستحب ئې ګنړم چه دا سورتونه دې هم په ماښام کښې اولوستلې شی، په دې باندې حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی چه علامه بغوی هم په شرح السنة کښې د امام شافعی نه داسې استحباب نقل کړې دې، خو معروف د شوافعو په نزد چه ددې اوږدو سورتونو په لوستلو کښې نه کراهت شته او نه استحباب، حافظ فرمائی چه په مغرب کښې د قصار مفصل تنصیص، ماته په یو مرفوع حدیث کښې نه دې ملاؤ شوې سوا د ابن ماجه د یو حدیث نه کوم چه په روایت د ابن عمر رضی الله عنه مرفوعا چه په هغې کښې دا دی چه رسول الله ﷺ به د ماښام په مونځ کښې ﴿ قل يا ايها الكافرون ﴾ او ﴿ قل هو الله احد ﴾ لوستلو، او یو هغه حدیث د ابوهریره رضی الله عنه چه د هغې تخریج نسائی او ابن خزیمه وغیره کړې دې ﴿ ما صليت وراء احد اشبه صلاة برسول الله صلى الله عليه وسلم من فلان قال سليمان (الراوی) يقراء فى المغرب بقصار المفصل... ويقراء فى الصبح بطول المفصل ﴾ او هم دغه شان حدیث رافع ﴿ انهم كانوا ينتضلون بعد صلاة المغرب ﴾ دا هم په مغرب کښې په تخفیف قرأت باندې دلالت کوی.

---

[1]: صحيح البخاري/الأذان ٩٩ (٧٦٥)، والجهاد ١٧٢ (٣٠٥٠)، والمغازي ١٢ (٤٠٢٣)، وتفسير الطور ١ (٤٨٥٤)، صحيح مسلم/الصلاة ٣٥ (٤٦٣)، سنن النسائي/الافتتاح ٦٥ (٩٨٨)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٩ (٨٣٢)، (تحفة الأشراف: ٣١٨٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ٥(٢٣)، مسند احمد (٤/٨٠، ٨٣، ٨٤، ٨٥)، سنن الدارمي/الصلاة ٦٤ (١٣٣٢) (صحيح)

[۸۱۲]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ مَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ، قَالَ: قَالَ لِي زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ: مَا لَكَ تَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِقِصَارِ الْمُفَصَّلِ، وَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِطُولَى الطُّولَيَيْنِ؟ قَالَ: قُلْتُ: مَا طُولَى الطُّولَيَيْنِ؟ قَالَ: الْأَعْرَافُ، وَالْأُخْرَى الْأَنْعَامُ". قَالَ: وَسَأَلْتُ أَنَا ابْنَ أَبِي مُلَيْكَةَ، فَقَالَ لِي مِنْ قِبَلِ نَفْسِهِ: الْمَائِدَةُ، وَالْأَعْرَافُ.

**ترجمه:** د مروان بن الحکم نه روایت دې هغه وئیلی دی ما ته زید بن ثابت وویل: څه دې تاله چې ته لولې په ماښام کښې قصار مفصل او بیشکه ما لیدلی وو رسول الله ﷺ چې لوستلو ئې په ماښام کښې دوه اوږده سورتونه. هغه وایی چې ما وویل: دوه اوږده سورتونه کوم یو دې؟ هغه وویل: سورة الأعراف او بل سورة الانعام، هغه وویل: ما تپوس وکړو د ابن ابی ملیکه نه هغه ماته وویل: د خپل ځان نه سورة المائدة او اعراف.

**تشریح: قوله:**﴿ عن مروان بن الحکم قال : قال لی زید بن ثابت الخ ﴾ زید بن ثابت رضی الله عنه مروان ته اوفرمائیل چه څه خبره ده چه ته د ماښام په مونځ کښې همیشه قصار مفصل لولې، حال دا چه ما رسول الله ﷺ لیدلې دې چه په مغرب کښې به ئې په دوه اوږدو سورتونو کښې چه کوم زیات اوږد سورت دې هغه لوستلو، په دې باندې د عروه نه تپوس اوکړې شو چه ددې دواړو سورتونو نه څه مراد دې نو هغه اوفرمائیل سورة اعراف او سورة انعام، او په هغې کښې زیات اوږد اعراف دې، په اعراف کښې څلیرشت رکوع ګانې دی او په انعام کښې شل، او ددې په باره کښې د ابن ابی ملیکه نه تپوس اوکړې شو نو هغه اوفرمائیل چه مراد سورة المائده والاعراف دې، په مائده کښې صرف شپاړس رکوع ګانې دی نو ګویا د زیات اوږد مصداق په دواړو اقوالو باندې اعراف شو، او د ثانی په مصداق کښې اختلاف شو چه هغه مائده دې یا انعام.

## په مقدار قراءت فی الصلاة کښې د صاحب بدائع رائې

ځان پوهه کړه چه د قرأت مستحبه په باره کښې چه کوم تفصیل په شروع کښې لیکلې شوې دې هغه د جمهور فقهاء کرامو رائې ده، او په فقهاء احناف کښې د صاحب بدائع رائې په دې کښې مختلف ده هغه په قرأت کښې د عدم تقدیر قائل دې، او فرمائی چه ددې مدار د وخت په ګنجائش او د قوم په رعایت باندې دې، یعنی د مونځ کونکو رعایت زیات اهم او مقدم دې څکه چه په حدیث شریف کښې ﴿ من ام قوما فلیخفف ﴾ راغلې دې، لهذا د امام دپاره مناسب دا ده چه دومره قرأت اوکړی چه په قوم باندې ګران نه شی، حضرت شیخ فرمائی چه زما والد صاحب مولانا محمد یحیی به هم دا رائې خوښوله، او هم دغه شان په در مختار وغیره کښې تصریح ده چه د مفصل په سورتونو کښې چه کوم تقسیم د مونځونو په حق کښې کړې شوې دې په فلانې مونځ کښې فلانې سورت او په فلانی کښې فلانې دا په حالت د حضر کښې دې په سفر کښې نه هم په دې کښې اختیار دې چه څنګه د وخت تقاضه وی.

[1] ): صحيح البخاري/الأذان ۹۸ (۷٦٤)، سنن النسائي/الافتتاح ٦۷ (۹۹۰)، (تحفة الأشراف: ۳۷۳۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۵/۵، ۱۸۷، ۱۸۸، ۱۸۹) (صحيح)

# بَابُ مَنْ رَأَى التَّخْفِيفَ فِيهَا

## باب دي په دليل د هغه چا کښې چه په مغرب کښ د تخفيف قائل دي

[٨١٣]([1]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، أَنَّ أَبَاهُ كَانَ "يَقْرَأُ فِي صَلاَةِ الْمَغْرِبِ بِنَحْوِ مَا تَقْرَءُونَ وَالْعَادِيَاتِ وَنَحْوِهَا مِنَ السُّوَرِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا يَدُلُّ عَلَى أَنَّ ذَاكَ مَنْسُوخٌ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا أَصَحُّ.

**ترجمه:** د هشام بن عروة نه روايت دي بيشکه د هغه پلار به لوستلو د ماښام په مونځ کښې په اندازه د هغې چې تاسويې لولئ د والعاديات نه او ددې په اندازه نور سورتونه. وئيلي دي ابوداود: دا دلالت کوي چې هغه منسوخ دی، وئيلي دی ابوداود: او دا اصح دی.

**تشريح: قوله:** ﴿ قال ابوداود: هذا يدل على ان ذاک منسوخ ﴾ يعني دا د عروه فعل په دې باندې دلالت کوی چه هغه چه په اول باب کښې د ماښام په مونځ کښې د اوږدو سورتونو لوستل ثابت دی هغه منسوخ دی، نسخ په ظاهره دې اعتبار سره ده چه د تير شوی روايت راوی عروه وو او د هغه دا عمل د هغه د بيان کړی روايت خلاف دې او مشهوره ده چه د راوی عمل د خپل روايت خلاف د نسخ دليل وی، د امام ابوداود په رائې باندې حافظ ابن حجر دا اشکال کړې دې چه د ام الفضل روايت چه په هغې کښې د ماښام په مونځ کښې ﴿والمرسلات﴾ د رسول الله ﷺ نه لوستل مذکور دی کوم چه د رسول الله ﷺ د اخری عمر مونځ وو هغې ته منسوخ څنګه وئيلې کيدې شی، خو زه وائم چه که د امام طحاوی او ابن الجوزی توجيه واخستلې شي نو بيا به د حافظ اشکال صحيح نه وی.

[٨١٤]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ السَّرْخَسِيُّ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْحَاقَ، يُحَدِّثُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّهُ قَالَ: "مَا مِنَ الْمُفَصَّلِ سُورَةٌ صَغِيرَةٌ وَلاَ كَبِيرَةٌ إِلاَّ وَقَدْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَؤُمُّ النَّاسَ بِهَا فِي الصَّلاَةِ الْمَكْتُوبَةِ".

**ترجمه:** عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه پلار ئې د خپل پلار نه روايت کوی بيشکه هغه وئيلي دي: نشته په مفصلو کښې ورکوټې يا غټ سورت مګر ما اوريدلی دی د رسول الله ﷺ نه چې خلکو ته به ئې امامتی کوله په هغې سره په فرض مانځه کښې.

**تشريح: قوله:** ﴿ حدثنا احمد بن سعيد ﴾ په بذل کښې ليکی چه دا حديث په ترجمة الباب کښې يعنی د تخفيف فی المغرب سره څه مناسبت قريبه نه لری.

### د حديث د ترجمة الباب سره مناسبت

زه وايم چه خبره خو هم دا ده خو دا هم وئيلې کيدې شی چه ددې حديث نه مطلقا په ټولو مونځونو کښې تخفيف فی القرآت مستفاد کيږی او چه هر کله په ټولو مونځونو کښې تخفيف ثابت شو نو په مغرب کښې هم دغه شان راغلو. او دا په دې وجه چه تخفيف او تطويل د امور اضافيه نه دې، د مفصل تول سورتونه قصار دی د مينځ او مثانی په مقابله کښې، دا جدا خبره ده چه خپله په مفصل کښې بعض لوئې او بعض واړه دی. والله تعالى اعلم

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٠٣٤أ) (صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٧٨٨) (ضعيف)

[۸۱۵] (١) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا قُرَّةُ، عَنِ النَّزَّالِ بْنِ عَمَّارٍ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ، أَنَّهُ "صَلَّى خَلْفَ ابْنِ مَسْعُودٍ الْمَغْرِبَ، فَقَرَأَ: قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ".

**ترجمه**: د ابو عثمان النهدي نه روايت دي بيشكه هغه مونځ وكړو وروسته د ابن مسعود نه د ماښام نو ويې لوستلو: قل هو الله احد.

## بَابُ الرَّجُلِ يُعِيدُ سُورَةً وَاحِدَةً فِي الرَّكْعَتَيْنِ

### باب دې په بيان د سړي كې چې تكراروي يو سورت په دوه ركعاتونو كې

د يوسورت تكرار په دوه ركعتونو كښې داحنافو اوحنابله په نزد بغير د كراهت نه جائز دي، مالكيان او بعض احناف د كراهت طرف ته تلي دي او د شوافع په نزد خلاف اولى دي. (منهل)

[۸۱۶] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، عَنِ ابْنِ أَبِي هِلَالٍ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْجُهَنِيِّ، أَنَّ رَجُلًا مِنْ جُهَيْنَةَ، أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَقْرَأُ فِي الصُّبْحِ: إِذَا زُلْزِلَتِ الْأَرْضُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ كِلْتَيْهِمَا". فَلَا أَدْرِي أَنَسِيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمْ قَرَأَ ذَلِكَ عَمْدًا.

**ترجمه**: د معاذ بن عبد الله الجهني نه روايت دې، بيشكه يو سړي د جهينه خبر وركړې دی هغه ته، چې هغه اوريدلی دی د نبی ﷺ نه، چې لوستلو ئې د سحر په مونځ كښې اذا زلزلت الارض په دواړو ركعاتونو كښې، زه نه پوهېږم چې د رسول الله ﷺ نه هېر شو او كه دايې قصداً ولوستلو.

## بَابُ الْقِرَاءَةِ فِي الْفَجْرِ

### باب دې په بيان د قرات كې د سحر په مونځ كې

حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي الْمِنْهَالِ، عَنْ أَبِي بَرْزَةَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الْفَجْرَ وَيَعْرِفُ أَحَدُنَا جَلِيسَهُ الَّذِي كَانَ يَعْرِفُهُ وَيَقْرَأُ فِيهَا مِنَ السِّتِّينَ إِلَى الْمِئَةِ.

): تفرد به أبوداؤد (تحفة الأشراف: ۱۳۶۱۹)، وقد أخرجه مسند احمد ۴۲۸/۲)

**ترجمه**: حضرت ابو برزه رضى الله عنه فرمائى چه نبى اكرم ﷺ به د سحر مونځ كولو نو مونږ به دځان سره نزدې هغه كس پيژندلو چه مونږ به د مخكښې نه پيژندلو، او نبى كريم ﷺ به په دې مونځ كښې د شپيتو نه واخله تر سلو پورې آياتونه لوستل.

**قوله**: ﴿ عن ابى برزة وقال ﴾ د ابوبرزه اسلمى ؓ دا حديث متفق عليه دې او د بخاری په روايت كښې داسې دی ﴿ في الركعتين او احدهما ﴾ يعنى په دواړو ركعتونو كښې يا په يو ركعت كښې سل يا شپيته آيتونه لوستل، او د مسلم په يو روايت كښې په روايت د جابر بن سمره ؓ فى الصبح بق راغلي دې، او هم ددې په دويم روايت كښې بالصفت او په مستدرک حاكم كښې په يو روايت كښې سورة واقعه راغلي دې قاله الحافظ.

هم دغه شان د مسلم په يو روايت كښې دی او په ابوداود كښې هم باب الصلاة فى النعل هم تير شوي دې، انه صلى الله عليه وسلم بمكة فاستفتح سورة المومنين، الحديث

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۳۸۰) (ضعيف)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۶۷۳) (حسن)

[٨١٧]()حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى يَعْنِي ابْنَ يُونُسَ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ أَصْبَغَ مَوْلَى عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ، قَالَ: كَأَنِّي أَسْمَعُ صَوْتَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَقْرَأُ فِي صَلَاةِ الْغَدَاةِ: فَلَا أُقْسِمُ بِالْخُنَّسِ ١٥ الْجَوَارِ الْكُنَّسِ ١٦ سورة التكوير آية ١٥-١٦".

**ترجمه**: د عمرو بن حريث نه روايت دې هغه وئيلى دي: ګويا كښې زه اورم اواز د نبى ﷺ چې لوستلويى د سحر په مونځ كښې فلا أقسم بالخنس الجوار الكنس.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ عن عمرو بن حريث قال: ﴾ صحابى د خپل قوت حافظه طرف ته اشاره كوى چه ګويا زه دې وخت كښې اورم د رسول الله ﷺ د سحر په مونځ كښې دا آيت كريمه لوستل يعنى هغه سورة چه په هغې كښې دا آيت كريمه ذكر دې ﴿ اذا الشمس كورت ﴾ (٢) د احنافو په نزد په طوال مفصل كښې دې او د جمهورو په نزد په اوساط كښې.

## بَابُ مَنْ تَرَكَ الْقِرَاءَةَ فِي صَلَاتِهِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ

### باب دې په بيان د هغه چاكې چې په مانځه كې قراءت د سورة فاتحې پريږدى

د قرأت په ركنيت كښې چه كوم اختلاف دې هغه مونږ سره د ابواب القرأت په شروع كښې تير شوي دې، په اصل كښې دلته درې مسائل دى د قرات حكم چه فرض دې يا سنت، او مسئله ثانيه چه ركن قرأت مطلق قرأت دې يا خاص سورة فاتحه، او دريمه مسئله قرأت خلف الامام، اوله مسئله خو تيره شوه.

### په ركنيت د فاتحه كښې د ائمه ؤ اختلاف

دلته په حديث الباب كښې مسئله ثانيه مذكور ده پس دا مسئله مختلف فيه ده د احنافو په نزد نفس قرأت فرض دې او د فاتحې تعيين واجب، او د جمهور علماء ائمه ثلاث په نزد د ركن قرأت مصداق نفس قرأت نه دې بلكه سورة فاتحه ده، كه څوک ټول قران اولولى او فاتحه او نه لولى نو فرض به نه ادا كيږي، احناف وائى چه د نفس قرأت ثبوت د نص قطعى نه دې لهذا هغه به فرض وى او د فاتحه تعيين د اخبار احاد نه دې لهذا د فاتحې لوستل به واجب وى نه فرض، بغير د فاتحې نه به فرض ادا شى خو مونځ به ناقص او واجب الاعاده وى، الغرض احناف ما ثبت بالقران ته فرض او ما ثبت بالسنة ته واجب وائى.

---

(١): سنن ابن ماجه/ إقامة الصلاة ٥ (٨١٧)، (تحفة الأشراف: ١٠٧١٥)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الصلاة ٣٥ (٤٥٦)، مسند احمد (٤/٣٠٦، ٣٠٧)، سنن الدارمي/الصلاة ٦٦ (١٣٣٦) (صحيح)

(٢) زما په خيال خاص طور سره چه دا آيت كريمه ذكر كوى كيدې شى چه ددې وجه دا وى چه ددې آيت كريمه د اوريدلو په وخت په هغه صحابى باندې څه خاص كيفيت راغلې وى، په دې وجه دا آيت كريمه خاص طور سره ياد پاتې شو او په دې كښې څه شک دې چه دا حضرات د زړونو خاوندان وو، او دا هم ممكنه ده چه كوم وخت كښې دوى د مانځه دپاره مسجد ته داخل شو هغه وخت رسول الله ﷺ دا آيت كريمه تلاوت كولو، د حضرت سهارنپورى په حالاتو كښې ليكلې دى چه هر كله زما د ټولو نه اول ګنګوه ته حاضرى اوشوه نو... نو هغه وخت حضرت اقدس ګنګوهى په تراويح كښې قران كريم اورولو... كوم آيت كريمه چه ئې د ټولو نه اول په غوږونو كښې پريوتلو هغه د سورة احزاب دا آيت كريمه وو ﴿ اشحة على الخير ﴾ ١٢).

[٨١٨]( ) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: "أُمِرْنَا أَنْ نَقْرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَمَا تَيَسَّرَ".

**ترجمه**: د ابو سعيد الخدری رضی الله عنه نه روايت دې، هغه وئيلی دي: مونږ ته امر شوی دی چې لولو سورة الفاتحه او هغه چې اسان وي.

[٨١٩]( ) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مَيْمُونٍ الْبَصْرِيِّ، حَدَّثَنَا أَبُو عُثْمَانَ النَّهْدِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اخْرُجْ فَنَادِ فِي الْمَدِينَةِ أَنَّهُ لَا صَلَاةَ إِلَّا بِقُرْآنٍ وَلَوْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ فَمَا زَادَ".

**ترجمه**: ابو عثمان النهدی حديث بيان کړې دې د ابو هريره رضی الله عنه نه هغه وئيلی دي: چې ماته رسول الله صلی الله عليه وسلم ووييل: لاړ شه اواز وکړه په مدينه کښې بيشکه مونځ نشته مګر په قرآن سره اګر چه سورت فاتحه ولې نه وي. او يا زيات د دې نه.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ امرنا ان نقرأ بفاتحة الكتاب وما تيسر ﴾ او ددې نه وړاندې حديث مرفوع دې چه د هغې راوی ابوهريره رضی الله عنه دې. ﴿ لا صلاة الا بقراءة فاتحة الكتاب فما زاد ﴾

## حديث د احنافو موافق دې

دا دواړه احاديث د جمهورو خلاف دی، اول په دې وجه چه په دې کښې د فاتحې نه علاوه ﴿ ما تيسر ﴾ مذکور دې يعنی د سورة ضم کول ځکه چه جمهور د سورة د ضم کولو د استحباب قائل دی، په خلاف د احنافو چه هغه فاتحه او د سورة ضم کولو دواړه واجب منی، او دويم حديث د دواړو حيثيتو نه د هغوی خلاف دې يو خو په دې وجه چه په دې کښې ﴿ ما زاد على الفاتحة ﴾ مذکور دې، او دويم په دې وجه چه په دې کښې د فاتحې تعيين نشته بلکه دا دی ﴿الا بقران ﴾، هغه حضرات فرمائی چه دا حديث ضعيف دې په دې کښې جعفر بن ميمون دې، ددې جواب حضرت په بذل کښې دا ورکړې دې چه د جعفر بن ميمون ډيرو حضراتو توثيق کړې دې، غرض دا چه متروک بالاتفاق نه دی.

[٨٢٠]( ) حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، حَدَّثَنَا جَعْفَرٌ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أُنَادِيَ أَنَّهُ لَا صَلَاةَ إِلَّا بِقِرَاءَةِ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ فَمَا زَادَ".

**ترجمه**: د ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې، هغه وئيلی دي: ماته امر وکړو رسول الله صلی الله عليه وسلم چې زه اعلان وکړم، بيشکه مونځ نشته مګر په قرأت د فاتحې، او هغه چې زيات وي.

[٨٢١]( ) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا السَّائِبِ مَوْلَى هِشَامِ بْنِ زُهْرَةَ،

---

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٣٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩٧،٤٥/٣) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٦١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٨/٢) (منكر)

[3]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٣٦١٩) (صحيح)

[4]: صحيح مسلم/الصلاة ١١ (٣٩٥)، سنن الترمذي/تفسير الفاتحة ٢ (٢٩٥٣)، سنن النسائي/الافتتاح ٢٣ (٩١٠)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١١ (٨٣٨)، (تحفة الأشراف: ١٤٩٣٥، ١٤٠٤٥)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ٩ (٣٩)، مسند احمد (٢٤١/٢، ٢٥٠، ٢٨٥، ٢٩٠، ٤٥٧، ٤٨٧) (صحيح)

يَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ صَلَّى صَلَاةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ، فَهِيَ خِدَاجٌ، فَهِيَ خِدَاجٌ، فَهِيَ خِدَاجٌ، غَيْرُ تَمَامٍ". قَالَ: فَقُلْتُ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ، إِنِّي أَكُونُ أَحْيَانًا وَرَاءَ الْإِمَامِ قَالَ: فَغَمَزَ ذِرَاعِي، وَقَالَ: اقْرَأْ بِهَا يَا فَارِسِيُّ فِي نَفْسِكَ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى: قَسَمْتُ الصَّلَاةَ بَيْنِي وَبَيْنَ عَبْدِي نِصْفَيْنِ: فَنِصْفُهَا لِي، وَنِصْفُهَا لِعَبْدِي، وَلِعَبْدِي مَا سَأَلَ" قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اقْرَءُوا يَقُولُ الْعَبْدُ {الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ} [الفاتحة: ٢] يَقُولُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ: حَمِدَنِي عَبْدِي، يَقُولُ: {الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ} [الفاتحة: ١]، يَقُولُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ: أَثْنَى عَلَيَّ عَبْدِي، يَقُولُ الْعَبْدُ {مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ}، يَقُولُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ: مَجَّدَنِي عَبْدِي، يَقُولُ الْعَبْدُ {إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ} [الفاتحة: ٥]، يَقُولُ اللّٰهُ: هَذِهِ بَيْنِي وَبَيْنَ عَبْدِي وَلِعَبْدِي مَا سَأَلَ، يَقُولُ الْعَبْدُ {اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ، صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ، وَلَا الضَّالِّينَ} [الفاتحة: ٧]، يَقُولُ اللّٰهُ: فَهَؤُلَاءِ لِعَبْدِي وَلِعَبْدِي مَا سَأَلَ"

**ترجمه:** علاء بن عبد الرحمن نه روايت دي، بيشكه هغه اوريدلى دى د ابو السائب نه چې مولى د هشام بن زهره دى هغه وئيل: ما اوريدلى دى د ابو هريره نه هغه به وئيل. وئيلى دى رسول الله ﷺ چا چې مونځ وكړو او سورة فاتحه ئې پكې ونه وئيله نو دا ناقص دى، دا ناقص دى، دا ناقص دى، پوره نه دى. هغه وايي: ما ووئيل اى ابو هريره! زه كله د امام نه وروسته يم، هغه وايي: زه ئې وسكوندلم په څنګل خپلې سره او ويې وئيل: لوله دا په خپل نفس كښې اى فارسي، بيشكه ما اوريدلى دى د رسول الله ﷺ نه هغه وئيل: وئيلى دى الله تعالى ما تقسيم كړى دى مونځ په مابين زما او مابين د بنده زما كښې دوه حصې: نيم زما دى او نيم زما د بنده ديو او زما د بنده لپاره هغه څه دې چې د كوم ئې سوال كړى دى، ووئيل رسول الله ﷺ ولولئ، وايي بنده (الحمد لله رب العالمين) وايي الله تعالى بنده زما حمد ووئيلو، هغه وايي: (الرحمن الرحيم) وايي الله تعالى ثناء ووئيله زما بنده زما، وايي بنده (مالک يوم الدين) وايي الله تعالى لويى بيان كړه مالره بنده زما، وايي بنده (اياک نعبد و اياک نستعين) وايي الله تعالى دا زما او زما د بنده په مينځ دى، او زما د بنده لپاره هغه شى دى چې د كوم ئې سوال كړى دى، وايي بنده (اهدنا الصراط المستقيم، صراط الذين انعمت عليهم غير المغضوب عليهم و لا الضالين) وايي الله تعالى دا زما د بنده لپاره دى، او زما د بنده لپاره هغه څه دې چې د څه ئې سوال كړى دى.

**تشريح: قوله:** ﴿ من صلى صلاة لم يقرأ بها بام القران فهى خداج فهى خداج غير تمام ﴾ خداج اى ذات خداج، خداج په معنى د نقصان، چه بغير د فاتحې د قرأت نه مونځ ناقص دې، او هم دا خبره احناف كوى چه دا لفظ اخستلې شوې دې د ﴿ خدجت الناقة ولدها ﴾ ته او دا هغه وخت وئيلې شى چه كله د اوښې بچې پيدا شى د مودې د پوره كيدو نه مخكښې ﴿ وان كمل خلقه ﴾ اګر چه هغه بچې كامل الخلقة او تام الاعضاء وى، لهذا كوم مونځ چه بغير د فاتحې نه اوكړې شى هغه د اركان او فرائض په اعتبار سره پوره دې، اګر چه د صفت نقصان سره متصف دې.

**قوله:** ﴿ فقلت يا ابا هريرة انى اكون احيانا وراء الامام ﴾ دې د ابوهريره رضي الله عنه اثر كښې د فاتحه خلف الامام مسئله ذكر ده، اول به دې كښې د ائمه كرامو اختلاف واورئ:

## په فاتحه خلف الامام کښې مذاهب ائمه

فاتحه خلف الامام د ائمه ثلاث احناف، مالکيانو او حنابله په نزد غير واجب دې د امام شافعي قول قديم هم دا دې او د هغه په قول جديد کښې قرأت فاتحه خلف الامام مطلقا في الجهرية والسرية فرض ده بغير ددې نه مونځ نه صحيح کيږي، غرض دا چه په دې باندې خو جمهور د شوافعو نه علاوه متفق دی چه واجب نه ده، بيا وړاندې په استحباب او کراهت کښې اختلاف دې، د احنافو په نزد مکروه تحريمی دې او د مالکيانو او حنابله په نزد په صلاة سريه کښې مستحب او په جهريه کښې مکروه ده، البته امام احمد فرمائی چه په جهری مونځ کښې که مقتدی د امام قرأت نه اوری او هغه ته اواز نه رسيږی بيا هم مستحب دې، هم دغه شان په احنافو کښې امام محمد رحمه الله هم په سری مونځ کښې د استحباب قرأت قائل دې. (کما في البذل ج ۲ ص ۵۷)

امام بخاری رحمه الله باب قائم فرمائيلي دې "باب وجوب القراءة على الامام والماموم" علامه قسطلانی ددې باب په شرح کښې ليکی "وهو قول الجمهور خلافا للحنفية" په دې باندې په حاشيه د لامع کښې حضرت شيخ ليکلي دی چه د تعجب خبره ده چه وجوب القراءة على المقتدی ته قسطلانی د جمهورو قول څنګه اووې حال دا چه ائمه ثلاث د عدم وجوب قائل دی.

زمونږ علماء کرام فرمائی چه د شوافعو سره يو حديث هم داسې صحيح او صريح نشته چه د هغې نه د قرأت خلف الامام وجوب ثابتيږی، ځکه چه د کومو رواياتو نه د فاتحې وجوب ثابتيږی هغه د خلف الامام سره متعلق نه دی، او کوم چه د خلف الامام سره متعلق دی د هغې نه وجوب نه ثابتيږی بلکه زيات نه زيات اباحت ثابتيږی.

بيا خان پوهه کړئ چه د شوافعو سره په دې سلسله کښې بس يو صحيح او زور دار دليل دې يعنی د عبادة بن الصامت رضي الله عنه کوم چه متفق عليه دې، د هغې نه علاوه چه کوم نور احاديث دی په هغې کښې چونکه ﴿ الا بفاتحة فما زاد ﴾ الفاظو زيادت دې او ددې زيادت د وجوب شوافع قائل نه دی په دې وجه هغوی دا قسم روايات صرف په منفرد باندې محمول کوی، يعنی په غير مقتدی باندې، پس امير يمانی په سبل السلام شرح بلوغ المرام کښې ددې تصريح کړې ده او هغه د فاتحه خلف الامام قائل دی، دا حديث د عباده په ابوداود کښې هم وړاندې راروان دې ددې جوابات به هم هلته ورکولې شي.

اوس تاسو د ابوهريره رضي الله عنه د اثر چه په متن کښې مذکور دې د هغې په باره کښې واورئ هغه فرمائی ﴿ اقرا بها يا فارسی في نفسک ﴾ قرأت في النفس يعنی په زړه زړه کښې لوستل استحضار مضمون ته وئيلې شي او ددې مونږ هم منکر نه يو.

## د اقرأ بها في نفسک تشريح

**قوله:**﴿ فانی سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: قال الله تعالى ﴾ ابوهريره رضي الله عنه په خپله مدعا يعنی قرأت فاتحه في النفس باندې دليل پيش کوی چه د هغې حاصل دا دې چه سورة فاتحه ډير مبارک او په دعاګانو باندې مشتمل سورت دې، نول په نوله خير دې زه په دې

باندې وايم چه ددې نه معلوميږي چه خپله د ابوهريره ﷺ په نزد ﴿ لا صلاة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب ﴾ عام نه دې، مقتدي په دې کښې داخل نه دې ځکه چه که دا عام وې نو بيا ابوهريره ﷺ لره د سائل په جواب کښې داسې وئيل پکار وو چه هر کله رسول الله ﷺ صفا فرمائي چه ﴿ لا صلاة الا بفاتحة الكتاب ﴾ نو بيا تاته په خلف الامام لوستلو کښې څه تردد دې؟ بيا خو د هغه بيان کړې شوې روايت د دليل دپاره کافي وو، د مزيد دليل او استدلال حاجت نه وو، معلومه شوه چه هغه خپله هم په دې پوهه وو چه دا حديث د مقتدي په حق کښې نه دې، هم دغه شان ابوهريره ﷺ چه ددې په استدلال کښې کوم دليل پيش کړې دې هغه د فضائلو د قبيلې نه دې نه د فرائض د قبيل نه، نو که بالفرض اومنلې شي چه د ابوهريره ﷺ مراد دا دې چه په امام پسې حقيقة قرأت نه دی کيدل پکار نو بيا په دې دويم دليل سره صرف فضيلت ثابتيږي نه فرضيت، او صرف د فضيلت په ثبوت سره د شوافعو مقصد نه حاصليږي هغوی خو د فرضيت فاتحه قائل دی، زه وائم زمونږ خبرې په مسائلو کښې دی نه په فضائلو کښې او هغه حديث پيش کوی د فضيلت والا او د حديث مرفوع نه وجوب ثابتيدلې شی هغه دوی نه پيش کوی څه وجه ده؟ هم دا وجه ده چه د هغوی په نزد هم ددې محمل مقتدي نه دې.

دلته يوه خبره دا هم کتل پکار دی چه ابوهريره ﷺ غمز ذراع ولې کړې دې يعنی په خنګل سره ئې ولې متوجه کوی؟ شاګرد ته اشاره کوی چه خاموش اوسه شور مه کوه، سورة فاتحه ډير د فضيلت والا سورت دې ددې قرأت نه دی هيرول پکار، حضرت شيخ به فرمائيل بلکه په اوجز کښې ئې هم ليکلې دی چه ابوهريره ﷺ به بعض وخت د رسول الله ﷺ د محبت د وجې نه ظاهره ده په حديث باندې عمل کولو پس په مسلم شريف کښې دی چه ابوهريره ﷺ يو ځل اودس کولو چه په هغې کښې هغه خپل لاسونه د خپلو ترخونو پورې وينځل شاته ئې يو عجمي شاګرد ولاړ وو هغه ترې تپوس اوکړو ﴿ ما هذا يا ابا هريرة ﴾ هغه ته معلومه نه وه چه دلته څوک ولاړ دې او ما داسې په اودس کولو باندې وينی، فورا متوجه شو او وې فرمائيل ﴿ يا بنى فروخ انتم ههنا لو علمت انكم ههنا ما توضات هذا الوضوء ﴾ اې عجميانو! تاسو دلته يئ! که ماته معلومه وی چه تاسو دلته يئ نو ما به داسې اودس نه کولو، ولې؟ ځکه چه دا طرز عمل د جمهور صحابه کرامو د مسلک خلاف وو خو هغه ظاهر حديث کوم چه د اثار فضيلت په باره کښې په دې باندې عمل کولو سره داسې کول، او چونکه د هغه دا طرز عمل د جمهورو د مسلک خلاف وو ددې په اظهار کښې د انتشار ويره وه په دې وجه ئې هغه د چا په وړاندې هم ذکر نه کړو، دغه شان خبره دلته هم موندلې شوې ده چه هغه شاګرد په خنګل باندې اووهلو او ورته ئې اووې چه خاموش شه، چه هرځنګه وی دا سورت لوله، او که مراد دا واخستلې شی چه ددې سورت د مضمون استحضار ساته نو بيا هيڅ قسم اشکال نشته.

**قوله:** ﴿ فنصفها لى ونصفها لعبدى ﴾ د دې حديث نه معلوميږي چه د سورة فاتحه اووه آيتونه دی چه په هغې کښې د شروع درې آيتونه د الله پاک په لوئې والی او د هغه په حمد وثناء

کښې دی او په اخری درې ایتونو کښې د بنده د خپل ځان دپاره دعا ده او درمیانی څلورم آیت ﴿ایاک نعبد وایاک نستعین﴾ د الله پاک او بنده ترمینځه مشترک دې د حمدوثناء او د دعا ترمینځه، او د بسم الله په دې کښې چرته هم ذکر نشته ددې نه معلومه شوه چه بسم الله د فاتحې جزء نه دې، امام نووي رحمه الله د شوافعو د طرف نه کوم چه د بسم الله د جزئیت قائل دی ډیر جوابات ورکړې دی، علامه شوکاني رحمه الله فرمائي چه په دې کښې بعض جوابات خو د هغوی په حق کښې فائده نه لري او بعض د تعسف نه خالي نه دی.

[٨٢٢]()حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَابْنُ السَّرْحِ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ مَحْمُودِ بْنِ الرَّبِيعِ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ فَصَاعِدًا". قَالَ سُفْيَانُ: لِمَنْ يُصَلِّي وَحْدَهُ.

**ترجمه:** د عبادة بن الصامت رضي الله عنه روایت هغه ئې نبي صلی الله علیه وسلم ته رسوي (نشته دی مونځ لپاره د هغه چا چې قرأت د فاتحې نه دی کړی یا زیات. وئیلی دی سفیان: د هغه چا لپاره چې یواځې مونځ کوي.

## (حدیث الباب د جمهورو دلیل دې)

**قوله:** ﴿حدثنا قتیبة بن سعید﴾ دا حدیث متفق علیه دې بلکه په صحاح سته کښې دې ددې نه جمهور علماء ثلاث د فاتحې په رکنیت باندې استدلال کړې دې او په مذاهب اربعه کښې صرف شوافعو ددې حدیث د عموم پیش نظر مقتدی لره په دې کښې شامل منلو سره د فاتحه خلف الامام په فرضیت باندې هم دغه شان استدلال کړې دې، په رکنیت فاتحه باندې کلام تیر شو، په مسئله ثانیه یعنی فاتحه خلف الامام باندې بحث باقی دې، د شوافعو دپاره د ټولو نه لوئې او قوی دلیل هم دا دې ځکه چه دا متفق علیه حدیث دې.(٢)

## (الجواب الاول)

زمونږ د طرف نه ددې ډیر جوابات کړې شوې دی:

١: دا حدیث په منفرد باندې محمول دې چه د هغې ډیر قرائن دی، نور روایات مرفوعه او اثار صحابه مثلا ﴿اذا قرأ فانصتوا﴾، ﴿من کان له امام فقراءة الامام قراءة له﴾ خپله وړاندې هم په دې روایت کښې سفیان بن عیینه د حدیث راوی فرمائي ﴿لمن یصلي وحده﴾

## (د سفیان بن عیینه په قول باندې اعتراض)

په دې باندې خطابي شارح حدیث دا اعتراض کړې دې چه دا تخصیص بغیر د دلیل نه صحیح نه دې، زمونږ د طرف نه جواب کړې شوې دې چه دا تخصیص بالدلیل دې بغیر د

---

(١): صحیح مسلم/الصلاة ١١ (٣٩٤)، سنن النسائي/الافتتاح ٢٤ (٩١١) (وقد ورد بدون قوله :«فصاعدا» عند : صحیح البخاري/الأذان ٩٥ (٧٥٦)، سنن الترمذي/ الصلاة ٦٩ (٢٤٧)، ١١٦ (٣١٢)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١١ (٨٣٧)، (تحفة الأشراف: ٥١١٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣١٤، ٣٢١، ٣٢٢)، سنن الدارمي/الصلاة ٣٦ (١٢٧٨) (صحیح)

(٢) خو دهغوی استدلال دبخاري شریف د روایت د الفاظو نه دې چه په هغې کښې د فصاعدا، زیاتوالي دې، د فصاعدا، لفظ سره خو مسئله نازکه جوړیږي.

دليل نه نه دې، لكه چه اوس تير شو، او كه دا عام ساتئ نو بيا دا هم كيدې شي خو كه تاسو په دې كښې تعميم كوئ نو بيا به مونږ هم په دې كښې تعميم كوو. ﴿ لو عممتم لعممنا ﴾ (كما في تقرير الجنجوهي) يعنى كه تاسو په دې حديث كښې عموم منئ د مقتدى او منفرد دواړو نو بيا به زمونږ عموم به هم منل وى، هغه دا چه قرأت عام دې كه حقيقة وى يا حكميه او مقتدى هم حكما قارى دې. بقراءة الامام.

## الجواب الثانى :

دا حديث په بخارى او مسلم دواړو كښې دې په صحيح بخارى كښې خو لفظ ﴿فصاعدا ﴾ موجود نه دې خو د مسلم او ابوداود وغيره په رواياتو كښې دا زيادت ثابت دې، او ددې زيادت د موجود كيدو نه پس بيا دا حديث د شوافع دپاره مفيد نه دې بلكه د هغوى خلاف كيږى ځكه چه هغه حضرات د مقتدى په حق كښې صرف د فاتحې قائل دى، ددې نه د زائد نه وجوبا قائل دى او نه استحبابا.

## (په حديث كښې د فصاعدا په اضافه باندې د امام بخارى اعتراضات او دهغې جوابات)

امام بخارى رحمه الله د ﴿ فصاعدا ﴾ زيادت ثابت نه منى او حال دا چه دا لفظ په صحيح مسلم او باقى د سنن په كتابونو كښې موجود دې، امام بخارى ددې لفظ دوه جوابات وركړې دى.

(الجواب الاول) اول دا چه په دې زيادت كښې معمر بن راشد يمنى د زهرى نه په روايت كولو كښې متفرد دې، نورو حضرات محدثين جواب كړې دې چه اوګورئ دا زيادت په سنن ابى داود كښې د زهرى نه روايت كولو والا سفيان بن عيينه دې، بيا معمر متفرد څنګه شو، اول خو معمر بالكل ثقه او د صحاح سته راوى دې او زيادت د ثقه معتبر وى، او بيا چه هر كله هغه متفرد هم نه دې، هم دغه شان د هغه متابعت نورو راويانو هم كړې دې، پس په بذل المجهود (ج ۲ ص ۵۴) كښې ليكى : وكذلك تابعه فيها صالح والاوزاعى وعبدالرحمن بن اسحاق وغيرهم كلهم عن الزهرى.

(الجواب الثانى دويم جواب امام بخارى رحمه الله ددې دا وركړې دې چه دا ﴿ فصاعدا، تقطع اليد في ربع دينار فصاعدا ﴾ د قبيل نه دې، اوګورئ نصاب سرقه د جمهورو په نزد ربع دينار دې او په هغې باندې زيادت كيدل ضرورى نه دى بلكه د ربع دينار په غلا باندې هم قطع يد كيدلې شى، لهذا معلومه شوه چه ﴿ فصاعدا ﴾ موندلې كيدل ضرورى نه دى، او دا ضرورى نه دى چه كوم حكم ددې د ماقبل دې هم هغه ددې ګم وى.

مونږ وايو صحيح ده چه ضرورى خو نه دى خو كيدل ئې مضر هم نه دى او تاسو خو دلته د ما زاد على الفاتحه بالكل قائل نه يئ، لهذا دا جواب څنګه صحيح شو، اول خو مونږ وايو چه په حديث كښې بعض داسې مواضع هم شته چرته چه فصاعدا د ماقبل په حكم كښې دې لكه په حديث د اضحيه كښې ﴿ امرنا رسول الله صلى الله عليه وسلم ان نستشرف

العين والاذن فصاعدا ﴾ [1] ځکه چه د قربانئ په څاروی کښې صرف د عين او اذن سالم کيدل کافی نه دی بلکه د نورو اندامونو هم صحيح او سالم کيدل ضروری دی، کوم چه ئې په فصاعدا سره بيان کړې دې، او امام بخاری رحمه الله چه کوم مثال پيش کړې دې هلته بيشکه ﴿فصاعدا ﴾ د ماقبل په حکم کښې نه دی يعنی د هغې موندلې کيدل ضروری نه دی.

## د فصاعدا د مواضع استعمال اختلاف

نتيجه دا راووتله چه د ﴿ فصاعدا ﴾ مواضع استعمال مختلف دی، کله دا د ماقبل په حکم کښې وی او چرته نه، د قرائن وغيره نه ددې تعيين کيدې شی، د مشائخ او استاذانو کلام ته کتلو سره معلوميږی چه که د متکلم مقصود اقل ما واجب لره بيانول وی، نو بيا خو د ﴿فصاعدا ﴾ موندلې کيدل ضروری نه دی، او که مقصود جميع ما وجب بيانول وی نو بيا خو د فصاعدا کيدل هم ضروری دی، پس په حديث الاضحيه کښې جمع ما وجب بيانول مقصود دی بعض لره صراحة او بعض د فصاعدا په ذريعه مجملا ، او نصاب سرقه والا حديث کښې اقل مقدار لره بيانول مقصود دی، لهذا هلته د ﴿ فصاعدا ﴾ کيدل ضروری نه دی.

اوس په متنازع حديث کښې کتل دی چه دا د چا د قبيل نه دې، ظاهره ده چه دلته مقصود اقل ما وجب لره بيانول نه دی بلکه جميع ما وجب لره بيانول دی، لهذا د فاتحه والا حديث، حديث الاضحيه د قبيل نه شو، ممکنه ده د يو صاحب په ذهن کښې ددې نه غوره توجيه هم وی نو بيا به هغه مقدم وی.

**الجواب الثالث:** سيدنا عباده رضی الله عنه دا حديث کوم چه په بخاری او مسلم کښې دی، مختصر دې د حديث طويل نه، پوره حديث ابوداود او ترمذی وغيره کښې دی، پس د باب حديث نمبر ۲ اوګورئ.

[۸۲۳](۲) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ مَحْمُودِ بْنِ الرَّبِيعِ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، قَالَ: كُنَّا خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ، فَقَرَأَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَثَقُلَتْ عَلَيْهِ الْقِرَاءَةُ، فَلَمَّا فَرَغَ، قَالَ: "لَعَلَّكُمْ تَقْرَءُونَ خَلْفَ إِمَامِكُمْ"، قُلْنَا: نَعَمْ، هَذَّا يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "لَا تَفْعَلُوا إِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ فَإِنَّهُ لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِهَا".

**ترجمه:** د عبادة بن الصامت رضی الله عنه نه روايت دې هغه وئيلی دې: وو مونږ وروسته د نبی صلی الله عليه وسلم نه د سحر په مونځ کښې نو قرأت وکړو رسول الله صلی الله عليه وسلم، نو قرأت ورباندې درond شو، هرکله چې فارغ شو ويې وئيل: کيدی شی چې تاسو د امام نه وروسته قرأت کوئ. مونږ وويل: آو، همدا ده ای د الله رسوله! هغه وفرمائيل: تاسو داسې مه کوئ مګر په سورت فاتحی باندې، بيشکه مونځ نشته د هغه چا چې سورت فاتحه نه لولې.

**تشريح: قوله:** ﴿ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ كُنَّا خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ فَقَرَأَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم..الخ﴾ د دې حديث نه معلوميږی چه صحابه کرام به

[1]) د قربانئ د څاروی سترګې او غوږونه دې ښه اوکتلې شی)۱۲

[2]): سنن الترمذي الصلاة ۱۱۵ (۳۱۱)، (تحفة الأشراف: ۵۱۱۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۱۳/۵، ۳۱۶، ۳۲۲)، (حسن)

په شروع کښې په خپل اختيار او اجتهاد سره قراءة خلف الامام کولو چه د هغې خبر رسول الله ﷺ ته نه وو، د رسول الله ﷺ په تپوسلو باندې هغوی اقرار اوکړو چه مونږ ئې زر زر وايو نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه داسې مه کوئ سوا د سورة فاتحې نه ځکه چه ددې نه بغير خو مونځ نه کيږي.

دلته رسول الله ﷺ مقتدی د مطلق قرأت نه منع کړو او د فاتحې استثناء ئې اوفرمائيله او قاعده دا ده چه ﴿ الاستثناء بعد الحظر يفيد الاباحة كما فى قوله تعالى : ولا تاكلوا اموالكم بينكم بالباطل الا ان تكون تجارة ﴾ لهذا ددې حديث نه ثابته شوه چه د مقتدی دپاره قراءة فاتحه جائز او مباح دې نه فرض، فلا يصح استدلالهم بهذا الحديث على فرضية الفاتحة.

اوس دلته دوه خبرې پاتې کيږی اول دا چه احناف خو د اباحت هم قائل نه دی، دويم دا چه رسول الله ﷺ خو خپله په دې حديث کښې فرمائی چه ﴿ فانه لا صلاة لمن لم يقرأ بها ﴾ د امر ثانی جواب خو دا دې چه د رسول الله ﷺ مقصود نفی کمال دې چه يو مونځ هم د فاتحې نه بغير نه کامليږی او د اولنئ خبرې جواب دا دې چه مونږ په دې مسئله کښې د نسخ قائل يو چه د هغې دليل به وړاندې راشی، دلته خو مونږ له دا وئيل ؤو چه د صحيحين حديث مختصر دې او اصل حديث داسې دې چه په هغې کښې د فاتحه استثناء، بعد الحظر موندلې شی، ددې امر ثانی جواب حضرت گنگوهی رحمه الله په کلام کښې دا دی ﴿ فانه لا صلاة لمن لم يقرأ بها ﴾ سره د وجود حکمی او شرعی نفی مقصود نه ده چه بغير ددې نه مونځ صحيح نه دې بلکه ددې نه مقصود وجود حسی او خارجی نفی کول دی چه يو مونځ هم حسا يعنی په خارج کښې د فاتحې نه بغير نه شی موندلې، په ټولو مونځونو کښې سورة فاتحه لوستلې شی، ځکه چه امکان دې چه ددې نه مخالجت او منازعت نه وی خو چه کله روستو تجربې دا اووې چه په دې قرأت سره هم مخالجت کيږی نو بيا هغه (ﷺ) ددې نه هم منع کړه لکه چه په راروانو ابواب او احاديثو کښې راروان دې.

**الجواب الرابع** : صاحب جوهر النقی او هم دغه شان علامه شوق نيموی وائی چه ددې حديث په سند کښې اضطراب دې ځکه چه دا روايت مکحول کله داسې روايت کوی ﴿عن محمود بن الربيع ﴾ او کله ﴿ عن نافع بن محمود بن الربيع ﴾، او کله ﴿ عن عبادة بن الصامت﴾ هم دغه شان مکحول مدلس دې او دا ئې په لفظ د ﴿ عن ﴾ سره روايت کړې دې، بهرحال په سند کښې اضطراب دې کوم چه د ضعف موجب دې. دا خو د حديث عباده زمونږ د طرف نه جواب شو، کوم چه د شوافعو اهم مستدل دې.

## د فاتحه خلف الامام په باره کښې حضرت گنگوهی تقرير

اوس زمونږ د مسلک ترجيح واورئ! حضرت اقدس گنگوهی رحمه الله فرمائی لکه په الکوکب الدری کښې دی چه چونکه د مونځ ابتداء د صلاة الليل نه شوې وه، په شروع کښې صرف هم هغه مونځ فرض وو چه په هغې کښې صحابه کرام د قرأت سره عادت شوې وو، ددې نه پس چه کله د صلوات خمسه فرضيت اوشو نو دا د استصحاب حال په طور په فرائض کښې خلف الامام هغه هم قرأت کولو هم په دې وخت کښې آيت کريمه ﴿ واذا قرئ القران فاستمعوا له

وانصتوا ﴾ نازل شو هغه وخت د صحابه کرامو طرز عمل مختلف شو، بعض حضراتو خو قرأت خلف الامام مطلقا ترک کړو خو بعض حضرات د ثواب په حرص کښې ﴿ لاحراز الفضيلتين ﴾ په سکتات امام کښې په خپلې رائې او اجتهاد سره قرأت کولو او دا چه مونږ اووې چه هغوی په خپل اجتهاد سره داسې کول نو ددې دليل په رواياتو کښې موجود دې ﴿ مثل قوله هل قرأ معي احد منکم ﴾ اوس د صحابه کرامو ددې قرأت د وجې نه د رسول اللهﷺ په قرأت کښې پريشانی واقع شوه او رسول اللهﷺ صحابه کرام ددې قرأت نه منع کړل، ورسره رسول اللهﷺ دا خيال فرمائيلو سره چه سورة فاتحه په ټولو مونځونو کښې ده کيدې شی چه په دې کښې منازعت او التباس نه وی صرف ددې د قرأت اجازت ئې ورکړو او د څو ورځو پورې دا سلسله روانه وه خو چه کله رسول اللهﷺ اوليدل چه چه په دې قرأت سره هم منازعت پيدا کيږی نو بيا ئې ددې نه هم منع اوفرمائيله، خو صرف په جهری مونځونو کښې لکه چه په حديث د ابوهريرهؓ کښې دی کوم چه د صلاة صبح په قصه کښې دی ﴿ فانتهى الناس عن القراءة فيما جهر به رسول الله صلى الله عليه وسلم ﴾ او اوس صرف په سری مونځونو کښې قرأت پاتې شو خو اخر دا هم منع کړې شو، لکه چه د عمران بن حصينؓ د حديث نه معلوميږی کوم چه د صلاة ظهر په باره کښې دې، پس مصنف وړاندې تلو سره دوه بابونه هم په دې ترتيب سره قائم فرمائيلې دی حاصل دا چه په دې سلسله کښې په تدريج سره نسخ واقع شوې ده، او اخر الامر رسول اللهﷺ دا فيصله اوفرمائيله ﴿ من کان له امام فقراءة الامام له قراءة ﴾ او په بل حديث کښې رسول اللهﷺ اوفرمائيل: ﴿ واذا قرأ فانصتوا ﴾ حضرات شوافعو په دې احاديثو باندې څه نقد کړې دې.

## من کان له امام فقراءة الامام له قراءة باندې کلام

حضرت په بذل کښې د علامه عينی نه نقل کولو سره په دې باندې تفصيلی کلام فرمائيلې دې په هغې کښې ليکی چه دا حديث ﴿ من کان له امام فقراءة الامام له قراءة ﴾ د ډيرو صحابه کرامو نه نقل دې، جابر بن عبدالله، ابن عمر، ابو سعيد خدری، ابوهريره، ابن عباس، انس بن مالک. دا روايات په ابن ماجه دارقطنی او معجم طبرانی وغيره کتب کښې مذکور دی، امام دارقطنی وغيره ناقدين فرمائی چه د حديث جابر په سند کښې جابر جعفی دې کوم چه مجروح دې خپله امام ابوحنيفه صاحب د هغه تکذيب کړې دې، او د ابو سعيد خدریؓ په حديث کښې اسماعيل بن عمرو بن نجيح ضعيف دې، هم دغه شان په حديث ابوهريرهؓ سره عباد متفرد دې کوم چه ضعيف دې زمونږ د طرف نه وئيلې شوې دی چه د حديث جابر نور طرق هم شته، بعض د هغې نه هغه دی.

## د امام صاحب په سند سره حديث او د دارقطنی په دې باندې رد

کوم چه په مؤطا د امام محمدؒ کښې دې ﴿ اخبرنا الامام ابوحنيفة حدثنا ابو الحسن موسى بن ابى عائشة عن عبدالله بن شداد عن جابر عن النبى صلى الله عليه وسلم ﴾ په دې باندې دارقطنی اعتراض کړې دې چه دا حديث مسندا صرف ابو حنيفه او کله د هغه سره حسن بن عماره

روايت کړې دې : وهما ضعيفان... او ددې دواړو نه علاوه متعدد راويان لکه سفيان ثوری، شعبه، ابن عيينه وغيره دا مرسلا نقل کړې دې. ﴿عن ابی الحسن عن عبدالله بن شداد عن النبی صلی الله عليه وسلم﴾ اصل روايت داسې دې مرسلا (بغير د صحابی د ذکر کولو نه) زمونږ د طرف نه ئې جواب دا کړې شوې دې چه اسناد د ارسال په مقابله کښې زيادت دې او زيادت ثقه مقبول وی. ﴿ولو سلم ارساله فالمرسل حجة عندنا والجمهور﴾ پاتې شوه مسئله ددې دواړو د توثيق او تضعيف نو علامه عينی فرمائی چه د حسن بن عماره يو لوئې جماعت توثيق کړې دې هغه ته ضعيف وئيل غلط دی، او هم دغه شان امام ابوحنيفه رحمه الله چه د هغه علم شرقا او غربا خور دې هغه ته ضعيف وئيل انتهائی غلط او د تعصب نه ډک اعتراض دې، علامه عينی رحمه الله فرمائی چه که امام دارقطنی د ادب او احترام نه کار اخستلې وې نو هرګز به ئې امام الائمه سيد الحفاظ طرف ته د ضعف نسبت نه کولې، او د هغه په تضعيف سره خپله مستحق تضعيف شو، هغه فرمائی چه خپله د هغه دا حال دې چه ضعيف او منکر روايات په خپل کتاب کښې ذکر کوی د جهر بالبسمله په ثبوت کښې ئې موضوع احاديث پورې راوړې دی، ګويا قصدا ئې داسې کړې دی، پس بعض خلقو چه د هغه نه استحلاف اوکړو چه په دې کښې څومره احاديث صحيح دی نو هغه اعتراف اوکړو چه دلته يو حديث هم صحيح نه دې راوړلې شوې.

هم دغه شان د حديث ابوهريره رضی الله عنه په سند کښې دارقطنی وغيره دا فرمائيلې دی چه ددې په سند کښې محمد بن عباد الرازی ضعيف دې، صاحب تنسيق النظام فرمائی چه که د محمد بن عباد جرح تسليم کړې شی نو ﴿ان الضعاف يقوی بعضها بعضا وههنا صحاح وضعاف فکيف لا يتقوی بها الضعاف وقد ثبت عن ابی هريرة بطريق صحيح واذا قرا فانصتوا﴾ حاصل دا چه دا حديث ﴿من کان له امام الخ﴾ د ډيرو صحابه کرامو نه په ډيرو طرق سره روايت شوې دې ددې په بعض طرق باندې به اګر چه فردا فردا کلام وی خو د مجموعه طرق په اعتبار سره حديث ثابت دې.

## په حديث (واذا قرأ فانصتوا) باندې بحث

او حديث ثانی يعنی ﴿واذا قرا فانصتوا﴾ دا په صحيح مسلم کښې د ابو موسی اشعری رضی الله عنه نه روايت دې او په سنن ابی داود کښې ابو موسی اشعری او ابوهريره دواړو نه روايت دې، د ابو موسی والا روايت باندې امام بخاری وغيره حضراتو دا اعتراض کړې دې چه په دې سره سليمان التيمی متفرد دې، حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل (ج ۱ ص ۳۳۹) کښې فرمائی چه ادعاء د تفرد باطل ده ځکه چه په سنن دارقطنی کښې د سليمان تيمی متابعت کړې دې، عمر بن عامر او سعيد بن ابی عروبه، هم دغه شان په صحيح مسلم کښې موجود دی چه د امام مسلم نه يو سړی ددې حديث په باره کښې تپوس اوکړو نو هغه اوفرمائيل ﴿اترید الحفظ من سليمان﴾ د دې نه روستو هم هغه سائل تپوس اوکړو چه د حديث ابوهريره رضی الله عنه په باره کښې ته څه وائې هغه اوفرمائيل ﴿هو عندی صحيح﴾ په دې باندې سائل عرض اوکړو چه بيا تاسو ددې تخريج دلته په صحيح مسلم کښې ولې اونکړو نو په

دي باندې امام مسلم اوفرمائيل ﴿ ليس كل شئ عندى صحيح وضعته ههنا وانما وضعت ههنا ما اجمعوا عليه ﴾ يعنى زه په دې خپل صحيح كښې هر هغه حديث نه راوړم كوم چه زما په نزد صحيح وى بلكه په دې كښې خو صرف داسې احاديث اخلم چه د هغې په صحت باندې د محدثينو اجماع وى دا ټول مضمون د صحيح مسلم په متن كښې موجود دې، اوګورئ امام مسلم رحمه الله ددې حديث په صحت باندې جزم فرمائيلې دې، دغه شان د هغه د كلام نه دا هم معلومه شوه چه د ابو موسى اشعرى رضي الله عنه د حديث په صحت باندې د محدثينو اجماع ده، او د ابوهريره رضي الله عنه حديث ئې په دې وجه نه دې راوړې چه د هغې صحت مختلف فيه وو، دا دې هم واضحه وى چه امام ابوداود دا دواړه روايات په خپل سنن كښې اخستلې دى، د ابوهريره رضي الله عنه حديث خو په بذل المجهود (ج ١ ص ٣٣٨) "باب الامام يصلى من قعود" د لاندې تير شوې دې، او د ابو موسى اشعرى رضي الله عنه حديث په وړاندې تلو سره په باب التشهد كښې راروان دې (بذل ص ١٢١ ج ٢) امام ابوداود په دې باندې هم كلام فرمائيلې دې، دا ټول تفصيل په باب سابق ﴿ باب الامام يصلى من قعود ﴾ كښې مونږ سره تير شوې دې، د احنافو په دلائلو كښې يو دليل آيت كريمه دې

## په (واذا قرئ القران فاستمعوا له وانصتوا) باندې كلام

**قوله:** ﴿ واذا قرئ القران فاستمعوا له وانصتوا ﴾ هم مشهور دې ددې په باره كښې حضرات شوافع فرمائى چه ددې آيت كريمه نزول د خطبې په باره كښې دې، په كوكب كښې ليكى چه دا خبره صحيح نه ده ځكه چه سورة اعراف مكى دې او د جمعې فرضيت په مدينه منوره كښې شوې دې او كه اومنلې شى چه ددې فرضيت په مكه كښې شوې دې خو دا خبره خو منلې شوې ده چه هلته رسول الله ﷺ ته د جمعې د مانځه موقع نه ده ملاؤ شوې.

حضرت شيخ په حاشيه د كوكب باندې ليكى چه په در منثور كښې ډير روايات دى چه د هغې نه معلوميږى چه ددې آيت كريمه نزول د قراءة فى الصلاة په باره كښې دې التعليق الصبيح (ج١ ص ٣٢٤) كښې د الشرح الكبير په حوالې سره ليكلې دى ﴿ قال احمد اجمع الناس ان هذه الاية نزلت فى الصلاة ﴾ قرطبى فرمائى چه دا قول چه ددې نزول د خطبې په پاره كښې دې ضعيف دې ځكه چه په خطبه كښې د قران كريم مقدار ډير قليل وى حال دا چه انصات په ټولو خطباتو كښې واجب دې بله دا چه دا آيت كريمه مكى دې او په مكه كښې نه خطبه وه او نه د جمعې مونځ.

## په دې سلسله كښې اثار صحابه

او متعدد اثار صحابه د ترک قرأت خلف الامام په باره كښې دى چه د هغې تخريج په شرح معانى الاثار او مصنف ابن ابى شيبه او مصنف عبدالرزاق معجم طبرانى وغيره كتب كښې موجود دى ﴿ فقد اخرج الطحاوى بسنده عن على من قراء خلف الامام فليس على الفطرة واخرجه ابن ابى شيبة بلفظ من قرأ خلف الامام فقد اخطاء الفطرة ﴾ او په مصنف عبدالرزاق كښې دى ﴿قال ابن مسعود من قرأ خلف الامام ملئ فوه ترابا ﴾ څوک چه قرأت خلف الامام كوى د هغه

خوله دې د خاورو نه ډکه کړې شي (د دې دپاره چه هغه قرأت اونکړې شي) او د عمر رضی الله عنه نه منقول دی ﴿ وددت ان الذی يقرأ خلف الامام فی فيه حجر ﴾ چه ماته دا ښه معلوميږی چه کوم سړی قرأت خلف الامام کوی چه د هغه په خوله کښې کاڼی کېښودلې شي.

[٨٢٤]()حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَزْدِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنِي زَيْدُ بْنُ وَاقِدٍ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ نَافِعِ بْنِ مَحْمُودِ بْنِ الرَّبِيعِ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ نَافِعٌ: أَبْطَأَ عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ عَنْ صَلَاةِ الصُّبْحِ، فَأَقَامَ أَبُو نُعَيْمٍ الْمُؤَذِّنُ الصَّلَاةَ، فَصَلَّى أَبُو نُعَيْمٍ بِالنَّاسِ، وَأَقْبَلَ عُبَادَةُ وَأَنَا مَعَهُ حَتَّى صَفَفْنَا خَلْفَ أَبِي نُعَيْمٍ، وَأَبُو نُعَيْمٍ يَجْهَرُ بِالْقِرَاءَةِ، فَجَعَلَ عُبَادَةُ يَقْرَأُ أُمَّ الْقُرْآنِ، فَلَمَّا انْصَرَفَ، قُلْتُ لِعُبَادَةَ: سَمِعْتُكَ تَقْرَأُ بِأُمِّ الْقُرْآنِ وَأَبُو نُعَيْمٍ يَجْهَرُ، قَالَ: أَجَلْ، صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْضَ الصَّلَوَاتِ الَّتِي يَجْهَرُ فِيهَا بِالْقِرَاءَةِ، قَالَ: فَالْتَبَسَتْ عَلَيْهِ الْقِرَاءَةُ، فَلَمَّا انْصَرَفَ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ، وَقَالَ: "هَلْ تَقْرَءُونَ إِذَا جَهَرْتُ بِالْقِرَاءَةِ؟ فَقَالَ بَعْضُنَا: إِنَّا نَصْنَعُ ذَلِكَ، قَالَ: فَلَا، وَأَنَا أَقُولُ مَا لِي يُنَازِعُنِي الْقُرْآنُ، فَلَا تَقْرَءُوا بِشَيْءٍ مِنَ الْقُرْآنِ إِذَا جَهَرْتُ إِلَّا بِأُمِّ الْقُرْآنِ".

**ترجمه:** نافع وئيلی دی چې عبادة بن الصامت وروسته شو د سحر د مونځ نه، نو ودرولو ابو نعيم مانځه لره چې هغه مؤذن دی، نو مونځ وکړو ابو نعيم خلقو ته، او رامخامخ شو عبادة او زه د هغه سره وم، تردې چې مونږ صف جوړ کړو وروسته د ابو نعيم نه، او ابو نعيم جهر کولو په قرأت سره نو شروع شو عبادة چې لوستله ئې سورت فاتحه، هرکله چې فارغ شو، ما ووئيل عبادة ما د تانه واوريدل چې سورت فاتحه دې لوستله، او ابو نعيم جهر کولو، هغه ووئيل: آو، مونځ وکړو مونږ ته رسول الله ﷺ بعضې مونځونه هغه چې په هغې کښې ئې جهر کولو، هغه ووئيل: ګډوډ شو په هغه (ﷺ) باندې قرأت هرکله چې فارغ شو نو مونږ ته مخاخ شو په خپل مخ سره او ويې وئيل: ايا تاسو قرأت کوئ کله چې زه قرأت کوم په جهر سره؟ نو ووئيلې بعضو زمونږ نه: مونږ کوو دغه، هغه (ﷺ) وائی: پس مه کوئ، او زه وايم: څه دې ماله چې جګړه کوی ماسره په قرآن، تاسو مه لولئ هيڅ شی د قرآن نه کله چې زه جهر کوم مګر سورت فاتحه.

[٨٢٥]()حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سَهْلٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنِ ابْنِ جَابِرٍ، وَسَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْعَلَاءِ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ عُبَادَةَ، نَحْوَ حَدِيثِ الرَّبِيعِ بْنِ سُلَيْمَانَ، قَالُوا: فَكَانَ مَكْحُولٌ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ وَالصُّبْحِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ سِرًّا. قَالَ مَكْحُولٌ: اقْرَأْ بِهَا فِيمَا جَهَرَ بِهِ الْإِمَامُ إِذَا قَرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَسَكَتَ سِرًّا، فَإِنْ لَمْ يَسْكُتِ اقْرَأْ بِهَا قَبْلَهُ وَمَعَهُ وَبَعْدَهُ لَا تَتْرُكْهَا عَلَى كُلِّ حَالٍ.

**ترجمه:** روايت دې د مکحول نه هغه روايت کوی دعبادة نه پشان د حديث د ربيع بن سليمان، هغوی ويلی دي: وو مکحول چې لوستله ئې په ماښام او ماسخوتن او سحر کښې سورة فاتحه په هر رکعت کښې په پټه، وئيلی دی مکحول: لوله په هغه مانځه کښې په کوم کښې چې امام جهر کوی کله چې سورت فاتحه لولي، او چپ شو نو پټه وايه که چپ نه شو نو لوله مخکښې د هغه او هغه سره يو ځائې او وروسته د هغه نه، په هيڅ حال ئې مه پرېږده.

**تشريح: قوله:** ﴿ قال مکحول : اقرأ بها فيما جهر به الامام اذا قرأ بفاتحة الكتاب وسكت ﴾ مکحول

[1]: سنن النسائي/الافتتاح ٢٩ (٩٢١)، (تحفة الأشراف: ٥١١٦) (صحيح)
[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٥١١٤) (ضعيف)

فرمائي چه مقتدی له پکار دی چه په جهري مونځ کښې چه کله امام سکوت اوکړي نو هغه دې فاتحه لولي او که امام سکته نه کوي نو بيا دې د هغه نه مخکښې فاتحه اولولي د امام نه مخکښې يا د هغه سره او يا د هغه نه روستو.

غرض دا چه هر څنګه ممکن وی نو فاتحه دې اولولي په يو حال کښې دې هم هغه نه پريږدی، په حاشيه د کوکب کښې دی ابن العربی فرمائي چه مونږ د امام شافعي رحمه الله نه تپوس کوو چه مقتدی به فاتحه خلف الامام کوم وخت کښې وائي؟ که هغه ئې عين د امام د قرأت په وخت لولي نو په دې صورت کښې منازعت امام او اعراض عن استماع القران لازميږي او که دا وائي چه کله امام سکته کوي نو هغه وخت دې اولولي نو بيا مونږ تپوس کوو چه که امام سکته نه کوي نو بيا به ئې څه وخت لولي ځکه چه د امت په دې باندې اتفاق دې چه په امام باندې سکته واجب نه ده، بلکه دا چه هغه فرمائي چه ايا د امام د قرأت استماع دې ته د مقتدی قرأت نه شي وئيلې کيدې؟ دا خبره د هر پوهه او انصاف کونکي دپاره کافي ده، اوګورئ ابن عمر رضي الله عنه به خلف الامام قرأت نه کولو او هغه د رسول الله ﷺ د سنت د ټولو نه زياته تابعداري کوله. (انتهى كلام ابن العربي)

## د شوافعو په نزد به مقتدی قراءت خلف الامام کوم وخت کوي

هسې خو په کتب شافعيه کښې ليکلې دی چه د امام دپاره مستحب ده چه سکته کوی ددې دپاره چه مقتدی پکښې فاتحه اولوستلې شی، او که د مقتدی دا ګمان وی چه هغه به د امام په سکته کښې فاتحه پوره نه کړې شي نو هغه له پکار دی چه د امام سره سره ئې لولي.

# باب من كره القراءة بفاتحة الكتاب اذا جهر الامام

## د کومو حضراتو په نزد چه په جهري مونځ کښې قراءت خلف الامام مکروه دې

د باب اول نه مصنف په ظاهره کښې دا ثابته کړه چه قرأت فاتحه فی الصلاة مطلقا واجب دې که امام وی يا مقتدی وی يا منفرد.

## د ترجمة الباب نه د مصنف غرض

اوس په دې باب کښې مصنف د مقتدی استثناء يا داسې اوايئ چه نسخ بيانوی په دې باب کښې دا فرمائي چه مقتدی لره په جهري مونځونو کښې فاتحه خلف الامام نه دی لوستل پکار او ددې نه روستو راتلونکی باب کښې فرمائي چه په سري مونځونو کښې هم ورله نه دی لوستل پکار، دا مخکښې هم مونږ سره تير شو چه په دې باب کښې مصنف د ابوهريره رضي الله عنه حديث ذکر کړې دې چه د هغې تعلق د جهري يعنی د سحر د مونځ سره دې.

[٨٢٦] (١) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنِ ابْنِ أُكَيْمَةَ اللَّيْثِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْصَرَفَ مِنْ صَلَاةٍ جَهَرَ فِيهَا بِالْقِرَاءَةِ، فَقَالَ: "هَلْ قَرَأَ مَعِيَ أَحَدٌ مِنْكُمْ آنِفًا؟ فَقَالَ رَجُلٌ: نَعَمْ، يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: إِنِّي أَقُولُ مَالِي أُنَازَعُ الْقُرْآنَ، قَالَ: فَانْتَهَى النَّاسُ عَنِ الْقِرَاءَةِ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا جَهَرَ فِيهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْقِرَاءَةِ مِنَ الصَّلَوَاتِ حِينَ سَمِعُوا ذَلِكَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". قَالَ

(١): سنن الترمذي/الصلاة ١١٧ (٣١٢)، سنن النسائي/الافتتاح ٢٨ (٩٢٠)، سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ١٣ (٨٤٨، ٨٤٩)، (تحفة الأشراف: ١٤٢٦٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ١٠ (٤٤)، مسند احمد (٢/٢٤٠، ٢٨٤، ٢٨٥، ٣٠٢، ٤٨٧) (صحيح)

أَبُودَاوُد: رَوَى حَدِيثَ ابْنِ أُكَيْمَةَ هَذَا مَعْمَرٌ، وَيُونُسُ، وَأُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ. عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَلَى مَعْنَى مَالِكٍ.

**ترجمه:** د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې بيشکه رسول الله ﷺ فارغ شو د يو مونځ نه چې جهر ئې کړې وو په هغې کښې هغه ووئيل: ايا تاسو ماسره چا لګ مخکښې قرأت وکړو؟ نو يو سړى ووئيل: او اى د الله رسوله! هغه وفرمائيل: زه وايم څه دې مالره چې جګړه کيدى شى ماسره په قرآن کې؟ هغه ووئيل: خلق د قرأت نه بند شول د رسول الله ﷺ سره په هغه مانځه کښې چې هغه به پکې جهر کولو په قرأت سره کله چې هغوى دا خبره واوريده د رسول الله صى الله عليه وسلم نه. وئيلى دى ابوداود: روايت کړى دى د ابن اکيمة ددې حديث معمر او يونس او اسامة بن زيد د زهرى نه په معنى د مالک سره.

**تشريح: قوله:**﴿ فانتهى الناس عن القراءة مع رسول الله صلى الله عليه وسلم فيما جهر فيه ﴾ د دې نه صفا معلوميږى چه د رسول الله ﷺ د نکير د وجې نه صحابه کرامو په جهرى مونځ کښې فاتحه خلف الامام ترک کړه پس دا د شوافعو بالکل خلاف دې.

## د شوافعو د طرف نه د حديث جواب

په دې وجه امام نووى رحمه الله ددې دوه جوابونه کړې دى يو دا چه دا جمله مدرج ده، د زهرى کلام دې، زمونږ د طرف نه ددې جواب دا دې چه په دې کښې روايات مختلف دى د بعض رواياتو نه خو معلوميږى چه دا د زهرى کلام دې يا د يو بل راوى، او د بعض نه معلوميږى چه دا د ابوهريره رضي الله عنه کلام دې، او اصل عدم ادراج دې، او که اومنلې شى چه دا د زهرى کلام دې نو بيا هم څه اشکال دې ايا امام زهرى غلطه خبره کوى؟

او دويم جواب امام نووى رحمه الله دا کړې دې چه د محدثينو ددې حديث په ضعف باندې اتفاق دې ځکه چه په دې کښې يو راوى ابن اکيمه چه مجهول دې، زمونږ د طرف نه ددې جواب دا دې چه امام ترمذى رحمه الله ددې حديث تحسين او ابن حبان ئې تصحيح کړې ده، بيا دا وئيل څنګه صحيح کيدې شى چه دا حديث بالاتفاق ضعيف دې، بلکه دا چه امام ترمذى رحمه الله فرمائى ﴿ وابن اکيمه الليثى اسمه عمارة ويقال عمرو بن اکيمة ﴾ او حافظ ابن حجر په تقريب کښې د هغه په نوم کښې مختلف اقوال يعنى عمارة، عمار، عمرو، عامر ليکلو نه پس فرمائى: ﴿ ثقة من الثالثة ﴾ او هغه ددې په باره کښې هيڅ قسم جرح نه ده نقل کړې، دا د سنن اربعه راوى دې.

[۸۲۷] (1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ أَحْمَدَ بْنِ أَبِي خَلَفٍ، وَابْنُ السَّرْحِ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الزُّهْرِيُّ، وَأَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، سَمِعْتُ ابْنَ أُكَيْمَةَ، يُحَدِّثُ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيِّبِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةً نَظُنُّ أَنَّهَا الصُّبْحُ بِمَعْنَاهُ إِلَى قَوْلِهِ مَا لِي أُنَازَعُ الْقُرْآنَ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: قَالَ مُسَدَّدٌ فِي حَدِيثِهِ: قَالَ مَعْمَرٌ: فَانْتَهَى النَّاسُ عَنِ الْقِرَاءَةِ فِيمَا جَهَرَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ ابْنُ السَّرْحِ فِي حَدِيثِهِ: قَالَ مَعْمَرٌ: عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: فَانْتَهَى النَّاسُ، وَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الزُّهْرِيُّ مِنْ بَيْنِهِمْ: قَالَ سُفْيَانُ: وَتَكَلَّمَ الزُّهْرِيُّ بِكَلِمَةٍ لَمْ أَسْمَعْهَا، فَقَالَ مَعْمَرٌ: إِنَّهُ قَالَ: فَانْتَهَى النَّاسُ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرَوَاهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، وَانْتَهَى حَدِيثُهُ إِلَى قَوْلِهِ: مَا لِي أُنَازَعُ الْقُرْآنَ، وَرَوَاهُ

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٤٢٦٤) (صحيح)

الْأَوْزَاعِيُّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ فِيهِ: قَالَ الزُّهْرِيُّ: فَاتَّعَظَ الْمُسْلِمُونَ بِذَلِكَ فَلَمْ يَكُونُوا يَقْرَءُونَ مَعَهُ فِيمَا يَجْهَرُ بِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، قَالَ قَوْلُهُ: فَانْتَهَى النَّاسُ مِنْ كَلَامِ الزُّهْرِيِّ.

**ترجمه**: سعيد بن مسيب وئيلى دى ما اوريدلى دى د ابو هريرة ﷺ نه هغه به وئيل: مونږ ته رسول الله ﷺ مونځ وكړو مونږ دا ګمان كوو چې د هغه به سحر مونځ وو په معنى د هغې سره تردې قول پورې: څه دې ماله چې جګړه كيدى شى ماسره په قرآن كښې. وئيلى دى مسدد په خپل حديث كښې: وئيلى دى معمر: منع شول خلک د قرأت نه په هغې كښې چې جهر به كولو رسول الله ﷺ. او وئيلى دى ابن السرح په خپل حديث كښې: وئيلى دى معمر د زهرى نه، وئيلى دى ابو هريره: منع شول خلک، او وئيلى دى عبد الله بن محمد الزهري: د مينځ د هغوى نه، وئيلى دى سفيان: او خبره وكړه زهرى په يوې كلمى سره ما وانه اوريده، وويل معمر: هغه وويل: منع شول خلک. وئيلى دى ابوداود: او نقل كړى دى دې لره عبد الرحمن بن اسحاق د زهرى نه، او ختم شو حديث د هغه تردې قول پورې (څه دې ماله چې جګړه كولى شي ماسره په قرآن كې) او روايت كړې دې ددې اوزاعى هم د زهرى نه هغه وئيلى دى په هغې كښې: وئيلى دى زهري، مسلمانانو په دې سره نصيحت واخستلو نه وو چې قرأت ئې لوستلو د هغه سره په هغې كښې چې رسول الله ﷺ به جهر كولو په هغې كښې. وئيلى دى ابوداود: ما اوريدلى دى د محمد بن يحيى بن فارس نه، هغه به وئيل (فَانْتَهَى النَّاسُ مِنْ كَلَامِ الزُّهْرِيِّ) كلام د زهرى دې.

## باب من رأى القراءة اذا لم يجهر الامام بقرائته

### باب د هغه حضراتو دلائل كوم چه په سرى مونځونو كښې د قراءت قائل دى

دا ترجمه په اكثر نسخو كښې هم دغه شان ده او په بعض نسخو كښې داسې ده ﴿ باب من لم ير القراءة اذا لم يجهر ﴾ او دا دويمه نسخه صحيح ده ځكه چه د اولنۍ نسخې حاصل دا وو چه په صلاة سريه كښې د قرأت ثبوت چه د هغې معنى شوه په جهريه كښې عدم ثبوت او دا خبره په باب سابق كښې تيره شوې ده، په دې صورت كښې به دا باب تكرار محض وى لهذا نسخه ثانيه صحيح ده، چه د هغې حاصل دا دې ﴿ ترک القراءة خلف الامام فى السرية ﴾ لهذا د دواړو بابونو د مجموعې نه د قرأت خلف الامام مطلقا ترک ثابت شو.

[٨٢٨](١) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. ح. وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ الْعَبْدِيُّ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ الْمَعْنَى، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ زُرَارَةَ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى الظُّهْرَ، فَجَاءَ رَجُلٌ فَقَرَأَ خَلْفَهُ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى، فَلَمَّا فَرَغَ، قَالَ: أَيُّكُمْ قَرَأَ؟ قَالُوا: رَجُلٌ، قَالَ: قَدْ عَرَفْتُ أَنَّ بَعْضَكُمْ خَالَجَنِيهَا". قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ أَبُو الْوَلِيدِ فِي حَدِيثِهِ: قَالَ شُعْبَةُ: فَقُلْتُ لِقَتَادَةَ: أَلَيْسَ قَوْلُ سَعِيدٍ أَنْصِتْ لِلْقُرْآنِ؟ قَالَ: ذَاكَ إِذَا جَهَرَ بِهِ. قَالَ ابْنُ كَثِيرٍ فِي حَدِيثِهِ: قَالَ: قُلْتُ لِقَتَادَةَ: كَأَنَّهُ كَرِهَهُ، قَالَ: لَوْ كَرِهَهُ نَهَى عَنْهُ.

**ترجمه**: د عمران بن حصين ﷺ نه روايت دې بيشكه مونځ ووكړو رسول الله ﷺ د

١): صحيح مسلم/الصلاة ١٢ (٤٩٨)، سنن النسائي/الافتتاح ٢٧ (٩١٦،٩١٧)، (تحفة الأشراف: ١٠٨٢٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٦/٤، ٤٣١، ٤٣٣، ٥٤١) (صحيح)

ماسپخين نو راغي يو سړی نو ويې لوستلو وروسته د هغه نه سبح اسم ربک الأعلى، هركله چې هغه فارغ شو نو ويې فرمائيل: كوم يو په تاسو كښې قرأت كولو؟ خلقو وويل: فلانی سړی، هغه وفرمائيل: زه پوهه شوم چه بعضې په تاسو كښې ګډ وډې راوسته په ما باندې په قرأت كښې. وئيلی دی ابوداود په حديث خپل كښې: وئيلی دی شعبة: ما وويل قتادة ته: ايا نه دی قول د سعيد أنصت للقرآن؟ هغه وويل: دغه هله دی چې كله جهر كوی په هغې، وئيلی دی ابن كثير په حديث د هغه كښې: هغه وايي: ما وويل قتادة ته: ګويا كښې هغه بد وګڼړلو، هغه وويل: كه چېرې ئې بد ګڼړلی وی نو منع به ئې كړې وه د هغې نه.

[٨٢٩]()حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ زُرَارَةَ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى بِهِمُ الظُّهْرَ فَلَمَّا انْفَتَلَ، قَالَ: أَيُّكُمْ قَرَأَ بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الأَعْلَى، فَقَالَ رَجُلٌ: أَنَا، فَقَالَ: عَلِمْتُ أَنَّ بَعْضَكُمْ خَالَجَنِيهَا".

**ترجمه:** د عمران بن حصين نه روايت دې، بيشكه د الله نبی ﷺ مونځ وكړو دوی ته د ماسپخين هركله چې فارغ شو، هغه وويل: كوم يو په تاسو كښې سبح اسم ربک الاعلى ولوستلو؟ نو وويل يو سړي: ما، هغه (ﷺ) وفرمائيل: زه پوهه شوم چې بعضې په تاسو كښې خلط راوستلو په ما باندې.

**تشريح: قوله:** ﴿ صلى الظهر فجاء رجل فقراء خلفه سبح اسم ربک الاعلى الخ ﴾ د دې حديث نه ترک القراءة فی السرية ثابتيږی.

## د شوافعو د طرف نه د دې حديث جواب

امام بيهقی ددې جواب دا كړې دې چه په دې واقعه كښې د رسول الله ﷺ نكير په نفس قرأت باندې نه دې بلكه په جهر بالقراءة باندې دې، هغه صحابی په رسول الله ﷺ پسې جهر كړې وو نو په هغې ئې نكير اوفرمائيلو، او قرينه په دې باندې دا ده ﴿ ايكم قرأ بسبح اسم ربک الاعلى ﴾ نو كه دې صحابی جهرا قرأت نه وې كړې نو رسول الله ﷺ ته به د متعين سورت علم څنګه وې؟ زمونږ د طرف نه ددې جواب دا دې چه دا خبره بعيده معلوميږی چه رسول الله ﷺ خو دې قرأت سرا فرمائی او په هغه پسې دې شاته يو صحابی جهرا قرأت كوی، او پاتې شوه خبره د سورة د نوم اخستلو نو په دې حديث كښې د سورة تسميه د رسول الله ﷺ نه ثابته نه ده لكه چه د باب په اول حديث كښې معلومه شوه.

اوس دا سوال پاتې شو چه كه جهرا ئې قرأت نه وو كړې نو هغه سره په قرأت كښې منازعت څنګه شو؟ جواب دا دې چه كيدې شی د شدت همس د وجې نه وی يا د ارتكاب مكروه د وجې نه (وهی القراءة خلف الامام) لكه چه د نسائی شريف په يو روايت كښې دی چه يو ځل رسول الله ﷺ د سحر په مونځ كښې سورة روم تلاوت كولو د روايت الفاظ دا دی ﴿ عن النبی صلى الله عليه وسلم انه صلى صلاة الصبح فقرأ الروم فالتبس عليه فلما صلى قال : ما بال اقوام يصلون معنا لا يحسنون الطهور فانما يلبس علينا القران اولئک ﴾ اوګورئ رسول الله ﷺ ته

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٨٢٥) (صحيح)

خو په قرأت کښې منازعت راپیښ شو ځکه چه بعض په هغه پسې شاته مونځ کونکو اودس او طهارت په ښه طریقه نه وو کړې، هم په دې وجه مونږ اووې چه د مخالجت وجه ارتکاب س...وه هم کیدې شي.

د قرأت خلف الامام بحث پوره شو الحمد لله.

## بَابُ مَا يُجْزِئُ الْأُمِّيَّ وَالْأَعْجَمِيَّ مِنَ الْقِرَاءَةِ

**باب دې په بیان د هغې کې چې کافي کیږي د امي او د عجمي لپاره د قراءت نه**

### د باب د ماقبل سره مناسبت

دا باب د مقام مناسب دې په تیرو شوو بابونو کښې د قرأت فرضیت بیان کړې شوې وو، اوس ددې ځائې نه داسې فرمائی چه که یو سړې ناخبره وی او هغه ته د قران کریم مقدار مفروض هم یاد نه وی نو داسې سړې به څه لولی؟ د مسئلې حکم به وړاندې د حدیث د لاندې راشي.

[۸۳۰]() حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ حُمَيْدٍ الْأَعْرَجِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ نَقْرَأُ الْقُرْآنَ، وَفِينَا الْأَعْرَابِيُّ وَالْأَعْجَمِيُّ، فَقَالَ: "اقْرَءُوا فَكُلٌّ حَسَنٌ، وَسَيَجِيءُ أَقْوَامٌ يُقِيمُونَهُ كَمَا يُقَامُ الْقِدْحُ يَتَعَجَّلُونَهُ وَلَا يَتَأَجَّلُونَهُ".

**ترجمه**: د جابر بن عبد الله نه روایت دې هغه وئیلی دي: راغي مونږ ته رسو ل الله ﷺ او مونږ لوستلو قرآن او په مونږ کښې اعرابی او عجمی هم وو، هغه وفرمائیل: لولئ ټول ښه دی، او زر دی چې رابه شی قومونه نیغوی به هغې (قرآن) لره لکه څرنګه چې نیغولی شی غشی (په تجوید کښې به مبالغه کوی)، تلوار به کوي په فائدی د هغې (دنیاوی مقاصد به حاصلوی) او وروستنئ فائدې ته به انتظار نه کوي (د آخرت ثوابونه).

### مضمون حدیث

**تشریح: قوله:**﴿خرج علینا رسول الله صلی الله علیه وسلم ونحن نقرا القران وفینا الاعرابی والاعجمی﴾ سیدنا جابر رضی الله عنه فرمائی چه یو ځل مونږ څو صحابه کرام چه په هغې کښې بعض اعرابی او بعض عجمی وو چا چه په خپلو خپلو لهجو کښې د قران کریم تلاوت کولو نو رسول الله ﷺ زمونږ قرأت اوریدلو سره د ټولو لوستونکو تحسین اوفرمائیلو چه د ټولو قرأت صحیح دې (ځکه چه په اخلاص سره دې) او وې فرمائیل چه څه زمانه پس به داسې خلق راشي چه د قران کریم د الفاظو ادائیګی به ډیر عمده او قاعدې سره کوی الفاظ به صحیح او برابر ادا کوی څنګه چه د غشی دسته انتهائی صفا او نیغه تراشلې شي، کوم چه به د خپل قرأت بدله عاجلا (هم په دې دنیا کښې اخلی) او اجلا یعنی په اخرت کښې به ورته نه ملاویږی.

د دې نه د وړاندې حدیث مضمون هم داسې دې ﴿ وفیکم الاحمر وفیکم الابیض وفیکم الاسود﴾ په بذل کښې لیکی چه د اول نه مراد عرب دی او د ثانی نه روم او د دریم نه مراد اهل حبشه دی او په منهل کښې لیکی چه د احمرنه مراد عجم اودابیض نه اهل فارس اود اسود نه عرب.

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۳۰۱۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۵۷، ۳۹۷) (صحیح)

[٨٣١]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، وَابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ بَكْرِ بْنِ سَوَادَةَ، عَنْ وَفَاءِ بْنِ شُرَيْحٍ الصَّدَفِيِّ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ، قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا وَنَحْنُ نَقْتَرِئُ، فَقَالَ: "الْحَمْدُ لِلَّهِ، كِتَابُ اللَّهِ وَاحِدٌ، وَفِيكُمُ الْأَحْمَرُ وَفِيكُمُ الْأَبْيَضُ وَفِيكُمُ الْأَسْوَدُ، اقْرَءُوهُ قَبْلَ أَنْ يَقْرَأَهُ أَقْوَامٌ يُقِيمُونَهُ كَمَا يُقَوَّمُ السَّهْمُ يُتَعَجَّلُ أَجْرُهُ وَلَا يُتَأَجَّلُهُ".

**ترجمه:** د سهل بن ساعدی نه روایت دې هغه ویلې: راغې مونږ ته رسول الله ﷺ یوه ورځ مونږ قرأت کولو، هغه وفرمائیل: الْحَمْدُ لِلَّهِ! (حمدونه الله لره دی) د الله کتاب یو دی، او تاسو سره دې او په تاسو کښې سپین هم دی او په تاسو دواړو کښې تور هم دی، او لولی مخکې د هغې نه چې لولی به هغې لره قومونه، نیغوی به هغې لره لکه څرنګه چې غشی نیغولی شی، د هغې اجر به په تلوار سره غوښتلی شی او نه به شی وروسته کولی هغې لره.

[٨٣٢]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعُ بْنُ الْجَرَّاحِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ أَبِي خَالِدٍ الدَّالَانِيِّ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ السَّكْسَكِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "إِنِّي لَا أَسْتَطِيعُ أَنْ آخُذَ مِنَ الْقُرْآنِ شَيْئًا، فَعَلِّمْنِي مَا يُجْزِئُنِي مِنْهُ؟ قَالَ: قُلْ: سُبْحَانَ اللَّهِ، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ، وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَاللَّهُ أَكْبَرُ، وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيمِ، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، هَذَا لِلَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، فَمَا لِي؟ قَالَ: قُلْ: اللَّهُمَّ ارْحَمْنِي، وَارْزُقْنِي، وَعَافِنِي، وَاهْدِنِي، فَلَمَّا قَامَ، قَالَ: هَكَذَا بِيَدِهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَّا هَذَا فَقَدْ مَلَأَ يَدَهُ مِنَ الْخَيْرِ".

**ترجمه:** د عبد الله بن ابی اوفی نه روایت دې هغه وئیلی دي: نبی ﷺ ته یو سړی راغې هغه وویل: زه طاقت نه لرم چې څه شی زده کړم د قرآن نه ماته اوښایه هغه څه چې زما دپاره کافی کېږی، هغه وفرمائیل: وایه! (سُبْحَانَ اللَّهِ، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ، وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَاللَّهُ أَكْبَرُ، وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيمِ) هغه وویل: اې د الله رسوله! دا د الله لپاره شو نو زما لپاره څه شی دی؟ هغه وویل: وایه (اې ما باندې رحم وکړې او رزق راکړې او عافیت راکړې او هدایت راته وکړې) هرکله چې پاڅیدلو هغه وویل: داسې په لاس، وویل رسول ﷺ: هر چې دا سړې دې بیشکه هغه ډک کړو خپل لاس د خیر نه.

**تشریح: قوله:** ﴿عن عبدالله بن ابی اوفی قال : جاء رجل الی النبی صلی الله علیه وسلم فقال﴾ یعنی یو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چه ماته د قران کریم نه څه هم یاد نه دی، چه هغه اولولم نو تاسو ماته داسې تعلیم راکړئ چه د قران کریم د قرأت بدل وی، په دې باندې رسول الله ﷺ هغه سړی ته چه کوم اذکار خمسه په وړاندې په حدیث کښې مذکور دی تعلیم اوفرمائیل.

## د حدیث د محمل په تعیین کښې د شارحینو اختلاف

د شارحین حدیث ددې حدیث په محمل کښې اختلاف دې، د حضرت ګنګوهی رائې هغه ده کومه چه حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې اختیار کړې ده چه دلته په حدیث کښې قرأت فی الصلاة مراد نه دې، بلکه د قران کریم تلاوت د ورد په طریقه مراد دې څکه چه د

(١): تفرد به أبو داود : ٥(٣٣٨)، (تحفة الأشراف: ٤٨٠٧) (حسن صحيح)
(٢): سنن النسائي/ افتتاح ٣٢(٩٢٥) (تحفة الأشراف: ٥١٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٣/٤، ٣٥٦، ٣٨٢) (حسن)

قران کريم مقدار مفروض فی الصلاة حاصلول او زده کول په انسان باندې فرض عين دی، او په دې حديث کښې د امر بالتعلم چرته وجود هم نشته، لهذا ددې نه خارج الصلاة قران کريم لوستل مراد دی. د علامه طيبی ميلان هم دې طرف ته دې، او نورو شارحينو چه په هغوی کښې ملا علی قاری رحمه الله هم دې دا حديث په قرأت فی الصلاة باندې محمول کړې دې لکه چه د محدثينو د ظاهر صنيع نه هم دا معلوميږی، ځکه چه هغوی دا حديث په ابواب القراءة فی الصلاة کښې ذکر کوی، اوس پاتې شوه دا خبره چه د مقدار مفروض زده کول خو فرض دی نو ددې جواب ئې دا ليکلې دې چه کيدې شی په ابتداء امر کښې په دې مسئله کښې د مساهلت او تيسير معامله وی او دا هم وئيلې کيدې شی چه د رسول الله ﷺ مراد هم دا دې چه ترڅو پورې د قران کريم مقدار مفروض ياد نه وی نو تر هغه وخته پورې دا کلمات لولئ، او کيدې شی چه امر بالتعلم رسول الله ﷺ هغه ته کړې وی خو راوی اختصارا نه وی ذکر کړې. والله تعالی اعلم

## د امی په باره کښې مذاهب ائمه

د دې نه پس ښان پوهه کړئ چه مذکوره سړی ته رسول الله ﷺ د پنځو کلماتو د لوستلو دپاره حکم اوفرمائيلو کوم چه په حديث کښې مذکور دې، مسئله مختلف فيه ده، د حنابله او شوافعو مذهب دا دې چه کوم سړی ته سورة فاتحه ياد نه وی نو په هغه باندې واجب ده چه د فاتحه نه علاوه د فاتحه په اندازه يعنی اووه آيتونه د يو بل سورت نه اولولی او که هغه هم ياد نه وی نو بيا د حنابله په نزد دا کلمات لوستل کوم چه په حديث کښې ذکر دی واجب دی، د شوافعو نه هم دا يو روايت دې خو صحيح د شوافعو په نزد دا ده چه اووه قسم ذکر کول واجب دی په ظاهره کښې به دې وجه باندې چه په سورة فاتحه کښې اووه آيتونه دی (خو په حديث کښې صرف پنځه قسمه ذکرمذکور دې) او د مالکيانو مذهب دا دې چه کوم سړې امی وی په هغه باندې واجب دې چه د يو سړی په اقتداء کښې مونځ اوکړی ددې دپاره چه د امام قرأت د هغه قرأت شی لکه چه په حديث کښې دی ﴿ من کان له امام فقراة الامام له قرائة ﴾ پس دا سړې قرائت حقيقيه باندې خو قادر نه دې خو په قرأت حکميه باندې خو قادر دې او د احنافو مسلک دا دې چه داسې سړی لره نود يو امام د لټون ضرورت دې او نه د هغه کلمات مذکوره لوستل ضروری دی، د هغوی په نزد دا اذکار د قرأت قائم مقام نه شی کيدې بلکه داسې سړې به د اخرس په شان د قيام په حالت کښې خاموش وی.

**قوله:** ﴿ فلما قام قال : هکذا بيده ﴾ ﴿ قال ﴾ دلته په معنی د ﴿ فعل واشار ﴾ دې، په دې کښې د شارحينو اختلاف دې چه د قال ضمير چا طرف ته راجع دې، د مسند احمد د روايت نه معلوميږی چه د ضمير مرجع ﴿ رجل ﴾ دې لهذا راجحه هم دا ده، بعض يو بل احتمال دا ليکلې دې چه ضمير د رسول الله ﷺ طرف ته راجع دې.

بيا ددې جملې مطلب دوه اقوال دی يو دا چه ددې نه مراد په ګوتو باندې شمار کول دی، يعنی هغه سړی هر کلمه په دې کلماتو کښې په خپلو ګوتو باندې شمار کول په خپلې ژبې سره ادا کړل د يادولو دپاره، او بل مطلب ئې دا ليکلې دې چه په دې سره اشاره د شمار

کولو طرف ته نه ده بلکه اظهار د سرور او خوشحالئ طرف ته دي، لکه چه د يو سړی په لاس کښې يو قيمتی څيز راشی او هغه ئې د خپل لاس په موتی کښې ښه طريقې سره پټ کړی، د حضرت گنگوهی هم دا رائې ده او که د قال ضمير د رسول الله ﷺ د طرف نه اومنلې شی نو مطلب دا شو چه کله هغه سړی ته رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿قال اللهم ارحمنی وارزقنی الخ﴾ نو رسول الله ﷺ هغه ته د خپل لاس مبارک په موتی جوړولو سره اشاره اوفرمائيله چه دا خبره ښه په مضبوطيا سره اونيسه

[٨٣٣]([1])حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاقَ يَعْنِي الْفَزَارِيَّ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "كُنَّا نُصَلِّي التَّطَوُّعَ نَدْعُو قِيَامًا وَقُعُودًا، وَنُسَبِّحُ رُكُوعًا وَسُجُودًا".

**ترجمه**: جابر بن عبد الله نه روايت دې هغه وئيلی دي: وو مونږ چې نفلی مونځ مو کولو مونږ به دعا کوله په ولاړه او په ناسته، او مونږ به تسبيح وئيلې په رکوع او په سجده کښې.

**تشريح**: **قوله**:﴿ كنا نصلی التطوع ندعو قياما وقعودا ونسبح ركوعا وسجودا ﴾ که مراد دا وی چه مونږ به په نفل مونځ کښې په حالت قيام کښې کښې قرأت سره دعا هم کوله نو بيا خو هيڅ اشکال نشته، او که صرف په دعا کولو باندې اکتفاء مراد وی نو په دې صورت کښې به ئې مطلب دا اخستلې شی چه په مونږ کښې بعض داسې کوی او د بعض نه مراد به نوی مسلمان شوی صحابه کرام وی کوم چه اميان دی او په دې صورت کښې به دا حديث د ترجمة الباب هم موافق شی.

[٨٣٤]([2])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ حُمَيْدٍ، مِثْلَهُ لَمْ يَذْكُرِ التَّطَوُّعَ. قَالَ: كَانَ الْحَسَنُ "يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ إِمَامًا أَوْ خَلْفَ إِمَامٍ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ، وَيُسَبِّحُ وَيُكَبِّرُ وَيُهَلِّلُ قَدْرَ ق، وَالذَّارِيَاتِ".

**ترجمه**: د حميد نه روايت دې په مثل د هغې، هغه نه دی ذکر کړی لفظ د التطوع، هغه وئيلی دي: وو حسن چې لوستله به ئې فاتحه په ماسپخين او مازيگر کښې، چې کله به امام وو او وروسته د امام نه سورة فاتحه، او تسبيح به ئې وئيله او تکبير به ئې ويلو او تهليل به ئې ويلو، په اندازه د ق او ذاريات باندې.

**قوله**:﴿ كان الحسن يقرأ فی الظهر والعصر ﴾ د دې اثر حسن د ترجمة الباب سره په ظاهره هيڅ مطابقت نشته لهذا ددې توجيه دا ده چه مصنف دا دلته په دې وجه راوړې دي چه پورته ذکر شوې حديث جابر چه د هغې راوی خپله حسن بصری رحمه الله دي هغه به په مونځ کښې د قيام په حالت کښې صرف په دعا باندې اکتفاء نه کوله بلکه قرأت به ئې کولو لهذا په پورته حديث کښې هم په دعا باندې اکتفاء کول مراد نه دی بلکه دعاء مع القراءة مراد ده.

(كذا فی البذل)

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٢٢٠) (ضعيف)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٢٢٠، ١٨٥١٣) (ضعيف مقطوع ولكن لعله صحيح وثابت)

# بَابُ تَمَامِ التَّكْبِيرِ

## باب دې په بيان د پوره والي د تکبير کې

د مصنف غرض په دې باب سره دا دې چه په مونځ کښې مصلي لره ټول تکبيرات انتقالات لوستل پکار دی، په دې مسئله کښې لږ شان اختلاف دې. ځان پوهه کړه چه دلته دوه مسئلې دی اول دا چه تکبيرات انتقال مشروع دې يا نه، دويم دا چه که مشروع دې نو بيا واجب دی يا سنت دې.

### په مونځ کښې د تکبيرات انتقال مشروعيت او په دې کښې اختلاف علماء

١: په بذل المجهود کښې دی چه بعض صحابه او تابعين لکه عمر، عمر بن عبدالعزيز او حسن بصرى وغيره نه منقول دی ﴿ لا يسن الا تكبير التحريمة ﴾ د تکبير تحريمه نه علاوه نور يو تکبير هم مشروع نه دې،(١) او د بعض سلف نه منقول دی ﴿ لا يسن التكبير الا فى الجماعة﴾ يعنى د امام دپاره مشروع دې د منفرد دپاره نه.

خو جمهور علماء کرام سلفًا وخلفًا چه په هغوی کښې خلفاء راشدين هم شامل دی (كما فى الترمذى) او ائمه اربعه هم دی، مسلک دا دې چه تکبيرات انتقال مطلقا مشروع دی که نفل مونځ وی يا فرض که جماعةً وی يا منفرداً، خو د امام احمد يو روايت دا دې ﴿ يكبر فى الفرض ولو منفردا لا فى النفل ﴾

٢: او مسئله ثانيه دا ده چه تکبيرات انتقال د جمهور او ائمه اربعه په نزد سنت دی او د ظاهريه په نزد فرض دی، تبطل الصلاة بتركها مطلقا سهوا كان او عمدا. او د امام احمد رحمه الله هم يو روايت د وجوب دې خو "عند التذكر لا مطلقا" د دې مقام مناسب يوه مسئله بله ده يعنى د تسبيحات رکوع او سجود حکم، خو چونکه ددې باب وراندې مستقل راروان دې په دې وجه به هغه هم هلته ذکر کوو.

[٨٣٥]() حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ غَيْلَانَ بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ مُطَرِّفٍ، قَالَ: صَلَّيْتُ أَنَا، وَعِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ خَلْفَ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، فَكَانَ "إِذَا سَجَدَ كَبَّرَ، وَإِذَا رَكَعَ كَبَّرَ، وَإِذَا نَهَضَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ كَبَّرَ، فَلَمَّا انْصَرَفْنَا أَخَذَ عِمْرَانُ بِيَدِي، وَقَالَ: لَقَدْ صَلَّى هَذَا قَبْلُ، أَوْ قَالَ: لَقَدْ صَلَّى بِنَا هَذَا قَبْلَ صَلَاةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه:** دمطرف نه روايت دې هغه وئيلى دي: مونځ وکړو ما او عمران بن حصين وروسته د

---

(١) او د بعض امراء بنو اميه په باره کښې منقول دی چه هغوی به تکبيرات خفض پريخودل، يعنى په رکوع او سجود کښې د تلو په وخت به ئې نه کول او د سر د اوچتولو په وخت به ئې کول، امام طحاوی د کلي په طور فرمائى ﴿ وما هي باول سنة تركوها ﴾ يعنى دا خلق خو د ډيرو سنتو ترک کونکى دی، ددې څه تخصيص دې ﴿ وقيل اول من ترك التكبير زياد وقيل معاوية وقيل عثمان ﴾ خو د سيدنا عثمان رضي الله عنه په باره کښې چه منقول دی د هغې توجيه دا کوى چه هغه به مطلقا نه ترک کول بلکه په رو اواز به ئې لوستل ١٢)

(٢): صحيح البخاري/الأذان ١١٦ (٧٨٦)، ١٤٤ (٨٢٦)، صحيح مسلم/الصلاة ١٠ (٣٩٣)، سنن النسائي/الافتتاح ١٢٤ (١٠٨٣)، والسهو ١ (١١٨١)، (تحفة الأشراف: ١٠٨٤٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤٢٩، ٤٣٢، ٤٠٠، ٤٤٤) (صحيح)

علي بن ابی طالب نه هغه وو: چې کله به ئې سجده وکړه تکبير به ئې ويلو او چې کله به ئې رکوع وکړه نو تکبيربه ئې ويلو، اوچې کله به اوچت شو د دوه رکعاتونو نه تکبير به ئې ويلو، هرکله چې مونځ فارغ شو ونيولو عمران زما لاس او هغه ووئيل: بيشکه ده داسې مونځ اوکړو. اويا هغه ووئيل: بيشکه ده مونږ ته مخکې مونځ راکړو. دمونځ د محمد ﷺ پشان.

**تشريح**: **قوله**:﴿ صليت انا وعمران بن حصين ﴾ مطلب دا دې چه سيدنا علي رضي الله عنه مونځ ورکړو نو د رکوع او سجود وغيره ټول تکبيرات انتقالات ئې ادا کړل، د مونځ نه چه کله فارغ شو د سيدنا عمران بن حصين رضي الله عنه د مطرف لاس اونيولو او هغې ته ئې اوفرمائيل چه دا اوس هغه مونږ ته مونځ راکړو هغه د رسول الله ﷺ د مونځ مطابق دې.

ځان پوهه کړئ چه تکبيرات انتقالات په ثنائي مونځ کښې يولس دي او په ثلاثي کښې اولس دي، يو تکبير تحريمه او پنځه په هر رکعت کښې د رکوع او سجدې، او يو تکبير عند القيام من الرکعتين، او په رباعي مونځ کښې تکبيرات دويشت دي. ذکره النووي في شرح مسلم... هم دغه شان هغه فرمائي چه په دې مسئله کښې اختلاف د صحابه کرامو د زماني پورې پاتې شوې دې د هغې نه روستو هيڅ اختلاف نشته. فالمسئلة اجماعية الان.

[٨٣٦]()حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا أَبِي، وَبَقِيَّةُ، عَنْ شُعَيْبٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو بَكْرِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَأَبُو سَلَمَةَ، أن أبا هريرة كان "يُكَبِّرُ فِي كُلِّ صَلَاةٍ مِنَ الْمَكْتُوبَةِ وَغَيْرِهَا، يُكَبِّرُ حِينَ يَقُومُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْكَعُ، ثُمَّ يَقُولُ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، ثُمَّ يَقُولُ: رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ قَبْلَ أَنْ يَسْجُدَ، ثُمَّ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ حِينَ يَهْوِي سَاجِدًا، ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَسْجُدُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَقُومُ مِنَ الْجُلُوسِ فِي اثْنَتَيْنِ، فَيَفْعَلُ ذَلِكَ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ حَتَّى يَفْرُغَ مِنَ الصَّلَاةِ، ثُمَّ يَقُولُ حِينَ يَنْصَرِفُ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، إِنِّي لَأَقْرَبُكُمْ شَبَهًا بِصَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِنْ كَانَتْ هَذِهِ لَصَلَاتَهُ حَتَّى فَارَقَ الدُّنْيَا". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا الْكَلَامُ الْأَخِيرُ يَجْعَلُهُ مَالِكٌ، وَالزُّبَيْدِيُّ، وَغَيْرُهُمَا. عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ، وَوَافَقَ عَبْدُ الْأَعْلَى، عَنْ مَعْمَرٍ شُعَيْبَ بْنَ أَبِي حَمْزَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ.

**ترجمه**: زهري وايي خبر راکړی دی ماته عبد الرحمن او ابو سلمة بيشکه ابو هريرة وو چې تکبير به ئې ويلو په هر مانځه کښې د فرضو نه او په غير د فرضو نه کله چې به پاڅيدلو، بيا به ئې تکبير ويلو کله چې به ئې رکوع وکړه، بيا به ئې وئيل: سمع الله لمن حمده، بيا به ئې وئيل: ربنا ولک الحمد مخکې د سجدې نه، بيا به ئې وئيل: الله اکبر چې کله به سجدې ته ځکته کيدو بيا به ئې تکبير ويلو چې کله به ئې سر اوچتولو، بيا به ئې تکبير ويلو چې کله به ئې سجده کوله، بيا ئې به ئې تکبير ويلو چې کله به ئې سر اوچتولو، بيا به ئې تکبير ويلو چې کله به اوچتيدو د دوه رکعاتو نه، نو داسې به ئې کول په هر رکعت چې کله به فارغ شو د مانځه نه، بيا ئې ووئيل کله به چې فارغ شو: قسم په هغه ذات چې زما نفس د هغه په لاس کښې دی بيشکه زه ډير نزدې يم د تاسو نه په مشابهت کښې مانځه د رسول الله

---

[1]: صحيح البخاري/الأذان ١١٥ (٧٨٥)، ١٢٨ (٨٠٣)، سنن النسائي/الافتتاح ٨٤ (١٠٢٤)، والتطبيق ٩٤ (١١٥٦)، (تحفة الأشراف: ١٤٨٦٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ٤ (١٩)، مسند احمد (٢/٢٣٦، ٢٧٠، ٣٠٠، ٣١٩، ٤٥٢، ٤٩٧، ٥٠٢، ٥٢٧، ٥٣٣)، سنن الدارمي/الصلاة ٤٠ (١٢٨٣) (صحيح)

ﷺ ته، بیشکه دا د هغه مونځ وو تردې چې د دنیا نه جدا شو. وئیلی دی ابوداود: دا اخیرنی کلام مالک او زبیدی په طریق سره او په غیر ددې دواړو نه د علی بن حسین نه، او موافقت کړی دی عبد الاعلی د معمر نه شعیب بن ابی حمزه د زهری نه.

**تشریح: قوله:** ﴿ والذی نفسی بیده انی لاقربکم شبها ﴾ زما مونځ د رسول الله ﷺ د مونځ سره ستاسو د مونځ سره زیات مشابه دې، یعنی د تکبیرات انتقال د پوره کولو په اعتبار سره.

## د مصنف د قول تشریح

**قوله:** ﴿ ان کانت هذه لصلاته حتی فارق الدنیا قال ابوداود: هذا الکلام الاخیر ﴾ مصنف دا فرمائی چه ددې حدیث دا اخری ټکړه په دوه طریقو باندې روایت شوې دې، د زهری شاګردان ددې په روایت کولو کښې مختلف دی، پس شعیب دا د زهری نه موصولا او مرفوعا ذکر کړې دې، د موصولا مطلب دا دې چه پوره سند ئې د ابوهریره رضی الله عنه پورې بیان کړو او معمر د شعیب په دې کښې موافقت کړې دې، او د زهری بعض نور شاګردان لکه مالک او زبیدی وغیره هغه مرسلا نقل کړې دې یعنی سند لره د علی بن حسین تابعی پورې منع کړو ﴿ عن علی بن حسین عن النبی صلی الله علیه وسلم ﴾ او تابعی چه کله د رسول الله ﷺ نه روایت کوی نو ظاهره ده چه هغه روایت مرسل وی دا علی بن حسین د سیدنا علی رضی الله عنه نمسې دې کوم چه د امام زین العابدین په نوم مشهور دې دهغوی په باره کښې لیکی ﴿ کان یصلی کل یوم الف رکعة ﴾ رحمه الله تعالی

[٨٣٧]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَابْنُ الْمُثَنَّى، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عِمْرَانَ، قَالَ ابْنُ بَشَّارٍ الشَّامِيِّ، وقَالَ أَبُو دَاوُدَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ الْعَسْقَلَانِيُّ، عَنِ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "وَكَانَ لَا يُتِمُّ التَّكْبِيرَ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: مَعْنَاهُ: إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ وَأَرَادَ أَنْ يَسْجُدَ لَمْ يُكَبِّرْ، وَإِذَا قَامَ مِنَ السُّجُودِ لَمْ يُكَبِّرْ.

**ترجمه:** د ابن عبد الرحمن بن ابزی نه روایت دې هغه روایت کوی د خپل پلار نه: بیشکه هغه مونځ وکړو د رسول الله ﷺ سره او وو چې نه ئې پوره کولو تکبیر. وئیلی دی ابوداود: معنی ئې داده چې کله به ئې سر اوچت کړو د رکوع نه او اراده به ئې وکړه چې سجده وکړی تکبیر به ئې نه وئیله او چې کله به پاڅیدلو د سجدی نه نو تکبیر به ئې نه ویله.

## د سند شرح

**قوله:** ﴿ عن الحسن بن عمران قال ابن بشار: الشامی ﴾ دا لفظ تشریح ته محتاج دې چه الشامی د ابن بشار صفت نه دې بلکه د حسن بن عمران صفت دې، په دې سند کښې د مصنف دوه استاذان دی محمد بن بشار او ابن المثنی، مصنف فرمائی چه د شعبه استاذ د حسن بن عمران صفت الشامی زما یو استاذ یعنی ابن بشار ذکر کړې دې او بل استاذ یعنی ابن المثنی ذکر کړې نه دې.

---

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٩٦٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠٧/٣) (ضعیف)

**قوله:** ﴿ وقال ابوداود: ابو عبد الله العسقلانی ﴾ د راوی مذکور حسن بن عمران په باره کښې مصنف فرمائی چه د هغه کنیت ابو عبدالله دې او دا عسقلانی، زه وایم چه عسقلان د ملک شام یو ښهر دې، لهذا د هغه صفت الشامی راوړل صحیح شو.

**قوله:** ﴿ انه صلی مع رسول الله صلی الله علیه وسلم وکان لا یتم التکبیر قال ابودود : معناه الخ ﴾ عبدالرحمن بن ابزی وائی چه ما د رسول الله ﷺ سره مونځ اوکړو نو هغه د تکبیراتو اهتمام نه کولو، مصنف فرمائی، مطلب دا دې چه په سجده کښې د تلو په وخت او پاسیدو په وخت به هغه تکبیر نه کولو

## د حدیث تاویل

دا حدیث د تیرو شوو احادیثو خلاف دې چه د هغې نه معلومیږی چه رسول الله ﷺ به تکبیرات پوره کول، جواب دا دې چه دا حدیث ضعیف دې حسن بن عمران په دې سره متفرد دې، کوم چه مجهول دې، امام بخاری رحمه الله یو باب قائم کړې دې ﴿ باب اتمام التکبیر ﴾ په دې باندې شارحین لیکی، په ظاهره کښې د امام بخاری رحمه الله غرض ددې حدیث د تضعیف طرف ته اشاره ده کوم چه په ابوداود کښې دې یعنی هم دا حدیث الباب، او یا به په دې حدیث کښې تاول کولې شی هغه دا چه عدم اتمام نه مراد من حیث العدد نه دې بلکه من حیث الجهر او من حیث المد والاطالة. یعنی زیات زور سره به ئې نه وئیلو، یا زیات مد او راښکلو سره به ئې نه وئیلی.

# باب كَيْفَ يَضَعُ رُكْبَتَيْهِ قَبْلَ يَدَيْهِ

### باب دی، څنګه به ږدې زنګونان مخکښې د لاسو نه

یعنی د رکوع نه فارغ کیدو نه پس اودریدو سره سجده کښې څنګه تلل پکار دی، وضع الرکبتین قبل الیدین پکار دی یا ددې برعکس یعنی اول په زمکه باندې لاس کیږدی د هغې نه روستو کونډئ، د جمهور مسلک اولنی دې او دا دویم شکل د امام مالک په نزد دې په دې مسئله باندې تفصیلی کلام د رفع الیدین والا باب کښې د وائل بن حجر د حدیث د لاندې تیر شوې دې، په دې باب کښې مصنف اولا د وائل بن حجر رضی الله عنه حدیث کوم چه د جمهورو موافق دې ذکر فرمائیلې دې دا حدیث په سنن اربعه او صحیح ابن خزیمه د صحیح ابن السکن روایت دې، ثانیا حدیث ابوهریره رضی الله عنه کوم چه د مالکیانو دلیل دې هغه ئې راوړلې دې دا صرف د سنن روایت دې. [1]

[۸۳۸]( [2])حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَحُسَيْنُ بْنُ عِيسَى، قَالَا: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا سَجَدَ وَضَعَ رُكْبَتَيْهِ قَبْلَ يَدَيْهِ،

[1]، خو د حافظ ابن حجر میلان په بلوغ المرام کښې د ابوهریره رضی الله عنه د حدیث ترجیح ده په دې باندې صاحب سبل السلام (ص ۱۸۸) لیکی چه دا خبره د حافظ ابن حجر د امام یعنی د امام شافعی رحمه الله خلاف دې، وقال النووي لا يظهر ترجيح احد المذهبين علي الاخر)

[2]: سنن الترمذي/ الصلاة ۸٤ (۲٦۸)، سنن النسائي/الإفتتاح ۱۲۸ (۱۰۹۰)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۹(۸۸۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۸۰) (ضعيف)

وَإِذَا نَهَضَ رَفَعَ يَدَيْهِ قَبْلَ رُكْبَتَيْهِ".

**ترجمه:** د وائل بن حجر نه روايت دې، هغه وئيلي دي: ما وليده نبي ﷺ چې كله ئي سجده كوله نو كيخودل به ئې زنګونان مخكې د لاسونو نه، او چې كله به پاڅيدلو اوچت به ئې كړل دواړه لاسونه مخكې د زنګونانو نه.

[۸۳۹]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جُحَادَةَ، عَنْ عَبْدِ الْجَبَّارِ بْنِ وَائِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ حَدِيثَ الصَّلَاةِ، قَالَ: "فَلَمَّا سَجَدَ وَقَعَتَا رُكْبَتَاهُ إِلَى الْأَرْضِ قَبْلَ أَنْ تَقَعَ كَفَّاهُ". قَالَ هَمَّامٌ: وَحَدَّثَنِي شَقِيقٌ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَاصِمُ بْنُ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمِثْلِ هَذَا، وَفِي حَدِيثِ أَحَدِهِمَا، وَأَكْبَرُ عِلْمِي أَنَّهُ فِي حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ جُحَادَةَ، "وَإِذَا نَهَضَ نَهَضَ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَاعْتَمَدَ عَلَى فَخِذِهِ".

**ترجمه:** د عبد الجبار بن وائل نه روايت دې، هغه روايت كوي د خپل پلار نه، بيشكه نبي ﷺ، ذكر ئي كړو حديث د مونځ، هغه وايي: چې هركله به ئې سجده وكړه نو واقع به شو زنګونان د هغه ځمكې ته مخكې د دېنه چې د هغه ورغوي لاړ شي. وئيلي دي همام: او حديث بيان كړې دې ماته شقيق، هغه وايي ماته حديث بيان كړې دې عاصم بن كليب د خپل پلار نه، او هغه د نبي ﷺ نه په مثل د دې، او په حديث د يو د دواړو كښې: او غالب ګمان مې دادی بيشكه په حديث د محمد بن جحادة كښې دا دی چې كله به پاڅيدلو نو پاڅيدلو به په زنګونانو او تكيه به ئي كوله په ورنونو باندې.

[۸۴۰]([2]) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَسَنٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا سَجَدَ أَحَدُكُمْ فَلَا يَبْرُكْ كَمَا يَبْرُكُ الْبَعِيرُ وَلْيَضَعْ يَدَيْهِ قَبْلَ رُكْبَتَيْهِ".

**ترجمه:** د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې بيشكه هغه وئيلي دي: وئيلي دي رسول الله ﷺ: چې كله سجده كوي يو كس ستاسو نه نو نه دې كيني څرنګه چې اوښ كيني، او ږدې دې دواړه لاسونه خپل مخكې د زنګونانو نه.

## د مالكيانو دليل

**قوله:** ﴿ اذا سجد احدكم فلا يبرك كما يبرك البعير وليضع يديه قبل ركبتيه ﴾ د دې حديث نه مالكيان استدلال كوي ځكه چه په دې كښې تصريح ده چه په سجده كښې د تلو په وخت وضع يدين د ركبتين نه مخكښې پكار ده او هم دا د مالكيانو مسلک دې، د جمهورو د طرف نه ددې ډير جوابونه وركړې شوې دي.

۱: حديث وائل اثبت واقوى دې په نسبت ددې حديث پس ابن القيم رحمه الله ددې حديث لس وجوه ترجيح ذكر كړې دي.

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۶۲) (ضعيف) قد تقدم هذا الحديث برقم (۷۳۶)

[2]): سنن الترمذي/الصلاة ۸۸ (۲۶۹)، سنن النسائي/التطبيق ۳۸ (۱۰۹۱)، (تحفة الأشراف: ۱۳۸۶۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۸۱/۲)، سنن الدارمي/الصلاة ۷۴ (۱۳۶۰) (صحيح)

۲: دا حديث منسوخ دې د سعد بن وقاس په حديث سره چه په هغې کښې داسې دى ﴿كنا نضع اليدين قبل الركبتين فامرنا بوضع الركبتين قبل اليدين﴾ (رواه ابن خزيمة)
۳: حديث الباب مقلوب دې ځکه چه د مصنف ابن ابى شيبه په روايت کښې د ابوهريره رضي الله عنه ددې حديث الفاظ ددې خلاف دى ﴿اذا سجد احدكم فليبدا بركبتيه قبل يديه ولا يبرک كبروک الفحل﴾
۴: ددې حديث اخر د اول معارض دې ځکه چه په شروع کښې د بروک ابل نه منع کوى او اوښ په زمکه باندې د کيناستلو په وخت اول لاسونه ږدى، نو ددې باوجود د منع کولو وراندې هم ددې امر کوى چه هغه له پکار دى چه د رکبتين نه مخکښې دې يدين په زمکه باندې کيږدى دا ښکاره تعارض دې، مالکيه شارحينو ددې جواب دا کړې دې چه د انسان رکبتين خو د رجلين يعنى د خپو طرف ته وى او د دابه رکبتين په يدين کښې وى. لهذا اوښ چه کله کينى نو هغه اګر چه اول يدين په زمکه باندې ږدى لکه چه مشهوره او ښکاره خبره ده خو چونکه د هغه رکبتين هم په يدين کښې دى لهذا هغه رکبتين هم په زمکه باندې اول ږدى او په حديث کښې د رسول الله ﷺ مراد رکبتين لره مخکښې د ږدلو نه منع کول دى لهذا تعارض رفع شو.

زمونږ د طرف نه جواب دا ورکړې شوې دې چه د هغه په دې منطق باندې مونږ پوهه نه شو، اهل لغت هم په دې باندې نه پوهيږى، لهذا په حديث کښې به تعارض منلې شى او د حديث صحيح الفاظ هغه دى کوم چه د مصنف ابن ابى شيبة په روايت کښې راغلې دى. والله تعالى اعلم بالصواب.

[۸۴۱]()حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نَافِعٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَسَنٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَعْمِدُ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ فَيَبْرُكُ كَمَا يَبْرُكُ الْجَمَلُ".

**ترجمه:** د ابو هريره، رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلى دى چې رسول الله ﷺ فرمائيلى دى: تکيه کوى يوکس ستاسونه په خپل مونځ کښې، نو داسې کينى لکه څنګه چې اوښ کينى.

## بَابُ النُّهُوضِ فِي الْفَرْدِ

### باب دې په بيان د قيام کې د اول نه رکعات نه

د فرد نه مراد اول رکعت او رکعت ثالثه دې يعنى په اول رکعت کښې د سجود نه فارغ کيدو نه پس به د رکعت ثانيه دپاره څنګه اودريږى(۲) او دغه شان دريم رکعت پوره کولو نه پس به څلورم رکعت ته څنګه اودريږى، يعنى په دې دواړو ځايونو کښې د سجدې نه فارغ کيدو نه فورا بعد به اودريږى يا د جلسه خفيفه کولو نه پس به اودريږى کوم ته چه جلسه استراحت وئيلې شى.

۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۳۸٦٦) (صحيح)
۲) وههنا مسئلة اخري يناسب هذه المسئلة تقدمت ص ۲۳۳)

[۸۴۲]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ يَعْنِي ابْنَ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، قَالَ: جَاءَنَا أَبُو سُلَيْمَانَ مَالِكُ بْنُ الْحُوَيْرِثِ إِلَى مَسْجِدِنَا، فَقَالَ: وَاللَّهِ إِنِّي لَأُصَلِّي بِكُمْ، وَمَا أُرِيدُ الصَّلَاةَ، وَلَكِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُرِيَكُمْ كَيْفَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي، قَالَ: قُلْتُ لِأَبِي قِلَابَةَ: كَيْفَ صَلَّى؟ قَالَ: مِثْلَ صَلَاةِ شَيْخِنَا هَذَا، يَعْنِي عَمْرَو بْنَ سَلَمَةَ إِمَامَهُمْ، وَذَكَرَ أَنَّهُ كَانَ "إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ الْآخِرَةِ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى قَعَدَ، ثُمَّ قَامَ".

**ترجمه:** د ابو قلابة نه روايت دې هغه وئيلى دي: راغې مونږ ته ابو سليمان مالک بن الحويرث زمونږ دې مسجد ته، قسم په الله زه به مونځ کوم تاسو ته او زه اراده د مانځه نه لرم، لکن زه غواړم چې وښايم تاسو ته څنګه وو رسول الله ﷺ چې مونځ ئې کولو، هغه وئيلى دي: ما ووېل ابو قلابه ته: هغه څنګه مونځ کولو؟ هغه وئيلى دي: په شان د مونځ د شيخ زمونږ. يعنى عمرو بن سلمة چې د هغوى امام وو. او هغه ذکر کړو چې بيشکه هغه وو: چې کله به ئې سر اوچت کړو د اخرنۍ سجدې داول رکعات نه، لږ به کيناستلو، بيابه پاڅيدلو.

[۸۴۳]([2]) حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، قَالَ: جَاءَنَا أَبُو سُلَيْمَانَ مَالِكُ بْنُ الْحُوَيْرِثِ إِلَى مَسْجِدِنَا، فَقَالَ: وَاللَّهِ إِنِّي لَأُصَلِّي، وَمَا أُرِيدُ الصَّلَاةَ، وَلَكِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُرِيَكُمْ كَيْفَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي، قَالَ: "فَقَعَدَ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى حِينَ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ الْآخِرَةِ".

**ترجمه:** د ابو قلابه نه روايت دې هغه وئيلى دي: راغې مونږ ابو سليمان مالک بن الحويرث زمونږ دې مسجد ته، هغه ووېل: بيشکه زه به خامخا مونځ کوم تاسو ته او زما اراده د مانځه نشته، لکن زه غواړم چې تاسو ته وښايم چه ما څنګه ليدلى وو رسول الله ﷺ چې مونځ ئې کولو، هغه وئيلى دي: کيناستلو په اولنې رکعات کښې چې کله هغه پورته کړو خپل سر د دويمې سجدې نه.

[۸۴۴]([3]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ، أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا كَانَ فِي وِتْرٍ مِنْ صَلَاتِهِ لَمْ يَنْهَضْ حَتَّى يَسْتَوِيَ قَاعِدًا".

**ترجمه:** د مالک بن الحويرث نه روايت دې، بيشکه هغه نبي ﷺ وليدلو چې کله به هغه د خپل مونځ د طاق په حصه کښې وو نه به پاڅيدلو تردې چې برابر به شو په ناسته.

## د جلسه استراحت بحث

مسئله مختلف فيه ده، شوافع د جلسه استراحت قائل دى او احناف او مالکيان نه دى قائل. وعن احمد روايتان

**قوله:** ﴿ حدثنا مسدد الخ ﴾ په دې باب کښې مصنف د مالک بن الحويرث رضي الله عنه حديث ذکر کړې دې چه د هغې نه جلسه استراحت ثابتيږى، دا حديث په بخارى شريف کښې هم شته، او جمهور علماء کرام کوم چه د جلسه استراحت قائل نه دى د هغوى استدلال د وائل بن

[1]: صحيح البخاري/الأذان ۱۲۷ (۸۰۲)، ۱٤۲ (۸۲۳)، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۸۵)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ۱۰۱ (۲۸۷)، سنن النسائي/الافتتاح ۱۸۱ (۱۱۵۲)، مسند احمد (۳/٤۳٦، ۵۳/۵) (صحيح)
[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۸۵) (صحيح)
[3]: انظر حديث رقم: ۸٤۲، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۸۳) (صحيح)

حجر او ابوهریره رضي الله عنه د هغه روایاتو نه دي چه په هغې کښې راځی ﴿ كان رسول الله صلى الله عليه وسلم ينهض في الصلاة على صدور قدميه ﴾ امام احمد فرمائی چه د اکثر احادیثو نه هم دا معلومیږی، په زاد المعاد کښې حافظ ابن القیم رحمه الله هم دا خبره لیکلې ده چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم عادت مبارکه دا وو ﴿ انه كان ينهض على صدور قدميه وركبتيه ﴾ او د اکثر صحابه کرامو روایات د جلسه استراحت نه خالي دی صرف د مالک بن الحویرث او د ابو حمید ساعدی د حدیث په بعض طرق کښې ددې جلسې ذکر دې، پس که دا د هغه دائمی معمول وې نو جمله واصفین صلاة د رسول الله صلى الله عليه وسلم به دا بیان کړې وې، هم دغه شان جمهور وائی چه مونځ د استراحت دپاره موضوع نه دی، یو ځیز بل هم دې هغه دا چه که جلسه فی حد ذاتها مقصود وې نو ددې حالت دپاره به یو ذکر هم مشروع وی، حال دا چه ددې حالت دپاره یو ذکر هم مشروع نه دې.

## باب الإقعاء بين السجدتين

### باب دې په د کیناستلو کې په طریقه د اقعاء سره د دوه سجدو په مینځ کې

[۸۴۵]() حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ سَمِعَ طَاوُسًا، يَقُولُ: قُلْنَا لِابْنِ عَبَّاسٍ فِي "الْإِقْعَاءِ عَلَى الْقَدَمَيْنِ فِي السُّجُودِ، فَقَالَ: هِيَ السُّنَّةُ، قَالَ: قُلْنَا: إِنَّا لَنَرَاهُ جُفَاءً بِالرَّجُلِ، فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: هِيَ سُنَّةُ نَبِيِّكَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه:** ابو الزبیر د طاوس نه اوریدلی دي، هغه به وئیل: مونږ وویل ابن عباس ته په باره د کیناستلو کښې په خپو باندې په سجدو کښې، هغه وویل: دا سنت دی. هغه وایي: مونږ وویل: مونږ دا وینو د خپی جفاء، وویل ابن عباس: دا ستا د نبی صلى الله عليه وسلم سنت دي.

**تشریح: قوله:** ﴿ قلنا لابن عباس: في الاقعاء على القدمين في السجود فقال: هي السنة ﴾ د ابن عباس دا حدیث هم په صحیح مسلم کښې هم دې، او په دې باندې چه امام نووی رحمه الله کوم باب قائم کړې دې ﴿ جواز الاقعاء على العقبين ﴾ په دې سلسله کښې روایات حدیثیه او فقهاء کرام کښې اختلاف دې، روایات دواړه قسم دې جواز او عدم جواز، پس مونږ سره دلته په باب من لم ير الجهر بسم الله الرحمن الرحيم د لاندې د عائشې رضي الله عنها حدیث مرفوع تیر شوې دې چه د هغې په اخیر کښې دې ﴿ وكان ينهى عن عقب الشيطان ﴾ زما په علم کښې امام بخاری په دې سلسله کښې یو باب یا صریح حدیث نه دې ذکر فرمائیلې، او امام ترمذی جدا جدا دوه بابونه کراهیت الاقعاء، دویم الرخصة فی الاقعاء قائم کړې دې، په دویم باب کښې ئې هم دا حدیث د ابن عباس ذکر فرمائیلې دې او په باب اول کښې د سیدنا علی رضي الله عنه حدیث مرفوع چه د هغې الفاظ دا دی ﴿ لا تقع بين السجدتين ﴾ خو امام ترمذی ددې حدیث د ضعف طرف ته اشاره فرمائیلې ده او فرمائیلې ئې دی ﴿ واكثر اهل العلم يكرهون الاقعاء بين السجدتين ﴾، او د جواز قول هغه بعض اهل مکه طرف ته منسوب کړې دې.

---

[۱]: صحيح مسلم/المساجد ٦ (٥٣٦)، سنن الترمذي/الصلاة ٩٨ (٢٨٣)، (تحفة الأشراف: ٥٧٥٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٣/١) (صحيح)

امام نووي رحمه الله فرمائي چه د منع د رواياتو اسانيد ټول ضعيف نه دي، او د رواياتو ددې تعارض په باره کښې هغه فرمائي چه اصل کښې د اقعاء دوه تفسيرونه کړې شوې دي يو دا چه اليتين (کوناتې) په زمکه باندې کيږدي او هم دغه شان دواړه لاسونه په زمکه باندې کيږدي او دواړه ساقين اودروي او دويم تفسير ئې دې ﴿ جلوس على العقبين بين السجدتين ﴾، يعنى په جلسه بين السجدتين کښې دواړه خپې اودروي او په پوندو باندې کيناستل، د منع روايات د قسم اول سره متعلق دي او د جواز روايات د قسم ثاني سره، پس امام شافعي رحمه الله ددې قسم ثاني د استحباب قائل دې خو بل قول د هغه کوم چه ددې نه هم زيات مشهور دې هغه دا دې چه طريق سنت افتراش دې او هم دا د جمهور علماء ثلاث مذهب دې، امام نووي رحمه الله فرمائي چه امام بيهقي او قاضي عياض هم جمع بين الروايتين داسې کړې ده، په الکوکب الدري کښې ليکي دي چه قسم اول زمونږ په نزد مکروه تحريمي او قسم ثاني مکروه تنزيهي دې، صاحب الکوکب د حديث ابن عباس يو بل لطيف جواب دا ليکلې دې چه دا د﴿ خذه بالموت حتى يرضى بالحمى ﴾ د قبيل نه دې، يعنى ممکنه ده چه سائل په دې مسئله کښې متشدد وی او دې ته حرام وائي په دې وجه ابن عباس ددې په رد کښې دا فرمائيلې وی چه دا خو سنت دې.

**قوله:**﴿ انا لنراه جفاء بالرجل ﴾ لفظ رجل د جمهورو په نزد په فتح د راء او جيم سره دې د انثى مقابل او د ابن عبدالبر په نزد دا لفظ په کسرې د راء او سکون د جيم سره دې په معنى د قدم، ابن عبدالبر د جمهورو د ضبط ترديد کړې دې او جمهورو د هغه ترديد کړې دې، که د جمهورو قول واخستلې شي نو د جفاء نه مراد به جهالت وی چه داسې کول د انسان جهالت دې او که دويم قول واخستلې شي نو جفاء به په معنى د مشقت اخلو يعنى په داسې کيناستلو کښې قدمين ته مشقت لاحق کيږي.

## باب مَا يَقُولُ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ

**باب دې په بيان د هغې کې چې وايې چې کله اوچت کړي سر خپل د رکوع نه**

باب: يعنى د رکوع نه د سر اوچتولو په وخت به څه وئيلې شي؟

### د باب په ترتيب باندې اشکال او جواب

دلته دا سوال وارديږي چه مصنف د ترتيب خلاف ولې باب تړلې دې، اول ما يقول في الرکوع پکار وو د هغې نه روستو به ئې دا باب راوړلې وې په ظاهره ددې وجه دا کيدې شي چه مصنف ته د رکوع او سجدې دواړو دعا يوځائې بيانول وو څکه چه په حديث کښې دواړه يوځائې ذکر دي او سجده په ترتيب کښې چونکه د رکوع او قومې نه روستو ده په دې وجه مصنف د قومې دعا په هغې باندې مقدم کړې ده، کينې بيا به د قومې دعا ډيره موخر شوې وې. هذا ما خطر ببالي.

[٨٤٦]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، وَأَبُو مُعَاوِيَةَ، وَوَكِيعٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، كُلُّهُمْ عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ الْحَسَنِ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي أَوْفَى، يَقُولُ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ، يَقُولُ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ مِلْءُ السَّمَوَاتِ وَمِلْءُ الْأَرْضِ وَمِلْءُ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَشُعْبَةُ بْنُ الْحَجَّاجِ، عَنْ عُبَيْدٍ أَبِي الْحَسَنِ، هَذَا الْحَدِيثُ لَيْسَ فِيهِ بَعْدَ الرُّكُوعِ، قَالَ سُفْيَانُ: لَقِينَا الشَّيْخَ عُبَيْدًا أَبَا الْحَسَنِ بَعْدُ فَلَمْ يَقُلْ فِيهِ بَعْدَ الرُّكُوعِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي عِصْمَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عُبَيْدٍ، قَالَ: بَعْدَ الرُّكُوعِ.

**ترجمه:** د عبيد بن الحسن نه روايت دې هغه وئيلي دى ما اوريدلي دى د عبد الله بن ابى اوفى نه، هغه وئيل: وو رسول الله ﷺ چې كله به ئې سر د ركوع نه اوچت كړو نو «سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ مِلْءُ السَّمَوَاتِ وَمِلْءُ الْأَرْضِ، وَمِلْءُ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ»

**ترجمه:** واوريده الله د هغه چا چې د هغه حمد ئې ووېله، اى الله تالره حمد دى په اندازه د ډكوالي د اسمانونو او په اندازه د ډكوالي د ځمكې، او په اندازه د ډكوالي د هغه څه چې ستا خوښه وى وروسته د دېنه. وئيلي دى ابوداود: وئيلي دى سفيان الثورى او شعبة بن الحجاج د عبيد ابى الحسن: دې حديث كښې بعد الركوع نشته دى، وئيلي دى سفيان: مونږ مخامخ شو د شيخ عبيد ابو الحسن سره وروسته هغه په هغې كښې ونه ويله: بَعْدَ الرُّكُوعِ لفظ. وئيلي دى ابوداود: او روايت كړى دى شعبة د ابى عصمة نه او هغه د اعمش نه او هغه د عبيد نه هغه وئيلي دي: بعدَ الركوع

**قوله:**﴿ اذا رفع راسه من الركوع يقول الخ ﴾ يعنى اې الله! مونږ ستا دومره حمد په ژبې سره ادا كوو چه د هغې نه زمكې او اسمان ډك شي او د زمكې او اسمان نه علاوه هم چه كوم څيزونه دى لكه عرش او كرسى دا ټول په دې كلماتو سره ډك شي ددې نه مراد تكثير عدد دې ځكه چه كلام خو جسم او كيلى يا وزنى څيز نه دې چه د هغې په ذريعه باندې اسمان او زمكه ډك شي يعنى كه كلمات حمد اجسام فرض كړې شي نو هغه به دومره كثير شي چه هغې سره به دا ټول څيزونه ډك شي داسې خبره د ذوق او شوق او ولولې په وخت باندې كولې شي زمونږ په شان خلق خو داسې دعاګانې صرف د نقل په طور باندې لولى، د كوم ذوق او شوق چه دا مقتضى دى ددې نه مونږ خالى يو.

**قوله:**﴿ قال ابو داود قال سفيان الثورى وشعبة بن الحجاج عن عبيد ابى الحسن ﴾ عبيد كوم چه په سند كښې د اعمش استاد دې د هغه كنيت ابو الحسن دې او دهغه د پلار نوم حسن دې بعض راويانو عن عبيد بن الحسن اوبعض عن عبيد بن ابى الحسن وئيلې دې، په دې صورت كښې به ابو الحسن بدل وى د عبيد نه، دا اختلاف صرف لفظى دې او دواړو طريقو سره ئې لوستل صحيح دى.

**قوله:**﴿ قال سفيان لقينا الشيخ عبيدا ﴾ دا پورته دعا به رسول اللهﷺ كوم وخت لوستله نو د محل دعا تعيين د اعمش په روايت كښې موجود دې يعنى اذا رفع راسه من الركوع، سفيان

(): صحيح مسلم/الصلاة ٤٠ (٤٧٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٨ (٨٧٨)، (تحفة الأشراف: ٥١٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٣/٤، ٣٥٤، ٣٥٦، ٣٨١) (صحيح)

دا وائي چه دا حديث ماته عبيد نه اولا بالواسطه رارسيدلې وو په دې روايت کښې خو لفظ بعد الرکوع موجود وو، خو روستو چه کله ما د عبيد نه براه راست واوريدو نو په هغې کښې بعد الرکوع نشته.

[۸۴۷]()حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ. ح وحَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُسْهِرٍ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ بَكْرٍ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُصْعَبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، كُلُّهُمْ عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ عَطِيَّةَ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ قَزَعَةَ بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَقُولُ حِينَ يَقُولُ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ: اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ مِلْءَ السَّمَاءِ، قَالَ مُؤَمَّلٌ: مِلْءَ السَّمَوَاتِ وَمِلْءَ الْأَرْضِ وَمِلْءَ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ، أَهْلَ الثَّنَاءِ وَالْمَجْدِ، أَحَقُّ مَا قَالَ الْعَبْدُ وَكُلُّنَا لَكَ عَبْدٌ، لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ". زَادَ مَحْمُودٌ: وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ، ثُمَّ اتَّفَقُوا، وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ. وَقَالَ بِشْرٌ: رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ. لَمْ يَقُلْ: اللَّهُمَّ، لَمْ يَقُلْ مَحْمُودٌ: اللَّهُمَّ، قَالَ: رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ.

**ترجمه**: د ابو سعيد الخدری ﷺ نه روايت دې بيشکه رسول الله ﷺ وو چې وئيل به ئې چې کله به ئې سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ ويله نو وئيل به ئې اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ مِلْءَ السَّمَاءِ (اې الله ته زمونږ ئې تالره حمد دی په اندازه د ډکوالی د اسمان). وئيلی دی مؤمل: مِلْءَ السَّمَوَاتِ وَمِلْءَ الْأَرْضِ..الخ،، (په اندازه د ډکوالی د اسمان او زمکې، او په اندازه د ډکوالی د هغې چې ستا خوښ وی د څه شی نه وروسته د دېنه، ای اهل د ثناء او د لويي. ته ډېر حقداريی د هغې چې بنده وئيلی دی او مونږ ټول ستا بندګان يو، نشته منع کونکی د هغې چې ته ئې ورکوی) زيادت کړی دی محمود: او نشته دی ورکونکی د هغې چې ته ئې منع کوي، بيا دوی اتفاق کړی دی. او نفع نشی ورکولی خاوند د کوشش ته ستا په مقابل کښې کوشش د هغه. او وئيلی دی بشر: (رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ) هغه نه دی ويلي: (اللَّهُمَّ)، نه دی وئيلی محمود: (اللَّهُمَّ)، هغه وئيلی دی (رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ).

## شرح حديث

**تشريح**: **قوله**:﴿ اهل الثناء والمجد ﴾ دا مرفوع هم لوستلې شي يعنی ﴿ انت اهل الثناء والمجد ﴾ او منصوب هم په تقدير د حرف نداء ﴿ يا اهل الثناء والمجد ﴾...

**قوله**:﴿ احق ما قال العبد ﴾ په دې کښې هم دوه احتمالات دی د مبتدا محذوف خبر دې يعنی ﴿ انت احق ما قال العبد ﴾ يعنی بنده چه ستا هر څنګه تعريف کوی ته واقعی د هغې لائق ئې، او د عبد نه مراد يا خو جنس دې يا رسول الله ﷺ او ﴿ کلنا لک عبد ﴾ دا جمله معترضه ده چه مونږ ټول ستا بندګان يو، دويم احتمال د عبارت په ترکيب کښې دې چه ﴿احق ما قال العبد ﴾ مبتدا او ﴿ لا مانع لما اعطيت ﴾ الی اخره د دې خبر، په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه د ټولو نه زيات رشتينې او پخه خبره ده ﴿ لا مانع لما اعطيت الخ ﴾ چه ستا نه سوا څوک هم ورکړه کونکې نشته او چاته چه ئې ته ورکړې نو هغې لره څوک هم

[1]: صحيح مسلم/الصلاة ٤٠ (٤٧٧)، سنن النسائي/الافتتاح ١١٥ (١٠٦٩)، (تحفة الأشراف: ٤٢٨١)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٨ (٨٧٧)، مسند احمد (٣/٨٧)، سنن الدارمي/الصلاة ٧١ (١٣٥٢) (صحيح)

منع کولو والا نشته او ﴿ لا ينفع ذا الجد منک الجد ﴾

## د جد په تفسير کښې دوه اقوال:

۱: نيکه يعنی لوئې خاندان او نسب والا ته ستا په مقابله کښې د هغه خاندان هيڅ نفع نه شی ورکولې.

۲: غنا او دولت، دولت والا ته ستا په مقابله کښې دهغه دولت هيڅ فائده نه شی ورکولې.

د ابن ماجه شريف روايت دې ﴿ ذكرت الجدود عند رسول الله صلى الله عليه وسلم ﴾ يعنی د رسول الله ﷺ په مجلس کښې يوه ورځ د مختلف خاندانونو او دولتونو ذکر راغلو نو په دې ئې اوفرمائيل ﴿ لا ينفع ذا الجد منک الجد ﴾ او وئيلې شوې دی چه دا لفظ د ﴿ جد ﴾ بکسر الجيم دې يعنی کوشش کونکی ته د هغه کوشش الخ.

**قوله:**﴿ اللهم ربنا لک الحمد ﴾ په دې کښې درې روايتونه دی يو خو هم دا چه صرف ﴿ ربنا لک الحمد ﴾ او دريم ﴿ ربنا ولک الحمد ﴾، امام احمد نه نقل دی چه ﴿ ربنا ﴾ سره ﴿ ولک الحمد ﴾ (واو سره) دې او د ﴿ اللهم ربنا ﴾ سره ﴿ لک الحمد ﴾ (بغير د واو نه دې) حافظ ابن القيم رحمه الله ددې په تائيد کښې فرمائی ځکه چه په هيڅ صحيح حديث کښې لفظ ﴿ اللهم ﴾ او واو سره نه دې راغلې، په دې باندې صاحب عون المعبود ليکی چه داسې نه ده بلکه د دواړو ترمينځه جمع راغلې ده كما فى صحيح البخارى فى باب صلاة القائد من حديث انس.

**قوله:**﴿ ربنا ولک الحمد ﴾ کښې واو عاطفه دې د عبارت تقدير به داسې وی، ﴿ ربنا استجب ولک الحمد ﴾ يا ﴿ حمدناک ولک الحمد ﴾ او کيدې شی چه واو زائد وی.

[۸۴۸] ()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ السَّمَّانِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا قَالَ الْإِمَامُ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، فَقُولُوا: اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ، فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ".

**ترجمه:** د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې بيشکه رسول الله ﷺ وئيلی دي: چې کله ووايی امام سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ ، نو تاسو وايې: اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ، بيشکه د چا چې موافق شی وينا د هغه د وينا دملائکوسره، نوو به بخښل شی هغه ته هغه چې ده مخکې کړی وی د ګناهونو نه.

## په مسئله ثابته بالحديث کښې اختلاف

**قوله:**﴿ حدثنا عبدالله بن مسلمة ﴾ په دې حديث کښې يوه اختلافی مسئله ده چه په هغې کښې درې مذاهب دی، د امام ابوحنيفه او مالک مذهب دا دې لکه چه ظاهر د حديث نه معلوميږی چه درکوع نه د پاسيدو په وخت د امام دپاره صرف تسميع ﴿سمع الله لمن حمده﴾ دې او د مقتدی دپاره صرف تحميد[۲] ﴿ ربنا لک الحمد ﴾ دې دواړو امامانو هم ددې حديث

[۱]: صحيح البخاري/الأذان ١٢٤ (٧٩٥)، ١٢٥ (٧٩٦)، صحيح مسلم/الصلاة ١٨ (٤٠٩)، سنن الترمذي/الصلاة ٨٦ (٢٦٧)، (تحفة الأشراف: ١٢٥٦٨)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الافتتاح ١١٣ (١٠٦٤)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٨ (٨٧٦)، مسند احمد (٢/٢٣٦، ٢٧٠، ٣٠٠، ٣١٩، ٤٥٢، ٤٩٧، ٥٠٢، ٥٢٧، ٥٣٣) (صحيح)

[۲]: که مصلی منفرد وی نو په دې صورت کښې ائمه ثلاثه د جمع بين الذكرين قائل دی او د احنافو په نزد دلته په دې کښې درې روايتونه دی. .........باقی په راروانه صفحه.....

نه استدلال کړې دې ځکه چه په دې حديث کښې تسميع او تحميد د امام او مقتدی ترمينځه تقسيم کړې دې، صاحب هدايه فرمائی ﴿ القسمة تنافی الشرکة ﴾ بل مذهب د امام شافعی دې د هغوی په نزد په دې دواړو کښې شرکت دې ﴿ کلاهما يکليهما ﴾ د هغه دليل د ابوهريره رضي الله عنه هغه متفق عليه حديث دې چه په کوم کښې دی ﴿ ثم يقول: سمع الله لمن حمده حين يرفع صلبه من الرکعة ثم يقول وهو قائم ربنا لک الحمد ﴾ او دا حديث اګر چه صرف د امام په باره کښې دې ځکه چه هم هغه ﷺ به امام وو خو د رسول الله ﷺ ارشاد په يوه بله موقع باندې ﴿ صلوا کما رايتمونی اصلی ﴾ سره د امام خصوصيت ختميږی. دريم مذهب د امام احمد او صاحبين دې، ﴿ للامام کلاهما والمقتدی احدهما ﴾ د امام دپاره جمع بين التحميد والتسميع او د مقتدی دپاره صرف تحميد، د هغوی دليل د مقتدی په حق کښې خو حديث الباب دې او د امام په حق کښې د ابوهريره رضي الله عنه هغه حديث دې کوم چه امام بخاری رحمه الله روايت کړې دې ﴿ کان النبی صلی الله عليه وسلم اذا قال سمع الله لمن حمده قال اللهم ربنا ولک الحمد ﴾

**تنبيه** : امام خطابی نه دلته د صاحبين په مذهب نقل کولو کښې خطا واقع شوې ده هغه د صاحبين مذهب د امام شافعی د مذهب موافق ليکلې دې حال دا چه داسې نه ده.

**قوله:** ﴿ فانه من وافق قوله قول الملائکة ﴾

## شرح حديث: (د موافقت نه څه مراد دې؟)

(**رومبې قول**) د راجح قول په بنياد د موافقت نه مراد موافقت فی القول والزمان دې، يعنی کوم سړې چه عين هغه وخت امين اوائی چه کوم وخت فرشتې امين وائی د هغه به تير ګناهونه معاف شی، د صحيحين د رواياتو نه معلوميږی چه د تامين امام په وخت په اسمان کښې ملائک هم امين وائی ﴿ وقالت الملائکة فی السماء امين ﴾ د بخاری په روايت کښې دی علماء کرامو ليکلې دی چه په دې کښې اشاره ده دې خبرې طرف ته چه مقتدی لره په مونځ کښې خوب بيدار اوسيدل پکار دی، غفلت او سستی نه ده پکار د هر موقع دعا او ذکر عين دهغې په متعينه وخت کښې پکار دی.

(**دويم قول**) او دويم قول د موافقت په تفسير کښې دا دې کوم چه ابن حبان اختيار کړې دې ددې نه مراد موافقت فی الاخلاص والخشوع دې،

(**دريم قول**) مونږ د خپلو بعض مشائخو نه اوريدلې دی چه په دې کښې درې احتمالات دی.

١: موافقة فی القول، ٢: موافقت فی الزمان، ٣: موافقت فی القول والزمان.

---

باقی پاتې د تيرمخ: ١: صرف ربنا لك الحمد، قال في المبسوط وهو الاصح،
٢: جمع بين الذکرين صاحب هدايه هم دې ته اصح وئيلې دې.
٣: صرف تسميع دې قاله ابوبکر الرازي (کذا في المنهل عن الزيعلي)

**(آمین ویونکي فرشتې)**

بیا په دې کښې هم اختلاف دی، ابن بزیزه وائی چه د ملائکو نه ټول ملائکی مراد دی، او وئیلې شوې دی چه صرف حفاظت کونکی ملائکی مراد دی، او وئیلې شوې دی چه ظاهره دا ده چه ددې نه هغه ملائکی مراد دی کوم چه په دې مونځ شریک وی که هغه په اسمان باندې وی یا په زمکه باندې، په یو روایت موقوفه کښې دی ﴿ صفوف اهل الارض علی صفوف اهل السماء ﴾

**فائده**: ددې حدیث بعض طرق کښې د ﴿ ما تقدم من ذنبه ﴾ سره وما تاخر هم راغلې دې، حافظ دې ته شاذ وئیلې دی.

[۸۴۹](¹)حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا أَسْبَاطٌ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ عَامِرٍ، قَالَ: "لَا يَقُولُ الْقَوْمُ خَلْفَ الْإِمَامِ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، وَلَكِنْ يَقُولُونَ: رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ".

**ترجمه**: د عامر نه روایت دې هغه وئیلې دي: نه دې وایی قوم وروسته د امام نه سمع الله لمن حمده، لکن وایی دی هغوی: ربنا لک الحمد.

## بَابُ الدُّعَاءِ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ

### باب دې په بیان د دعاء کې په مینځ د دوه سجدو کې

[۸۵۰](²)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَسْعُودٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، حَدَّثَنَا كَامِلٌ أَبُو الْعَلَاءِ، حَدَّثَنِي حَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يَقُولُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي وَارْحَمْنِي وَعَافِنِي وَاهْدِنِي وَارْزُقْنِي".

**ترجمه**: د ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې، بیشکه نبی ﷺ وو چې وئیل به ئې په مابین د دوه سجدو کښې: اې الله ماته بخښنه وکړې، په ما رحم وکړې، ماته عافیت راکړې، ماته هدایت وکړې او ماته رزق راکړې.

**تشریح**: **قوله**: ﴿ یقول بین السجدتین ﴾ او د ترمذی کښې روایت کښې ﴿ واجبرنی ﴾ هم موجود دې، او د نسائی او ابن ماجه په یو بل روایت مرفوعه کښې داسې دی ﴿ کان یقول بین السجدتین : رب اغفرلی رب اغفرلی ﴾ او د ابن ماجه په روایت کښې د ﴿ فی صلاة اللیل ﴾ قید هم مذکور دې.

**په دعاء بین السجدتین کښې مذاهب ائمه**

پس د احنافو په نزد دا دعا په تطوع باندې محمول ده (³) امام ترمذی رحمه الله فرمائی وبه یقول الشافعی، واحمد واسحاق یرون هذا جائزا فی المکتوبة والتطوع، او د امام احمد رحمه الله په نزد خو صرف جائز نه بلکه څنګه چه په مغنی کښې دی چه د هغه په مشهور قول کښې بین

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٥٦٨) (حسن)

²): سنن الترمذي/الصلاة ٩٥ (٢٨٤، ٢٨٥)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٢٤ (٨٩٨)، (تحفة الأشراف: ٥٤٧٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣١٥، ٣٧١) (حسن)

³) خو که یو سړې دا په فرض مونځ کښې هم اولولی نو مکروه نه ده. کما في الكوكب للدري ١٢)

السجدتين رب اغفرلي رب اغفرلي يو ځل لوستل واجب دی (او درې کرته مستحب) او هم دا قول د اسحاق بن راهویه او داود ظاهری دې، او بل روایت د امام احمد نه د عدم وجوب او استحباب دې، ابن قدامه ليکی ﴿ وهو قول اكثر الفقهاء لان النبی صلی الله علیه وسلم لم يعمله المسئ في صلاته ﴾ هم دغه شان مخکښې تير شو چه د امام احمد په يو روايت کښې تکبيرات انتقال او تسبيحات په رکوع او سجود کښې هم واجب دی، او د امام مالک په مذهب کښې خو ډیره زياته توسع ده لکه چه په اول باب ﴿ ما يستفتح به الصلاة من الدعاء ﴾ کښې د هغوی مذهب تير شوې دې چه د هغوی په نزد هم د نفل قيد نشته.

## بَابُ رَفْعِ النِّسَاءِ إِذَا كُنَّ مَعَ الرِّجَالِ رُءُوسَهُنَّ مِنَ السَّجْدَةِ

**باب دې په بيان دا وچتولود ښځوکې سرونو لره د سجدې نه کله چې د سړو سره وې**

ددې باب د حديث مطلب دا دې چه کومو زنانؤ به په مسجد کښې د جماعت سره مونځ د رسول الله ﷺ په زمانه کښې کولو د هغوی په باره کښې رسول الله ﷺ فرمائی چه هغوی له پکار دی چه هغه د سجدې نه لږ روستو سر اوچت کړی په هغې کښې دې تندی نه کوی داسې نه وی چه د سړوصف کوم چه مخامخ دې د هغوی په ستر باندې د زنانو نظر پريوځي.

[٨٥١] [1] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ الْعَسْقَلَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَنْبَأَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُسْلِمٍ أَخِي الزُّهْرِيِّ، عَنْ مَوْلًى لِأَسْمَاءَ ابْنَةِ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ، قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ كَانَ مِنْكُنَّ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا تَرْفَعْ رَأْسَهَا حَتَّى يَرْفَعَ الرِّجَالُ رُءُوسَهُمْ كَرَاهَةَ أَنْ يَرَيْنَ مِنْ عَوْرَاتِ الرِّجَالِ".

**ترجمه:** د اسماء بنت ابی بکر نه روايت دې، هغې وئيلی دی ما اوريدلی دی د رسول الله ﷺ نه هغه وئيل: څوک چې په تاسو کښې په الله او د قيامت په ورځ ايمان لری نو نه دې اوچتوی سر خپل تردې چې اوچت کړی سړی سرونه خپل، د وجې د کراهيت نه چې ووينې دوی عورتونه د سړو.

## بَابُ طُولِ الْقِيَامِ مِنَ الرُّكُوعِ وَبَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ

**باب دې په بيان ډير وړيدوکې د رکوع نه او په مابين د دوه سجدوکې**

### د ترجمة الباب تشريح

لفظ ﴿ من الركوع القيام ﴾ سره متعلق دې نه په طول سره يعنی قيام من الركوع اوږديدل او هم دغه شان جلسه بين السجدتين طويل کيدل، او که من الرکوع لره د طول سره متعلق کړی نو مطلب به غلط شی يعنی د قيام د رکوع نه طويل کيدل، حال دا چه دا مراد نه دې بلکه مراد دا دې چه قيام من الرکوع يعنی قومه اوږديدل.

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٧٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٤٨، ٣٤٩) (صحيح)

[۸۵۲]([1])حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ سُجُودُهُ، وَرُكُوعُهُ، وَقُعُودُهُ، وَمَا بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ قَرِيبًا مِنَ السَّوَاءِ".

**ترجمه:** د براء رضی الله عنه نه روايت دې بيشکه رسول الله ﷺ وه سجده او رکوع او کيناستل د هغوی په مابين د دوه سجدوکې، (دا ټول) تقريباً برابر وو.

## اختلاف نسخ او نسخه صحيحه تحقيق او تنقيح

**قوله:** ﴿ وما بين السجدتين قريبا من السواء ﴾ بذل المجهود کښې ليکلی چه د ابوداود په اکثر نسخو کښې هم دغه شان دې ﴿ وما بين السجدتين ﴾ او په بعض نسخو کښې ﴿ما بين السجدين﴾ بغير د واو نه دې هم دا صحيح ده، او د اکثر کتب حديث د روايت مطابق دې، او په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه د رسول الله ﷺ سجده او رکوع او جلسه بين السجدتين به تقريبا برابر وو.

خو په دې نسخه باندې اشکال دې هغه دا چه ددې يو مطلب خو دا دې چه د قعده او جلسه بين السجدتين مقدار برابر وو او اول خو داسې په يو روايت کښې شته نه. دويم دا چه د بخاری په يو روايت کښې ﴿ ما خلا القيام والقعود ﴾ روايت شوې دې چه د هغې نه معلوميږی چه صرف رکوع او سجود او ما بين السجود مساوات بيانولې شی، د قعود نه مستثنى دې او هم دغه شان قيام هم، هم په دې وجه مونږ وئيلې دی چه دويمه نسخه صحيح ده، حضرت په بذل کښې ليکلې دی چه ددې عبارت اصلاح يا خو په داسې طريقه کيدې شی چه دلته په روايت کښې لفظ قعود نه وی او کلام داسې وی ﴿ كان سجوده وركوعه وما بين السجدتين ﴾، او يوه توجيه ئې دا ليکلې ده چه د قعود نه مراد د تشهد والا قعود مراد نه کړې شی، بلکه ددې نه جلسه بين التسليم والانصراف مراد واخستلې شی چه د هغې ذکر په بعض رواياتو کښې راځی، پس ددې متعلق په ابوداود کښې ابواب سجود السهو نه لږ وړاندې يو مستقل باب راروان دې، باب انصراف النساء قبل الرجال من الصلاة. په دې صورت کښې به دا روايت د بخاری د روايت ﴿ ما خلا القيام والقعود ﴾ خلاف نه وی، او د حضرت ګنګوهی په تقرير کښې ددې توجيه دا فرمائيلې شوې ده چه د قعود نه مراد د اول تشهد قعود دې او د پوره حديث مطلب به دا وی چه د رسول الله ﷺ سجود او رکوع او قعده اولی او جلسه بين السجدتين دا څلور واړه متقارب وو، نو ګويا د حضرت ګنګوهی په نزد د بخاری په روايت کښې چه د کوم قعود استثناء ده د هغې نه مراد قعده اخيره ده، لهذا په دې صورت کښې به هم تعارض نه پيدا کيږی، دا ټول بحث په بذل المجهود کښې حضرت ډير په تفصيل سره ليکلې دې چه د هغې تسهيل مونږ دلته په خپلو الفاظو کښې کړې دې.

**قوله:** ﴿ قريبا من السواء ﴾ ددې په مفهوم کښې دوه بلکه درې اقوال دی:

---

[1] ): صحيح البخاري/الأذان ۱۲۱ (۷۹۲)، ۱۲۷ (۸۰۱)، ۱۴۰ (۸۲۰)، صحيح مسلم/الصلاة ۳۸ (۴۷۱)، سنن الترمذي/الصلاة ۹۲ (۲۷۹)، سنن النسائي/الافتتاح ۱۱۴ (۱۰۶۶)، ۴۹ (۱۱۴۹)، والسهو ۷۷ (۱۳۳۳)، (تحفة الأشراف: ۱۷۸۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۲۸۰، ۲۸۵، ۲۸۸)، سنن الدارمي/الصلاة ۸۰ (۱۳۷۲) (صحيح)

۱: مساواة احدهما للاخر يعنى رکوع او سجود هم دغه شان قومه (کومه چه په بعض رواياتو کښې ده) او جلسه بين السجدتين ددې ټولو مقدار به خپل مينځ کښې تقريبا برابر وو.
۲: مساواة الجنس للجنس يعنى خپل مينځ کښې برابرى مراد نه ده بلکه د رکوع مساوات رکوع سره او د سجدې مساوات د سجدې سره مراد دې.
۳: المراد اثبات التناسب والتوازن بين الکل. يعنى د مونځ په ارکانو کښې به تناسب او توازن وو مساوات مراد نه دې، مثلا که قيام طويل دې نو هم ددې مناسب رکوع او سجود هم طويل وى، او که قيام قصير وى نو رکوع او سجود به هم مختصر، خو د دويمې معنى په مراد اخستلو کښې اشکال دې ځکه چه د ډيرو رواياتو نه ثابت ده، د رکعت اولى د قيام طويل کيدل د رکعت ثانيه د قيام نه، کذا قال السندى فى حاشية النسائى (ص ۱۹۶) هغه وائى لهذا ظاهر معنى اول ده، زه وايم چه د معنى اول تائيد د بعض رواياتو نه کيږى پس وړاندې په باب ما يقول الرجل فى رکوعه وسجوده په اخرى حديث کښې داسې راغلې دى ﴿فکان قيامه نحوا من رکوعه فکان سجوده نحوا من قيامه وکان يقعد فيما بين السجدتين نحوا من سجوده﴾ خو په دې روايت باندې اشکال دا دې چه د بخارى په روايت کښې (چه د هغې حواله هم تيره شوه) ما خلا القيام والقعود ذکر شوې دې چه د هغې نه معلوميږى چه رکوع او سجود وغيره خو خپل مينځ کښې برابر وى خو قيام د رکوع او سجود سره برابر نه وو، فتامل. ([1])

**تنبيه**: ددې باب په اول حديث کښې چه په کوم باندې کلام شروع دې د ترجمة الباب جزء ثانى مذکوردې، يعنى جلسه بين السجدتين اوږديدل، او د ترجمې جزء اول يعنى قومه دراز کيدل هغه په دې حديث کښې نشته البته د باب په بل حديث کښې راروان دې.

[۸۵۳] ([2]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ، وَحُمَيْدٌ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "مَا صَلَّيْتُ خَلْفَ رَجُلٍ أَوْجَزَ صَلَاةً مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي تَمَامٍ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِذَا قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، قَامَ حَتَّى نَقُولَ: قَدْ أَوْهَمَ، ثُمَّ يُكَبِّرُ وَيَسْجُدُ، وَكَانَ يَقْعُدُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ حَتَّى نَقُولَ: قَدْ أَوْهَمَ".

**ترجمه**: انس بن مالک رضي الله عنه وئيلى دى هغه وئيلى دې: ما مونځ نه دى کړى وروسته د يو سړى نه چې مختصر په مانځه کښې د رسول الله ﷺ نه سره د پوره والى نه، او وو رسول الله ﷺ چې کله به ئې ووېل: سمع الله لمن حمده، نو وبه دريدلو تردې چې مونږ به ووېل بيشکه هغه ته هېره وشوه، بيا به ئې تکبير ويلو او سجده به ئې کوله، او وو چې کيناستلو به په مابين د دوه سجدو کښې تردې چې مونږ به وئيل: بيشکه هغه ته هېره وشوه.

**تشريح**: **قوله**: ﴿ ما صليت خلف رجل اوجز صلاة الخ ﴾ سيدنا انس رضي الله عنه فرمائى چه ما په يو امام پسې هم شانته مونځ نه دې کړې کوم چه د مختصر کيدو سره سره کامل او تام وى د رسول

---

[1] ددې جواب دا کيدې شى چه دا اختلاف په اختلاف اوقات وزمان باندې محمول کړې شى، يوځاني کښې هم دوام او استمرار مراد نه کړې شى. ۱۲ منه)

[2]: صحيح مسلم/الصلاة ۳۷ (۴۷۳)، (تحفة الأشراف: ۳۲۲، ۶۲۱)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأذان ۶۴ (۸۰۶)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۴۸ (۹۸۵)، مسند احمد (۲۰۳/۳، ۲۴۷)، سنن الدارمي/الصلاة ۴۶ (۱۲۹۵) (صحيح)

اللهﷺ په مقابله کښې، يعنى د رسول اللهﷺ مونځ به سره د اختصار د رعايت نه کامل او مکمل وو، چه د هغې صورت دا دې چه د قيام مقدار کم وى او رکوع او سجود به اطميان سره وى.

**قوله:** ﴿ وكان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا قال: سمع الله لمن حمده قام حتى نقول : قد اوهم﴾ يعنى رسول اللهﷺ به بعض وخت په مونځ کښې قومه دومره اوږده کړه چه مونږ به دا سوچ کولو چه هغه رکوع او قومه ترک کړه يعنى دوباره د قيام طرف ته واپس شو ځکه چه قومه دومره اوږده نه وى دا مطلب په هغه صورت کښې دې چه کله ﴿ اوهم ﴾ بصيغه معروف بروزن اکرم اولوستلې شى او که دا په صيغه مجهول ﴿اوهم ﴾ وى نو په دې صورت کښې به مطلب دا وى چه په وهم کښې واقع کيدل، يعنى مونږ به سوچ کولو چه رسول اللهﷺ ته څه وهم يا سهو خو نه دې پيدا شوې.

**قوله:** ﴿ وكان يقعد بين السجدتين الخ ﴾ د حديث د اول جزء نه تطويل قومه او د دويم جزء نه د جلسه بين السجدتين تطويل ثابتيږى.

## قومه او جلسه بين السجدتين رکن قصير دى يا رکن طويل

اوس دلته دا خيز قابل تحقيق دې چه د قومې او جلسې تطويل مستحب دې يا نه، جمهور علماء کرام ددې قائل نه دى، د جمهورو په نزد اعتدال يعنى قومه او هم دغه شان جلسه بين السجدتين هر يو رکن قصير دې د هغې تطويل جائز نه دې، البته امام احمد او ظاهريه ددې قائل دى د هغوى په نزد د قومې او جلسې تطويل مستحب دې لکه چه ابن قدامه په مغنى کښې ددې تفصيل بيان کړې دې او د مصنف تبويب هم دې طرف ته اشاره کوى، زمونږ د حضرت شيخ په نزد خو مصنف حنبلى دې، په کتب شافعيه کښې خو ئې ليکلې دى چه ددې دواړو تطويل مفسد صلاة دې.

جمهور وائى چه د قومې او جلسې تطويل د مشهور روايتونو نه ثابت نه دې صرف ددې حديث انسؓ نه ثابت دې په دې وجه دا شاذ دې، او دا هم وئيلې شوې دى چه کيدې شى دا تطويل د امر بالتخفيف نه مخکښې وى خو ددې باوجود بعض فقهاء شافعيه ومالکيه لکه امام نووى او ابن دقيق العيد ددې د جواز قائل دى ځکه چه ددې ثبوت اگر چه په شهرت سره خو نه دې خو بهرحال د بعض رواياتو نه ثابت خو دې.

[۸۵۴][1] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ وَأَبُو كَامِلٍ، دخل حديث أحدهما في الآخر، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ هِلَالِ بْنِ أَبِي حُمَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: رَمَقْتُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ أَبُو كَامِلٍ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلَاةِ فَوَجَدْتُ "قِيَامَهُ كَرَكْعَتِهِ، وَسَجْدَتِهِ، وَاعْتِدَالَهُ فِي الرَّكْعَةِ كَسَجْدَتِهِ، وَجِلْسَتَهُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ، وَسَجْدَتَهُ مَا بَيْنَ التَّسْلِيمِ وَالِانْصِرَافِ قَرِيبًا مِنَ السَّوَاءِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ مُسَدَّدٌ: "فَرَكْعَتَهُ وَاعْتِدَالَهُ بَيْنَ الرَّكْعَتَيْنِ، فَسَجْدَتَهُ فَجِلْسَتَهُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ، فَسَجْدَتَهُ فَجِلْسَتَهُ بَيْنَ التَّسْلِيمِ وَالِانْصِرَافِ قَرِيبًا مِنَ السَّوَاءِ.

[1]: انظر حديث رقم: ۸۵۲ (تحفة الأشراف: ۱۷۸۱) (صحيح)

**ترجمه**: د براء بن عازب نه روايت دې هغه وئيلي دي: ما وکتل مونځ د محمد ﷺ ته. وئيلي دی ابو کامل: رسول الله ﷺ. په مانځه کښې، نو ما وموندلو قيام د هغه پشان د رکوع او د سجدې د هغه، او ما بيامونډله قومه د هغه په رکوع کښې پشان د سجدې د هغه، او جلسه د هغه په مابين د دوه سجدو کښې او سجده د هغه مابين دسلام او انصراف کښې دا تقريبًا يو برابر وو. ابوداود وئيلي دی چه مسدد بيان کوی چه د حضور ﷺ رکوع او په دواړو رکعتونو کښې دهغوی ﷺ اعتدال او دغسې د حضور ﷺ سجده او د دواړو سجدو په مينځ کښې جلسه او بيا دويمه سجده، بيا د حضور ﷺ جلسه اود سلام نه پس دخلقو په طرف راګرځيدو پورې به دا ټول تقريبا برابر وو، يعنی حضور ﷺ به ټول ارکان په اعتدال او اطمينان سره ادا کول.

## (تشريح الحديث)

**قوله**: ﴿ فوجدت قيامه کرکعته وسجدته ﴾ يعنی د رسول الله ﷺ د قيام او رکوع او سجود مقدار يو شان وو، ﴿ واعتداله (١) فی الرکعة کسجدته ﴾ د ﴿ فی الرکعة ﴾ نه مراد بعد الرکوع دې لهذا يعني اوموندله ما قومه د رکوع نه روستو د سجدې برابر ﴿ وجلسته بين السجدتين وسجدته (٢) ما بين التسليم والانصراف ﴾ يعنی اوموندله ما د هغه جلسه بين السجدتين لره او سجده بين التسليم والانصراف لره بالکل برابر.

ځان پوهه کړه چه ددې حديث په سند کښې د مصنف دوه استاذان دی چه د مصنف په سند کښې دوه استاذان دی يو مسدد او بل ابو کامل دا پورته الفاظ د ابو کامل دی او د مسدد الفاظ اګر چه مصنف وړاندې بيانوی، خو د ابو کامل د روايت په الفاظو کښې ګډوډ والې دې، صحيح الفاظ هم هغه دی کوم چه د مسدد په روايت کښې راروان دی.

د مسدد د روايت مضمون دا دې چه د رسول الله ﷺ د قيام او رکوع او سجده اولی او بيا د جلسه بين السجدتين او بيا د سجده ثانيه او بيا د جلسه بين التسليم والانصراف دا ټول ما تقريبا برابر موندلې دی، د مسدد په روايت کښې ټول الفاظ رايوځائې کيدو سره يوه جمله شوه په خلاف د ابو کامل د روايت چه کوم الفاظ دی هغه جدا جدا مستقل درې جملې دی، ددې روايت نه معلوميږی چه د قيام مقدار ئې د رکوع او سجود برابر وو په خلاف د مسدد د روايت چه په هغې کښې داسې نه ده، هغه خو د مجموعه په باره کښې داسې وائی چه دا به تقريبا برابر وو، او د برابر کيدو به هم هغه درې مطلبونه وی کوم چه مخکښې تير شو په خلاف د ابو کامل د روايت چه په هغې کښې يوه معنی متعين ده.

**تنبيه** : دا د ابو کامل او د مسدد د رواياتو اختلاف د ابوداود په اعتبار سره دې ګينې په صحيح مسلم کښې د دواړو په الفاظ او سياق کښې هيڅ اختلاف نشته، څنګه چه د مسدد

(١) ددې عطف په قيامه باندې دې.
(٢) په دې روايت کښې دا لفظ غلط دې ددې په ځائې ﴿ وجلسته ﴾ پکار دی لکه چه وړاندې د مسدد په روايت کښې راځی، الغرض د ابو کامل په روايت کښې تحريف واقع شوې دې او صحيح د مسدد روايت دې کوم چه د نورو باقی روايات حديثيه موافق دې.

د روایت الفاظ دي هم هغه شان د ابو کامل د روایت الفاظ هم دي، پس کیدې شي چه مصنف ته دا روایت داسې رارسیدلې وي او امام مسلم ته هغه شان، او دا هم ممکنه ده چه ابو کامل روستو د خپلو الفاظو اصلاح کړې وي یا اول هغه صحیح روایت کولو او روستو ترې نه خلط شوې وي. والله تعالى اعلم

## بَابُ صَلَاةِ مَنْ لَا يُقِيمُ صُلْبَهُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ

### باب دې په بیان د هغه چې کې چې نه برابروي خپله شا په رکوع او سجده کې

یعنی کوم سړې چه په رکوع او سجود کښې خپله ملا د زیات وخته پورې نه ښکته کوي بلکه زر سر اوچت کړي یا دا چه په رکوع کښې ملا برابر او نیغه نه کړي، بهر صورت مراد ترې ترک تعدیل او ترک طمانیت دې، مسئله مختلف فیه ده.

### په تعدیل ارکان کښې مذاهب ائمه

مشهوره دا ده چه تعدیل ارکان یعنی رکوع او سجود په اطمینان سره ادا کول، د جمهور علماء ائمه ثلاث او د داود ظاهري او امام ابویوسف په نزد فرض دې بغیر ددې نه رکوع او سجود صحیح نه دي، او د طرفین په نزد د مشهور قول په بناء واجب دي او وئیلې شوې دي چه سنت دي، خو دا قول غیر اصح دې البته په جلسه بین السجدتین او قومه او په دې کښې طمانیت د طرفین په نزد سنت دې واجب نه دې. (زیلعی عن الکنز) علامه سندهي د نسائي په حاشیه (١٥٨) کښې لیکي چه مشهوره خو هم دا ده چه د طرفین په نزد تعدیل ارکان فرض نه دې خو امام طحاوي په شرح معاني الاثار کښې تصریح کړې ده ددې خبرې چه د ابوحنیفه او صاحبین مذهب په رکوع او سجده کښې افتراض طمانیت دې او هم دغه شان علامه شامي [1] هم د امام طحاوي رحمه الله نه د احنافو مذهب د فرضیت تعدیل نقل کړې دې.

### په تعدیل او طمانیت کښې فرق

اوس دا چه د تعدیل او طمانیت نه څه مراد دې، جواب دا دې چه دې طرف ته اشاره خپله په حدیث کښې موجود ده، ﴿ثم یرکع حتی تطمئن مفاصله، ثم یسجد حتی تطمئن مفاصله﴾ او هم دا خبره فقهاء کرامو لیکلې ده، او ددې زیاته تشریح هغوی دا کړې ده ﴿ویستقر کل عضو فی محله بقدر تسبیحة﴾ او په مغنی کښې ددې تفسیر دا کړې شوې دې ﴿ان یمکث اذا بلغ حد الرکوع قلیلا﴾ طرفین فرمائي چه نفس رکن، لکه د رکوع او سجدې ادا کول خو فرض دي او اکمال رکن لره علی وجه الکمال ادا کول واجب دي، والطمانية من قبیل الثاني لا الاول.

---

[1]) په در مختار کښې دي: وتعديل الاركان اي تسكين الجوارح قدر تسبيحة في الركوع والسجود وكذا في الرفع منهما علي ما اختاره الكمال... علامه شامي لیکي چه قومه او جلسه بین السجدتین او ددې دوارو تعدیل کښې مشهور فی المذهب دا ده چه سنت دې او بل روایت ئې د وجوب دې، وهو الموافق للادلة (وعليه الكمال ابن الهمام) وقال ابويوسف بفرضية الكل واختاره في المجمع ورواه الطحاوي عن ائمتنا الثلاثة وهو مذهب مالك والشافعي واحمد. ١٢ منه)

## د جمهور علماء كرامو استدلال او د احنافو د طرف نه جواب

او د جمهورو استدلال د حديث المسئ فى الصلاة نه دې چه په هغې كښې د تعديل اركان د فوت كيدو د وجې نه په صلاة باندې د عدم صلاة اطلاق كړې شوې دې ﴿ صل فانك لم تصل﴾ او احناف دا وائى چه خپله دا حديث او قصه په عدم فرضيت تعديل باندې دلالت كوى څكه چه په دې كښې رسول الله ﷺ فرمائى ﴿ وما انتقصت من هذا شيئا فانما انتقصته من صلاتك ﴾ د دې نه معلوميږى چه په ترك تعديل سره په مانځه كښې نقصان پيدا كيږى. [1]
او هغه مونځ ناقص دې نه فاسد او باطل او هم دا خبره طرفين كوى، او يوه بله وجه هم ده هغه دا چه د مونځ د فاسد كيدو نه پس كه هغه په هر څه وجې سره فاسد شوى وى ﴿ مضى فى الصلاة ﴾ يعنى مونځ كول حرام او ناجائز دى او ظاهره ده چه په ترك د فرض سره مونځ فاسد كيږى، نو هر كله چه دې شخص مذكور په اول ركعت كښې تعديل اركان ترك كړو نو د هغه مونځ فاسد شو ستاسو په نزد او هغه د رسول الله ﷺ په مخكښې هم هغه شان ادا كولو، دا څنګه كيدې شى؟

[۸۵۵](2) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سُلَيْمَانَ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْبَدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُجْزِءُ صَلَاةُ الرَّجُلِ حَتَّى يُقِيمَ ظَهْرَهُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ".

**ترجمه**: د ابو سعيد الخدرى رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلى دى چې وئيلى دى رسول الله ﷺ: نه روا كيږى مونځ د سړى تردې چې برابره كړى شا خپله په ركوع او سجده كښې.

[۸۵۶](3) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا أَنَسٌ يَعْنِي ابْنَ عِيَاضٍ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، وَهَذَا لَفْظُ ابْنِ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ الْمَسْجِدَ، فَدَخَلَ رَجُلٌ فَصَلَّى، ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَرَدَّ رَسُولُ

---

[1] پس د ترمذى په روايت كښې دى چه كله رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائيل ﴿ صل فانك لم تصل فخاف الناس وكبر عليهم ان يكون من اخف صلاته لم يصل ﴾ يعنى په صحابه كرامو باندې دا خبره ډيره ګرانه پريوتله چه څوک تعديل اركان نه كوى د هغه مونځ نه كيږى، بيا هم ددې روايت په اخر كښې دى چه كله رسول الله ﷺ هغه صحابى ته اوفرمائيل ﴿ وان انتقصت منه شيئا انتقصت من صلاتك ﴾ نو په دې باندې راوى وائى ﴿ قال وكان هذا اهون عليهم من الاول انه من انتقص الخ ﴾ يعنى كله چه صحابه كرامو د رسول الله ﷺ نه نور الفاظ واوريدل چه په هغې كښې د نقصان صلاة ذكر دې نو د هغوى بوجه سپک شو څكه چه ددې الفاظو نه معلومه شوه چه د هغه مونځ صرف ناقص شو فاسد شوې نه دې، دا ټول مضمون په ترمذى ص ۴۰ كښې د حديث په متن كښې موجود دې، اوګورئ احناف هم هغه خبره كړې ده كومه چه صحابه كرامو فهم كړې ده. والله تعالى اعلم بالصواب

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ۸۴ (۲۶۵)، سنن النسائي/الافتتاح ۸۸ (۱۰۲۸) والتطبيق ۱۴۴ (۱۱۱۲)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۶ (۸۷۰)، (تحفة الأشراف: ۹۹۹۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۱۱۹، ۱۲۲)، سنن الدارمي/الصلاة ۷۸ (۱۳۶۰) (صحيح)

[3]: صحيح البخاري/الأذان ۹۵ (۷۵۷)، ۱۲۲ (۷۹۳)، والأيمان والنذور ۱۵ (۶۲۵۱)، صحيح مسلم/الصلاة ۱۱ (۳۹۷)، سنن الترمذي/الصلاة ۱۱۴ (۳۰۲)، سنن النسائي/الافتتاح ۷ (۸۸۵)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۷۲ (۱۰۶۰)، (تحفة الأشراف: ۱۲۹۸۳، ۱۴۳۰۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۴۳۷) (صحيح)

اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِ السَّلَامَ، وَقَالَ: ارْجِعْ فَصَلِّ، فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ، فَرَجَعَ الرَّجُلُ فَصَلَّى كَمَا كَانَ صَلَّى، ثُمَّ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَعَلَيْكَ السَّلَامُ، ثُمَّ قَالَ: ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ، حَتَّى فَعَلَ ذَلِكَ ثَلَاثَ مِرَارٍ، فَقَالَ الرَّجُلُ: وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ، مَا أُحْسِنُ غَيْرَ هَذَا فَعَلِّمْنِي، قَالَ: "إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ فَكَبِّرْ، ثُمَّ اقْرَأْ مَا تَيَسَّرَ مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ، ثُمَّ ارْكَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا، ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَعْتَدِلَ قَائِمًا، ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا، ثُمَّ اجْلِسْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا، ثُمَّ افْعَلْ ذَلِكَ فِي صَلَاتِكَ كُلِّهَا". قَالَ الْقَعْنَبِيُّ: عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَقَالَ فِي آخِرِهِ: "فَإِذَا فَعَلْتَ هَذَا، فَقَدْ تَمَّتْ صَلَاتُكَ وَمَا انْتَقَصْتَ مِنْ هَذَا شَيْئًا، فَإِنَّمَا انْتَقَصْتَهُ مِنْ صَلَاتِكَ، وَقَالَ فِيهِ: إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ فَأَسْبِغِ الْوُضُوءَ".

**ترجمه:** د ابوهريره ﷺ نه روايت دي بيشکه رسول الله ﷺ داخل شو مسجد ته، نو داخل شو يو سړی مونځ ئې وکړو بيا راغلو سلام ئې وکړو رسول الله ﷺ ته، نو جواب ورکړو پيغمبر ﷺ د هغه د سلام، او ويې وئيل: واپس شه مونځ وکړه بيشکه تا مونځ ن ه دی کړی. نو واپس شو سړی، نو مونځ ئې وکړو لکه څنګه ئې چې مونځ کړی وو، بيا راغلو نبی ﷺ ته او سلام ئې وکړو هغه ته، نو هغه ته رسول الله ﷺ ووئيل: (وعليک السلام) بيا ئې وفرمائيل: لاړ شه مونځ وکړه يقينًا تا مونځ نه دی کړی. تردې چې دا کاريې درې ځله وکړو، نو ووئيله سړي: قسم په هغه ذات چې ته ئې رالېږلی په حق باندې، ماته ياد نه دی غير د دېنه ماته ئې راوښايه، هغه ووئيل: کله چې ته پاڅېږې مانځه ته نو تکبير وکړه بيا ولوله هغه چې تاته اسان وی د قرآن نه، بيا رکوع وکړه تردې چې ته مطمئن شې په رکوع کښې، بيا اوچت شه تردې چې معتدل شې په ولاړه، بيا سجده وکړه تردې چې ته مطمئن شې په سجده کښې، بيا کينه تردې چې ته مطمئن شې په ناسته، بيا داسې په ټول مونځ کښې کوه. وئيلی دی قعنبی د سعيد بن ابی سعيد المقبری نه او هغه د ابو هريره نه، هغه وئيلی دی په اخير د هغې کې: کله چې ته دا وکړل نو ستا مونځ پوره شو، او هغه چې د کم کړل د دېنه بيشکه تا کم کړل هغې لره د مانځه ستانه. او هغه وئيلی دی په هغې کښې: کله چې ته مانځه ته ودرېږې نو پوره وکړه اودس.

**تشريح: قوله:** ﴿ عن ابی هريرة ان رسول الله صلی الله عليه وسلم دخل المسجد فدخل رجل فصلی ثم جاء فسلم الخ ﴾ دا هم هغه حديث المسئ فی الصلاة دې، کوم چه مصنف د ابوهريره او رفاعه بن رافع په روايت سره په ډيرو طرق باندې ذکر کړې دې، د رفاعه بن رافع روايت وړاندې په کتاب کښې راروان دې.

## د رجل تعيين:

د دې قصې راوی خو رفاعه بن رافع دې او صاحب قصه يعنی مسی فی الصلاة د هغه رور خلاد بن رافع دې په دې حديث کښې خو د هغه نه په رجل سره تعبير کړې شوې دې، د نوم تصريح ئې د مسند احمد او ابن ابی شيبه په روايت کښې ده (کما فی البذل)

**اشکال:** دلته دا هم په شرح کښې ليکلې شوې دی چه د خلاد بن رافع په باره کښې دا راځی چه هغه په جنګ بدر کښې شهيد شوې وو نو بيا به په دې باندې دا اشکال وی چه ابوهريره ﷺ دا څنګه روايت کوی او حال دا چه د هغه اسلام قبلول ډير روستو په ۷ هجری

کښې شوې دی.

**جواب**: د دې جواب به دا وی چه د ابوهريره رضي الله عنه روايت مرسل د صحابی دې هغه به دا قصه د يو قدم الاسلام صحابی نه اوريدلې وی، بيا په وخت د روايت هغه واسطه حذف کولو سره حديث مرسلا روايت کړې دې، هم دغه شان اشکال نور هم په ډيرو ځايونو کښې پيښ شوې دې هلته هم دا جواب ورکړې شوې دې، هم په دې وجه محدثين ليکی چه د ابوهريره رضي الله عنه عادت د ارسال وو.

[٨٥٧]([1]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ يَحْيَى بْنِ خَلَّادٍ، عَنْ عَمِّهِ، أَنَّ رَجُلًا دَخَلَ الْمَسْجِدَ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ، قَالَ فِيهِ: فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّهُ لَا تَتِمُّ صَلَاةٌ لِأَحَدٍ مِنَ النَّاسِ حَتَّى يَتَوَضَّأَ فَيَضَعَ الْوُضُوءَ يَعْنِي مَوَاضِعَهُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ وَيَحْمَدُ اللَّهَ جَلَّ وَعَزَّ وَيُثْنِي عَلَيْهِ وَيَقْرَأُ بِمَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ، ثُمَّ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ، ثُمَّ يَرْكَعُ حَتَّى تَطْمَئِنَّ مَفَاصِلُهُ، ثُمَّ يَقُولُ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ حَتَّى يَسْتَوِيَ قَائِمًا، ثُمَّ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ، ثُمَّ يَسْجُدُ حَتَّى تَطْمَئِنَّ مَفَاصِلُهُ، ثُمَّ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ وَيَرْفَعُ رَأْسَهُ حَتَّى يَسْتَوِيَ قَاعِدًا، ثُمَّ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ، ثُمَّ يَسْجُدُ حَتَّى تَطْمَئِنَّ مَفَاصِلُهُ، ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ فَيُكَبِّرُ، فَإِذَا فَعَلَ ذَلِكَ فَقَدْ تَمَّتْ صَلَاتُهُ".

**ترجمه**: د علی بن يحيى بن خلاد نه روايت دې هغه روايت کوی د خپل تره نه، بيشکه يو سړی داخل شو مسجد ته، ذکر ئې کړو پشان د هغه هغه وويل پکې: وويل نبی صلى الله عليه وسلم بيشکه نه پوره کيږی مونځ د هيچا د خلقو نه تردې چې اودس وکړي، پوره وکړی اودس. يعنی ځايونه د اودس. بيا تکبير ووايی او د الله حمد ووايي، او ثناء ووايی په هغه، او ولولی هغه چې اسان وی د قرآن نه، بيا ووايي: الله اکبر، بيا رکوع وکړی تردې چې په آرام شی جوړونه د هغه، بيا ووايي: سمع الله لمن حمده تردې چې برابر شی په ولاړه، بيا ووايي: الله اکبر، بيا سجده وکړی تردې چې مطمئن شی جوړونه د هغه، بيا ووايی الله اکبر، او آوچت کړی سر خپل تردې چې ښه برابر شی په ناسته، بيا ووايی الله اکبر، بيا سجده وکړی تردې چې په ارام شی جوړونه د هغه، بيا اوچت کړی سر خپل او تکبير وکړي، کله چې دغه وکړی نو مونځ ئې اوشو.

[٨٥٨]([2]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ، وَالْحَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ يَحْيَى بْنِ خَلَّادٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمِّهِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ، بِمَعْنَاهُ، قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّهَا لَا تَتِمُّ صَلَاةُ أَحَدِكُمْ حَتَّى يُسْبِغَ الْوُضُوءَ كَمَا أَمَرَهُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ، فَيَغْسِلَ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ، وَيَمْسَحَ بِرَأْسِهِ وَرِجْلَيْهِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ، ثُمَّ يُكَبِّرَ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ وَيَحْمَدَهُ، ثُمَّ يَقْرَأَ مِنَ الْقُرْآنِ مَا أُذِنَ لَهُ فِيهِ وَتَيَسَّرَ. فَذَكَرَ نَحْوَ حَدِيثِ حَمَّادٍ، قَالَ: ثُمَّ يُكَبِّرَ فَيَسْجُدَ فَيُمَكِّنَ وَجْهَهُ، قَالَ هَمَّامٌ: وَرُبَّمَا، قَالَ: جَبْهَتَهُ مِنَ الْأَرْضِ، حَتَّى تَطْمَئِنَّ مَفَاصِلُهُ وَتَسْتَرْخِيَ، ثُمَّ يُكَبِّرَ فَيَسْتَوِيَ قَاعِدًا عَلَى مَقْعَدِهِ وَيُقِيمَ صُلْبَهُ". فَوَصَفَ الصَّلَاةَ هَكَذَا أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ حَتَّى فَرَغَ، لَا تَتِمُّ صَلَاةُ أَحَدِكُمْ حَتَّى يَفْعَلَ ذَلِكَ.

---

[1]): سنن الترمذي/الصلاة ١١٤ (٣٠٢)، سنن النسائي/الأذان ٢٨ (٦٦٨)، الافتتاح ١٦٧ (١١٣٧)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٥٧ (٤٦٠)، (تحفة الأشراف: ٣٦٠٤ مسند رفاعة بن رافع الأنصاري)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/ ١٠٠، ١٠٢، ٤/ ٣٤٠)، سنن الدارمي/الصلاة ٧٨ (١٣٦٨) (صحيح)

[2]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٣٦٠٤) (صحيح)

**ترجمه:** علي بن يحيى بن خلاد د خپل پلار نه روايت كوي، او هغه ئې د تره نه كوي رفاعة بن رافع نه، په معنى د هغې سره، هغه وايي: وويل رسول الله ﷺ: بيشكه نه پوره كېږي مونځ د يو كس د ستاسو تردې چې پوره كړي اودس لكه څنګه چې امر ورته الله كړى دى، ووينځى خپل مخ او دواړه لاسونه ترڅنګلو پورې، او مسح وكړي په خپل سر او دواړه خپې تر ګيټو پورې، بيا لويي بيان كړي د الله او د هغه حمد ووايي، بيا ولولى د قرآن نه هغه چې ده ته پكې اجازت دى او اسان دى ورته. ذكريې كړو پشان د حديث د حماد، هغه ووېل: بيا تكبير وائى او سجده كوى ږدې مخ خپل په زمكه. وئيلى دى همام: او كله به ئې وئيل: تندى خپل په ځمكه. تردې چې مطمئن شي جوړونه د هغه او سست شي، بيا تكبير وائى، برابر شي په ناسته په خپل مقعد باندې او برابروى شا خپله. طريقه د مانځه ئې داسې بيان كړه څلور ركعاته تردې چې ته فارغ شي، نه پوره كېږي مونځ د يو كس ستاسو تردې چې داسې وكړي.

[٨٥٩]() حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ مُحَمَّدٍ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو، عَنْ عَلِيِّ بْنِ يَحْيَى بْنِ خَلَّادٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ، بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: "إِذَا قُمْتَ فَتَوَجَّهْتَ إِلَى الْقِبْلَةِ فَكَبِّرْ، ثُمَّ اقْرَأْ بِأُمِّ الْقُرْآنِ وَبِمَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ تَقْرَأَ، وَإِذَا رَكَعْتَ فَضَعْ رَاحَتَيْكَ عَلَى رُكْبَتَيْكَ وَامْدُدْ ظَهْرَكَ، وَقَالَ: إِذَا سَجَدْتَ فَمَكِّنْ لِسُجُودِكَ، فَإِذَا رَفَعْتَ فَاقْعُدْ عَلَى فَخِذِكَ الْيُسْرَى".

**ترجمه:** علي بن يحيى بن خلاد. روايت كوى د خپل پلار نه او هغه د رفاة بن رافع نه. ددې قصى. هغه وايي: كله چې ته ودريدى مانځه ته او مخ دې قبلې ته كړو نو تكبير ووايه، بيا ولوله سورة فاتحه، او هغه چې د الله خوښه شي چې ته ئې ولولې، او كله چې ته ركوع كوى نو كيده خپل ورغوى په دواړو زنګونانو، او اوږده كړه خپله شا. او هغه وئيلى دي: چې كله ته سجده كوى نو ځائې وركړه خپلې سجدى ته، كله چې ته اوچت شى نو كينه په خپل چپ ورون باندې.

[٨٦٠]() حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ يَحْيَى بْنِ خَلَّادِ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمِّهِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: "إِذَا أَنْتَ قُمْتَ فِي صَلَاتِكَ فَكَبِّرِ اللَّهَ تَعَالَى ثُمَّ اقْرَأْ مَا تَيَسَّرَ عَلَيْكَ مِنَ الْقُرْآنِ، وَقَالَ فِيهِ: فَإِذَا جَلَسْتَ فِي وَسَطِ الصَّلَاةِ فَاطْمَئِنَّ وَافْتَرِشْ فَخِذَكَ الْيُسْرَى ثُمَّ تَشَهَّدْ، ثُمَّ إِذَا قُمْتَ فَمِثْلَ ذَلِكَ حَتَّى تَفْرُغَ مِنْ صَلَاتِكَ".

**ترجمه:** رفاعة بن رافع د نبي ﷺ نه روايت كوى. ددې قصى. هغه وئيلى دي: كله چې ته ودرېږى مانځه ته، نو تكبير وايه، بيا ولوله ما هغه چې تاته اسان وى د قرآن نه. او هغه وئيلى دى په هغې كښې: كله چې ته كينى په مينځ د مانځه كښې نو مطمئن شه، او خور كړه خپل چپ ورون بيا تشهد ووايه، بيا چې ته كله پاڅېږى نو شه په مثل د هغې تردې چې ته فارغ شى د خپل مونځ نه.

(١): انظر حديث رقم: ٨٥٧ (تحفة الأشراف: ٣٦٠٤) (حسن)
(٢): انظر حديث رقم: ٨٥٧ (تحفة الأشراف: ٣٦٠٤) (حسن)

[۸٦۱]()حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ مُوسَى الْخُتَّلِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ يَعْنِي ابْنَ جَعْفَرٍ، أَخْبَرَنِي يَحْيَى بْنُ عَلِيِّ بْنِ يَحْيَى بْنِ خَلَّادِ بْنِ رَافِعٍ الزُّرَقِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَصَّ هَذَا الْحَدِيثَ، قَالَ فِيهِ: "فَتَوَضَّأْ كَمَا أَمَرَكَ اللَّهُ جَلَّ وَعَزَّ، ثُمَّ تَشَهَّدْ فَأَقِمْ، ثُمَّ كَبِّرْ، فَإِنْ كَانَ مَعَكَ قُرْآنٌ فَاقْرَأْ بِهِ، وَإِلَّا فَاحْمَدِ اللَّهَ وَكَبِّرْهُ وَهَلِّلْهُ، وَقَالَ فِيهِ: وَإِنِ انْتَقَصْتَ مِنْهُ شَيْئًا انْتَقَصْتَ مِنْ صَلَاتِكَ".

**ترجمه**: د رفاعة بن رافع روايت كوي، بيشكه رسول الله ﷺ نو بيان ئي كړو دا حديث هغه وويل پكې: اودس وكړه څرنګه چې امر كړې دى تاته الله، بيا تشهد وايه، نو اقامت اوكړه بيا تكبير اووايه، كه چرې وي ياد تاسره قران نو لوله هغه، او كه نه وي نو د الله حمد induced وايه او لويي او تهليل ووايه. او هغه وويل په هغې كښې: كه چرې تا د دېنه څه شى كم كړو نو تا كم كړو خپل مونځ.

**تشريح**: **قوله**:﴿ حدثنا عباد بن موسى الختلي... ثم تشهد فاقم ﴾ په دې روايت كښې دا زيادت دې هغه دا چه رسول الله ﷺ هغه صحابى ته د اذان او اقامت حكم فرمائيلې دې، د تشهد نه مراد اذان دې.

[۸٦۲]()حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ الْحَكَمِ، ح وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ تَمِيمِ بْنِ مَحْمُودٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ شِبْلٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نَقْرَةِ الْغُرَابِ، وَافْتِرَاشِ السَّبُعِ، وَأَنْ يُوَطِّنَ الرَّجُلُ الْمَكَانَ فِي الْمَسْجِدِ كَمَا يُوَطِّنُ الْبَعِيرُ". هَذَا لَفْظُ قُتَيْبَةَ.

**ترجمه**: د عبد الرحمن بن شبل نه روايت دې هغه وئيلى دي: منع كړې ده رسول الله ﷺ د تونګې د كارغه نه، او د كيناستلو د لېوه نه، او دا چې ونېسي (مقرر) كړى سړى يو ځائې لره په مسجد كښې لكه څنګه چې ځائې نيسي اوښ. دا لفظ د قتيبة دى.

## شرح حديث

**قوله**:﴿ حدثنا ابو الوليد الطيالسي... نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن نقرة الغراب ﴾ يعنى څنګه چه يو مارغه زر زر تونګې وهى او د زمكې نه دانه اوچتوى دغه شان رسول الله ﷺ په مونځ كښې د ركوع او سجدې كولو نه منع فرمائيلې ده يعنى دا چه بغير د تعديل اركان نه دې څوك هم مونځ نه كوى، هم دغه شان رسول الله ﷺ په سجده كښې د افتراش ذراعين نه منع فرمائيلې ده څنګه چه يو درنده په زمكه باندې خپلې څنګلې خورې كړى او په ارام كينى ځكه چه مونځ د ارام د حصول دپاره نه دې بلكه يو قسم محنت او مجاهده ده، په دې وجه د سجدې چه كومه مسنون طريقه ده په هغې كښې انسان مشقت اوچتوى، او دغه شان رسول الله ﷺ ددې خبرې نه هم منع كړې ده چه يو سړې په مسجد كښې د خپل مونځ كولو دپاره ځائې متعين كړى چه هميشه هم هلته مونځ كوى څنګه چه اوښ د خان دپاره د ترلو ځائې متعين كوى.

[1]: انظر حديث رقم: ۸۵۷، (تحفة الأشراف: ٣٦٠٤) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/الافتتاح ۱٤۵ (۱۱۱۳)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۲۰٤ (۱٤۲۹)، (تحفة الأشراف: ۹۷۰۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/٤۲۸، ٤٤٤)، سنن الدارمي/الصلاة ۷۵ (۱۳٦۲) (حسن)

بعض ددې حکمت دا بيان کړې دې چه په دې صورت کښې به عبادت د عادت په طور شي، حال دا چه عبادت د عادت په طور نه دی پکار بلکه په هغې کښې د نفس او عادت مخالف معنی کيدل پکار دی، بله دا چه داسې کولو سره د شهرت او رياء خطره ده، د خلقو په ژبه باندې به دا راځي چه فلانې سړې چه کله هم وينې نو په مسجد کښې په فلانی ځائې کښې مونځ کونکې راځي او يو حکمت دا هم بيان کړې شوې دې چه که يو سړې په مسجد کښې خپل ځائې متعين کړی نو که اتفاقي هلته بل څوک کيني نو هغه به هغه ځائې خپل حق او حصه ګنړلو سره مزاحمت کوی، بله دا چه په ځائې نه متعين کولو کښې د استکثار شهود فائده ده چه هر ځائې به د قيامت په ورځ باندې ګواهی ورکوی، په هغې باندې د مونځ کولو.

[۸۶۳]([1])حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ سَالِمٍ الْبَرَّادِ، قَالَ: أَتَيْنَا عُقْبَةَ بْنَ عَمْرٍو الْأَنْصَارِيَّ أَبَا مَسْعُودٍ، فَقُلْنَا لَهُ حَدِّثْنَا عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَامَ بَيْنَ أَيْدِينَا فِي الْمَسْجِدِ "فَكَبَّرَ، فَلَمَّا رَكَعَ وَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَجَعَلَ أَصَابِعَهُ أَسْفَلَ مِنْ ذَلِكَ وَجَافَى بَيْنَ مِرْفَقَيْهِ حَتَّى اسْتَقَرَّ كُلُّ شَيْءٍ مِنْهُ، ثُمَّ قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، فَقَامَ حَتَّى اسْتَقَرَّ كُلُّ شَيْءٍ مِنْهُ، ثُمَّ كَبَّرَ وَسَجَدَ وَوَضَعَ كَفَّيْهِ عَلَى الْأَرْضِ، ثُمَّ جَافَى بَيْنَ مِرْفَقَيْهِ حَتَّى اسْتَقَرَّ كُلُّ شَيْءٍ مِنْهُ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ فَجَلَسَ حَتَّى اسْتَقَرَّ كُلُّ شَيْءٍ مِنْهُ، فَفَعَلَ مِثْلَ ذَلِكَ أَيْضًا، ثُمَّ صَلَّى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ مِثْلَ هَذِهِ الرَّكْعَةِ فَصَلَّى صَلَاتَهُ". ثُمَّ قَالَ: هَكَذَا رَأَيْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي.

**ترجمه**: د سالم البراد نه روايت دې، هغه وئيلی دي: مونږ راغلو ابو مسعود عقبة بن عمرو الانصاری ته، مونږ ورويل هغه ته: مونږ ته بيان وکړه د مانځه د رسول الله ﷺ، هغه ودريدو مونږ ته په جمات کښې، تکبيريې وويلو، هرکله چې هغه رکوع وکړه کيخودل هغه لاسونه خپل په زنګونانو، او کيخودلې ګوتې لاندې د هغې نه، او لرې ئې وساتلې مابين د څنګلو نه تردې چې په آرام شو هر يو شی د هغې نه، بيا ئې وويل: سمع الله لمن حمده، ودريدو تردې چې په آرام شو هر يو شی د هغې نه، بيا ئې تکبير ووئيله او سجده ئې وکړه، او کيخوده ورغوی خپل په ځمکه، بيا ئې لرې والی راوستلو په مابين د څنګلو کښې تردې چې په آرام شو هر يو شی خپل د هغه نه، بيا ئې اوچت کړو سر خپل نو کيناستلو تردې چې په آرام شو هر يو ځائې د هغه نه، نو ويې کړو ددې پشان همدارنګه، بيا ئې وکړل څلور رکعاته پشان ددې رکعات نو پوره ئې کړو خپل مونځ، بيا ئې وويل: همداسې مونږ ليدلی وو رسول الله ﷺ چې مونځ ئې کولو.

## بَابُ قَوْلِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم "كُلُّ صَلَاةٍ لَا يُتِمُّهَا صَاحِبُهَا تُتَمُّ مِنْ تَطَوُّعِهِ

### باب د قول د نبي صلى الله عليه وسلم: هر مونځ چې د هغې خاوند يې پوره نه کړي د هغه د نفلو نه به پوره کولی شي

[۸۶۴]([2])حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، حَدَّثَنَا يُونُسُ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ حَكِيمٍ الضَّبِّيِّ، قَالَ: خَافَ مِنْ زِيَادٍ، أَوْ ابْنِ زِيَادٍ، فَأَتَى الْمَدِينَةَ فَلَقِيَ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: فَنَسَبَنِي، فَانْتَسَبْتُ لَهُ، فَقَالَ: يَا فَتَى، أَلَا

---

[1]): سنن النسائي/الافتتاح ۹۳ (۱۰۳۷)، (تحفة الأشراف: ۹۹۸۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۱۹/۴، ۱۲۰، ۲۴۷/۵)، سنن الدارمي/الصلاة ۶۸ (۱۳۴۳) (صحيح)

[2]): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۲۰۲ (۱۴۲۶)، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۰۰،۱۵۵۰۳)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ۱۸۹ (۴۱۳)، سنن النسائي/الصلاة ۹ (۴۶۴)، مسند احمد (۴۲۵/۲، ۹۰/۲، ۱۰۳/۴) (صحيح)

أُحَدِّثُكَ حَدِيثًا؟ قَالَ: قُلْتُ: بَلَى رَحِمَكَ اللَّهُ، قَالَ يُونُسُ: وَأَحْسَبُهُ ذَكَرَهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ أَوَّلَ مَا يُحَاسَبُ النَّاسُ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ أَعْمَالِهِمُ الصَّلَاةُ، قَالَ: يَقُولُ رَبُّنَا جَلَّ وَعَزَّ لِمَلَائِكَتِهِ وَهُوَ أَعْلَمُ: انْظُرُوا فِي صَلَاةِ عَبْدِي أَتَمَّهَا أَمْ نَقَصَهَا، فَإِنْ كَانَتْ تَامَّةً كُتِبَتْ لَهُ تَامَّةً وَإِنْ كَانَ انْتَقَصَ مِنْهَا شَيْئًا، قَالَ: انْظُرُوا هَلْ لِعَبْدِي مِنْ تَطَوُّعٍ، فَإِنْ كَانَ لَهُ تَطَوُّعٌ، قَالَ: أَتِمُّوا لِعَبْدِي فَرِيضَتَهُ مِنْ تَطَوُّعِهِ، ثُمَّ تُؤْخَذُ الْأَعْمَالُ عَلَى ذَاكُمْ".

**ترجمه**: د انس بن حکیم الضبی نه روایت دې هغه وئیلی دي: ووېرېدو د زیاد نه او یا د ابن زیاد نه، نو راغې مدینې ته، نو هغه مخامخ شو د ابو هریره ﷺ سره، هغه وئیلی دي: د مانه ئې تپوس وکړو د نسب، نو ما ورته نسب بیان کړو، هغه وویل: اې ځوانه! ایا زه تاته حدیث بیان نه کړم؟ هغه وایي: ما وویل: ولې نه، الله دې په تا رحم وکړي. وئیلی دی یونس: او زما گمان دی چې هغه د نبی ﷺ نه ذکر کړی دی. هغه وئیلی دي: بیشکه اول هغه څه چې د خلقو سره به ئې حساب کیږي د اعمالو د هغوی نه هغه مونځ دی. هغه وفرمائیل: وایي رب زمونږ خپلو ملائکو ته او هغه ښه ډېر پوهه دی: اوگورئ په مانځه د بنده زما کښې چې هغه پوره کړی دی او که کمی ئې کړی دی؟ که چرې پوره وو نو پوره به لیکلی شي، او که چېرې ئې د هغې نه څه شی کم کړی وو، نو وایي: اوگورئ ایا زما د بنده لپاره نفل شته؟ که چرې د هغه نفل وو، هغه وفرمایي: پوره کړئ زما د بنده لپاره فرض د هغه د نفلو نه، بیا ټولو اعمالوسره به دغه شان کولې شي.

## شرح حدیث او د زیاد او عبیدالله بن زیاد مختصر حال

**قوله**:﴿ عن انس بن حکیم الضبی قال : خاف من زیاد او ابن زیاد ﴾ د ﴿ قال ﴾ ضمیر د حسن او د ﴿ خاف ﴾ ضمیر د انس طرف ته راجع دي، امام حسن بصری ﷫ فرمائی چه یو ځل انس بن حکیم ته په څه وجه باندې (چه دلته کتاب کښې ذکر ده) د زیاد بن عبید یا د هغه ځوئی عبیدالله بن زیاد نه څه ویره پیدا شوه، په ظاهره کښې به دا د بصرې واقعه وی چه د هغه خائې اوسیدونکې دا حسن دي او دا ابن زیاد هم د بصرې امیر وو، نو غرض دا چه دې د هغه نه بچ کیدو سره مدینې ته راغلو، په دې روایت کښې د راوی شک دې چه انس بن حکیم ته چه کومه خطره پیدا شوې وه هغه د زیاد نه وه یا د هغه د ځوئی عبیدالله نه، اصل کښې دا دواړه گډوډ شان سرې وو ظالمان او متشدد، زیاد خو د امیر معاویه ﷛ په زمانه کښې د هغه د طرف نه د عراق امیر وو او د هغه ځوئې د بصرې امیر وو، د زیاد ذکر د حدیث په نورو کتابونو کښې هم راخی، پس په مسلم کتاب الایمان ص ٥٧ باندې دی ﴿ عن عثمان قال: لما ادعی زیاد لقیت ابا بکرة الخ ﴾ دې زیاد ته زیاد بن عبید الثقفی او زیاد بن ابیه او زیاد بن سمیه او زیاد بن ابی سفیان هم وئیلې شی، په تقریر مسلم (الحل المنهم) کښې لیکی چه دا په شروع کښې د اصحاب علی نه وو بلکه د هغه د فوج مشر او جرنیل وو، امیر معاویه ﷛ هغه خپل طرف ته مائل کړې وو په داسې طریقه چه که ته ما سره شوې نو زه به ستا استلحاق اوکړم یعنی تابه خپل رور جوړ کړم او په قریشو کښې به دې داخل کړم، پس هغه علی ﷛

پریخودلو او د معاویه رضي الله عنه سره شو او ځان ته به ئې زیاد بن ابی سفیان وئیلو.
اصل کښې د هغه مور سمیه نومې یوه وینځه وه کومه چه د عبید په نکاح کښې وه، ابو سفیان د معاویه پلار په زمانه جاهلیت کښې د سمیه سره زنا کړې وه چه د هغې نه زیاد پیدا شو ﴿الولد للفراش﴾ د لاندې د هغه نسبت د عبید طرف ته پکار وو او د جاهلیت د دستور مطابق د زانی یعنی ابو سفیان طرف ته، د هغه په حالاتو کښې لیکلې دی چه امیر معاویه رضي الله عنه هغه لره د عراق والی جوړ کړې وو ځکه چه دا ډیر مدبر او منتظم قسم انسان وو، په عراق باندې هغه قابو بیا موندلو او معاویه رضي الله عنه ته ئې اولیکل چه ما عراق په خپل ګس لاس کښې اخستلې دي او زما ښې لاس خالی دې مقصد د هغه دا وو چه حجاز دې هم زما د ولایت لاندې کړې شی، چه کله اهل حجاز ته خبر اوشو نو هغوی عبدالله بن عمر رضي الله عنه ته حاضر شو او هغوی ته ئې صورت حال بیان کړو او ددې خبرې خطره ئې ظاهر کړه چه چرته هغه په دوی باندې مسلط نه کړې شی او بیا هغه په اهل حجاز باندې هم ظلم او زیادت اوکړی کوم چه په اهل عراق باندې کوی، نو په دې باندې ابن عمر رضي الله عنه قبلې طرف ته مخ کولو سره د زیاد په حق کښې بد دعا کړې وه چه د هغې په وجه باندې هغه په سخت مهلک مرض باندې اخته شوې وو، دا تاریخی خبرې دی، د تاریخ په کتابونو کښې د کتلو دی، د هغه ځوئې عبیدالله وو کوم چه د سیدنا حسین رضي الله عنه د قتل په سازش کښې شریک وو او د هغه سر غوڅولو نه پس هغه ته راوړلې شوې وو، بیا یو وخت هغه هم راغلې وو چه خپله عبیدالله هلاک کړې شو او د کوفې په مسجد کښې د هغه د ملګرو سرونه کیخودلې شوې وو لکه چه د ترمذی شریف په کتاب المناقب کښې د مناقب حسن وحسین د لاندې دا روایت لیکلې شوې دي.

**قوله:** ﴿فنسبنی فانتسبت له﴾ یعنی ابوهریره رضي الله عنه زما نوم او نسب غیره اوتپوسلو، چه څوک ئې د کوم ځائې نه راروان ئې.

**قوله:** ﴿ان اول ما یحاسب الناس به یوم القیامة من اعمالهم الصلاة﴾ یعنی په اعمال عباد کښې به د ټولو نه اول دمونځ حساب اخستلې شی، دا حدیث د سنن اربعه روایت دې، په ترمذی وغیره کښې هم شته.

## په دوه متعارض احادیثو کښې تطبیق

او په ظاهره کښې دا د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د حدیث خلاف دې کوم چه بخاری روایت کړې دې، باب القصاص یوم القیامة ص ٩٦٧ د لاندې، اول ما یقضی بین الناس یوم القیامة بالدماء د دې نه معلومیږی چه د ټولو نه اول به د وینې او قصاص فیصله کیږی، ددې ډیر جوابونه ورکړې شوې دی.

١: حافظ عراقی فرمائی چه ددې حدیث تعلق د حقوق الله سره دې او د دویم روایت تعلق د حقوق العباد سره، په حقوق الله کښې به د ټولو نه اول د مونځ حساب کولې شی او په حقوق العباد کښې به د ټولو نه اول د وینې او قصاص، اوس پاتې شوه دا خبره چه فی نفسه به د حقوق الله حساب مخکښې کولې شی یا د حقوق العباد، پس دا جدا خبره ده هغه فرمایی

چه د ظواهر الحديث نه معلوميږي چه د حقوق الله محاسبه به اولاً وي او د حقوق العباد به روستو وي.

۲: حديث الباب ضعيف دې ددې په سند کښې انس بن حکيم ضبی دې هغه ته مجهول وئيلې شوې دې او دويم حديث د بخاري قوی دې.

۳: په يو حديث کښې محاسبه ذکر ده او په دويم کښې قضاء او په دواړو کښې فرق ظاهر دې، نو کيدې شی چه حساب خو اول د مونځ وی او د فيصلې په وخت کښې اول فيصله د قصاص اوکړې شی او د مونځ فيصله روستو وی.

**قوله:** ﴿ وان كان انتقص منها شيئا قال : انظروا هل لعبدی من تطوع الخ ﴾ يعنی که د چا په مونځ کښې نقص وی نو هغه به په نوافلو سره پوره کولې شی، په دې کښې اختلاف دې چه په مونځ کښې د نقصان نه څه مراد دې، صرف د خشوع او خضوع او ادابو کمې يا مطلقا فرض نه کول هم په دې کښې داخل دی، په دې کښې دواړه اقوال دی قاضی ابوبکر بن العربی په دې کښې عموم اختيار کړې دې چه دواړو صورتونو ته شامل دې. د الله تعالی د فضل او وسيع رحمت نه دا څه لرې نه ده.

ددې حديث نه د نوافل او سنتو اهميت ثابتيږی چه ددې په ذريعه په فرض مونځونو کښې کوم نقصان واقع کيږی دهغې تلافی (پوره والې) کيږی.

[٨٦٥](١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي سَلِيطٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِنَحْوِهِ.

**ترجمه:** د حسن نه روايت دې، د يو سړی نه چې د بنی سليط نه دی، هغه روايت کوی د ابو هريره ﷺ نه او هغه د نبی ﷺ نه د هغې پشان.

[٨٦٦](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، عَنْ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذَا الْمَعْنَى، قَالَ: "ثُمَّ الزَّكَاةُ مِثْلُ ذَلِكَ، ثُمَّ تُؤْخَذُ الْأَعْمَالُ عَلَى حَسَبِ ذَلِكَ".

**ترجمه:** د تميم الداری ﷺ نه روايت دې، هغه روايت کوی د نبی ﷺ نه په دې معنی سره، هغه وئيلی دي: بيا زکات مثل د دغې، بيا به د نورو اعمالو حساب کولې شی په دغې حساب باندې.

......

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٢٢٠٠) (صحيح)

(٢): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٢٠٢ (١٤٢٦)، (تحفة الأشراف: ٢٠٥٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠٣/٤) (صحيح)

# تفریع ابواب الرکوع والسجود

## بابه د رکوع او سجدو والا بابونو تفریع

## بَابُ وَضْعِ الْيَدَيْنِ عَلَى الرُّكْبَتَيْنِ

### بابه د لاسونو کېښودل په زنګونونو باندې

[۸۶۷](¹)حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي يَعْفُورٍ قَالَ أَبُو دَاوُد وَاسْمُهُ وَقْدَان، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: "صَلَّيْتُ إِلَى جَنْبِ أَبِي فَجَعَلْتُ يَدَيَّ بَيْنَ رُكْبَتَيَّ، فَنَهَانِي عَنْ ذَلِكَ فَعُدْتُ، فَقَالَ: لَا تَصْنَعْ هَذَا، فَإِنَّا كُنَّا نَفْعَلُهُ فَنُهِينَا عَنْ ذَلِكَ، وَأُمِرْنَا أَنْ نَضَعَ أَيْدِيَنَا عَلَى الرُّكَبِ".

**ترجمه**: د مصعب بن سعد نه روایت دې هغه وئیلې دي: ما مونځ وکړو و خوا د خپل پلار سره، ما کیخول خپل لاسونه په مابین د زنګونانو کښې، نو زه ئې منع کړم د هغې نه، نو زه واپس شوم، هغه وویل: داسې مه کوه، مونږ به کوه داسې، نو مونږ منع شو د هغې نه، او مونږ ته امر وشو چې کېدو خپل لاسونه په زنګونانو.

[۸۶۸](²)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، وَالْأَسْوَدِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "إِذَا رَكَعَ أَحَدُكُمْ فَلْيَفْرِشْ ذِرَاعَيْهِ عَلَى فَخِذَيْهِ وَلْيُطَبِّقْ بَيْنَ كَفَّيْهِ، فَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى اخْتِلَافِ أَصَابِعِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه**: د عبد الله نه روایت دې، هغه وئیلي دي: کله چې رکوع کوی یو کس ستاسو نه نو خورې دې کړی خپلې څنګلې په ورنونو باندې، او جوخت دې کړی دواړه ورغوی خپل، ګویا چې زه ګورم اختلاف د ګوتو د رسول الله ﷺ ته.

**تشریح**: په دې باب کښې مصنف په شروع کښې د سعد بن ابی وقاص حدیث ذکر کړې دې په کوم کښې چه دا دی چه په ابتداء کښې به د رکوع په حالت کښې تطبیق کېدلو بیا هغه منسوخ شو او ددې په ځائې باندې وضع الیدین علی الرکبتین حکم اوشو.

تطبیق دا دې چه ددواړو لاسونو ورغوی یو ځائې کړی او د یولاس ګوتې په بل کښې داخل کړی څنګه چه په تشبیك کښې کیږی او بیا دواړه لاسونه د زنګونو په مینځ کښې اوتوبلې شی ددې نه پس مصنف د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه حدیث ذکر کړې دې په کوم کښې چه د تطبیق ذکر دې.

## د تطبیق فی الرکوع حکم

د جمهورو مسلك د ړومبی حدیث مطابق دې چه تطبیق منسوخ دې، خو د عبدالله بن مسعود او د دهٔ ځنې اصحاب علقمه او اسود د تطبیق قائل دی، کیدې شی دوئ ته د نسخې علم نهٔ

¹): صحیح البخاري/الأذان ۱۱۸ (۷۹۰)، صحیح مسلم/المساجد ۵ (۵۳۵)، سنن الترمذي/الصلاة ۸۰ (۲۵۹)، سنن النسائي/الافتتاح ۹۱(۱۰۳۳)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۷ (۸۷۳)، تحفة الأشراف (۳۹۲۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۱۸۱، ۱۸۲)، سنن الدارمي/الصلاة ۶۸ (۱۳٤۱) (صحیح)

²): صحیح مسلم/المساجد ۵ (۵۳٤)، سنن النسائي/المساجد ۲۷ (۷۲۰)، والإمامة ۱۸ (۸۰۰)، والتطبیق ۱ (۱۰۳۰، ۱۰۳۱)، (تحفة الأشراف: ۹۱۶۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/٤۱٤) (صحیح)

وی شوې یا هغوی د تخییر قائل وو لکه چه د مصنف ابن ابی شیبه په روایت کښې د حضرت علی رضی الله عنه نه منقول دی، سړی لره اختیار دې چه که په رکوع کښې لاسونه په رکتبین باندې ایږدی او که تطبیق کوي، په نسائی شریف، ص: ۵۹ کښې د حضرت عمر رضی الله عنه روایت دې، عن عمر قال سنّت لك الركب فامسكوا بالركب، یعنی په رکوع کښې امساك بالركب، یعنی په خپلو دواړو لاسونو سره زنګونونه مضبوط نیول سنت دی.

## بَابُ مَا يَقُولُ الرَّجُلُ فِي رُكُوعِهِ وَسُجُودِهِ

### باب دې په بیان د هغې کې چې سړی یې وایي په رکوع او سجده خپله کې

[٨٦٩] (١) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ أَبُو تَوْبَةَ، وَمُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ مُوسَى، قَالَ أَبُو سَلَمَةَ مُوسَى بْنِ أَيُّوبَ: عَنْ عَمِّهِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: "لَمَّا نَزَلَتْ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ سورة الواقعة آية ٧٤، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اجْعَلُوهَا فِي رُكُوعِكُمْ، فَلَمَّا نَزَلَتْ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى سورة الأعلى آية ١، قَالَ: اجْعَلُوهَا فِي سُجُودِكُمْ".

**ترجمه**: د عقبة بن عامر نه روایت دې هغه وئیلی دي: هر کله چې نازل شو (فسبح باسم ربک العظیم) وویل رسول الله ﷺ وګرځوئ دې لره په رکوع ستاسو کښې. هرکله چې نازل شو (سبح اسم ربک الاعلی) هغه وفرمائیل: وګرځوئ دې لره په سجده ستاسو کښې.

**قوله**: عن موسٰی قال ابوسلمة موسٰی بن ایوب : د دې حدیث په سند کښې د مصنف دوه استاذان دی، ربیع بن نافع او موسی بن اسماعیل ددې دواړه استاذ دې ابن المبارك او د هغهٔ استاذ دې موسی بن ایوب، ابوسلمه د مصنف د استاذ موسٰی بن اسماعیل کنیت دې.

ددې عبارت مطلب دا دې چه د مصنف استاذ ربیع د عبد الله بن المبارك د استاذ صرف نوم بیان کړې دې او صرف عن موسٰی ئې وئیلې دی او د مصنف بل استاذ د موسی بن اسماعیل د چا کنیت چه ابو سلمه دې هغوی عن موسٰی ابن ایوب وئیلې دی، (عن عمه) د موسی بن اسماعیل د ترهٔ نوم د چا نه چه هغوی روایت کوی ایاس بن عامر دې.

**قوله**: اجعلوها فی رکوعکم : یعنی ددې آیت مضمون په رکوع کښې لولئ او هم دا مراد په وړاندې جمله کښې دې، د رکوع او د سجدو د تسبیحاتو حکم وړاندې تیر شوې دې د جمهورو په نزد باندې سنت دی او هم دا یو روایت د امام احمد نه دې، د داؤد ظاهری او امام احمد دویم روایت د وجوب دې.

[٨٧٠] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ يَعْنِي ابْنَ سَعْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى أَوْ مُوسَى بْنِ أَيُّوبَ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ قَوْمِهِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، بِمَعْنَاهُ زَادَ، قَالَ: "فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَكَعَ، قَالَ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ وَبِحَمْدِهِ، ثَلَاثًا وَإِذَا سَجَدَ، قَالَ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى وَبِحَمْدِهِ، ثَلَاثًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذِهِ الزِّيَادَةُ نَخَافُ أَنْ لَا تَكُونَ مَحْفُوظَةً، قَالَ أَبُو دَاوُد: انْفَرَدَ أَهْلُ مِصْرَ بِإِسْنَادِ هَذَيْنِ الْحَدِيثَيْنِ: حَدِيثِ الرَّبِيعِ وَحَدِيثِ أَحْمَدَ بْنِ يُونُسَ.

---

[١]: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٢٠ (٨٨٧)، (تحفة الأشراف: ٩٩٠٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥٥/٤)، سنن الدارمی/الصلاة ٦٩ (١٣٤٤) (ضعيف)

[٢]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٩٠٩) (ضعيف)

**ترجمه**: د ايوب بن موسى نه او يا د موسى بن ايوب نه روايت دې، هغه روايت کوي د يو سړي نه خپل قوم نه او هغه روايت کوي د عقبة بن عامر نه، په معنى د هغې سره، هغه زيادت کړى دى، هغه وويل: وو رسول الله ﷺ چې کله به ئې رکوع کوله نو وئيل به يې: سبحان ربى العظيم و بحمده. درې ځل، او چې کله ئې سجده کوله نو وئيل يې: سبحان الاعلى و بحمده، درې ځل. وئيلى دى ابوداود: او مونږ وېرېږو چې دا زيادت محفوظ نه وي. وئيلى دى ابوداود: منفرد شو د مصر والا په اسناد ددې دواړو حديثونو، چې يو حديث د ربيع دى او بل حديث د احمد بن يونس دى.

## د مصنف د کلام تشريح :

**قوله**: قال ابوداؤد و هذه الزيادة نخاف ان لا تكون محفوظة:

په رومبى روايت کښې د موسى بن ايوب شاګرد ابن المبارك وو او په دې دويم روايت کښې ليث بن سعد دې، د ابن المبارك په روايت کښې صرف دا وو چه کوم وخت فسبح باسم ربك العظيم او سبح اسم ربك الاعلى، دا دواړه آيتونه نازل شو نو حضور ﷺ اوفرمائيل چه، اجعلوها فى ركوعكم و سجودكم، او په دې دويم روايت کښې زياتى دا هم دى چه حضور ﷺ به په رکوع کښې سبحان رب العظيم و بحمده او په سجدو کښې سبحان رب الاعلى و بحمده لوستل هم دغه مصنف فرمائى خو ددې د زيادت په باره کښې کوم چه په دويم روايت کښې دې مصنف دا فرمائى چه دا زيادت زمونږ په خيال کښې ثابت نۀ دې او دا هم احتمال دې چه د مصنف ددې کلام تعلق صرف د لفظ وبحمده سره وى يعنى سبحان رب العظيم او سبحان رب الاعلى سره د وبحمده زيادت ثابت نۀ دې اوس خو يا دا وئيل غواړى چه خاص په دې حديث کښې ثابت نۀ دې اګر که فى نفسه د دويم روايت نه ثابت دې او ممکن ده چه مراد دا وى چه په يو روايت کښې هم ثابت نۀ دى، والله تعالى اعلم

## د رکوع او سجدو په تسبيح کښې د وبحمده زيادت :

او دا د وبحمده زيادت عند الشافعيه مستحب دې کما فى روضة المحتاجين او هم داسې عند المالکيه کما فى الانوار الساطعه او ابن قدامه په مغنى کښې د امام احمد نه نقل کړې دى که کوم سړې د رکوع او سجدو په تسبيح کښې د وبحمده زيادت اوکړى نو اميد دې چه په دې کښې به څۀ حرج نۀ وى، امام احمد فرمائى، اما انا فلا اقول و بحمده، ابن قدامه ليکى چه ابن المنذر د امام شافعى او د اصحاب رائى نه هم دا نقل کړې دى او وجه ددې دا ده چه کوم روايات اشهر او اکثر دى په هغې کښې زيادت نشته دې او امام ابوداؤد هم ددې په ثبوت کښې تردد ښکاره کړې دې.

[۸۷۱]([1])حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، قَالَ: قُلْتُ لِسُلَيْمَانَ: أَدْعُو فِي الصَّلَاةِ إِذَا مَرَرْتُ بِآيَةِ تَخَوُّفٍ، فَحَدَّثَنِي عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ، عَنْ مُسْتَوْرِدٍ، عَنْ صِلَةَ بْنِ زُفَرَ، عَنْ حُذَيْفَةَ، أَنَّهُ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

[1]: صحيح مسلم/المسافرين ٢٧ (٧٧٢)، سنن الترمذي/الصلاة ٨٢ (٢٦٢)، سنن النسائي/الافتتاح ٧٧ (١٠٠٧)، والتطبيق ٧٤ (١١٣٤)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٢٠ (٨٩٧)، ١٧٩ (١٣٥١)، (تحفة الأشراف: ٣٣٥١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٢/٥، ٣٨٤، ٣٩٤، ٣٩٧)، سنن الدارمي/الصلاة ٦٩ (١٣٤٥) (صحيح)

وَسَلَّمَ "فَكَانَ يَقُولُ فِي رُكُوعِهِ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ، وَفِي سُجُودِهِ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى، وَمَا مَرَّ بِآيَةِ رَحْمَةٍ إِلَّا وَقَفَ عِنْدَهَا فَسَأَلَ، وَلَا بِآيَةِ عَذَابٍ إِلَّا وَقَفَ عِنْدَهَا فَتَعَوَّذَ".

**ترجمه:** شعبه وايي: ما وويل سليمان ته: دعاء کوه کله چې ته تېرېږې په ايت د خوف باندې، نو ماته ئې حديث بيان کړو د سعد بن عبيدة نه هغه د مستورد نه، هغه د صلة بن زُفر نه، هغه د حذيفه نه، بيشکه هغه مونځ وکړو د نبي ﷺ سره، نو وو هغه چې وئيل ئې په خپله رکوع کښې: سبحان ربى العظيم او په سجده کښې: سبحان ربى الاعلى، او نه تېريدو په ايت د رحمت باندې مګر هغه به ودريدو د هغې سره سوال به ئې کولو، او نه په ايت د عذاب باندې مګر ودريدو به هغه د هغې سره نو پناه به ئې غوښتله.

[٨٧٢] (١) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَقُولُ فِي رُكُوعِهِ وَسُجُودِهِ: سُبُّوحٌ قُدُّوسٌ رَبُّ الْمَلَائِكَةِ وَالرُّوحِ".

**ترجمه:** د عائشې ؓ نه روايت دې بيشکه نبي ﷺ وو چې وئيل به ئې په خپله رکوع او سجده کښې: پاک دې او اوچت دې رب د ملائکو او د جبريل.

[٨٧٣] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ قَيْسٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ حُمَيْدٍ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ، قَالَ: قُمْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً "فَقَامَ فَقَرَأَ سُورَةَ الْبَقَرَةِ لَا يَمُرُّ بِآيَةِ رَحْمَةٍ إِلَّا وَقَفَ فَسَأَلَ، وَلَا يَمُرُّ بِآيَةِ عَذَابٍ إِلَّا وَقَفَ فَتَعَوَّذَ، قَالَ: ثُمَّ رَكَعَ بِقَدْرِ قِيَامِهِ يَقُولُ فِي رُكُوعِهِ: سُبْحَانَ ذِي الْجَبَرُوتِ وَالْمَلَكُوتِ وَالْكِبْرِيَاءِ وَالْعَظَمَةِ، ثُمَّ سَجَدَ بِقَدْرِ قِيَامِهِ، ثُمَّ قَالَ فِي سُجُودِهِ مِثْلَ ذَلِكَ، ثُمَّ قَامَ فَقَرَأَ بِآلِ عِمْرَانَ، ثُمَّ قَرَأَ سُورَةً سُورَةً".

**ترجمه:** عوف بن مالک الاشجعي وايي زه ودريدم د رسول الله ﷺ سره يوه شپه، هغه پاڅيدلو ويې لوستله سورة البقرة، نه به تېريدلو په ايت د رحمت باندې مګر ودريدلو به سوال به ئې کوه، او نه به تېريدو په ايت د عذاب باندې مګر ودريدو به نو تعوذ به ئې ويلو، هغه وايي: بيا ئې رکوع وکړه په اندازه د قيام د هغه، هغه به وئيل په رکوع خپله کښې: پاک دې خاوند د لويي او د عجائبو دې او د لويي او د عظمت يې. بيا ئې به ئې سجده وکړه په اندازه د قيام د هغه، بيا ئې وويل په سجده خپله کښې په مثل د هغې، بيا پاڅيدلو ويې لوستلو آل عمران، بيا ئې ولوستلو يو يو سورت.

[٨٧٤] (٣) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، وَعَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ أَبِي حَمْزَةَ مَوْلَى الْأَنْصَارِ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي عَبْسٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ، أَنَّهُ رَأَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ، فَكَانَ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ ثَلَاثًا ذُو الْمَلَكُوتِ وَالْجَبَرُوتِ وَالْكِبْرِيَاءِ وَالْعَظَمَةِ، ثُمَّ اسْتَفْتَحَ فَقَرَأَ الْبَقَرَةَ، ثُمَّ رَكَعَ فَكَانَ رُكُوعُهُ نَحْوًا مِنْ قِيَامِهِ، وَكَانَ يَقُولُ فِي رُكُوعِهِ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ، سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ

---

(١): صحيح مسلم/الصلاة ٤٢ (٤٨٧)، سنن النسائي/التطبيق ١١ (١٠٤٩)، ٧٥ (١١٣٥)، (تحفة الأشراف: ١٧٦٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٥، ٩٤، ١١٥، ١٤٨، ١٤٩، ١٧٦، ١٩٢، ٢٠٠، ٢٤٤، ٢٦٦) (صحيح)

(٢): سنن النسائي/التطبيق ٧٣ (١١٣٨)، سنن الترمذي/الشمائل (٣١٣)، (تحفة الأشراف: ١٠٩١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٤) (صحيح)

(٣): سنن الترمذي/الشمائل ٣٩ (٢٧٥)، سنن النسائي/التطبيق ٢٥ (١٠٧٠)، ٨٦ (١١٤٦)، (تحفة الأشراف: ٣٣٩٥) (صحيح)

فَكَانَ قِيَامُهُ نَحْوًا مِنْ رُكُوعِهِ، يَقُولُ: لِرَبِّيَ الْحَمْدُ، ثُمَّ سَجَدَ فَكَانَ سُجُودُهُ نَحْوًا مِنْ قِيَامِهِ، فَكَانَ يَقُولُ فِي سُجُودِهِ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ، وَكَانَ يَقْعُدُ فِيمَا بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ نَحْوًا مِنْ سُجُودِهِ، وَكَانَ يَقُولُ: رَبِّ اغْفِرْ لِي، رَبِّ اغْفِرْ لِي، فَصَلَّى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ فَقَرَأَ فِيهِنَّ الْبَقَرَةَ، وَآلَ عِمْرَانَ، وَالنِّسَاءَ، وَالْمَائِدَةَ، أَوِ الْأَنْعَامَ"، شَكَّ شُعْبَةُ".

**ترجمه:** د بنو عبس د يو سړي نه روايت دې هغه روايت کوي د حذيفه نه، بيشکه هغه وليدلو رسول الله ﷺ د شپې، هغه وو چې وئيل يې: الله اکبر - دري ځل - چې خاوند د عجائبو او خاوند قهر دی او د لويي دی او د عظمت دی. بيا ئې اوچت کړو سر خپل د رکوع نه، نو وه رکوع د هغه نزدې قيام ته، او وو چې وئيل ئې په رکوع کښې: پاکي ده رب زمالره چې لوی دی، پاک دی رب زما چې لوی دی. بيا ئې اوچت کړو سر خپل د رکوع نه، نو وو قيام د هغ ه نزدې رکوع ته، هغه به وئيل: زما رب لره حمد دی، بيا ئې سجده وکړه نزدې نو وه سجده د هغه نزدې قيام ته، وو چې وئيل به ئې په سجده کښې: پاکي ده رب زمالره چې اوچت دی. بيا ئې اوچت کړو سر خپل د سجدې نه، او وو چې کيناستلو مابين د دوه سجدو کښې په اندازه د سجده باندې، او وو چې هغه به وئيل: اې زما ربه ماته بخښنه وکړې ماته بخښنه وکړې. مونځ ئې وکړو څلور رکعاته، ويې لوستلو په هغې کښې سورة بقرة او آل عمران او نساء او مائده او يا انعام، شک کړی دی شعبه.

## بَابٌ فِي الدُّعَاءِ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ

### باب دې په بيان د دعاء کې په رکوع او سجده کې

[۸۷۵] (1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنَا عَمْرٌو يَعْنِي ابْنَ الْحَارِثِ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ غَزِيَّةَ، عَنْ سُمَيٍّ مَوْلَى أَبِي بَكْرٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا صَالِحٍ ذَكْوَانَ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَقْرَبُ مَا يَكُونُ الْعَبْدُ مِنْ رَبِّهِ وَهُوَ سَاجِدٌ فَأَكْثِرُوا الدُّعَاءَ".

**ترجمه:** د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې بيشکه رسول الله ﷺ ويلی دي: ډېر بنده چې ډېر نزدې وی خپل رب ته نو سجدې په حالت کښې وي، نو زياته کړئ دعاء.

**تشريح:** قوله: اقرب ما يكون العبد من ربه و هو ساجد فاكثروا الدعاء: يعنى بنده ته زيات قرب (نزديکت) الله تعالى ته په هغه حالت کښې حاصليږي کله چه هغه په سجده کښې وی لهذا په سجده کښې کثرت سره دعا کوئ دې دپاره چه هغه دعا زر قبوله شي، د دينه په وړپسې حديث کښې راروان دی چه په سجده کښې په کوشش سره دعا کوئ، فَقَمِنٌ ان يُستجاب لكم، ځکه چه ددې حالت دعا ددې لائق ده چه هغه قبوله کړې شي.

دا د دعا فى السجود حکم د احنافو په نزد باندې په نوافلو باندې محمول دې او په ظاهر کښې د شوافعو په نزد باندې دا عام دې څنګه چه په باب الدعاء بين السجدتين کښې دا اختلاف تير شوې دې.

(1): صحيح مسلم/الصلاة ٤٢ (٤٨٢)، سنن النسائي/التطبيق ٧٨ (١١٣٨)، (تحفة الأشراف: ١٢٥٦٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٤٢١) (صحيح)

## د قيام اوږدوالي افضل دي يا د ركوع او سجدو زياتوالي :

په دې حديث كښې يو بله مسئله اختلافي ده او هغه دا چه په اركانو د صلاة كښې كوم ركن زيات افضل دې، قيام، يا سجدې، امام ترمذى په دې دواړو باندې مستقل باب تړلې دې، باب ما جاء في طول القيام في الصلاة، باب ما جاء في كثرة الركوع و السجود، په اصل كښې په دې سلسله كښې دوه حديثونه دى او دواړه صحيح دى، په صحيح مسلم او مسند احمد وغيره كښې دى يو خو هم دا حديث الباب، او د بل حديث الفاظ دا دى چه حضور ﷺ اوفرمائيل، افضل الصلاة طول القنوت دا حديث په ابوداؤد كښې هم دكتاب الصلاة په اخر كښې په باب افتتاح صلوٰة الليل بركعتين كښې راروان دې.

ان النبى ﷺ سئل اى الاعمال افضل قال طول القيام، دا حديث خو په افضليت د قيام كښې صريح دې نو ځكه خو جمهور و منهم الحنفيه والشافعيه ددې قائل دى او دويم قول دا دې چه دركوع او سجدو زياتوالې او اوږدوالې افضل دې دا رائې د حضرت ابن عمر او په حنفيه كښې د امام محمد ده، دريم قول دا دې، الفرق بين صلوة الليل و صلوة النهار، په ورځ كښې تكثير د ركوع او سجدو او په شپه كښې تطويل د قيام افضل دې او هم دې لره اسحاق بن راهويه اختيار كړې دې،([1])

او امام محمد په دې مسئله كښې توقف كړې دې او هيڅ فيصله ئې نۀ ده فرمائيلې.

### (دحديث الباب نه جواب)

جمهور د حديث الباب دا جواب وركوى چه دا حديث په دې باب كښې نص نۀ دې، د سجدې په حالت كښې اقرب الى الله كيدو سره دا نۀ لازميږى چه سجدې دى د قيام نه افضل وى ځكه چه دا قرب په اعتبار د اجابت د دعاء سره دې ځكه چه د سجدې حالت د انتهائى تذلل او عاجزئ وې ځكه په دې حالت كښې قبوليت د دعاء زيات متوقع دې، او دغه شان د ركوع او سجدې وظيفه ذكر او تسبيح ده او د قيام د حالت وظيفه تلاوت د قرآن دې كوم چه د ټولو ذكرونو نه افضل دې، صاحب د منهل ليكى چه د مالكيه په دې مسئله كښې دوه قوله دى خو دا اختلاف د دوئ په نزد باندې په هغه صورت كښې دې كله چه دكثرت د سجدو او دقيام دواړو زمانه يوه وى او كه متفاوت وى نو د كوم زمانه چه اوږده وى هم هغه به افضل وى.

---

[1] **د امام ابويوسف او اسحاق بن راهويه مسلك** : خو دا هم وائى كه يو سړى لره د قرآن يو متعين مقدار وئيل وى مثلا يوه سپاره نو بيا په دې صورت كښې تكثير د سجودو افضل دې ځكه چه ددې سړى د قيام مقدار خو په هر حال كښې هم يو به وى په دې كښې كمې يا زياتې به نۀ وى ځكه چه د يوې سپارې په اندازه اودريدل دى اوس په تكثير د سجودو كښې د سجدو دزياتوالى ثواب به علاوه وى په دې باندې.او كه څوك دوخت په معين مقدار كښې مونځ كوى مثلا پنځلس منټه نو په دې صورت كښې طول د قيام غوره دې نو په ځائې ددې چه په دې وخت كښې متعدد ركعاتونه اوكړى او تكثير د سجدو اوكړى ددې نه دا غوره چه قيام دې اوږد كړى او صرف دوه ركعاته دې اوكړى، د اسحاق بن راهويه د مذهب دا تفصيل امام ترمذى په جامع ترمذى كښې ليكلې دې، او زۀ وايم چه هم دا تفصيل د امام ابويوسف نه هم منقول دې يعنى د مقدار معين من الزمان او مقدار معين من القرآن فرق.

[۸۷۶]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ سُحَيْمٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَعْبَدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَشَفَ السِّتَارَةَ وَالنَّاسُ صُفُوفٌ خَلْفَ أَبِي بَكْرٍ، فَقَالَ: "يَا أَيُّهَا النَّاسُ، إِنَّهُ لَمْ يَبْقَ مِنْ مُبَشِّرَاتِ النُّبُوَّةِ إِلَّا الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ يَرَاهَا الْمُسْلِمُ أَوْ تُرَى لَهُ، وَإِنِّي نُهِيتُ أَنْ أَقْرَأَ رَاكِعًا أَوْ سَاجِدًا، فَأَمَّا الرُّكُوعُ فَعَظِّمُوا الرَّبَّ فِيهِ، وَأَمَّا السُّجُودُ فَاجْتَهِدُوا فِي الدُّعَاءِ فَقَمِنٌ أَنْ يُسْتَجَابَ لَكُمْ".

**ترجمه**: د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي، بيشكه نبي ﷺ لرى ني كړه پرده او خلک په صفونو كښې وو وورسته د ابوبكر نه، هغه وفرمائيل: بيشكه نه دى پاتې شوى د زيرو د نبوت نه مگر رشتني خوب چې وينى هغې لره مسلمان او يا ليدلى شى د هغه دپاره، او زه منع كړى شوى يم چې قرأت وكړم په ركوع كښې او په سجده كښې، هر چې ركوع ده نو تعظيم د رب وكړئ په هغې كښې، او هر چې سجده ده نو كوشش د دعاء وكړئ، نو لائقه ده چې ستاسو دعا قبوله شي.

**تشريح: قوله**:ان النبى ﷺ كشف الستارة والناس صفوف خلف ابى بكر :

دا د حضور ﷺ د مرض وفات قصه ده په كوم كښې چه حضور ﷺ د خپل فرض مونځونو امامت صديق اكبر رضى الله عنه ته سپارلې وو غالباً دا د دوشنبې (گل) په ورځ كومه چه د وفات ورځ ده په دې كښې د سحر د مانځه قصه ده چه صديق اكبر رضى الله عنه په مسجد نبوى كښې مونځ وركولو نو حضور ﷺ د حجرې شريفې دروازې ته چه كومه پرده زوړنده وه هغه ئې لرې كړه او د خلقو صديق اكبر رضى الله عنه پسې دمونځ كولو آخرى نظاره ئې اوفرمائيله.

**قوله**: لم يبق من مبشرات النبوة الا الرؤيا الصالحة :

## د حديث شرحه :

مبشرات په كسرې د شين سره زيرى يعنى نبى ته په حالت د نبوت كښې د دۀ په ژوند كښې كوم زيرى (د دينه مراد مطلق پيښيدونكي كارونه او خبرې دى) په كومو ذريعو سره چه معلوميږى په هغۀ ذريعو كښې اوس څه ذريعه به پاتې نۀ وى سوا د ريښتونې خوبونو نه.([2]) هغه ذرائع درې دى، وحى، الهام، روياء صادقه، دلته مقصود صرف د وحى د انقطاع بيانول دى چه زما د مرگ نه پس اوس وحى د كومې په ذريعې سره چه به د پټو كارونو علم كيدو پريكيدونكې دې البته خوبونو نه به پاتې وى، الهام اگر كه اوس هم پاتې دې خو هغه د هر چا دپاره نۀ دې بلكه د خواصو او اولياء دپاره دې نو څكه دې لره نظر انداز كړې شو.(سندهى على النسائى، ص: ۱۴۰. ددې حديث نه معلومه شوه چه د خوبونو په ذريعې سره دځنې كارونوانكشاف (ښكاره والې) كيږى په څه سره چه يقينا يو نوع تسلى او راهنمائى حاصليږى، باقى په احكام شرعيه كښې خوب معتبر نۀ دې چه هغه شرعى حجت نۀ دې.

[1]): صحيح مسلم/الصلاة ٤١ (٤٧٩)، سنن النسائي/التطبيق ٨ (١٠٤٦)، ٦٢ (١١٢١)، سنن ابن ماجه/تعبير الرؤيا ١ (٣٨٩٩)، (تحفة الأشراف: ٥٨١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢١٩/١)، (١٩٠٠)، سنن الدارمي/الصلاة ٧٧ (١٣٦٤) (صحيح)

[2]) د مبشراتو اطلاق خو په خوبونو باندې كيږى خو دلته په ظاهر كښې لازمى معنى مراده ده (ذرائع دعلم) گينى د مستثنى او مستثنى منه اتحاد به لازم شى، كما هو ظاهر، ۱۲ منه.

قوله يراها المسلم او ترى له : كله سړي په خوب كښې د خپل ځان په باره كښې وينې او كله د دهٔ په باره كښې بل چاته خودلې كيږي، و الى نُهيتُ ان اقرأ راكعًا او ساجدًا، په ركوع او سجدو كښې انتهائي دذلت او ښكته والى اظهار وى نو تسبيح خو دې حال سره مناسب ده چه سړي خپل ذلت او ښكته والى اقرار او اظهار سره د الله تعالى د دېنه د منزه كيدل ظاهر كړي، باقي قرآن كريم خو د الله كلام دې او د هغه صفت دې او د قرآن قاري گويا د الله تعالى سره هم كلام كيدل دى، نو دا هيئت د ذلت او ښكته والى دې هم كلامئى سره مناسب نۀ دى نو ځكه په دې حالت كښې د تلاوت نه منع كړې شوې ده.

قوله، يتاؤل القرآن : تاؤل په معنى د عمل يعنى تفسير بالعمل او دقرآن نه مراد د سوره نصر آيت شريفه فسبح بحمد ربك واستغفره، دا دعا د حنفيه په نزد باندې په نوافلو باندې محمول ده اويا د حضور ﷺ خصوصيت دې.

[٨٧٧]([1])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ أَبِي الضُّحَى، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكْثِرُ أَنْ يَقُولَ فِي رُكُوعِهِ وَسُجُودِهِ: سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَبِحَمْدِكَ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي يَتَأَوَّلُ الْقُرْآنَ".

**ترجمه**: د عائشى ﷝ نه روايت دې هغې ويلى دي: وو رسول الله ﷺ چې زيات به ئې وئيله په خپله ركوع او سجده كښې: پاكي ده تالره اى الله ربه زمونږ او تالره ثنا ده، اى الله ماته بخښنه وكړې، عمل به ئې كولو په قرآن باندې.

[٨٧٨]([2])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ غَزِيَّةَ، عَنْ سُمَيٍّ مَوْلَى أَبِي بَكْرٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَقُولُ فِي سُجُودِهِ: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي ذَنْبِي كُلَّهُ دِقَّهُ وَجِلَّهُ وَأَوَّلَهُ وَآخِرَهُ". زَادَ ابْنُ السَّرْحِ: "عَلَانِيَتَهُ وَسِرَّهُ".

**ترجمه**: د ابو هريره ﷛ نه روايت دې، بيشكه نبى ﷺ وو چې وئيل به ئې په خپله سجده كښې: اې الله وبخښې ماته زما ټوله گناه، وړه او غټه، اولنۍ او اخيرنى. زيادت كړى دى ابن السرح: (علانيته و سره) ښكاره او پټه.

[٨٧٩]([3])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: فَقَدْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ، فَلَمَسْتُ الْمَسْجِدَ فَإِذَا هُوَ "سَاجِدٌ وَقَدَمَاهُ مَنْصُوبَتَانِ، وَهُوَ يَقُولُ: أَعُوذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ وَأَعُوذُ بِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوبَتِكَ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْكَ، لَا أُحْصِي ثَنَاءً عَلَيْكَ أَنْتَ كَمَا أَثْنَيْتَ عَلَى نَفْسِكَ".

[1]): صحيح البخاري/الأذان ١٢٣ (٧٩٤)، ١٣٩ (٨١٧) والمغازي ٥١ (٤٢٩٣)، وتفسير سورة النصر ١ (٤٩٦٧)، ٢ (٤٩٦٨)، صحيح مسلم/الصلاة ٤٢ (٤٨٤)، سنن النسائي/التطبيق ١٠ (١٠٤٨)، ٦٤ (١١٢٣)، ٦٥ (١١٢٤)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٢٠ (٨٨٩)، (تحفة الأشراف: ١٧٦٣٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣/٦، ٤٩، ١٩٠) (صحيح)

[2]): صحيح مسلم/الصلاة ٤٢ (٤٨٣)، (تحفة الأشراف: ١٢٥٦٦) (صحيح)

[3]): صحيح مسلم/الصلاة ٤٢ (٤٨٦)، سنن النسائي/الطهارة ١١٩، باب ١٢٠(١٦٩)، والتطبيق ٤٧ (١١٠١)، ٧١ (١١٣١)، والاستعاذة ٦٢ (٥٥٣٦)، سنن ابن ماجه/الدعاء ٣ (٣٨٤١)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٠٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/القرآن ٨ (٣١)، مسند احمد (٥٨/٦، ٢٠١) (صحيح)

**ترجمه**: د عائشې ﷞ نه روايت دې هغې ويلي دي: ما بيانه موندلو رسول الله ﷺ يوه شپه، ما د كور مسجد ولټولو ناڅاپه هغه ولاړ وو او خپې ئې ولاړې وې، او هغه به وئيل: زه پناه نيسم ستا په رضا سره ستا د غوسې نه، او زه پناه نيسم ستا په معافاة سره سره د عذاب نه، او زه پناه نيسم په تاسره ستانه، زه نشم شمارلي ثنا په تا باندې لكه څنګه چې تا په خپل ځان باندې ثنا ويلې ده.

## باب الدُّعَاءِ فِي الصَّلاَةِ

### باب دې په بيان د دعاء كې په مانځه كې

[۸۸۰]([1])حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، أَنَّ عَائِشَةَ أَخْبَرَتْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَدْعُو فِي صَلَاتِهِ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْمَأْثَمِ وَالْمَغْرَمِ" فَقَالَ لَهُ قَائِلٌ: مَا أَكْثَرَ مَا تَسْتَعِيذُ مِنَ الْمَغْرَمِ، فَقَالَ: "إِنَّ الرَّجُلَ إِذَا غَرِمَ حَدَّثَ فَكَذَبَ وَوَعَدَ فَأَخْلَفَ".

**ترجمه**: د عروة نه روايت دې بيشكه عائشې ورته خبر وركړې دى، بيشكه رسول الله ﷺ وو چې دعاء ئې كوله په خپل مانځه كښې: اې الله زه پناه غواړم په تاسره د عذاب د قبر نه، او زه پناه نيسم په تاسره د فتنې د مسيح الدجال نه، او زه پناه نيسم په تاسره د فتنې د ژوند او د مرګ نه، اى الله زه پناه نيسم په تا پورې د ګناه نه او قرض نه، نو هغه ته يو ويونكي وويل: څه ډيره پناه غواړې د قرض نه؟ نو هغه وويل: بيشكه سړى چې كله قرضدارى شي خبرو كښې دروغ وائي، او وعده كوي او خلاف ترينه كوي.

[۸۸۱]([2])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: صَلَّيْتُ إِلَى جَنْبِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاةِ تَطَوُّعٍ، فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: "أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ النَّارِ، وَيْلٌ لِأَهْلِ النَّارِ".

**ترجمه**: عبد الرحمن بن ابى ليلى د خپل پلار نه روايت كوي، هغه وايي: ما مونځ وكړو وروسته د رسول الله ﷺ نه په نفل مونځ كښې، ما د هغه نه واوريدل چې وئيل يې: زه پناه غواړم د الله پورې د اور نه، تباهي ده د اور والاو دپاره.

[۸۸۲]([3])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الصَّلَاةِ وَقُمْنَا مَعَهُ، فَقَالَ أَعْرَابِيٌّ فِي الصَّلَاةِ: اللَّهُمَّ ارْحَمْنِي، وَمُحَمَّدًا، وَلَا تَرْحَمْ مَعَنَا أَحَدًا، فَلَمَّا سَلَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لِلْأَعْرَابِيِّ: "لَقَدْ تَحَجَّرْتَ وَاسِعًا يُرِيدُ رَحْمَةَ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ".

**ترجمه**: د ابو هريره ﷜ نه روايت دې هغه وئيلي دي: ودريدلو رسول الله ﷺ مانځه ته او

[1]): صحيح البخاري/الأذان ۱۴۹ (۸۳۲)، الاستقراض ۱۰ (۲۳۹۷)، صحيح مسلم/المساجد ۲۵ (۵۸۹)، سنن النسائي/السهو ۶۴ (۱۳۱۰)، الاستعاذة ۹ (۵۴۵۶)، (تحفة الأشراف: ۱۶۴۶۳)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الدعوات ۷۷ (۳۴۹۵)، مسند احمد (۶/۸۸، ۸۹، ۲۴۴) (صحيح)

[2]): سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ۱۷۹ (۱۳۵۲)، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۵۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۳۴۷) (ضعيف)

[3]): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم (۳۸۰)، (تحفة الأشراف: ۱۵۳۴۳) (صحيح)

مونږ و...يدلو د هغه سره، نو ووېل يو باندې چې په مانځه کښې: اې الله په ما رحم وکړې او په محمد باندې او رحم مه زمونږ سره په بل چا باندې، هرکله چې رسول الله ﷺ سلام وګرځولو ويې وئيل باندې چې ته: يقيناً تا کم کړو پراخه اراده ئې د الله رحمت وو.

**تشريح: قوله:** حدثنا احمد بن صالح، **قوله، فقال اعرابي في الصلوة اللهم ارحمني و محمدا و لا ترحم معنا احدا** : دا حديث په کتاب الطهارت کښې په باب الارض يصيبها البول د لاندې تير شوې دې دا هم هغهٔ اعرابی دې کوم چه په جومات کښې متيازې کړې وې، ددې اعرابی په تعين کښې د علماء کرامو اقوال په تقرير ابوداؤد، ص: ۴۶۵، ج: ۱، کښې تير شوې دې.

[۸۸۳](١)حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ مُسْلِمٍ الْبَطِينِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ إِذَا قَرَأَ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى سورة الأعلى آية، قَالَ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى". قَالَ أَبُو دَاوُد: خُولِفَ وَكِيعٌ فِي هَذَا الْحَدِيثِ. وَرَوَاهُ أَبُو وَكِيعٍ، وَشُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مَوْقُوفًا.

**ترجمه:** د ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې بيشکه نبی ﷺ وو چې کله به ئې ولوستلو سبح اسم ربکَ الاعلی، نو هغه به وئيل: سبحان ربی الاعلی. وئيلی دی ابوداود: د وکيع مخالفت شوی دی په دې حديث کښې. او روايت کړی دی ددې ابو وکيع او شعبه د ابو اسحاق نه او هغوی د سعيد بن جبير نه او هغه د ابن عباس نه په طريقه د وقف سره، يعنې (موقوف) دی.

**تشريح: قوله:** كان اذا قراء سبح اسم ربك الاعلى قال سبحان ربى الاعلى : يعنی د سورت په ختميدو باندې به ئې دا وئيل يا دا چه سمدستی به ئې ددې آيت نه پس هغه وخت وئيل، اوس ظاهره خو دا ده چه دا لوستل عام دی په صلوة او خارج صلاة دواړو ته، په عون المعبود کښې دخنی شراحو (مظهر) نه نقل کړی دی چه د امام شافعی رحمه الله په نزد دا قسم څيزونه په مانځ کښې دننه هم جائز دی او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد په مانځه کښې دننه هم جائز نهٔ دی او توريشتی رحمه الله وائی چه هم دغه شان د امام مالك رحمه الله په نزد هم په نوافلو کښې جائز دې او حضرت رحمه الله په بذل کښې ليکلې دی، لعل هذا كان خارج الصلوة او فى النوافل.

دلته دا سوال دې چه ددې حديث د باب سره څهٔ مناسبت دې يعنی دعاء فى الصلاة سره، په دې کښې خوڅه دعاء نهٔ ده ذکر، جواب دا کيدې چه په دې کښې تسبيح خو ذکر ده، والثناء على الكريم دعاء، وفى الحديث افضل الدعاء الحمد لله.

[۸۸۴](٢)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مُوسَى بْنِ أَبِي عَائِشَةَ، قَالَ: كَانَ رَجُلٌ يُصَلِّي فَوْقَ بَيْتِهِ، وَكَانَ إِذَا قَرَأَ أَلَيْسَ ذَلِكَ بِقَادِرٍ عَلَى أَنْ يُحْيِيَ الْمَوْتَى سورة القيامة آية، قَالَ: "سُبْحَانَكَ فَبَلَى". فَسَأَلُوهُ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ أَحْمَدُ: يُعْجِبُنِي فِي الْفَرِيضَةِ أَنْ يَدْعُوَ بِمَا فِي الْقُرْآنِ.

**ترجمه:** د موسی بن ابی عائشه نه روايت دې هغه وئيلی دې: وو يو سړی چې مونځ ئې کولو دپاسه د کور خپل نه او وو چې کله به ئې ولوستلو (اليس ذلک بقادرٍ على ان يحيىَ الموتىٰ) هغه به

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٦١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٣٢/١، ٣٧١) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٨٠) (صحيح)

وئيل: سبحانک فبلی، نو هغوی تپوس وکړو د هغه نه د دغې په باره کښې، هغه ووئيل: ما اوريدلی دی هغې لره د رسول الله ﷺ نه. وئيلی دی ابوداود: وئيلی دی احمد: زه خوښوم په فرضو کښې چې دعاء وکړی شی په هغه څه سره چې څه په قرآن کښې دي.

**تشريح: قوله:** قال ابوداؤد و قال احمد [1] يعجبنی فی الفريضة ان يدعوَ بما فی القرآن.

## د امام احمد رحمه الله د کلام تشريح

حضرت ددې شرح دا فرمائيلي ده چه ما ته دا خبره زياته خوښه ده چه په فرض مونځونو کښې د قرآن دعاګاني اولولم اګر چه دا هم جائز ده چه هغه دعاګاني دې اولوستلې شی کومې چه په حديث کښې راغلې دی او په عون المعبود کښې ئې ليکلې دی چه د امام احمد رحمه الله په کلام کښې دوه احتماله دی يو دا چه ددې نه مراد دعاء بعد التشهد قبل التسليم ده، دويم احتمال دا دې چه مونځ کونکې کله په مانځه کښې قرأت کوی خواه که فرض مونځ وی يا نفل نو چه کله د رحمت آياتونو ته اورسی نو هغه وخت دې دعاء د رحمت او چه کله آياتونو د تسبيح ته اورسی نو تسبيح او چه کله آياتونو د عذاب ته اورسی نو د هغې نه دې پناه غوښتل مراد دی، هغهٔ وائی چه هم دا د امام احمد او امام شافعی مسلک دې، امام بيهقی په دې باندې په معرفة السنن کښې مستقل باب قائم کړې دې، باب الوقوف عندآية الرحمة و آية العذاب، لکه چه په حديث د حذيفه کښې وارد دی کوم چه په صحيح مسلم کښې دی د امام شافعی په نزد ددې استحباب عام دې تر دې چه د جماعت په مانځه کښې د امام او مقتدی دپاره هم. [2]

## بَابُ مِقْدَارِ الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ

### باب دې په بيان د مقدار د رکوع او د سجده کې

[۸۸۰] [3] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ الْجُرَيْرِيُّ، عَنِ السَّعْدِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، أَوْ عَنْ عَمِّهِ، قَالَ: رَمَقْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاتِهِ "فَكَانَ يَتَمَكَّنُ فِي رُكُوعِهِ وَسُجُودِهِ قَدْرَ مَا يَقُولُ سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ ثَلَاثًا".

**ترجمه:** سعدی د خپل پلار او يا د خپل تره نه روايت کوي، هغه وئيلی دي: ما وکتل نبی ﷺ ته د هغه په مونځ کښې، نو هغه به کوله رکوع او سجده په اندازه د هغې چې سړی وايي: سبحان الله و بحمده درې ځل.

[1] زهٔ وايم چه دا خو د امام احمد رحمه الله قول دې او د امام مالک رحمه الله قول د باب مايستفتح به الصلاة من الدعاء په ذيل کښې داسې تير شوی دې، قال مالک لاباس بالدعاء فی الصلاة فی اوله و اوسطه و فی اخره فی الفريضة و غيرها، په دې باندې کلام هلته تير شوی دې ۱۲ منه

[2] قلت قال النووی (ص ۲۶۴) تحت حديث اذا مر بآية فيها تسبيح سبح و اذا مر بسوال سال. الخ. فيه استحباب هذه الامور لکل قارئ فی الصلاة او غيرها و مذهبنا استحبابه للامام والماموم والمنفرد. اهـ

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۷۰۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۴۸/۵، ۱۶۱، ۱۷۶، ۲۵۳، ۲۷۱، ۷۵/۲) (صحيح)

[٨٨٦]()حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَرْوَانَ الْأَهْوَازِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ، وَأَبُو دَاوُدَ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ يَزِيدَ الْهُذَلِيِّ، عَنْ عَوْنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا رَكَعَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ وَذَلِكَ أَدْنَاهُ، وَإِذَا سَجَدَ فَلْيَقُلْ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى ثَلَاثًا وَذَلِكَ أَدْنَاهُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا مُرْسَلٌ، عَوْنٌ لَمْ يُدْرِكْ عَبْدَ اللَّهِ.

**ترجمه:** د عبد الله بن مسعود ﷺ نه روایت دې هغه وئیلی دی، چې فرمائیلی دی رسول الله ﷺ کله چې رکوع کوی یو کس ستاسو نه نو وایی دې درې ځل: سبحان ربی العظیم، او دایی کمه مرتبه ده، او چې کله سجده کوی نو ودې وایی سبحان ربی الاعلی درې ځل، او دایی کمه مرتبه ده. وئیلی دی ابوداود: دا مرسل دی، عون عبد الله نه دی موندلی.

**تشریح: قوله:** حدثنا عبد الملك بن مروان........ و ذالك ادناه:

## د تسبیح په عدد کښې د علماؤ اقوال

فقهاء لیکی چه د تسبیح د عدد مسنون درجات دی، دری کرته د سنت ادنی درجه ده او پنځه کرته اوسط او اووۀ کرته اکمل، لهذا د درېو کرتو نه کمې کول مکروه تنزیهی دی (طحطاوی،ص: ۲۱۴، شامی، ص: ۴۷۶) او قاضی ابوالحسن ماوردی فرمائی چه د کمال درجه نهۀ کرته یا یولس کرته دی او اوسط پنځه کرته، او امام ترمذی د ابن المبارك او اسحاق بن راهویه نه نقل کړې دی، انه یستحب خمس تسبیحات للامام، او صاحب منهل د ابن القیم نه نقل کړې دی چه د حضور ﷺ معتاد رکوع به په اندازه د لسو تسبیحاتو وه هغوی فرمائی چه د درېو تسبیحاتو روایت ثابت نۀ دې د صحیح احادیثو نه خلاف دې، چنانچه د حدیث الباب په سند کښې سعدی راوی مجهول دې او د حضرت انس رضی الله عنه نه منقول دی چه د عمر بن عبدالعزیز مونځ به د حضور ﷺ مونځ سره ډیر مشابه وو، و کان مقدار رکوعه و سجوده عشر تسبیحات.

[٨٨٧]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الزُّهْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنِي إِسْمَاعِيلُ بْنُ أُمَيَّةَ، سَمِعْتُ أَعْرَابِيًّا، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَرَأَ مِنْكُمْ وَالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ فَانْتَهَى إِلَى آخِرِهَا أَلَيْسَ اللَّهُ بِأَحْكَمِ الْحَاكِمِينَ سورة التين آية ٨ فَلْيَقُلْ: بَلَى، وَأَنَا عَلَى ذَلِكَ مِنَ الشَّاهِدِينَ، وَمَنْ قَرَأَ لَا أُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيَامَةِ فَانْتَهَى إِلَى أَلَيْسَ ذَلِكَ بِقَادِرٍ عَلَى أَنْ يُحْيِيَ الْمَوْتَى سورة القيامة آية ٤٠ فَلْيَقُلْ: بَلَى، وَمَنْ قَرَأَ وَالْمُرْسَلَاتِ فَبَلَغَ فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ سورة المرسلات آية ٥٠ فَلْيَقُلْ: آمَنَّا بِاللَّهِ". قَالَ إِسْمَاعِيلُ: ذَهَبْتُ أُعِيدُ عَلَى الرَّجُلِ الْأَعْرَابِيِّ وَأَنْظُرُ لَعَلَّهُ، فَقَالَ: يَا ابْنَ أَخِي، أَتَظُنُّ أَنِّي لَمْ أَحْفَظْهُ، لَقَدْ حَجَجْتُ سِتِّينَ حَجَّةً مَا مِنْهَا حَجَّةٌ إِلَّا وَأَنَا أَعْرِفُ الْبَعِيرَ الَّذِي حَجَجْتُ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ابو هریره ﷺ وئیلی دی، چې رسول الله ﷺ فرمائیلی دي: چا چې ولوستلو ستاسو نه والتین و الزیتون، نو ورسیدلو اخیر د هغې ته (الیس الله بأحکم الحاکمین) نو ودې وایي: بلیٰ و انا علی ذلک من الشاهدین، او چا چې ولوسته: لا اقسم بیوم القیامة، او ورسیدو (الیس ذلک بقادرٍ علی ان یحییَ الموتیٰ) ته، نو ودې وائی، بلی، او چا چې ولوستلو و المرسلات او ورسیدو

[1]: سنن الترمذي/الصلاة ٨٢ (٢٦١)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٢٠ (٨٩٠)، (تحفة الأشراف: ٩٥٣٠) (ضعيف)
[2]: سنن الترمذي/التفسير ٨٣ (٣٣٤٧)، مسند احمد ٢/٢٤٩، (تحفة الأشراف: ١٥٥٠) (ضعيف)

(فبأي حديث بعده يؤمنون) ته نو ودې وايي: آمنّا بالله. وئيلى دى اسماعيل: زه شروع شوم اعاده مې كوله په هغه اعرابى سړى باندې، او ما كتل كيدى شى چې هغه خطا شوى وي، نو هغه وويل: اې واوره ته گمان كوى په ما باندې چې ما نه دى ياد كړى، بيشكه ما شپيته حجونه كړى دي، نشته هيڅ يو حج مگر زه پيژنم هغه اوښ چې ماورباندې حج كړى دى.

**تشريح: قوله**:قال اسماعيل ذهبت اعيد على الرجل الاعرابى و انظر لعله فقال يا ابن اخى اتظن انى لم احفظه لقد حججت ستين حجة، الخ،

## د قوت حافظې يو عجيب مثال

اسماعيل بن اميه دا حديث د يو اعرابى نه اوريدلې وو څۀ ورځې روستو هغوى ددې اعرابى امتحان اغستلو په غرض سره چه اوگورم چه دۀ ته دا حديث اوس هم ياد دې او كه نۀ په دويم ځلې دوئ د دۀ دا حديث اوريدل اوغوختل نو هغه اعرابى پوهه شو چه زما امتحان اغستل غواړى نو هغۀ ورته اووئيل، اې زما گرانه ورارۀ ستا خيال دې چه ما به دا حديث هير كړې وى، گوره، تراوسه پورې ما په خپل عمر كښې شپيتۀ حجونه كړې دى هر كال په كوم اوښ باندې چه ما حج كړې دې هغه چه اووينم نو اوبه ئې پيژنم چه ما په دۀ باندې په فلانكى كال باندې حج كړې وو او په دې بل باندې مې په فلانكى كال باندې او په دې دريم باندې په فلانكى كال باندې الى اخره، سبحان الله چه د يو اعرابى غير مشهور محدث دا حال دې نو د مشاهير او اكابرين محدثينو به څۀ حال وى، ليكې چه حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله ته لس لاكهه حديثونه ياد وو او امام ابوذرعه رازى رحمه الله ته اووۀ لاكهه. الله پاك د خپل رسول د كلام د حفاظت دپاره څنگه محدثين او لوئې عالمان فقهاء پيدا كړې دى.

[۸۸۸](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، وَابْنُ رَافِعٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عُمَرَ بْنِ كَيْسَانَ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ وَهْبِ بْنِ مَانُوسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، يَقُولُ: مَا صَلَّيْتُ وَرَاءَ أَحَدٍ بَعْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشْبَهَ صَلَاةً بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ هَذَا الْفَتَى، يَعْنِي عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ، قَالَ: "فَحَزَرْنَا فِي رُكُوعِهِ عَشْرَ تَسْبِيحَاتٍ، وَفِي سُجُودِهِ عَشْرَ تَسْبِيحَاتٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ: قُلْتُ لَهُ: مَانُوسٌ أَوْ مَابُوسٌ، قَالَ: أَمَّا عَبْدُ الرَّزَّاقِ فَيَقُولُ: مَابُوسٌ، وَأَمَّا حِفْظِي: فَمَانُوسٌ، وَهَذَا لَفْظُ ابْنِ رَافِعٍ. قَالَ أَحْمَدُ: عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ.

**ترجمه**: سعيد بن جبير وايى ما اوريدلى دى د انس بن مالک نه هغه به وئيل: ما مونځ نه دى كړى ورروسته د هيچا نه بعد د رسول الله ﷺ نه چې هغه مشابه وى په مونځ كښې د رسول الله ﷺ سره ددې ځوان نه. يعنى عمر بن عبد العزيز. هغه وايي: مونږ اټكل وكړو د هغه په ركوع كښې د لسو تسبيحاتو، او په سجده د هغه كښې د لسو تسبيحاتو. وئيلى دى ابوداود: وئيلى دى احمد بن صالح ما وويل هغه ته: مانوس او كه مابوس، هغه ووېل: عبد الرزاق مابوس وائى، او زما حفظ مانوس دى، او دا لفظ د ابن رافع دى، وئيلى دى احمد د سعيد بن جبير نه او هغه د انس بن مالک نه.

(1): سنن النسائي/التطبيق ٧٦(١١٣٦)، (تحفة الأشراف: ٨٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٢/٣-١٦٣) (ضعيف)

**تشریح: قوله:** فحزرنا في ركوعه عشر تسبيحات و في سجوده عشر تسبيحات : دا هم هغه روایت دې د کوم حواله چه زمونږ په نزد وړاندې تیره شوې ده د کومې په بناء باندې چه حافظ ابن قیم رحمه الله فرمائي چه د حضور ﷺ عادت شريفه په رکوع او سجدو کښې لس تسبیحات وو.

علامه شوکانی هم د تسبیح په مقدار کښې د یو معین عدد قائل نۀ دې او وائي، بل ينبغي الاستكسار من التسبيح على مقدار تطويل الصلوة من غير تقييد بعدد ، دغه شان هغوی لیکی چه د تسبیح په طاق کیدو باندې څۀ دلیل نشته دې.

خو زۀ وایم چه عام طور باندې فقهاؤ د عدد په وتر باندی استحباب ذکر کړې دې او ددې حدیث جواب دا کیدې شی چه دا خو د باب د تخمین (اندازې) نه دې نۀ د تحدید نه، بلکه دا چه ډیرو وختونو کښې کسر حذف کولې هم شی.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُدْرِكُ الْإِمَامَ سَاجِدًا كَيْفَ يَصْنَعُ

### باب دې په بیان د سړي کښې چې امام په سجده کښې بیاموځي نوڅه به کوي؟

یعنی د روستو راتلونکې سړی امام لره په حالت د سجدې کښې اومومی نو آیا نیت دې اوتړی او هغه سره دې په سجده کښې شریك شی یا د هغه د اودریدو انتظار دې اوکړی.

[٨٩٣]()[1] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، أَنَّ سَعِيدَ بْنَ الْحَكَمِ حَدَّثَهُمْ، أَخْبَرَنَا نَافِعُ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَبِي الْعَتَّابِ، وَابْنِ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا جِئْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ وَنَحْنُ سُجُودٌ فَاسْجُدُوا وَلَا تَعُدُّوهَا شَيْئًا، وَمَنْ أَدْرَكَ الرَّكْعَةَ فَقَدْ أَدْرَكَ الصَّلَاةَ".

**ترجمه:** د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دې هغه وئیلی دی، وئیلی دی رسول الله ﷺ : کله چې تاسو مانځه ته راشئ او مونږ په سجده کښې یو نو تاسو هم سجده وکړئ، او تاسو هغې لره هیڅ مه شمارئ، او چا چې رکوع بیامونده نو هغه مونځ بیامونډلو.

**تشریح: قوله:** اذا جئتم الى الصلاة و نحن سجود فاسجدوا.. الخ :

د حدیث نه معلومیږی چه راتلونکې سړې دې د امام د قیام انتظار نۀ کوی بلکه په سجده کښې دې شریك شی دې دپاره چه د سجدې فضیلت ورته حاصل شی اګر که په سجدې موندلو سره د رکعت موندل نۀ کیږی.

## د یوې سجدې فضیلت

خو که د الله په نزد باندې دا سجده قبوله شوه نو بیا به ئې څۀ وائی، چنانچه په جامع ترمذی، ص : ٧٦ کښې دی، اختار عبدالله بن المبارك ان يسجد مع الامام و ذكر عن بعضهم فقال لعله لا يرفع راسه من تلك السجدة حتى يغفر له، هم دا یوه سجده د مغفرت سبب کیدې شی.

**قوله:** و من ادرك الركعة فقد ادرك الصلوٰة،

---

[1]: تفرد به أبو اود، (تحفة الأشراف: ١٢٩٠٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المواقيت ٢٩ (٥٨٠)، صحيح مسلم/المساجد ٣٠ (٦٠٧)، سنن النسائي/المواقيت ٢٩ (٥٥٤)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٩١ (١١٢٣)، موطا امام مالك/وقوت الصلاة ٣(١٥)، مسند احمد (٢/٢٤١، ٢٦٥، ٢٧١، ٢٨٠، ٣٧٥، ٣٧٦)، سنن الدارمي/الصلاة ٢٢ (١٢٥٦) (حسن)

## ادراك د ركوع مع الامام سره په ادراك دركعت كښې د علماؤ اختلاف

يعنى امام په ركوع كښې موندلو سره ركعت موندلې كيږي د جمهورو علماؤ او د ائمه اربعه مذهب هم دا دې،[1] ظاهريه او ځنې شوافع لره په دې كښې اختلاف دې د دوئ په نزد باندې ادراك دركوع مع الامام سره ادراك د ركعت نۀ كيږي، په منهل كښې ئې ليكلي دي چه هم دې لره اختيار كړې دې ابن خزيمه او طيبى وغيره محدثين د شوافع او امام بخارى فرمائى چه هم دا د هغه صحابه كرامو مذهب دې كوم چه د فاتحه خلف الامام د فرضيت قائل وو، لكه ابوهريره رضى الله عنه او ددې بالمقابل دابن ابى ليلى او سفيان ثورى نه منقول دى كه روستو راتلونكې د امام د ركوع نه سر پورته كولو نه وړاندې د امام په اقتداء كښې تكبير تحريمه اووائى اگركه د امام سره په ركوع كښې شريك نۀ شى بلكه روستو ركوع اوكړى نو دې سره هم ادراك د ركعت كيږي.

د جمهورو دليل حديث الباب دې دا شان نور هم د دينه علاوه ځنې روايات په صحيح ابن حبان او ابن خزيمه كښې دى كوم چه صاحب منهل ذكر كړې دى.

## بَابُ أَعْضَاءِ السُّجُودِ

### باب دې په بيان د اندامونو د سجده كې

[۸۸۹][2] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أُمِرْتُ". قَالَ حَمَّادٌ: أُمِرَ نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَنْ يَسْجُدَ عَلَى سَبْعَةٍ، وَلَا يَكُفَّ شَعْرًا وَلَا ثَوْبًا".

**ترجمه**: د ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت كوى هغه د نبى ﷺ نه روايت كوي، هغه وئيلى دي: ماته امر شوى دى، وئيلى دى حماد: امر شوى دى ستاسو نبى ﷺ ته، چې سجده وكړى په اوو باندې، او نه بندوى ځپل ويخته او جامه.

**تشريح: قوله**:ان سيجد على سبعة.. : احناف وائى چه د سجدو حقيقت وضع الوجه على الارض دى بيا په وجه كښې دوه جزء دى جبهه (تندې) او انف خو په دې دواړو كښې اصل تندې دې نو ځكه اقتصار على الجبهه خو جائز دې خو بلا عذره مكروه دې، خو اقتصار على الانف جائز نۀ دې د جمهورو او صاحبينو هم دا مذهب دې، خو د امام صاحب په نزد باندې اقتصار على الانف هم مع الكراهية جائز دې، د دينه علاوه شپږ اعضاء كوم چه په حديث

---

[1] خو په دې كښې اختلاف كيږي چه امام سره په ركوع كښې د شركت څومره مقدار معتبر دې، داكثر علماء او ائمه ثلاثه په نيز د نفس شركت تحقق بس دى حقيقت د ركوع يعنى په زنگونو پورې لاسونه رسول د امام د سر پورته كولو نه وړاندې، او د امام شافعى رحمه الله په نيز باندې د اطميان حاصليدل ضرورى دى. ۱۲ منه

[2]: صحيح البخاري/الأذان ۱۳۳ (۸۰۹)، ۱۳٤ (۸۱۰)، ۱۳۷ (۸۱٦)، ۱۳۸ (۸۱٦)، صحيح مسلم/الصلاة ٤٤ (٤۹۰)، سنن الترمذي/الصلاة ۹۱ (۲۷۳)، سنن النسائي/التطبيق ٤۰ (۱۰۹٤)، ٤۳ (۱۰۹۷)، ٤٥ (۱۰۹۹)، ٥٦ (۱۱۱٦)، ٥۸ (۱۱۱٤)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۹ (۸۸۳)، (تحفة الأشراف: ٥۷۳٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۲۱، ۲۲۲، ۲٥٥، ۲۷۰، ۲۷۹، ۲۸۰، ۲۸٥، ۲۸٦، ۲۹۰، ۳۰٥، ۳۲٤)، سنن الدارمي/الصلاة ۷۳ (۱۳٥۷) (صحيح)

کښې مذکور دی، يدين، رکبتين، قدمين، په سجده کښې ددې ايخودل په طريقې د سنت دی( ) هم دا د حنفيانو او مالکيو او يو قول د شافعيه دې خو د امام شافعي رحمه الله اظهر د قولينو نه او د امام احمد رحمه الله مذهب دا دې چه په دا اووه اعضاء کوم چه په حديث کښې مذکور دی په زمکه باندې ايخودل فرض دی او هم دا د امام زفر رحمه الله مذهب دې، په بدائع کښې ليکلې دی چه په کتاب الله کښې د مطلق سجدو حکم وارد دې چه دهغې حقيقت وضع الوجه على الارض دې لهذا ددې مطلق حکم تقيد به د خبر واحد په ذريعې سره جائز نهٔ وی بلکه دا باقی اعضاء کوم چه په حديث کښې مذکور دی بيان د سنت به ورته وئيلې شي.

## اشکال او جواب

دې ځائې کښې يو سوال کيږی چه د احنافو فقهاء ليکی چه که يو سړې د سجدې په حالت کښې دواړه پښې په زمکه باندې کېنږدی نو د دهٔ سجده باطله ده نو د دينه معلومه شوه چه وضع القدمين هم په حقيقت د سجدو کښې داخل دې، ددې جواب دا دې چه په حقيقت کښې خو داخل نهٔ دې خو چونکه رفع د قدمينو سره سجده کولو که سخريه او د استهزاء معنی پيدا کيږی نو ځکه د مونځ د بطلان حکم لګولې کيږی.

[۸۹۰]([۲]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أُمِرْتُ" وَرُبَّمَا قَالَ: "أُمِرَ نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَسْجُدَ عَلَى سَبْعَةِ آرَابٍ".

**ترجمه**: د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې هغه روايت کوی د نبی ﷺ نه، هغه فرمائيلی دي: ماته امر شوی دی، او کله به ئې وئيل: امر شوی دی ستاسو نبی ﷺ ته چې سجده وکړی په اوه اندامونو باندې.

[۸۹۱]([۳]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا بَكْرٌ يَعْنِي ابْنَ مُضَرَ، عَنْ ابْنِ الْهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا سَجَدَ الْعَبْدُ سَجَدَ مَعَهُ سَبْعَةُ آرَابٍ: وَجْهُهُ وَكَفَّاهُ وَرُكْبَتَاهُ وَقَدَمَاهُ".

**ترجمه**: د عباس بن عبد المطلب نه روايت دې بيشکه هغه اوريدلی دی د رسول الله ﷺ نه چې هغه به وئيل: کله چې سجده کوی بنده نو سجده کوی د هغه سره اوه اندامونه، مخ د هغه، دوه ورغوی د هغه، او دوه زنګونان د هغه، او دوه خپې د هغه.

---

[۱] قول فقهاء خو هم دا ليکی چه د باقی شپږو اعضاؤ په زمکه باندې ايخودل فرض نهٔ دی خو سوال دا دې که رکبتين او قدمين دا دواړه په زمکه باندې کېنخودلې شی نو بيا خو حقيقت دسجدو يعنی وضع على الجبهة على الارض په ظاهر کښې ممکن نهٔ ده نو ځکه په کوکب الدری کښې په يو ځائې کښې ليکلې دی چه اګر که حقيقت د سجدو وضع الجبهة على الارض دی خو د کومو اعضاؤ نه بغير چه ددې تحقق نهٔ شی کيدې نو د هغې ايخودل به هم دې سره فرض منلې کيږی. ۱۲ منه

[۲]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٥٧٣٤) (صحيح)

[۳]: صحيح مسلم/الصلاة ٤٤ (٤٩١)، سنن الترمذي/الصلاة ٩١ (٢٧٢)، سنن النسائي/التطبيق ٤١ (١٠٩٥)، ٤٦ (١١٠٠)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٩ (٨٨٥)، (تحفة الأشراف: ٥١٢٦)، وقد أخرجه: مسند أحمد (٢٠٦/١) (صحيح)

[۸۹۲]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ يَعْنِي ابْنَ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَفَعَهُ، قَالَ: "إِنَّ الْيَدَيْنِ تَسْجُدَانِ كَمَا يَسْجُدُ الْوَجْهُ، فَإِذَا وَضَعَ أَحَدُكُمْ وَجْهَهُ فَلْيَضَعْ يَدَيْهِ، وَإِذَا رَفَعَ فَلْيَرْفَعْهُمَا".

**ترجمه:** د ابن عمر ﷠ نه روایت دې، هغه مرفوع کړې دی، هغه وئیلی دي: بیشکه دواړه لاسونه سجده کوی لکه ځنګه چې مخ سجده کوي، کله چې یو کس ستاسو نه ږدي خپل مخ نو ږدي دی دواړه لاسونه، او چې کله اوچت کړی هغې لره نو دواړه دې اوچت کړې.

## بَابُ السُّجُودِ عَلَى الْأَنْفِ وَالْجَبْهَةِ

### باب دې په بیان د سجده کې په پوزه او په تندې

دا وړاندې تیرشو چه اصل په سجده کښې تندې دې د سجدې د صحت مدار په دې باندې دې خو سنت په هر حال کښې دا دې چه تندی سره پوزه هم په زمکه باندې کیږدی دا د جمهورو په نزد دی او د امام احمد او اسحاق بن راهویه او اوزاعی په نزد په دواړه باندې سجده کول واجب دی، مصنف چونکه حنبلی دې نو غالبًا ځکه ئې دا ترجمه قائمه کړې ده.

[۸۹٤]([2]) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا صَفْوَانُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "رُئِيَ عَلَى جَبْهَتِهِ وَعَلَى أَرْنَبَتِهِ أَثَرُ طِينٍ مِنْ صَلَاةٍ صَلَّاهَا بِالنَّاسِ".

**ترجمه:** د ابو سعید الخدری ﷠ نه روایت دې بیشکه رسول الله ﷺ، ولیدلی شو په تندې د هغه باندې او په پوزه د هغه باندې اثر د ختې د وجې د هغې مونځ نه چې هغه کړی وو خلقو ته.

**تشریح: قوله:** ان رسول الله ﷺ رؤی و علی وجبهته و علی ارنبته الر طین من صلوة صلاها بالناس: یعنی د یو ځل قصه ده چه حضور ﷺ دیو مونځ کولو نه فارغ شو نو د هغوی په تندی او پوزه دواړو باندې د سجدې کولو د وجه نه خاوره لګیدلې اولیدلې شوه، ددې حدیث نه معلومه شوه چه حضور ﷺ به سجده په تندی او پوزې دواړو سره کوله، خو ددې نه په وجوب باندې استدلال کول صحیح نۀ دی ځکه چه مجرد فعل د وجوب مقتضی نۀ دې.

### په حدیث الباب کښې اختصار دې

دلته دا روایت مختصر دې روایت مفصله به په ابواب لیلة القدر کښې راشی چه د هغې مضمون دا دې چه په شروع کښې به د حضور ﷺ عادت د مبارکې میاشتې په عشره وسطیٰ کښې د اعتکاف کولو وو یو ځل داسې اوشو چه حضور ﷺ په دې عشره کښې اعتکاف اوفرمائیلو او آخری ورځ یعنی په شلمه نیته دوئ اوفرمائیل چه په دریمه عشره کښې هم د اعتکاف اراده ده ځکه چه دې ځل تر اوسه پورې شب قدر نۀ دې موندلې شوې

[1]: سنن النسائي/التطبيق ۳۹(۱۰۹۳)، (تحفة الأشراف: ۷۵٤۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۲) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الأذان ٤۱ (۶۶۹)، ۱۳۵ (۸۱۳)، ۱۵۱ (۸۳۶)، وليلة القدر ۲ (۲۰۱۶)، ۳ (۲۰۱۸)، والاعتكاف ۱ (۲۰۲۷)، ۹ (۲۰۳۶)، ۱۳ (۲۰٤)، صحيح مسلم/الصوم ٤۰ (۱۱۶۷)، سنن النسائي/التطبيق ٤۲ (۱۰۹۶)، والسهو ۹۸ (۱۳۵۷)، (تحفة الأشراف: ٤٤۱۹)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الاعتكاف ۶ (۹)، مسند احمد (۳/۹٤)، ويأتي برقم: (۱۳۸۲) (صحيح)

لهذا ددې حاصلولو د پاره د آخرى عشرې اعتكاف هم كول دى.
حضور ﷺ اوفرمائيل چه ما ته دې كال د ليلة القدر دا علامت ښودلې شوى دى چه ددې په صبا به زۀ په اوبو او خاوره يعنى ختو كښې به سجده كوم چنانچه بيا دا اوشو چه د آخرى عشرې په رومبۍ شپه په مدينه منوره كښې باران اوشو او د مسجد نبوى د چهت نه اوبۀ د دوئ د سجدې په ځائې كښې اوڅڅيدلې دغه ځائې كښې ختې جورې شوې بيا حضور ﷺ چه كله هغه ځائې كښې د صبا مونځ اوكړو نو په سجدې كولو سره د دوئ په تندى او پوزه باندې خاوره اولګيدله.

[٨٩٥]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، نَحْوَهُ.

**ترجمه**: مونږ ته حديث بيان كړې دې محمد بن يحيى، هغه وايى مونږ ته حديث بيان كړې دې عبد الرزاق د معمر نه پشان د هغې.

## بَابُ صِفَةِ السُّجُودِ

### باب دې په بيان د كيفيت د سجده كې

صفة په معنى د كيفيت او طريقه:

[٨٩٦]() حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ أَبُو تَوْبَةَ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، قَالَ: وَصَفَ لَنَا الْبَرَاءُ بْنُ عَازِبٍ "فَوَضَعَ يَدَيْهِ، وَاعْتَمَدَ عَلَى رُكْبَتَيْهِ، وَرَفَعَ عَجِيزَتَهُ، وَقَالَ: هَكَذَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْجُدُ".

**ترجمه**: د ابو اسحاق نه روايت دې، هغه وئيلى دي: طريقه بيان كړه مونږ ته براء بن عازب، نو كيخوده هغه دواړه لاسونه او تكيا ئې وكړه په زنګونانو او اوچت ئې كړل خپل كوناتې. او هغه وويل: رسول الله ﷺ به داسې سجده كوله.

**تشريح**: **قوله**: وصف لنا البراء بن عازب فوضع يديه و اعتمد على ركبتيه و رفع عجيزته.. :
يعنى براء بن عازب رضى الله عنه د حضور ﷺ د سجدې طريقه په كولو سره اوښودله، پس لاسونه او زنګونونه ئې په زمكه باندې داسې كيخودل چه كوناتې او شا ئې لږ غوندې راوچت كړل او پورته ئې كړل د دينه معلومه شوه چه د سجدې مسنون طريقه دا ده چه ټول اعضاء جدا جدا وى ملا او كوناتې اوچت وى، دا د سړو د پاره او د ښځو په باره كښې خو دا ليكى چه هغوى لره په راغونډيدلو سره سجده كول پكار دى پورته كيدل نۀ دې پكار د تستر د مصلحت نه.

[٨٩٧]() حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "اعْتَدِلُوا فِي السُّجُودِ، وَلَا يَفْتَرِشْ أَحَدُكُمْ ذِرَاعَيْهِ افْتِرَاشَ الْكَلْبِ".

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٤١٩)

[2]: سنن النسائي/التطبيق ٥١ (١١٠٥)، (تحفة الأشراف: ١٦٤١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠٣/٤) (ضعيف)

[3]: صحيح البخاري/المواقيت ٨ (٥٣٢)، والأذان ١٤١ (٨٢٢)، صحيح مسلم/الصلاة ٤٥ (٤٩٣)، سنن الترمذي/الصلاة ٩٣ (٢٧٦)، سنن النسائي/الافتتاح ٨٩ (١٠٢٩)، والتطبيق ٥٠ (١١٠٤)، ٥٣ (١١١١)، (تحفة الأشراف: ١٢٣٧)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٢١ (٨٩٢)، مسند احمد (١٠٩/٣، ١١٥، ١٧٧، ١٧٩، ١٩١، ٢٠٢، ٢١٤، ٢٣١، ٢٧٤، ٢٧٩، ٢٩١)، سنن الدارمي/الصلاة ٧٥ (١٣٦١) (صحيح)

**ترجمه**: د انس ﷺ نه روایت دې بیشکه نبی ﷺ ویلی دي: تاسو برابر شئ په سجده کښې او نه دې خوروي يو كس ستاسو نه ځنګلې خپلې په پشان د خورولو د سپي.

**تشريح: قوله**: ان النبی ﷺ قال اعتدلوا فی السجود :

یعنی په سجده کښې توسط اختيار كړئ نه خو دا چه د کفينو سره مرفقين هم په زمکه باندې خواره كړي او نۀ دا وی چه دا بيخی راغونډ كړي، حاصل دا چه نۀ خو دې ټول لاسونه خوارۀ وی او نۀ دا چه پوره قبض د يدينو اوكړي بلكه ذراعين مبسوط او مرتفع عن الارض وی او کفين مفترش علی الارض وی او د ځنې حواشی نه معلوميږی چه د اعتدال د كوم چه اصلی معنی ميانه روی او توسط ده دلته مراد نۀ ده بلكه دا مراد ده چه سجده په صحيح طريقې سره كوئ او صحيح طريقه هم هغه ده كومه چه پورته اوليكلې شوه.

[۸۹۸] (¹) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَمِّهِ يَزِيدَ بْنِ الْأَصَمِّ، عَنْ مَيْمُونَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ إِذَا سَجَدَ جَافَى بَيْنَ يَدَيْهِ حَتَّى لَوْ أَنَّ بَهْمَةً أَرَادَتْ أَنْ تَمُرَّ تَحْتَ يَدَيْهِ مَرَّتْ".

**ترجمه**: د ميمونې ﷺ نه روایت دې بیشکه نبی ﷺ وو چې کله به ئې سجده کوله نو لرې والی به ئې راوستلو په مابين د لاسونو کښې، تردې چې كه چيرې يو ځناور به اراده وكړه چې تېر شي لاندې د لاسونو د هغه نه نو هغه به تيريدی شو.

[۸۹۹] (²) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، عَنِ التَّمِيمِيِّ الَّذِي يُحَدِّثُ بِالتَّفْسِيرِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ خَلْفِهِ فَرَأَيْتُ بَيَاضَ إِبْطَيْهِ وَهُوَ مُجَخٍّ قَدْ فَرَّجَ بَيْنَ يَدَيْهِ".

**ترجمه**: د ابن عباس ﷺ نه روایت دې هغه وئيلی دي: زه راغلم نبی ﷺ د وروسته طرف نه، نو ما وليدلو سپينوالی د تخرګونو د هغه او هغه لرې ساتلی وو لاسونه خپل د اړخونو نه.

**تشريح: قوله**: عن ابن عباس رضی الله عنه قال اتيت النبی ﷺ من خلفه فرأيت بياض ابطيه و هو مُجَخٍّ : د دېنه مقصود د سجدو د كيفيت بيان دې، د بياض ابطين په نظر راتلل هغه وخت كيدې شی كله چه لاس د اړخونو نه جدا وی، او په يو روايت كښې دی، كان اذا سجد جَخّی، وړاندې په روايت كښې چه كوم راغلی يعنی، قد فرج يديه، دا د ماقبل تفسير دې، د رؤية ابطين په باره كښې په شرح كښې ليكی چه كيدې شی هغه وخت د حضور ﷺ د بدن په پورتنۍ حصه باندې څادر نۀ وو يا وو خو وركوتې وو په هغه زمانه كښې د سرو لباس عام طور سره ازار (لنګ) او رداء (څادر) وو د قميص هغۀ خلق عادت نۀ وو ګينی ئاظره ده چه د قميص اغوستلو په صورت كښې د ابطين بياض ښكاره كيدل مشكل دی، او دا هم وئيلې شوې دی چه كيدې شی هغه قميص واسع الكمين (فراخه لستوڼې) واله وو، او يو قول دا هم دې چه كيدې شی د راوی مراد دا وو چه حضور ﷺ سجده داسې اوكړه چه كه بالفرض د

¹): صحيح مسلم/الصلاة ٤٦ (٢٣٨)، سنن النسائي/التطبيق ٥٢ (١١١٠)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٩ (٨٨٠)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٣١/٦، ٣٣٢)، سنن الدارمي/الصلاة ٧٩ (١٣٧٠) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٣٥٧)، وقد أخرجه: مسند احمد ٢٩٢/١، ٣٠٢، ٣٠٥، ٣١٦، ٣١٧، ٣٣٩، ٣٤٣، ٣٥٤، ٣٦٢، ٣٦٥ (صحيح)

حضور ﷺ په بدن مبارك باندې دغه وخت جامه نۀ وې نو بياض د ابطينو به په نظر راغلي وو.

## آيا د حضور ﷺ ترخونه د ويښتونه خالي وو

د دې حديث نه قرطبي رحمه الله دا استنباط کړې دې چه د حضور ﷺ په ترخونو کښې ويښتۀ نۀ وو په دې باندې حافظ عراقي دا اشكال كړې دې چه، بانه لم يثبت والخصائص لا تثبت بالاحتمال او بياض د ابطينو نه دا نۀ لازميږي چه هلته به ويښتۀ نۀ وي زرغون شوي ځکه چه کله ويښتۀ اووستلې شي لکه چه څنګه سنت دې نو صرف سپنوالې به پاتې شي ځکه چه په څنو روايتونو راغې چه، كنت انظر الى عفرة ابطيه اذا سجد، او عفرة هغه سپينوالى ته وائي كوم چه خالص نۀ وي د دينه معلوميږي چه دا رنګ هم د ويښتو اثر وو، آو ددې خبرې مونږ معتقد يو چه د حضور ﷺ ترخونه د بدبوئي نه بيخې محفوظ وو.

ملا علي قاري ليکي چه د ويښتو کيدو باوجود د بدبوئي نۀ کيدل، ابلغ فى الكرامة (ډيره اوچته خبره) ده ددې په نسبت چه ويښتۀ نۀ وي.

[۹۰۰]()حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ رَاشِدٍ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ، حَدَّثَنَا أَحْمَرُ بْنُ جَزْءٍ صَاحِبُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ إِذَا سَجَدَ جَافَى عَضُدَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ حَتَّى نَأْوِيَ لَهُ".

**ترجمه**: مونږ ته حديث بيان کړې دې احمر بن جَزء، ملګرى د رسول الله ﷺ: بيشکه رسول الله ﷺ وو چې کله به ئې سجده کوله لرې به ئې ساتل خپل بازوګان د اړخونو نه، تردې چې زمونږ به شفقت راغلو په هغه باندې.

**تشريح**: **قوله**:كان اذا سجد جافى عضديه عن جنبيه حتى ناوى له :

ناوى د جمع متكلم صيغه ده اوى، ياوى از ضرب ددې معنى د رقت او ترحم ده، اى حتى نترحم له، د سجدې مسنون طريقه دا ده چه دواړه سنګلې د اړخونو نه جدا وى سنګلې د زمکې نه پورته وى ټول اعضاء جدا جدا وى د بدن روستو حصه يعنى كوناټى دې اوچت اوساتى دې دپاره چه په تندى او پوزه باندې بوج راشى او په ښۀ شان سره متمكن شى، په دې کښې سړى ته مشقت ضرور لاحق وى خصوصا کله چه سجده اوږده او ډير په اطمينان سره وى لکه څنګه چه به حضور ﷺ کوله ځکه صحابى راوى د حديث فرمائى چه مونږ ته به په حضور ﷺ باندې رحم راغلو.

[۹۰۱]()حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ شُعَيْبِ بْنِ اللَّيْثِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ دَرَّاجٍ، عَنْ ابْنِ حُجَيْرَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا سَجَدَ أَحَدُكُمْ فَلَا يَفْتَرِشْ يَدَيْهِ افْتِرَاشَ الْكَلْبِ وَلْيَضُمَّ فَخِذَيْهِ".

---

[1]: سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ١٩ (٨٨٠)، (تحفة الأشراف: ٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠/٥، ٣٤٢/٤، ٣١/٥) (حسن صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ١٣٥٩٢)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ٨٥ (٢٦٩)، سنن النسائي/التطبيق ٣٨ (١٠٩٢)، مسند احمد (٣٨١/٢) (حسن) (ملاحظه هو: صحيح ابي داود: ٢/٨٣٧)

**ترجمه:** د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې بيشكه نبي ﷺ ويلي دي: كله چې سجده كوي يو كس ستاسو نه نو نه دې خوروي خپل لاسونه په شان د خورولو د سپي، او يو ځائې دې كړي خپل ورنونه.

**تشريح: قوله**:اذا سجد احدكم فلا يفترش يديه افتراش الكلب و ليضم فخذيه :

## په دوو متعارض حديثونو كښې تطبيق

په دې روايت كښې د سجدې په حالت كښې دضم د فخذينو امر راغلې دې حال دا دې چه ددې نه وړاندې په ابواب رفع اليدين كښې د ابوحميد ساعدی حديث تير شوې دې، و اذا سجد فرج بين فخذيه، په ظاهر كښې په دواړو كښې منافات دې، و هكذا قال صاحب عون المعبود ، خو حضرت رحمه الله په بذل كښې ليكې چه ددې دواړو مفهوم جدا جدا دې لهذا هيڅ منافات نشته دې ځكه چه په كوم روايت كښې د تفريج ذكر دې د هغې نه مراد تفريج بين الفخذين والبطن دې، لكه چه څنګه په خپله هم ددې روايت په آخر كښې دې طرف ته اشاره ده چه دهغې الفاظ دا دی، اذا سجد فرج بين فخذيه غير حامل بطنه على شيء من فخذيه، دا جمله هم د تفريج بين الفخذين تفسير دې او دلته په حديث الباب كښې د فخذينو په خپلو كښې يو ځائې كول مراد دی لهذا هيڅ تعارض نشته ، او صاحب منهل دويمه توجيه اختيار كړې ده هغه دا چه د تفريج واله روايت په جواز باندې او دويم حديث په استحباب باندې محمول كړو،

## (په فخذين كښې به تفريج كيږي يا ضم؟)

اوس پاتې شوه دا مسئله چه فقهاء حضرات په دې كښې څۀ فرمائی د فخذينو په خپل مينځ كښې تفريج پكار دې يا يوځائې كول، په دې باره كښې حضرت رحمه الله ليكی چه اګر چه علامه شوكانی دا ليكلې دی چه دا حديث د تفريج بين الفخذينو په مشروعيت باندې دلالت كوی او په دې كښې د هيڅا اختلاف نشته ، حضرت فرمائی چه دا مسئله څه اجتماعی نۀ ده او نۀ ما ته په كتابونو د احنافو يا مالكيو كښې ددې تصريح ملاؤ شوې ده.
احقر وائی چه په دې كښې معتاد بين العلماء خو عملا هم تفريج دې لكه چه هغه په مشاهد دې خو تفريج او ضم د امورو اضافيه نه دی، فالظاهر تركهما على حالهما لا يقصد الضم و لا التفريج، پس په كوم حديث كښې چه تفريج مذكور دې د هغې نه مراد عدم الضم دې او كوم ځائې كښې چه ضم مذكور دې د هغې نه مراد ترك تفريج دې نۀ ضم حقيقی، والله تعالى اعلم بالصواب.

## بَابُ الرُّخْصَةِ فِي ذَٰلِكَ لِلضَّرُورَةِ

**باب دې په بيان د رخصت كې په دغې كې د وجې د ضرورت نه**

د ذالك اشاره صفت سجود يعنی د سجدې مسنون كيفيت طرف ته ده، يعنی بعضی د رواياتونه په دې كښې ګنجائش معلوميږی ددې بيان دې.

[٩٠٢]()حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: اشْتَكَى أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَشَقَّةَ السُّجُودِ عَلَيْهِمْ إِذَا انْفَرَجُوا، فَقَالَ: "اسْتَعِينُوا بِالرُّكَبِ".

**ترجمه**: د ابو هريره ﷺ نه روايت دې، هغه وايي: شكايت وكړو ملګرو د نبي ﷺ د تكليف د سجدو نه په دوى كله چې كولاوېږي، نو هغه وويل: مدد وغواړئ په زنګونانو باندې.

**تشريح**: **قوله**:اشتكى اصحاب النبي ﷺ الى النبي ﷺ مشقة السجود عليهم اذا انفجروا فقال استعينوا بالركب :

يعنى بعضې صحابه كرام رضوان الله عليهم حضور ﷺ ته دا عرض اوكړو چه كله مونږ په مسنون طريقې سره سجده كوو اوسنګلې د فخذينو نه جدا ساتو او ټول اعضاء جدا جدا ساتو نو په دې كښې مشقت وى نو حضور ﷺ هغوى ته د استعانت بالركب اجازت وركړو چه د سنګلو سرونه په سجده كښې په زنګونونو باندې ايږدئ دې دپاره چه اسانتيا وى، خو ظاهر دا ده چه د سجدې دا هيئت د مسنون هيئت نه خلاف او مكروه دې.

## حديث الباب د تيرشوى احاديثو خلاف دې

نو دا حديث د تيرشوى احاديثو خلاف شو په كوم كښې چه د تفريج حكم مذكور دې، ددې يو جواب خو دا كيدې شى چه هغې طرف ته په الكوكب الدرى كښې اشاره ده چه دا رخصت د ترك تفريج بالعموم نۀ دې بلكه د هغه بعضو صحابه كرامو دپاره دې كومو چه حضور ﷺ ته د مشقت شكايت كړې وو، او يا به دا اووئيلې شى چه ددې حديث په سند باندې امام ترمذى كلام فرمائيلې دې، هغه دا چه ددې په سند كښې اضطراب دې، ليث دا حديث موصولا او د هغوى نه علاوه نورو ګنړو رواتو سفيان وغيره دې لره مرسلا روايت كړې دې لهذا دا روايت موصوله شاذ او غير معروف دې، اګر چه حضرت سهارنپورى په بذل كښې د امام ترمذى دې نقد لره نۀ دې تسليم كړې او د طحاوى شريف د يو روايت نه ئې د ليث متابعت ثابت كړې دې. والله اعلم.

## بَابٌ فِي التَّخَصُّرِ وَالْإِقْعَاءِ

### باب دې په بيان د تخصر او اقعاء كښې

په ترجمة الباب كښې دوه جزء مذكور دى خو په حديث الباب كښې صرف تخصر مذكور دې د اقعاء هيڅ ذكر په دې كښې نشته دې د دېنه وړاندې باب الاقعاء بين السجدتين كښې تير شوې دې لهذا دا جزء ثانى په ترجمة الباب كښې كيدل نۀ دى پكار.

[٩٠٣]()حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ وَكِيعٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ زِيَادِ بْنِ صَبِيحٍ الْحَنَفِيِّ، قَالَ: صَلَّيْتُ إِلَى جَنْبِ ابْنِ عُمَرَ "فَوَضَعْتُ يَدَيَّ عَلَى خَاصِرَتَيَّ"، فَلَمَّا صَلَّى، قَالَ: هَذَا الصَّلْبُ فِي الصَّلَاةِ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى عَنْهُ".

(١): سنن الترمذي/الصلاة ١٠٠ (٢٨٦)، (تحفة الأشراف: ١٢٥٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٣٩، ٤١٧) (ضعيف)

(٢): سنن النسائي/الافتتاح ١٢ (٨٩٠)، (تحفة الأشراف: ٦٧٢٤)، وقد أخرجه: حم(٢/٣٠، ١٠٦) (صحيح)

**ترجمه**: د زياد بن صبيح الحنفي نه روايت دي هغه وئيلي دي: ما مونځ وکړو خوا د ابن عمر کښې، ما دواړه لاسونه په خپلو تشو باندې کيخودل، هرکله چې هغه مونځ وکړو ويې وئيل: دا صليب دی په مانځه کښې، او وو رسول الله ﷺ چې منع ئې کوله د دېنه.

**تشريح**: **قوله**: الى جنب ابن عمر فوضعت يدى على خاصرتى فلما صلى قال هذا الصلب فى الصلاة:

## د حديث شرح

زياد بن صبيح وائى چا ما يوه ورځ د ابن عمر رضى الله عنه په خوا کښې مونځ اوکړو او دواړه لاسونو مې د ترلو په ځائې په خپلو تشو باندې کيخودل کله چه هغهٔ د مونځ نه فارغ شو نو هغوی ما ته اوفرمائيل چه داخو صلب يعني د سولئي هيئت دي کوم چه تا په مونځ کښې اختيار کړې دې ځکه چه مصلوب لره (څوک چه په سولئي باندې اوځيژولي شي) د هغه دواړه لاسونه خوارهٔ کړې شي او زوړندولې شي، او دلته کښې هم په تشو باندې لاس ايخودلو په صورت کښې پوره نهٔ نو نيم لاسو خوارهٔ وی.

په دې حديث کښې د مونځ په قيام کښې په تشو باندې لاسونه ايخودلو نه منع کړې شوې ده او ددې نه د صلب سره تشبيه ورکړې شوې ده هم دې ته تخصر هم وائى کوم چه په ترجمة الباب کښې مذکور دې، وړاندې په کتاب کښې يو باب بل راروان دې، باب الرجل يصلى مختصرًا، چه دهغې لاندې مصنف دا حديث ذکر کړې دې، نهى رسول الله ﷺ عن الاختصار فى الصلاة، هلته مصنف د اختصار تفسير هم دا کړې دې يعنى په تشو باندې لاسونه ايخودل.

## (د اختصار په تفسير کښې نور اقوال)

تخصر او د اختصار په تفسير کښې د دېنه علاوه نور اقوال هم دی.

١: وضع اليد على الخاصرة كما تقدم و هو الراجح عند المصنف،

٢: اخذ المخضرة باليد، د کونتيئى په سهاره باندې په مانځه کښې اودريدل،

٣: اختصار السورة، پوره سورت نهٔ لوستل بلکه د هغې څهٔ حصه لوستل،

۴: اختصار الصلاة، مونځ مختصر غوندې کول بغير د طمانيت نه،

۵: ترک آية السجدة.

## (د ترک اختصار حکمتونه)

رومبئ معنى کومه چه مصنف اختيار کړې ده د دېنه د منع په حکمت کښې مختلف اقوال دی، ١: التشبه بابليس، چه ابليس کله د آسمانونونه راکوز کړې شو نو په دې شکل سره کوز شوې وو، ٢: التشبه باليهود، ٣: راحة اهل النار، په جهنم کښې چه کله جهنميان ستړې شى نو د سهارې دپاره به داسې کوی، ۴: شکل اهل المصيبة، چه مصيبت زده خلق به په ماتم کښې ولاړ وو او هم داسې په تشو باندې به ئې لاسونه ايخودل.

دا تخصر د جمهورو په نزد باندې مکروه او د ظاهريه په نزد باندې حرام دې.

تنبيه: د سنن ابوداؤد په ابوابو يا په احاديثو کښې تکرار نشته دې، شاذ او نادر په پوره کتاب کښې په دوه يا درې ځائينو کښې چرته وی دا ځائې هم د هغه ځايونو نه دې لکه چه څنګه مونږ پورته ليکلى دى.

# بَابُ الْبُكَاءِ فِي الصَّلَاةِ

## باب: په مانځه کښې ژړل

[٩٠٤]([1])حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ سَلَّامٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ يَعْنِي ابْنَ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا حَمَّادٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُصَلِّي وَفِي صَدْرِهِ أَزِيزٌ كَأَزِيزِ الرَّحَى مِنَ الْبُكَاءِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه**: مطرف د خپل پلار نه روايت کوی هغه وئيلی دي: ما وليده رسول الله ﷺ چې مونځ ئې کوه او په سينه د هغه کښې اواز وو پشان د اواز د ژرندې د وجې د ژړا نه، ﷺ.

**تشريح: قوله**:رأيت رسول الله ﷺ يصلي و في صدره ازيز كازيز الرحى من البكاء :

يعنې د حضور ﷺ په مونځ کښې به ځنې وخت مسلسل د نرئ نرئ ژړا آواز د سينې مبارکې نه اوريدې شو لکه څنګه چه د جرندې د چليدو آواز وی او په نسائی کښې روايت دې، کازيز المرجل، لکه د کټوئ د پخيدو او د خوټکيدو آواز.

په دې مسئله کښې د فقهاؤ اختلاف دې، جمهور علماء ائمه ثلاثه فرمائی که بکاء في الصلوة د الله د ويرې، د آخرت د ذکر او د جنت او دوزخ نه وجه نه وی نو هيڅ باك نشته دې او که د يو څه دنياوی عوارضو مرض وغيره د وجه نه وی نو بيا په دې آواز سره ژړل مفسد د صلوٰة دی، او د شافعيه په نزد باندې مطلقا که د آخرت د ويرې نه وی يا د څه تکليف د وجه نه وی مفسد دې په دې شرط چه د ژړا په آواز کښې کم نه کم دوه حرفه پيدا شی، بشرط ان صدر منه حرفان، او د شعبی، نخعی او ثوری په نزد باندې هم بکاء او انين مفسد د صلوٰة دی.

ائمه ثلاثه کوم چه د تفصيل قائل دی هغوی په دليل کښې دا فرمائی چه آه او بکاء دا هم ذکر دې لکه چه الله تعالى په دې سره د ابراهيم عليه السلام مدح فرمائيلې ده، ان ابراهيم لاواه حليم، په يو بل آيت کښې دی، خروا سجدا و بكيا، او هم داسې حديث الباب هم د دوئ دليل دې.

# بَابُ كَرَاهِيَةِ الْوَسْوَسَةِ وَحَدِيثِ النَّفْسِ فِي الصَّلَاةِ

## باب دې په بيان د کراهيت د وسوسه کې او د ځان سره خبرو کولو کې

[٩٠٥]([2])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا هِشَامٌ يَعْنِي ابْنَ سَعْدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ وُضُوءَهُ، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ لَا يَسْهُو فِيهِمَا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ".

**ترجمه**: د زيد الجهنی نه روايت دې بيشکه نبی ﷺ ويلی دي: چا چې اودس وکړو ښه ئې وکړو اودس، بيا ئې دوه رکعاته وکړل چې غفلت نه کوی په هغې کښې، وبه بخښلی شی ورته مخکنئ ګناه.

**تشريح: قوله**:ثم صلى ركعتين لا يسهو فيهما غفر له ما تقدم من ذنبه :

[1]: سنن الترمذي/الشمائل ٤٤ (٣٠٥)، سنن النسائي/السهو ١٨ (١٢١٥)، (تحفة الأشراف: ٥٣٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٢٥، ٢٦) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٧٦٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٧/٤) (حسن)

په بذل کښې ددې په شرح کښې داسې ليکې، اى لا يغفل عن الصلاة لاشتغاله باحاديث النفس والوساوس.

وساوس او خيالات په دوه قسمه وى، اختيارى او اضطرارى دغه شان ما يتعلق بالدنيا و ما يتعلق بالدين، ددې تفصيل په ابواب الوضوء کښې په باب صفة وضوء النبى ﷺ کښې، دلا يحدث فيهما نفسه په شرح کښې تير شوې دې. (الدر المنضود ٢٤٩: ١)

[٩٠٦](١)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيِّ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ الْحَضْرَمِيِّ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الْجُهَنِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَا مِنْ أَحَدٍ يَتَوَضَّأُ فَيُحْسِنُ الْوُضُوءَ وَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ يُقْبِلُ بِقَلْبِهِ وَوَجْهِهِ عَلَيْهِمَا إِلَّا وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ".

**ترجمه:** د عقبة بن عامر الجهنى نه روايت دې، بيشکه رسول الله ﷺ ويلى دي: نشه هيڅ يو کس چې ښائسته اودس وکړي، او وکړى دوه رکعاته چې مخامخ شى هغې په باطن او ظاهر سره، مګر واجبيږى د هغه لپاره جنت.

## بَابُ الْفَتْحِ عَلَى الْإِمَامِ فِي الصَّلَاةِ

### باب دې په بيان د فتح ورکولو کې امام ته

يعنى که امام ته په قرأت کښې د وړاندې لوستلو نه کوم مانع راپيښ شى نو مقتدى د دهٔ لاره پرانستلې شى کوم ته چه زمونږ په محاوره کښې لقمه وائى.

[٩٠٧](٢)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الدِّمَشْقِيُّ، قَالَا: أَخْبَرَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ، عَنْ يَحْيَى الْكَاهِلِيِّ، عَنِ الْمُسَوَّرِ بْنِ يَزِيدَ الْأَسَدِيِّ الْمَالِكِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: يَحْيَى، وَرُبَّمَا قَالَ: شَهِدْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الصَّلَاةِ، فَتَرَكَ شَيْئًا لَمْ يَقْرَأْهُ، فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، تَرَكْتَ آيَةَ كَذَا وَكَذَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَلَّا أَذْكَرْتَنِيهَا". قَالَ سُلَيْمَانُ فِي حَدِيثِهِ: قَالَ: كُنْتُ أُرَاهَا نُسِخَتْ. وَقَالَ سُلَيْمَانُ: قَالَ: حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ كَثِيرٍ الْأَزْدِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا الْمُسَوَّرُ بْنُ يَزِيدَ الْأَسَدِيُّ الْمَالِكِيُّ.

**ترجمه:** د مسور بن يزيد الاسدى المالکى نه روايت دې، بيشکه رسول الله ﷺ. وئيلى دى يحيى کله به ئې وئيل: زه حاضر شوم رسول الله ﷺ ته. قرأت ئې کولو په مانځه کښې نو څه شى ئې پريخودو ويې نه لوستلو، نو يو سړى ورته وويل اى د الله رسوله! فلانى ايت دې پريخوده، نو رسول الله ﷺ وويل: ولې نه وو چې ته ماته هغه راياد کړې وى. وئيلى دى سليمان په خپل حديث کښې: هغه وفرمائيل: زما دا خيال وو چې هغه منسوخ شوې دى.

**تشريح: قوله:** فقال له رجل يا رسول الله ترکت آية کذا و کذا فقال له رسول الله ﷺ هلا اذکرتنيها: د رجل نه مراد أبى بن کعب رضى الله عنه دې د حضور ﷺ نه په مانځه کښې څنې آياتونه سهوا پاتې شوې وو حضرت ابى رضى الله عنه د مونځ نه پس عرض اوکړو په دې باندې حضور ﷺ اوفرمائيل چه تا په مانځه کښې هغهٔ آياتونه ولى ياد نهٔ کړل.

(١): صحيح مسلم/الطهارة ٦ (٢٣٤)، سنن النسائي/الطهارة ١١١ (١٥١)، (تحفة الأشراف: ٩٩١٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٦/٤، ١٥١، ١٥٣)، سنن الدارمي/الطهارة ٤٣ (٧٤٣) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٧٦٦، ١١٢٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٧٤/٤) (حسن)

## د ائمه مذاهب

د فتح علی الامام په باره کښې په منهل کښې درې مذهبه لیکلې دی:
۱: د منصور بالله په نزد واجب ده،
۲: د فرقه زیدیه د امام زید بن علی په نزد مکروه ده،
۳: د جمهور او ادائمه الاربعة په نزد جائز بلکه عند الضرورة مستحب ده، بیا وړاندې په تفصیل کښې اختلاف دې چنانچه یو قول دا دې چه که امام د قرأت مفروض مقدار لوستلې وی نو بیا دې فتح علی الامام نۀ کوی (یعنی فی الفرض) دغه شان د لقمې ورکولو حق په هغه صورت کښې دې کله چه امام د قرأت نه بند پاتې شی او که هغۀ بل آیت ته منتقل شی نو بیا دې لقمه نۀ ورکوی او که ورکړی نو د فاتح مونځ به فاسد شی او که امام لقمه واغستله نو د امام مونځ هم فاسدیږی، دا کلام په هغه لقمه کښې دې کوم چه د خپل امام دپاره وی او که یو مونځ کونکی د خپل امام نه علاوه بل چا لره لقمه ورکړی خواه که هغه سړې مصلی وی یا غیر مصلی نو په دې صورت کښې د حنفیه او مالکیه په نزد به مونځ فاسد شی او د حنابله په نزد مکروه (من المنهل)

قَالَ سُلَيْمَانُ فِي حَدِيثِهِ: قَالَ: «كُنْتُ أَرَاهَا نُسِخَتْ»، وَقَالَ سُلَيْمَانُ: قَالَ: حَدَّثَنِي [ص:۲۳۹]( ) يَحْيَى بْنُ كَثِيرٍ الْأَزْدِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا الْمُسَوَّرُ بْنُ يَزِيدَ الْأَسَدِيُّ الْمَالِكِيُّ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ شُعَيْبٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْعَلَاءِ بْنِ زَبْرٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " صَلَّى صَلَاةً، فَقَرَأَ فِيهَا فَلُبِسَ عَلَيْهِ، فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ لِأُبَيٍّ: «أَصَلَّيْتَ مَعَنَا؟» قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: «فَمَا مَنَعَكَ»

**ترجمه:** او وئیلی دی سلیمان: ماته حدیث بیان کړې دې یحیی بن کثیر الازدې، هغه وئیلی دي: مونږ ته حدیث بیان کړې دې مسور بن یزید الاسدی المالکی مونږ ته حدیث بیان کړې دې یزید بن محمد الدمشقي، مونږ ته حدیث بیان کړې دې هشام بن اسماعیل، مونږ ته حدیث بیان کړې دې محمد بن شعیب، مونږ ته خبر راکړی دی عبد الله بن العلاء بن زَبر، د سالم بن عبد الله نه او هغه د عبد الله بن عمر نه، بیشکه نبی ﷺ وکړو یو مونځ، نو قرأت ئې وکړو په هغې کښې تلبیس ورباندې راغی، هرکله چې فارغ شو ویې وئیل أبی ته: ایا تا مونږ سره مونځ وکړو؟ هغه وویل آو، هغه وفرمائیل ته څه شی منع کړې (چه اودې نه وئیل)

## بَابُ النَّهْيِ عَنِ التَّلْقِينِ

### باب دې په بیان د هې کې د تلقین نه

د تلقین نه مراد هم هغه فتح علی الامام ده دې ته اطعام الامام هم وئیلې شی لکه چه د حضرت علی رضی الله عنه د هغه اثر نه معلومیږی کوم چه وړاندې راروان دې.

( ): مسند احمد: ۲/۱۵۰۱.

[٩٠٨](١)حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ الْفِرْيَابِيُّ، عَنْ يُونُسَ بْنِ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا عَلِيُّ، لَا تَفْتَحْ عَلَى الْإِمَامِ فِي الصَّلَاةِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو إِسْحَاقَ لَمْ يَسْمَعْ مِنَ الْحَارِثِ إِلَّا أَرْبَعَةَ أَحَادِيثَ لَيْسَ هَذَا مِنْهَا.

**ترجمه:** د علي رضي الله عنه نه روايت دې هغه وئيلي دي، ووئيل رسول الله ﷺ: اې علي! ته فتحه مه ورکوه امام ته په مانځه کښې. وئيلي دي ابوداود: ابو اسحاق د حارث نه نه دې اوريدلي مګر څلور احاديث، او دا د هغې نه نه دې.

**تشريح: قوله:** عن علي رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ يا علي لا تفتح على الامام في الصلوة:
دا حديث د وړاندينی حديث خلاف دې په دې کښې امام لره د لقمې ورکولو ممانعت دې څنګه چه د زيد بن علي مذهب دې او دا د ائمه اربعه خلاف دی. جواب دا دې څنګه چه مصنف په خپله فرمائي چه دا حديث منقطع دې ددې دپاره چه دا حديث ابو اسحاق د حارث نه نۀ دې اوريدلې، دويم جواب دا دې چه په دې حديث کښې حارث اعور دې چا ته چه كذاب وئيلي شوې دې، قال ابن حبان كان غاليًا في التشيع، دغه شان دا حديث د حضرت علي رضي الله عنه د موقوف حديث خلاف دې کوم چه ابن ابي شيبه روايت کړې دې، اذا استطعمك الامام فاطعمه، چه کله تاسو نه امام لقمه طلب کړي نو هغه لره لقمه ورکوئ.

## بَابُ الْإِلْتِفَاتِ فِي الصَّلَاةِ

### باب دې په بيان د کتلو کښې په مانځه کښې

په مونځ کښې د التفات درې صورتونه دی، ١: بتحويل الوجه، ٢: بتحويل الصدر، ٣: بصرف العين، اول قسم مکروه دې، او دويم قسم مفسد صلوة دې د استقبال قبلې د فوت کيدو د وجه نه، دحنفيه او شافعيه دواړو په نزد باندې او قسم ثالث صرف خلاف أولى دې د خشوع دمنافي کيدو د وجه نه.

[٩٠٩](٢)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا الْأَحْوَصِ يُحَدِّثُنَا فِي مَجْلِسِ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، قَالَ: قَالَ أَبُو ذَرٍّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَزَالُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ مُقْبِلًا عَلَى الْعَبْدِ وَهُوَ فِي صَلَاتِهِ مَا لَمْ يَلْتَفِتْ، فَإِذَا الْتَفَتَ انْصَرَفَ عَنْهُ".

**ترجمه:** ابو ذر رضي الله عنه وئيلي دي: چې رسول الله ﷺ وئيلي دي: الله پاک هميشه بنده ته متوجې وی چې کله هغه په مانځه کښې وی تر کومه ئې چې التفات نه وی کړی، کله چې اوګوری بل طرف ته نو الله ترېنه خپله توجه واړوي.

**تشريح: قوله:** لا يزال الله عزوجل مقبلا على العبد.. الخ:
يعنی الله تعالى د بنده طرف ته کله چه هغۀ مونځ کوی په رحمت سره متوجه کيږی تر څو پورې چه بنده په مانځه کښې اخوا ديخوا التفات او نۀ کړی او کله چه التفات اوکړی نو الله تعالى خپله توجه د هغه د طرف نه لرې کړی.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٠٤٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٤٦) (ضعيف)
(٢): سنن النسائي/السهو ١٠ (١١٩٦)، (تحفة الأشراف: ١١٩٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/١٧٢)، سنن الدارمي/الصلاة ١٣٤ (١٤٦٣) (حسن)

[۹۱۰]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنِ الْأَشْعَثِ يَعْنِي ابْنَ سُلَيْمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْتِفَاتِ الرَّجُلِ فِي الصَّلَاةِ، فَقَالَ: "إِنَّمَا هُوَ اخْتِلَاسٌ يَخْتَلِسُهُ الشَّيْطَانُ مِنْ صَلَاةِ الْعَبْدِ".

**ترجمه**: د عائشې ﷞ نه روايت دې هغه وايي: ما تپوس وکړو د رسول الله ﷺ نه په باره د کتلو کښې په مانځه کې؟ هغه وفرمائيل: بيشکه دا تختول د شيطان دی چې تختوی هغې لره شيطان د مانځه د بنده نه.

**تشريح**: **قوله**:هو اختلاس يختلسه الشيطان من صلوة العبد.. الخ :
اختلاس يعنی پورته کول او د چا نه څۀ څيز په تيزئ سره تختودل، دلته د خشوع اغستل مراد دی يعنی کوم سړې چه په مانځه کښې بل يو څيز ته التفات اوکړی نو ګويا داسې پوهه شه چه شيطان ددې سړی خشوع اوتختوله.

## بَابُ السُّجُودِ عَلَى الْأَنْفِ

### باب دې په بيان دسجده کې په پوزه باندې

په دې باب کښې چه کوم حديث مذکور دې هغه نزدې څو باب وړاندې تير شوې دې نو ځکه وړاندې په کتاب کښې راځی.
قال ابو علی هذا الحديث لم يقراء ابوداؤد فی العرضة الرابعة. د ابو علی مصنف شاګرد صاحب النسخه فرمائی چه امام ابوداؤد کله خپل دا کتاب تلامذه ته په څلورم ځل باندې وړاندې کړو نو دا حديث ئې او نۀ لوستلو بلکه ترک ئې کړو.

[۹۱۱]([2])حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ، حَدَّثَنَا عِيسَى، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "رُئِيَ عَلَى جَبْهَتِهِ وَعَلَى أَرْنَبَتِهِ أَثَرُ طِينٍ مِنْ صَلَاةٍ صَلَّاهَا بِالنَّاسِ". قَالَ أَبُو عَلِيٍّ: هَذَا الْحَدِيثُ لَمْ يَقْرَأْهُ أَبُو دَاوُدَ فِي الْعَرْضَةِ الرَّابِعَةِ.

**ترجمه**: د ابو سعيد الخدری ﷠ نه روايت دې بيشکه د رسول الله ﷺ په تندې باندې وليدل شو، او د هغه په پوزه باندې اثر د ختې د وجې د هغه مونځ نه چې هغه کړی وو خلقو ته. وئيلی دی ابو علي: دا حديث ابوداود نه دی لوستلی په څلورمه پيشئ کښې.

## بَابُ النَّظَرِ فِي الصَّلَاةِ

### باب دې په بيان د کتلو کې په مانځه کې

### الفرق بين الترجمتين

په دې ترجمة الباب او په تيرشوی باب کښې فرق په بذل کښې خو حضرت دا ليکلې دې چه د التفات نه مراد، نظر بګوشه چشم، د سترګو په ګوټ کښې کتل .او نظر عام دې، زۀ وايم يا دی دا اووئيلې شی چه د التفات متبادر معنی ښی او ګس طرف ته کتل دی، نظر الی

[1]): صحيح البخاري/الأذان ۹۳ (۷۵۱)، وبدء الخلق ۱۱ (۳۲۹۱)، سنن النسائي/السهو ۱۰ (۱۱۹۷)، (تحفة الأشراف: ۱۷۶۶۱)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ۶۱ (۵۹۰)، مسند احمد (۶/۷، ۱۰۶) (صحيح)
[2]): انظر حديث رقم: ۸۹۴ (تحفة الأشراف: ۴۴۱۹) (صحيح)

اليمين و اليسار، او په دې دويمه ترجمه کښې د نظر نه مراد نظر الى الفوق دې په قرينې د حديث الباب سره.

[۹۱۲] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ. ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ وَهَذَا حَدِيثُهُ، وَهُوَ أَتَمُّ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنِ الْمُسَيَّبِ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ تَمِيمِ بْنِ طَرَفَةَ الطَّائِيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ عُثْمَانُ، قَالَ: دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسْجِدَ فَرَأَى فِيهِ نَاسًا يُصَلُّونَ رَافِعِي أَيْدِيهِمْ إِلَى السَّمَاءِ، ثُمَّ اتَّفَقَا، فَقَالَ: "لَيَنْتَهِيَنَّ رِجَالٌ يَشْخَصُونَ أَبْصَارَهُمْ إِلَى السَّمَاءِ". قَالَ مُسَدَّدٌ فِي الصَّلَاةِ: "أَوْ لَا تَرْجِعُ إِلَيْهِمْ أَبْصَارُهُمْ".

**ترجمه:** د جابر بن سمرة رضي الله عنه نه روايت دې. عثمان وئيلي دي. هغه وايي: داخل شو رسول الله ﷺ مسجد ته، په هغې کښې ئې خلق وليدل چې مونځ ئې کولو لاسونه ئې اسمان ته اوچت کړي وو، بيا دواړه متفق شوي دي: خامخا منع دې شي سړي چې نيغې کړي ئې دي سترګې خپلې اسمان ته. وئيلي دي مسدد په مانځه کښې. او يا به واپس نه شي دوی ته نظرونه د دوی.

**تشريح: قوله:** قال عثمان قال دخل رسول الله ﷺ المسجد فراى فيه ناسا يصلون رافعي ايديهم الى السماء ثم اتفقا: په دې حديث کښې د مصنف دوه استاذان دي مسدد او عثمان، لينتهين، نه تر آخره پورې الفاظ د دواړو استاذانو مشترک دي او د حديث د شروع حصه صرف د عثمان د روايت الفاظ دي او په شروع کښې مسدد څه وئيلې دي، وئيلې دي او که نهٔ دي وئيلي، دا دلته نهٔ دي مذکور.

## د حديث په مضمون کښې د عدم ربط قوي اشکال او هغې جواب

د حديث مضمون دا دې چه يو ځل حضور ﷺ جوماتي ته داخل شو دوئ ځنې خلق اوليدل چه هغوی د مانځه په حالت کښې رفع يدين الى السماء کونکې وو نو په دې باندې حضور ﷺ اوفرمائيل، يا خو دې منع شي هغه خلق څوک چه خپل مخونه آسمان طرف ته پورته کوی ګينې د دوئ نظرونه به واپس دوئ ته رانهٔ شي يعنی سلب به کړې شي (²)

(**اشکال**) دلته دا اشکال دې چه ددې حديث په دواړو جملو يعنی شرط او جزاء کښې مناسبت او مطابقت څهٔ دې ځکه چه د صحابه کرام رضى الله عنهم چه کوم فعل مذکور دې هغه رفع ايدى الى السماء دې او حضور ﷺ وعيد فرمائی په رفع بصر الى السماء باندې نو دې سره ددې څهٔ جوړ دې؟

د دې دوه جوابونه کيدې شي:

(**اول جواب**) اول خو دا چه په دې حديث کښې يو راوی نه اختصار اوشو اختصار مُخل. او هغه دا چه غالبًا په روايت کښې به داسې وو، فرای فيه ناسا يصلون رافعی ايديهم و

---

¹): صحيح مسلم/الصلاة ٢٦ (٤٣٠)، سنن النسائي/ السهو ٥ (١١٨٥)، (تحفة الأشراف: ٢١٢٨)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٦٨ (١٠٤٥)، مسند احمد (٥/١٠٨) (صحيح)

²) او بعضې شراحو ددې حديث مطلب دا بيان کړې دې چه مونځ د مؤمن معراج او د الله تعالى د تجلی محل دې په مونځګذار باندې په مانځه کښې د آسمان د طرف نه د انوارو نزول کيږی نو په داسې حالت کښې پورته طرف ته کتلو سره نظر ته د نقصان رسيدلو او د نظر د خرابيدلو ويره ده لکه څنګه چه نمر طرف ته کتل مضر دی.

ابصارهم الی السماء، لکه چه د دینه په وړاندې روایت کښې راروان دی، راوی اختصار اوکړو او صرف یو جزء ئې ذکر کړو او د حضور ﷺ د طرف نه وعید په دې دویم جزء باندې دې کوم چه دهٔ حذف کړې دې،

(دویم جواب) او یا به دا اووئیلې شی چه دلته خلط بین الحدیثین شوې دې روای یوه حصه ددې حدیث اغستې ده او دویم حصه ئې د بل حدیث نه اغستې ده.

## (په مونځ کښې آسمان ته د نظر اوچتولو حکم)

د دینه پس دا ایزده کول پکار دی چه د مانځه په حالت کښې پورته کتل د جمهورو علماء په نزد مکروه دی حرام نهٔ دی ګو وعید په دې باره کښې شدید دې او ابن حزم ظاهری په دې کښې مبالغه کړې ده هغه وائی چه داسې کولو سره مونځ فاسدیږی.

[۹۱۳] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، أَنَّ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهُمْ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا بَالُ أَقْوَامٍ يَرْفَعُونَ أَبْصَارَهُمْ فِي صَلَاتِهِمْ" فَاشْتَدَّ قَوْلُهُ فِي ذَلِكَ، فَقَالَ: "لَيَنْتَهُنَّ عَنْ ذَلِكَ أَوْ لَتُخْطَفَنَّ أَبْصَارُهُمْ".

**ترجمه:** د قتادة نه روایت دې بیشکه انس بن مالک دوی ته حدیث بیان کړې دې، هغه وئیلی دی چې رسول الله ﷺ ویلی دي: څه حال دی د داسې قومونو چې اوچتوی سترګې خپلې په مونځ خپل کښې. نو سخته شوه وینا د هغه په دی کښې ویی وئیل: خامخا منع دې شی دوی د دغې نه او یا به وتختول شی نظرونه د دوی.

**تشریح: قوله:** لینتهینّ عن ذالك او لتخطفن ابصارهم:

دا دواړه دمضارع مجهول بانون تاکید ثقیله صیغې دی یعنی یا خو دی بالضرور بچ شی ددې حرکت نه ګینی نظرونه به ئې واغستلې شی.

[۹۱۴] (²) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي خَمِيصَةٍ لَهَا أَعْلَامٌ، فَقَالَ: "شَغَلَتْنِي أَعْلَامُ هَذِهِ اذْهَبُوا بِهَا إِلَى أَبِي جَهْمٍ وَأْتُونِي".

**ترجمه:** د عائشې ﷺ نه روایت دې، هغې ویلی دي: مونځ وکړو رسول الله ﷺ په یو څادر کښې چې هغې نقشې وې، هغه وفرمائیل: زه ددې نقشو مشغوله کړم، دا وېسئ ابو جهم ته، او راوړئ څادر د هغه انبجانې.

**تشریح: قوله:** فقال شغلتنی اعلام هذه اذهبوا بها الی ابی جهم وایتونی بانبجانیته:

ابوجهم یو صحابی دی د چا نوم بعضې وائی چه عبید دې یا عامر بن حذیفه، هغوی د حضور ﷺ په خدمت کښې یو ګلدار څادر هدیه کړې وو حضور ﷺ هغه غوسنلو او مونځ

---

¹): صحيح البخاري/الأذان ٩٢ (٧٥٠)، سنن النسائي/السهو ٩ (١١٩٤)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٦٨ (١٠٤٤)، (تحفة الأشراف: ١١٧١٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠٩/٣، ١١٢، ١١٥، ١١٦، ١٤٠، ٢٥٨)، سنن الدارمي/الصلاة ٦٧ (١٣٣٩) (صحيح)

²): صحيح البخاري/الصلاة ١٤ (٣٧٣)، والأذان ٩٣ (٧٥٢)، واللباس ١٩ (٥٨١٧)، صحيح مسلم/المساجد ١٥ (٥٥٦)، سنن النسائي/القبلة ٢٠ (٧٧٢)، سنن ابن ماجه/اللباس ١ (٣٥٥٠)، (تحفة الأشراف: ١٦٦٣٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ١٨ (٦٧)، مسند احمد (٣٧/٦، ٤٦، ١٧٧، ١٩٩، ٢٠٨)، ويأتي هذا الحديث في اللباس (٤٠٥٣) (صحيح)

ئې اوکړو او چه د مونځ نه فارغ شو نو سمدستي ئې کوز کړو او وئې فرمائيل چه ددې ګل کارئ زۀ خپل ځان طرف ته مشغول کړم او وئې فرمائيل دا ابوجهم نه يوسئ او د هغۀ نه انبجانيه يعنی ساده څادر راوړئ دويم څادر حضور ﷺ دې دپاره راغوښتلې وو چه د هديه کونکی زړۀ مات نۀ شی.

انبجانيه کښې همزه باندې فتحه او کسره دواړه جائز دی انبجان يو موضع دې دا هغې طرف ته نسبت دې، امام بخاری رحمه الله هم دې حديث لره په باب الالتفات فی الصلوة کښې ذکر کړې دې.

## يو اشکال او جواب

دلته دا سوال کيږی چه ډير واقعات د صحابه کرامو او اولياء د سيرت په کتابونو کښې داسې ملاويږی چه دوئ ته د مانځه په حالت کښې داسې مشغولتيا شوې وه چه د بل کوم څيز طرف ته ئې قطعا التفات نۀ کيدو تر دې چه د هغوی د بدن نه غښی اوخکلې شوې دې او هغوی ته ددې احساس نۀ دې شوې نو د حضور ﷺ په مانځه کښې دا اعلام خميصه څرنګه مؤثر شو.

ددې جواب دا دې چه دا اشکال بظاهر د ابوداؤد دروايت په الفاظو باندې کيدې شی ځکه چه په دې کښې شغلتنی مذکور دې، په نورو کتابونو د حديث کښې الفاظ په بل شان سره دی په هغې باندې دا اشکال نۀ واقع کيږې چنانچه د بخاری الفاظ دی. اخاف ان تفتنی، د دېنه معلومه شوه چه حضور ﷺ لره دې اعلام نۀ وو مشغول کړې بلکه حضور ﷺ صرف ددې ويره محسوس کړې وه، دغه شان د مؤطا امام مالك لفظ دې، فكاد يفتنی،

او يو جواب زما په پوهه کښې دا راځی چه ددې حديث د تاؤيل څه حاجت نشته دې بلکه حديث په خپل ظاهر باندې دې او ددې منشاء نقص نۀ دې بلکه کمال دې هغه دا چه د حضور ﷺ باطن او قلب انور د اغيارو او د غير حق نه دومره پاك صفا او شفاف وو چه په هغې کښې معمولی نه معمولی تغير هم محسوس کيدو لکه چه يو کاغز ډير صفا او سپين وی نو په هغې باندې لږ خيرې هم محسوس کيږی په خلاف د رنګدار کاغذ نه چه په هغې باندې د معمولی نښې معلومات هم نۀ کيږی، زۀ په دې باندې ډير زيات خوشحاله شوم چه روستو ما ته دا مضمون د علامه سندهی [1] په کلام د نسائی په حاشيه کښې هم ملاؤ شو او هغوی هم دغه شان خبره ددې حديث په ضمن کښې ليکلې ده، په کوم کښې چه دا دی چه يو ځل حضور ﷺ د صبا په مانځه کښې سورة روم لوستلو او حضور ﷺ په تلاوت کولو کولو کښې بنديدلو نو چه حضور ﷺ د مانځه نه فارغ شو نو وئی فرمائيل، مابال اقوام يصلون معنا لا يحسنون الطهور فانما يلبس علينا القرآن اولئك،.( [2]

[1] حيث كتب قوله شغلتني اعام هذه، هذا مبني علي ان القلب قد بلغ من الصفا من الاغيار الغاية حتي يظهر فيه ادني شئ يظهر لك ذلك اذا انظرت الي ثوب بلغ في البياض الغاية..الخ.

[2] يعنی کوم خلق چه په ښۀ طريقې سره اودس نۀ کوی او راځی د داسې خلقو د وجه نه زمونږ په مونځونو کښې خلل واقع کيږی)

[٩١٥](١)حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ يَعْنِي ابْنَ أَبِي الزِّنَادِ، قَالَ: سَمِعْتُ هِشَامًا يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: وَأَخَذَ كُرْدِيًّا كَانَ لِأَبِي جَهْمٍ، فَقِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، الْخَمِيصَةُ كَانَتْ خَيْرًا مِنَ الْكُرْدِيِّ.

**ترجمه**: د ابن ابی الزناد نه روایت دې هغه وئيلی دي: ما اوريدلی دی د هشام نه هغه حديث بيان کړې دې د خپل پلار نه، او هغه د عائشې نه، په دې خبر سره، هغه ووئيل: او واپی خستلو کردي څادر چې د ابو جهم وو، هغه ته ووئيل شول: اې د الله رسوله! هغه کپړه غوره وه ددې کردي څادر نه.

## باب الرُّخْصَةِ فِي ذَلِكَ

### باب دې په بيان د رخصت په دې کې

يعنی د نظر فی الصلاة اجازت او ګنجائش،

[٩١٦](٢)حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ يَعْنِي ابْنَ سَلَّامٍ، عَنْ زَيْدٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا سَلَّامٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي السَّلُولِيُّ هُوَ أَبُو كَبْشَةَ، عَنْ سَهْلِ ابْنِ الْحَنْظَلِيَّةِ، قَالَ: ثُوِّبَ بِالصَّلَاةِ، يَعْنِي صَلَاةَ الصُّبْحِ، فَجَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُصَلِّي وَهُوَ يَلْتَفِتُ إِلَى الشِّعْبِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَانَ أَرْسَلَ فَارِسًا إِلَى الشِّعْبِ مِنَ اللَّيْلِ يَحْرُسُ.

**ترجمه**: د زيد نه روايت دې، بيشکه هغه اوريدلی دی د سلام نه، هغه وئيلی دي: ماته حديث بيان کړې دې سلولی چې هغه ابو کبشه دی د سهل بن حنظله نه، هغه وئيلی دي: تثويب وکړې شو د مانځه لپاره. يعنی د سحر مانځه له. شروع شو رسول الله ﷺ چې مونځ ئې کولو او هغه کتل درې ته. وئيلی دی ابوداود: او وو رسول الله ﷺ چې لېږلی ئې وو يو سور درې ته د شپې نه چې څوکيداريې کوله.

**تشريح**: **قوله**: عن سهل بن الحنظلية قال ثوب بالصلوة يعنى صلوة الصبح فجعل رسول الله ﷺ يصلى و هو يلتفت الى الشعب —

### د حديث مضمون

د يو ځل خبره ده چه د صبا د مانځه دپاره اقامت وئيلې کيدو بلکه حضور ﷺ مونځ هم شروع کړې وو د دی باوجود هم حضور ﷺ مخامخ غر طرف ته بيا بيا کتل، امام ابوداؤد په خپله ددې حديث په شرح کښې وړاندې فرمائی چه حضور ﷺ په يو سفر کښې څوك اس باندې سور يو غر طرف ته ليږلې وو د شپې د قافلې د څوکيدارئ او پهره ورکولو دپاره، دا روايت به مفصلا په کتاب الجهاد باب فضل الحرس په ذيل کښې راشی.

حضور ﷺ په سفر کښې د هغه منزل نه کوم ځائې کښې چه قافله ايساره وه د شپې څوکيداری کونکې يو صحابی د چا نوم چه انس بن مرثد الغنوی دې، مخامخ غر باندې د شپې تيرولو دپاره ليږلې وو په صبا کيدو باندې حضور ﷺ د هغه د واپسئ په انتظار وو حضور ﷺ د صحابه کرامو نه به هم پوښتنه کوله او په خپله به ئې هم بيا بيا هغه غر طرف

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٤٠٣، ١٧٠٢٣)، ويأتي هذا الحديث في اللباس (٤٠٥٢)، (حسن)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٦٥١) (صحيح)

ته نظر پورته کولو او کتل به ئې تر دې چه په مانځه کښې هم دوئ يو څل نيم هغه طرف ته اوکتل، نو ځکه مصنف په دې حديث باندې باب الرخصة فی ذالك قائم کړو چه ديني مصلحت او د خپل مسلمان وررور په خيال او فکر کښې که په مانځه کښې هم د التفات نوبت راشي نو څه باك نشته دې بلکه عين مصلحت دې.

په اصل کښې حضور ﷺ خو ددې جهادونو په سفر کښې صحابه کرامو سره د سپه سالار او کمانډر په حيثيت سره وو اوس د فوج په مصالحو باندې نظر او د هغوی خيال او فکر د کمانډر دفرائضي منصبی نه دی، دغه شان د دېنه دا هم معلومه شوه چه دا کمال دې چه د کوم وخت او محل کوم مقتضی او حق دې هغه ادا کړې شی نۀ دا چه سړې هر وخت بس په خپله بزرګئ کښې مشغول وی.

## بَابُ الْعَمَلِ فِي الصَّلَاةِ

### باب دې په بيان د کارکې په مانځه کې

يعنی کوم عمل چه د اعمالو د مانځه د جنس نه نۀ وی، ظاهره ده چه هغه په مانځه کښې جائز کيدل نۀ دی پکار، اوس دا چه په دې کښې څۀ ګنجائش شته او که نۀ نو ددې ضابطه فقهاؤ دا ليکلې ده که هغه عمل قليل دې نو جائز دې او کثير دې نو جائز نۀ دې او مفسد د مانځه دې.

### په عمل قليل او کثير کښې فرق

اوس دا چه د قلت او کثرت معيار څۀ دې يو قول کښې دا دې چه په کوم کار کښې د دواړو لاسونو د استعمال ضرورت پيښ شی هغه کثير دې او کوم چه په يو لاس سره کيدې شی هغه ته قليل دې دپاره وئيلې شوې دې که په مانځه کښې يو سړې په خپل قميص کښې غوټه اولګوی نو دا کار چونکه په دواړو لاسونو سره د کولو دې نو ځکه مونځ به فاسد شی او که غوټه پرانيځی نو فاسد به نۀ وی، او دويم قول دا دې چه کوم عمل داسې وی چه هغې کونکی طرف ته اوکتلې شی او ددې خبرې يقين اوشی چه دا سړې په مانځه کښې نۀ دې نو هغه کثير دې او کوم چه داسې نۀ وی هغه قليل دې او هم دا قول أصح دې، دغه شان ددې مسئلې په تفريع کښې ليکلې دی که کومه ښځه په مانځه کښې خپل بچې پورته کړی او پئی ورله ورکړی نو مونځ به فاسد شی د عمل کثير د وجه نه او که صرف په غيږ کښې ئې پورته کړی نو فاسد به نۀ وی.

[۹۱۷]([۱]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُصَلِّي وَهُوَ حَامِلٌ أُمَامَةَ بِنْتَ زَيْنَبَ بِنْتِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَإِذَا سَجَدَ وَضَعَهَا، وَإِذَا قَامَ حَمَلَهَا".

**ترجمه:** د ابو قتادة نه روايت دې بيشکه رسول الله ﷺ وو چې مونځ ئې کولو او هغه

[۱]: صحيح البخاري/الصلاة ۱۰۶ (۵۱۶)، والأدب ۱۸ (۵۹۹۶)، صحيح مسلم/المساجد ۹ (۵۴۳)، سنن النسائي/المساجد ۱۹ (۷۱۲)، والإمامة ۳۷ (۸۲۸)، والسهو ۱۳ (۱۲۰۵)، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۲۴)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/قصر الصلاة ۲۴(۸۱)، مسند احمد (۲۹۵/۵، ۲۹۶، ۳۰۳، ۳۰۴، ۳۱۰، ۳۱۱)، سنن الدارمي/الصلاة ۹۳(۱۳۹۳) (صحيح)

باروونکي وو د امامة چې لور د زینب وه چې هغه لور د رسول الله ﷺ ده، چې کله به ئې سجده وکړه نو کینوله به ئې، او چې کله به اوچت شو نو وابه ئې خسته.

**تشریح: قوله:** خرج علینا رسول الله ﷺ یحمل أمامة بنت ابی العاص بن الربیع.. :

## د حدیث شرح

دا یو مشهور حدیث دی کوم چه په صحیحینو او سنن ټولو کښې مذکور دې هغه دا چه د حضور ﷺ د ټولو نه لویه لور حضرت زینب رضی الله عنها د چا خاوند ابوالعاص بن الربیع دي د دوئ وړه لور د چا نوم چه امامه وو هغهٔ به بعض اوقات حضور ﷺ په خپلو اوږو باندې کینوله او مونځ به ئې کولو کله به چه رکوع او سجدې ته تلو نو هغه به ئې کوزه کړه او کله به چه اودریدلو نو بیا به ئې پورته کوله ددې ماشومې دمور یعنی حضرت زینب رضی الله عنها وفات د حضور ﷺ په ژوند په اتمه هجرئ کښې شوې وو غالبًا دا په غیرو کښې د اغستلو قصه د هغه وخت ده چه حضور ﷺ به ددې ماشومې د دلدارئ او ساتنې په طور باندې داسې کول، یا د بیان د جواز دپاره چه خلقو ته دا مسئله معلومه شی چه دا مفسد د صلوة نهٔ دې.

[۹۱۸]()حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ يَعْنِي ابْنَ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ الزُّرَقِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا قَتَادَةَ، يَقُولُ: بَيْنَا نَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ جُلُوسٌ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْمِلُ أُمَامَةَ بِنْتَ أَبِي الْعَاصِ بْنِ الرَّبِيعِ وَأُمُّهَا زَيْنَبُ بِنْتُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهِيَ صَبِيَّةٌ يَحْمِلُهَا عَلَى عَاتِقِهِ، "فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهِيَ عَلَى عَاتِقِهِ يَضَعُهَا إِذَا رَكَعَ، وَيُعِيدُهَا إِذَا قَامَ حَتَّى قَضَى صَلَاتَهُ يَفْعَلُ ذَلِكَ بِهَا".

د عمرو بن سلیم الزرقی نه روایت دي، بیشکه هغه اوریدلی دی د ابو قتادة نه، هغه به وئیل: مونږ په مسجد کښې ناست وو، راووتلو مونږ ته رسول الله ﷺ چې اوچته کړې ئې وه امامة لور د ابو العاص بن الربیع، او مور د هغه زینب وه لور د رسول الله ﷺ وه، او هغه ماشومه وه چې هغه ئې بار کړې وه په خپل څټ باندې، نو مونځ وکړو رسول الله ﷺ او هغه د هغه په څټ باندې وه، کینوله به ئې چې کله به ئې رکوع کوله، او واپس به ئې اوچتوله چې کله به اوچت شو، تردې چې مونځ ئې پوره کړو او داسې ئې کول د هغې سره.

## حمل الصبی فی الصلوة

اوس دا چه فقهاء په دې کښې څهٔ فرمائی نو د جمهورو علماؤ او ائمه ثلاثه په نزد باندې خو داسې ده چه ضرورة داسې کولې شی مفسد د صلوة نهٔ دې خو مالکیه علماء په دې کښې ډیر متردد دی ځکه چه هغوی دا عمل کثیر ګنړی بیا د هغوی نه په دې کښې مختلف توجیهات منقول دی، یوه توجیه خو دا شوې ده چه دا د نفل مونځ قصه ده خو څنی نورو علماؤ ددې تردید کړې دې ځکه چه د مسلم په یو روایت کښې ددې تصریح ده چه په دغه وخت کښې حضور ﷺ امامت فرمائیلو نو ظاهره ده چه فرض مونځ به وی په نفل مونځ کښې د حضور ﷺ امامت معهود نهٔ دې، او یو توجیه دا کړې شوې ده چه دوئ ضرورة د

---

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۲٤) (صحیح)

مجبورئ په درجه کښې داسې کړې دی په دغه وخت کښې ددې ماشومې څوک خيال ساتلو واله نهٔ وو، او يو توجيه د امام مالك رحمه الله نه دا منقول ده چه دا حديث منسوخ دې د، تحريم العمل فی الصلوة نه وړاندې قصه ده.

امام نووی رحمه الله دا ټول توجيهات باطل ګرزولی دی هغه فرمائی چه حديث ددې په جواز کښې صريح او صحيح دې او دا د قواعد شرعيه نه خلاف هم نهٔ دې ځکه چه انسان پاك دی او کوم نجاست چه د دهٔ په ګيډه کښې دننه دې هغه په خپل معدن کښې د کيدو د وجه نه معفو عنه دې هغه فرمائی چه ددې حديث نه دا هم معلومه شوه چه د ماشومانو جامې او د دوئ بدنونه ټول په طهارت باندې محمول دی ترهغه وخته پورې چه ددې نجاست ثابت نهٔ شی، وفی الدر المختار حمل الصبی فی الصلوة مکروه، او هغوی ددې حديث دا جواب ورکړې دې چه دا منسوخ دې،د ان فی الصلوة لشغلا، حديث په بناء باندې، صاحب بدائع دې حديث لره په عذر او حاجت باندې محمول کړې دې چه د مجبورئ په حالت کښې داسې کولې شی.

د أمامه په باره کښې ليکلې شوې دی چه حضرت فاطمه رضی الله عنها چه د دی تور وه د هغې د وصيت مطابق د هغې د وفات نه پس حضرت علی رضی الله عنه د أمامه رضی الله عنها سره وادهٔ کړې وو خو د دينه د حضرت علی رضی الله عنه څه اولاد نشته.

**تنبيه**: د حضور ﷺ بيا بيا د أمامه په مانځه کښې په غيږ کښې اغستلو او بيا کوزولو کښې چه کوم عمل کثير موندلو اشکال کيږی د هغې جواب زمونږ مشائخ دا ورکوی چه په اصل کښې أمامه د حضور ﷺ سره ډير عادت وه حضور ﷺ به چه معمولی اشاره او فرمائيله نو هغه به فورا غيږ نه کوزيدله او هم دغه شان بيا به روستو په معمولی اشارې باندې غيږ ته ختله.

[۹۱۹](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمُرَادِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ مَخْرَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ الزُّرَقِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا قَتَادَةَ الْأَنْصَارِيَّ، يَقُولُ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُصَلِّي لِلنَّاسِ، وَأُمَامَةُ بِنْتُ أَبِي الْعَاصِ عَلَى عُنُقِهِ، فَإِذَا سَجَدَ وَضَعَهَا". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلَمْ يَسْمَعْ مَخْرَمَةُ مِنْ أَبِيهِ إِلَّا حَدِيثًا وَاحِدًا.

**ترجمه**: د عمرو بن سليم الزرقی نه روايت دې هغه وئيلی دي: ما اوريدلی دی د ابو قتادة الانصاری نه هغه وئيل: ما وليدلو رسول الله ﷺ چې مونځ ئې کولو خلقو ته او امامة لور د ابو العاص د هغه په څټ وه، چې کله به ئې سجده وکړه نو کينوله به يې. وئيلی دی ابوداود: نه دی اوريدلی مخرمه د خپل پلار نه مګر يو حديث

[۹۲۰](٢)حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ الزُّرَقِيِّ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ صَاحِبِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: بَيْنَمَا نَحْنُ نَنْتَظِرُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلصَّلَاةِ فِي الظُّهْرِ أَوِ الْعَصْرِ، وَقَدْ دَعَاهُ بِلَالٌ لِلصَّلَاةِ، إِذْ خَرَجَ إِلَيْنَا وَأُمَامَةُ بِنْتُ أَبِي الْعَاصِ بِنْتُ ابْنَتِهِ عَلَى عُنُقِهِ، "فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مُصَلَّاهُ وَقُمْنَا خَلْفَهُ وَهِيَ فِي مَكَانِهَا

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٢١٢٤) (صحيح)
(٢): تفرد أبو داود بهذا السياق، وانظر أصله في رقم (٩١٨)، (تحفة الأشراف: ١٢١٢٤) (ضعيف)

الَّذِي هِيَ فِيهِ، قَالَ: فَكَبَّرَ، فَكَبَّرْنَا، قَالَ: حَتَّى إِذَا أَرَادَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَرْكَعَ أَخَذَهَا فَوَضَعَهَا، ثُمَّ رَكَعَ وَسَجَدَ حَتَّى إِذَا فَرَغَ مِنْ سُجُودِهِ، ثُمَّ قَامَ أَخَذَهَا فَرَدَّهَا فِي مَكَانِهَا، فَمَا زَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ بِهَا ذَلِكَ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ حَتَّى فَرَغَ مِنْ صَلَاتِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

**ترجمه**: د ابو قتادة نه روايت دې، چې صاحب د رسول الله ﷺ دی هغه وئيلی دي: مونږ د رسول الله ﷺ انتظار کولو د ماسپخين د مانځه دپاره، او يا د مازيګر دپاره، او بلال ورته د مانځه دعوت ورکړی وو، کله چې راووتلو مونږ ته امامة لور د ابو العاص لور د لور د هغه د هغه په څټ وه، ودريدلو رسول الله ﷺ خپل مانځه ځائې کښې او مونږ د هغه نه وروسته ودريدلو، او هغه په خپل هغه ځائې باندې وه چې هغه پکې وه. هغه وايي: چې تکبير ووېلو نو مونږ هم تکبير ووېلو. هغه وايي: تردې چې رسول الله ﷺ اراده وکړه چې رکوع وکړي، هغه ئې واخسته او کينوله، بيا رکوع او سجده وکړه، تردې چې د سجدې نه فارغ شو، بيا پاڅيدلو هغه ئې راوخسته او خپل ځائې ته ئې واپس کړه، هميشه وو رسول الله ﷺ چې دغسې ئې کول د هغې سره په هر رکعت کښې تردې چې فارغ شو د خپل مونځ نه.

[۹۲۱] ([1]) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ ضَمْضَمِ بْنِ جَوْسٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اقْتُلُوا الْأَسْوَدَيْنِ فِي الصَّلَاةِ: الْحَيَّةَ وَالْعَقْرَبَ".

**ترجمه**: د ابو هريره رضی الله عنه نه روايت دې هغه وئيلی دی، فرمائيلی دی رسول الله ﷺ: دوه تور ووژنئ په مانځه کښې: مار، او لړم.

**تشريح**: **قوله**: اقتلوا الاسودين فی الصلوة...:

اسودين يعنی مار او لړم او هم داسې بل موذی ځناور لره په مانځه کښې په يو کرت وهلو يا په دوو ځلو وهلو سره جائز دی مفسد د مانځه نۀ دی او نۀ مکروه دی ځکه چه شارع علیه السلام ددې اجازت ورکوی بلکه د حضور ﷺ نه په دې باندې عملا هم دا ثابت دی، يو ځل کله چه حضور ﷺ مونځ کولو يو لړم دوئ لره اوچيچل نو حضور ﷺ هغه په خپلې پښې سره مړ کړو او د مانځه نه فارغيدو نه پس ئې اوفرمائيل، لعن الله العقرب لا تبالی نبيا و لا غيره.

## مذاهب ائمه

اوس که په دې وژلو کښې عمل کثير اومونډلې شو نو په دې صورت کښې دحنفيه شافعيه په نزد باندې به مونځ فاسد شی او په منهل کښې ليکلې دی چه د حنابله د ظاهر کلام نه دا معلوميږی چه د دوئ په نزد باندې عمل قليل او کثير کښې فرق نشته دې بلکه مطلقا جائز دې، هم داسې په احنافو کښې دصاحب مبسوط علامه سرخسی رحمه الله هم دا رائې ده، او دريم مذهب په دې کښې د ابراهيم نخعی وغيره دې د دوئ په نزد باندې د اسودينو وژل په مانځه کښې مکروه دی.

---

[1] ): سنن الترمذي/الصلاة ۱۷۰ (۳۹۰)، سنن النسائي/السهو ۱۲ (۱۲۰۳)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱٤٦ (۱۲٤٥)، (تحفة الأشراف: ۱۳٥۱۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۳۳، ۲٥٥، ۲۷۳، ۲۷٥، ۲۸٤، ٤۹۰)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۷۸ (۱٥٤٥) (صحيح)

[۹۲۲]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَمُسَدَّدٌ، وَهَذَا لَفْظُهُ، قَالَ: حَدَّثَنَا بِشْرٌ يَعْنِي ابْنَ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا بُرْدٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَحْمَدُ: يُصَلِّي وَالْبَابُ عَلَيْهِ مُغْلَقٌ فَجِئْتُ فَاسْتَفْتَحْتُ، قَالَ أَحْمَدُ: فَمَشَى، فَفَتَحَ لِي، ثُمَّ رَجَعَ إِلَى مُصَلَّاهُ". وَذَكَرَ أَنَّ الْبَابَ كَانَ فِي الْقِبْلَةِ.

**ترجمه**: د عائشي رضي الله عنها نه روايت دې هغې ويلي دي: وو رسول الله ﷺ. وئيلي دي احمد. مونځ ئې كولو او دروازه ورپسې بنده وه، زه راغلم طلب د كولاوولو مې وكړو. وئيلي دي احمد. لاړلو او ماته ئې كولاو كړه، بيا خپل د مانځه ځائې ته راواپس شو، او هغه ذكر كړې دې چې دروازه د قبلې په طرف كښې وه.

**تشريح**: **قوله**: قوله – كان رسول الله ﷺ يصلي والباب عليه مغلق فجئت فاستفتحت:

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه د يو ځل واقعه ده چه حضور ﷺ په حجره شريفه كښې مونځ كولو او د حجرې شريفې دروازه دغه وخت د دننه نه بند وه نو په داسې وخت كښې چه حضور ﷺ په مانځه كښې مشغول وو زهٔ د بهر طرف نه راغلم او ما استفتاح يعنی دروازه پرانستلو دپاره اوټكوله نو حضور ﷺ يو دوه قدمه واغستل او دروازه ئې پرانستله او بيا د خپل مونځ كولو ځائې ته راغلو، فقهاؤ ليكلې دی چه يو دوه قدمه عمل كثير نهٔ دې خو پرله پسې اقدام يعنی په يو ركن كښې مسلسل درې قدمونه تلل دا عمل كثير او مفسد د صلوة دې صرف يو قدم دوه وړاندې تللو سره مونځ نهٔ فاسديږی.

## يو قوی اشكال او د هغې تشريح

تر دې ځائې پورې خو په حديث كښې څه خبره د اشكال قابله نهٔ ده وړاندې يوه جمله راځی، و ذكر ان الباب كان فی القبلة، يعنی عروه دا هم نقل كړې دی چه د حجرې شريفې دروازه د قبلې په جانب وه په دې جمله باندې غټ اشكال كيږی د اشكال توضيح دا دې چه د اهل مدينه قبله د جنوب په جانب ده ځكه چه مدينه د مكې نه د شمال په جانب ده او د حضرت عائشه رضی الله عنها حجره د كومې چه په حديث كښې ذكر دې هغه د جومات سره بالكل متصل د جومات كس طرف د مشرق په جانب كښې واقع ده او د حجرې دروازه د جومات په طرف باندې مغرب طرف كښې واقع ده د حجرې شريفې دپاره د غربی دروازې كيدل مشهور او معروف دی او يو قول دا هم دې چه په دې كښې يو دروازه بله هم وه د شمال په جانب باندې كوم طرف ته چه ملك شام دې نو ځكه دې ته باب شامی هم وائی نو گويا دروازې دوه شوې، غربی او شمالی، دا غربی دروازه خو ښی طرف ته واقع شوه او شمالی شا طرف ته نو په دې كښې يوه دروازه هم د قبلې په جانب يعنی جنوبی نشته دې حال دا دې چه دلته په روايت كښې دا دی، ان الباب كان فی القبلة

په هر حال كښې دا خبره د، ماهو المشهور فی الروايات و ما ثبت فی كتب التاريخ و السير، خلاف ده، دا روايت چونكه په ترمذی كښې هم دې.

[1]): سنن الترمذي/الصلاة ۳۰۴ (الجمعة ٦٨)، (٦٠١) سنن النسائي/السهو ١٤ (١٢٠٧)، (تحفة الأشراف: ١٦٤١٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١/٦، ١٨٣، ٢٣٤) (حسن)

## د حضرت ګنګوهي رحمه الله توجيه

نو څکه د حضرت ګنګوهي رحمه الله نه ددې جواب په الکوکب الدری کښې دا منقول دې چه د في القبلة مطلب دا نۀ دې چه د حجرې شريفې چه کوم ديوال د قبلې په جانب دې په هغې کښې دا دروازه وه چه دا اشکال واقع شي بلکه د في القبلة مطلب دې وړاندې طرف ته، يعنی دروازه خو د حجرې شريفې ښی طرف ته په غربی ديوال کښې وه لکه څنګه چه مشهور ده خو هغه د حضور ﷺ د مونځ کولو د ځائی نه وړاندې طرف ته وه د کومې د پرانستلو دپاره چه حضور ﷺ ته وړاندې تلل راغلل او کله چه د دروازې محاذات ته اورسيدلو نو لاس ئې وړاندې کړو او دروازه ئې پرانستله، فالحمد لله اشکال رفع شو.

## د حضرت سهارنپوري رحمه الله توجيه

او دلته په بذل کښې حضرت سهانپوری رحمه الله ددې اشکال يو بله توجيه فرمائيلې ده هغه دا چه مشهوره خو دا ده چه دروازه غربی يا شمالي وه يا دواړه وې خو د بعضې رواياتونه معلوميږی چه د حضرت عائشه رضی الله عنها د حجرې نه وړاندې د قبلې په جانب کښې متصلا د حضرت حفصه رضی الله عنها حجره وه او دوئ دواړه عائشه او حفصه رضی الله عنهما په خپلو خپلو حجرو کښې ناستې وې او د يو بل سره ئې کلام اوخبرې اترې به ئې کولې نو په دې باندې حضرت فرمائی چه داسې خبرې خو هله کيدې شی کله چه د دواړو حجرو په مينځنی ديوال کښې يو دروازه يا کهړکئ کهلاؤ وی په کومې سره چه ددې ځائې خبرې هغه ځائې ته اورسئ نو کيدې شی چه حضرت عائشه رضی الله عنها د هغې کهړکئ د طرف نه راغلې وی کومه چه دغه وخته بند وه حضور ﷺ په مانځه کښې وړاندې شو د (قبلې طرف ته په تللو سره) او دا ئې پرانستله، دا توجيه (د قبلې په ديوال کښې کهړکئ تسليمول) صراحة چرته منقول نۀ دی بلکه د حضرت خپل استنباط دې د کوم دپاره چه د ډيرو کتابونو تتبع کول راغلل. (کما في البذل).

**فائده**: د نسائي او مسند احمد د روايت الفاظ داسې دی، فحشي في القبلة اما عن يمينه او اما عن يساره، ددې لفظونو نه د الکوکب الدری واله توجيه تائيد کيدې شی چه دوازه پرانستلو دپاره حضور ﷺ وړاندې لاړو او کله چه د دروازې په محاذات کښې راغلو نو ښی طرف ته ئې لاس وړاندې کړو کوم طرف ته چه دروازه وه او حضور ﷺ هغه پرانستله، په دې روايت کښې اګر که د راوی شک دې، اما عن يمينه و اما عن يساره، خو صحيح په دې کښې اول (عن يمينه) دې.

## بَابُ رَدِّ السَّلَامِ فِي الصَّلَاةِ

### باب دې په بيان د جواب ورکولو د سلام کې په مانځه کې

يعنی که يو سړې هغه سړی ته سلام اوکړی کوم چه په مانځه کښې وی نو آيا هغه مونځ کونکې دې د سلام جواب ورکړی؟ په دې کښې اولاً خو دا پوهه شئ چه مونځ کونکی ته سلام کول مکروه دی د حنفيه دا مذهب دې او د ائمه ثلاثه په نزد جائز بلا کراهت دې، کما في المنهل.

## مذاهب ائمه

پاتې شوه مسئله د سلام د جواب کولو کومه چه په ترجمة الباب کښې مذکور ده نو په دې کښې ناقلين د مذاهب مختلف دي. دعلامه عينى رحمه الله، حنفيه، شافعيه او حنابله دريواړو په نزد د سلام جواب ورکول په اشارې سره مکروه ليکلي دى او د امام مالک رحمه الله نه دوئ دوه روايتونه نقل کړي دى. کراهت او عدم کراهت، (کذا فى البذل) او صاحب منهل ددې په خلاف دا ليکلي دى چه د سلام رد کول د ائمه ثلاثه په نزد جائز دى(١) او د حنفيه په نزد باندې مکروه دى، او مولانا عبد الحئ صاحب په التعليق الممجد کښې د امام شافعى مذهب استحباب د رد ليکلي دي او د امام احمد ئې دا ليکلي دې چه د دوئ په نزد باندې په فرض او نفل کښې فرق دې يعنى په فرض کښې مکروه او په نفل کښې جائز، او د حنفيه مذهب ئې دا ليکلي دې چه ځنې د دوئ نه د کراهت قائل دى امام طحاوى رحمه الله د دوئ نه دې او هغوى د حضور ﷺ اشاره کومه چه هغوى په مانځه کښې کړې وه په منع عن السلام باندې محمول کړې ده نه په رد السلام باندې، او ځنې حنفيه وائي چه لاباس به.

دغه شان پوهيدل پکار دى چه رد السلام باللسان د ...ا په نزد هم جائز نۀ دې د ائمه اربعه په نزد مفسد صلوة دې البته د ابن المسيب او حسن بصرى په نزد دا هم جائز دې.

[٩٢٣](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ "فَيَرُدُّ عَلَيْنَا"، فَلَمَّا رَجَعْنَا مِنْ عِنْدِ النَّجَاشِيِّ سَلَّمْنَا عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْنَا، وَقَالَ: إِنَّ فِي الصَّلَاةِ لَشُغْلًا.

**ترجمه**: علقمه روايت کوى د عبد الله نه، هغه وايي: وو مونږ چې سلام به مو اچولو په رسول الله ﷺ باندې او هغه به په مانځه کښې وو. هغه به مونږ ته جواب راکولو، هرکله چې مونږ د نجاشى د څوا نه راغلو. مونږ سلام وکړو هغه ته مونږ ته ئې جواب رانه کړو. او هغه وويل: بيشکه مونځ يو کار دى.

**تشريح: قوله**:فلما رجعنا من عند النجاشى سلمنا عليه.. الخ :

عبد الله بن مسعود د اصحاب هجرتينو نه دې يعنى هجرة الى الحبشه بيا هجرة الى المدينه. دغه شان دا هم مشهوره ده چه کومو صحابوُ هجرت الى الحبشه فرمائيلي وو هغوى په دې غلطه اطلاع باندې چه کفار مکه اسلام راوړلو دحبشې واپس راغلي وو کله چه دلته راغلل نو وئې کتل چه دا سې نۀ ده خبر غلط وو بيا دويم کرت حبشه ته واپس لاړل ددې نه پس دى حضراتو د حضور ﷺ د هجرة الى المدينه نه پس هجرة الى المدينه اوکړو، نو ګويا د حبشه نه دوه واپسى شوى، رجوع اول الى مکه او رجوع ثانى الى المدينه.

(١) او قرين د قياس هم دا ده ځکه چه په قول د صاحب منهل کله چه د ائمه ثلاثه په نيز سلام کول جائز دى نو د سلام جواب ورکول هم کيدل پکار دى)

(٢): صحيح البخاري/العمل في الصلاة ٣ (١٢٠١)، ١٥ (١٢١٦)، مناقب الأنصار ٣٧ (٣٨٧٥)، صحيح مسلم/المساجد ٧ (٥٣٨)، ن الكبري / السهو ٩٩ (٥٤٠)، (تحفة الأشراف: ٩٤١٨)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٥٩ (١٠١٩)، مسند احمد (١٧٦/١، ١٧٧، ٤٠٩، ٤١٥، ٤٣٥، ٤٦٢) (صحيح)

## د حديث په شرح کښې دوه قوله او د هغې منشاء

په دې حديث کښې د رجوع نه کومه رجوع مراد ده رجوع الى مکه يا رجوع الى المدينه په دې کښې د شراحو اختلاف دې، دشراح احناف په نزد رجوع الى المدينه مراد دې او د شراح شافعيه وغيره په نزد رجوع الى مکه مراد ده په اصل کښې دا اختلاف په يو بل اختلاف باندې متفرع دې هغه دا چه نسخ الکلام فى الصلاة په مکه کښې شوې وو يا د حضور ﷺ د هجرت الى المدينه نه پس مدينه کښې په قيام کښې شوې وو، شافعيه د اول قائل دى او حنفيه د دويم قول قائل دى.

په دې مضمون باندې تفصيلي کلام اوبحث په ابواب سجود السهو کښې به حديث ذو اليدين د لاندې راشي ځکه چه په حديث ذواليدين کښې کلام فى الصلوة مونډلې شوې وو او ددې باوجود مونځ صحيح ګرځولې شوې وو، نو چونکه کلام فى الصلوة د تحقيق هم دا حديث خاص محل دې نو ځکه حضرت سهانپوري رحمه الله هم په بذل المجهود کښې په دې باندې بحث په دې ځائې کښې فرمائيلې دې، مونږ به هم انشاء الله هم هغه ځائې کښې بيان کړو.

[٩٢٤] ([1]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا عَاصِمٌ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: كُنَّا نُسَلِّمُ فِي الصَّلَاةِ، وَنَأْمُرُ بِحَاجَتِنَا، فَقَدِمْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُصَلِّي، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ السَّلَامَ، فَأَخَذَنِي مَا قَدُمَ وَمَا حَدُثَ، فَلَمَّا قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلَاةَ، قَالَ: "إِنَّ اللَّهَ يُحْدِثُ مِنْ أَمْرِهِ مَا يَشَاءُ، وَإِنَّ اللَّهَ جَلَّ وَعَزَّ قَدْ أَحْدَثَ مِنْ أَمْرِهِ أَنْ لَا تَكَلَّمُوا فِي الصَّلَاةِ". فَرَدَّ عَلَيَّ السَّلَامَ.

**ترجمه**: د عبد الله نه روايت دې هغه وئيلى دې: مونږ به سلام اچولو په مانځه کښې او مونږ به امر کولو په خپلو ضرورتونو، نو زه راغلم رسول الله ﷺ ته او هغه مونځ کولو، ما هغه باندې سلام واچولو ماته ئې د سلام جواب رانه کړو، نو زه مصروف کړم هغه خبرو چې مخکې تېرې شوى وى او کومې چې نوې وې، هرکله چې رسول الله ﷺ مونځ پوره کړو وې وئيل: الله نوى پيدا کوى د خپل کار نه څه چې وغواړې، او بيشکه الله تعالى نوى ئې پيدا کړى دى د خپل کار نه دا خبره چې تاسو په مانځه کښې خبرې مه کوئ. پس واپس ئې کړو ماته جواب د سلام.

**تشريح: قوله**: فاخذني ما قدم و ما حدث: يعنى د حضور ﷺ زما دسلام جواب نۀ ورکولو د وجه نه زما په زړۀ کښې کله کله زاړۀ او کله نوى هر شان خيالات راتلل يعنى سوچ مې کولو چه کيدې شى دوئ دفلانکئ خبرې د وجه نه ناراضه وى يا د فلانکئ خبرې دو جه نه ناراضه شوې وى.

[٩٢٥] ([2]) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، أَنَّ اللَّيْثَ حَدَّثَهُمْ، عَنْ بُكَيْرٍ، عَنْ نَابِلٍ صَاحِبِ الْعَبَاءِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ صُهَيْبٍ، أَنَّهُ قَالَ: مَرَرْتُ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُصَلِّي، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ "فَرَدَّ إِشَارَةً"، قَالَ: وَلَا أَعْلَمُهُ إِلَّا قَالَ: إِشَارَةً بِأُصْبُعِهِ. وَهَذَا لَفْظُ حَدِيثِ قُتَيْبَةَ.

**ترجمه**: د صهيب رضي الله عنه نه روايت دې بيشکه هغه وئيلى دې: زه تېر شوم په رسول الله ﷺ باندې او هغه مونځ کولو، ما سلام وکړو هغه ته، ماته جواب راکړو په اشارې سره. هغه وايي: ماته علم نشته مګر دا چې هغه اشاره وکړه په خپله ګوته باندې. او دا لفظ د حديث د قتيبه دى.

---

[1]: ن /الکبري /السهو ١١٣ (٥٥٩)، (تحفة الأشراف: ٩٢٧٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٧٧، ٤٣٥، ٤٦٣) (حسن صحيح)

[2]: سنن الترمذي /الصلاة ١٥٩ (٣٦٧)، سنن النسائي /السهو ٦ (١١٨٧)، (تحفة الأشراف: ٤٩٦٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه /إقامة الصلاة ٥٩ (١٠١٩)، مسند احمد (٤/٣٣٢)، سنن الدارمي /الصلاة ٩٤ (١٤٠١) (صحيح)

[٩٢٦]([1])حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: أَرْسَلَنِي نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى بَنِي الْمُصْطَلِقِ فَأَتَيْتُهُ وَهُوَ "يُصَلِّي عَلَى بَعِيرِهِ، فَكَلَّمْتُهُ، فَقَالَ لِي بِيَدِهِ هَكَذَا، ثُمَّ كَلَّمْتُهُ، فَقَالَ لِي بِيَدِهِ هَكَذَا، وَأَنَا أَسْمَعُهُ يَقْرَأُ وَيُومِئُ بِرَأْسِهِ، فَلَمَّا فَرَغَ، قَالَ: مَا فَعَلْتَ فِي الَّذِي أَرْسَلْتُكَ؟ فَإِنَّهُ لَمْ يَمْنَعْنِي أَنْ أُكَلِّمَكَ إِلَّا أَنِّي كُنْتُ أُصَلِّي".

**ترجمه**: د جابر ﷺ نه روايت دې هغه وايي: زه د الله نبي ﷺ ولېږم بني المصطلق ته، زه راغلم او هغه مونځ كولو په خپل اوښ باندې ما ورسره خبرې وكړې، هغه ماته اشاره وكړه په لاس باندې داسې، بيا مې ورسره خبرې وكړې، هغه ماته اشاره وكړې په لاس باندې داسې. او ما اوريده هغې لره چې قرأت ئې كولو او اشاره ئې كوله په سر باندې، هركله چې فارغ شو، ويې وئيل: تا څه وكړل د هغې په باره كښې چې ما لېږلى وې؟ بيشكه زه منع كړى نه وم مگر دې چې زه په مانځه كښې وم.

[٩٢٧]([2])حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ عِيسَى الْخُرَاسَانِيُّ الدَّامِغَانِيُّ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ عَوْنٍ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا نَافِعٌ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ، يَقُولُ: خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى قُبَاءَ يُصَلِّي فِيهِ، قَالَ: فَجَاءَتْهُ الْأَنْصَارُ، فَسَلَّمُوا عَلَيْهِ وَهُوَ يُصَلِّي، قَالَ: فَقُلْتُ لِبِلَالٍ: كَيْفَ رَأَيْتَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرُدُّ عَلَيْهِمْ حِينَ كَانُوا يُسَلِّمُونَ عَلَيْهِ وَهُوَ يُصَلِّي؟ قَالَ: "يَقُولُ هَكَذَا: وَبَسَطَ كَفَّهُ، وَبَسَطَ جَعْفَرُ بْنُ عَوْنٍ كَفَّهُ، وَجَعَلَ بَطْنَهُ أَسْفَلَ، وَجَعَلَ ظَهْرَهُ إِلَى فَوْقٍ".

**ترجمه**: نافع وايي د عبد الله بن عمر نه اوريدلي دي هغه به وئيل: راووتلو رسول الله ﷺ قباء ته چې مونځ ئې كولو په هغې كښې. هغه وايي: هغه ته انصار راغله سلام ئې وكړو هغه ته او هغه مونځ كولو. هغه وايي: ما وويل بلال ته: رسول الله ﷺ هغوى ته څنګه جواب وركولو كله چې هغوى به هغه باندې سلام اچولو او هغه په مانځه كښې وو؟ هغه وايي: داسې به اشاره كوله او كولاو به ئې كړو خپل ورغوى. او خور كړو جعفر بن عون خپل ورغوى، او ويې ګرځوله خيټه د هغه لاندې، او شايي بره وه.

**تشريح**: **قوله**: فقلت لبلال كيف رايت رسول الله ﷺ يَرُدُّ عليهم.. الخ : دا وړاندې راغلي دي چه په احاديثو كښې كومه اشاره مذكور ده د هغې په باره كښې يو قول خو دا دې چه دا اشاره درد سلام يعنى د سلام جواب دپاره وه او بعضې دا وائي په كومو كښې چه امام طحاوى هم دي چه دا اشاره دمنع عن السلام دپاره وه چه په مونځ كښې سلام مه كوئ.

[٩٢٨]([3])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا غِرَارَ فِي صَلَاةٍ وَلَا تَسْلِيمٍ". قَالَ أَحْمَدُ: يَعْنِي فِيمَا أَرَى أَنْ لَا تُسَلِّمَ وَلَا يُسَلَّمَ عَلَيْكَ، وَيُغَرِّرُ الرَّجُلُ بِصَلَاتِهِ فَيَنْصَرِفُ وَهُوَ فِيهَا شَاكٌّ.

**ترجمه**: د ابو هريره ﷺ نه روايت دې، هغه روايت كوى د نبي ﷺ نه هغه وئيلي دي: نشته

[1]: صحيح مسلم/المساجد ٧ (٥٤٧)، (تحفة الأشراف: ٢٧١٨)، وقد أخرجه: سنن النسائي/السهو ٦ (١١٩٠)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٥٩ (١٠١٨)، مسند احمد (٣١٢/٣، ٣٣٤، ٣٣٨، ٣٨٠، ٢٩٦)، ويأتي برقم: (١٢٢٧) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ١٥٥ (٣٦٨)، (تحفة الأشراف: ٢٠٣٨، ٨٥١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢/٦) (حسن صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٤٠١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٦١/٢) (صحيح)

نقصان په مانځه او سلام کښې. وئيلی دی احمد. زما خيال دادی چې ته به سلام نه اچوی او په تا باندې به بل څوک سلام نه اچوي، او نقصان کوی سړی په مانځه کښې د مانځه نه فارغ شی او د هغه پکې شک وي.

## شرح حديث او مطابقة الحديث للترجمة

**تشريح: قوله: لا غرار في صلوة.** يعنی په مانځه کښې نقص نۀ دی کيدل پکار، يا خو په اعتبار د کيف مراد دې يعنی خشوع و خضوع، يا په اعتبار د کمية او مقدار سره مثلاً چا ته په مانځه کښې شك پيدا شی چه څلور رکعاته شوې دی يا درې نو بس هغۀ دې بغير د تحری او سوچ نه په دريو رکعاتو باندې سلام اوګرځوی، او بعضو وئيلې دی چه د غرار نه مراد خوب دې.

**قوله: ولا تسليم.. الخ :** دا په دوو طريقو سره لوستلې شئ په نصب سره په دې صورت کښې به عطف وی لا غرار باندې، تقدير د عبارت به داسې وی، لا تسليم فی صلوة، يعنی په مانځه کښې تسليم نۀ دې پکار نۀ دې مونځ ګذار چا ته سلام کوی او نۀ دې بل څوك سړې مونځ ګذار ته سلام کوی په دې صورت کښې دا حديث به ترجمة الباب سره مناسب وی او دويم احتمال دا دې چه ولا تسليم لره مجرور اولوستلې شی په دې صورت کښې ددې عطف به په صلوة باندې وی او تقدير د عبارت به دا وی، لا غرار فی تسليم، يعنی سلام يا ددې په جواب کښې نقص نۀ دې پکار سلام پوره کول پکار دی او ددې جواب هم پوره ورکول پکار دی سلام او جواب دواړه کامل پکار دی.

په دې صورت کښې په ددی حديث ترجمة الباب سره مناسبت نۀ وی، ددې حديث چه امام احمد رحمه الله کومه معنی بيان فرمائيلې ده هغه به اول احتمال لره اخلی او وړاندې چه کوم حديث راروان دې، قال لاغرار فی تسليم و لا صلوة، د دينه د احتمال ثانی تائيد کيږی.

[٩٢٩] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَخْبَرَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي مَالِكٍ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: أُرَاهُ رَفَعَهُ، قَالَ: "لَا غِرَارَ فِي تَسْلِيمٍ وَلَا صَلَاةٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ ابْنُ فُضَيْلٍ عَلَى لَفْظِ ابْنِ مَهْدِيٍّ وَلَمْ يَرْفَعْهُ.

**ترجمه:** د ابو حازم نه روايت دې هغه روايت کوی د ابو هريره رضي، هغه وايي: زما دا ګمان دی چې هغه مرفوع کړی دی، هغه وايي: نشته نقصان په سلام او مونځ کښې. وئيلی دی ابوداود: او ددې روايت کړی دی ابن فضيل په لفظ د ابن مهدی سره، او هغه نه دی مرفوع کړی دی.

## بَابُ تَشْمِيتِ الْعَاطِسِ فِي الصَّلَاةِ

### باب دې په بيان د جواب ورکولو کې پرنجي کونکي ته په مانځه کې

### مذاهب علماء

يعنی د پرنجی کونکی د حمد جواب، که دا جواب په مانځه کښې اوموندلې شی نو د جمهورو په نزد مفسد د صلوة دې ځکه چه په دې کښې تخاطب دې په يرحمك الله کښې کاف د خطاب دې او په مونځ کښې خطاب او کلام ناجائز دې په دې مسئله کښې دمالکيه او امام ابويوسف اختلاف دې د دوئ په نزد مفسد صلوة نۀ دې.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٤٠١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٦١/٢) (صحيح)

یو مسئله دلته کښې دا ده چه د مونځ په حالت کښې عاطس لره الحمدلله وئیل پکار دی او که نه، دا مسئله د استفتاح صلوة د دعا په باب کښې تیره شوې ده.

## د لفظ تشمیت تحقیق

د تشمیت لغوی تحقیق دا دې چه بعضې وائی چه د شوامت نه مشتق دې چه معنی ئې قوائم دې یعنی، ستنې، ګویا عاطس لره دعا کولې کیږی د، ثبات علی الطاعة، او بعضې وائی چه دا ماخوذ دې د شماتت نه یعنی الله تعالی دې تا د شماتت د اعداء نه اوساتی، او بعضې وائی چه دا لفظ تسمیت د سین مهمله نه دې او ماخوذ دې د سمت نه چه معنی ئې الهیئة الحسنه ده، یعنی الله تعالی دې ستا هیئت بناسته جوړ کړی دا دعا هغه وخت ورکولې کیږی چه د پرنجې په وخت د سړی هیئت خراب شې.

[٩٣٠]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى. ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْمَعْنَى، عَنْ حَجَّاجٍ الصَّوَّافِ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ أَبِي مَيْمُونَةَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ السُّلَمِيِّ، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَعَطَسَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ، فَقُلْتُ: يَرْحَمُكَ اللَّهُ، فَرَمَانِي الْقَوْمُ بِأَبْصَارِهِمْ، فَقُلْتُ: وَاثُكْلَ أُمِّيَاهُ، مَا شَأْنُكُمْ تَنْظُرُونَ إِلَيَّ؟ فَجَعَلُوا يَضْرِبُونَ بِأَيْدِيهِمْ عَلَى أَفْخَاذِهِمْ، فَعَرَفْتُ أَنَّهُمْ يُصَمِّتُونِي، فَقَالَ عُثْمَانُ: فَلَمَّا رَأَيْتُهُمْ يُسَكِّتُونِي لَكِنِّي سَكَتُّ، قَالَ: فَلَمَّا صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَبِي وَأُمِّي مَا ضَرَبَنِي وَلَا كَهَرَنِي وَلَا سَبَّنِي، ثُمَّ قَالَ: "إِنَّ هَذِهِ الصَّلَاةَ لَا يَحِلُّ فِيهَا شَيْءٌ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ هَذَا إِنَّمَا هُوَ التَّسْبِيحُ وَالتَّكْبِيرُ وَقِرَاءَةُ الْقُرْآنِ"، أَوْ كَمَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا قَوْمٌ حَدِيثُ عَهْدٍ بِجَاهِلِيَّةٍ، وَقَدْ جَاءَنَا اللَّهُ بِالْإِسْلَامِ، وَمِنَّا رِجَالٌ يَأْتُونَ الْكُهَّانَ، قَالَ: "فَلَا تَأْتِهِمْ"، قَالَ: قُلْتُ: وَمِنَّا رِجَالٌ يَتَطَيَّرُونَ، قَالَ: "ذَاكَ شَيْءٌ يَجِدُونَهُ فِي صُدُورِهِمْ فَلَا يَصُدُّهُمْ"، قُلْتُ: وَمِنَّا رِجَالٌ يَخُطُّونَ، قَالَ: "كَانَ نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ يَخُطُّ، فَمَنْ وَافَقَ خَطَّهُ فَذَاكَ"، قَالَ: قُلْتُ جَارِيَةٌ لِي كَانَتْ تَرْعَى غُنَيْمَاتٍ قِبَلَ أُحُدٍ وَالْجَوَّانِيَّةِ، إِذِ اطَّلَعْتُ عَلَيْهَا اطِّلَاعَةً فَإِذَا الذِّئْبُ قَدْ ذَهَبَ بِشَاةٍ مِنْهَا، وَأَنَا مِنْ بَنِي آدَمَ آسَفُ كَمَا يَأْسَفُونَ، لَكِنِّي صَكَكْتُهَا صَكَّةً، فَعَظُمَ ذَاكَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: أَفَلَا أُعْتِقُهَا؟ قَالَ: "ائْتِنِي بِهَا"، قَالَ: فَجِئْتُهُ بِهَا، فَقَالَ: "أَيْنَ اللَّهُ؟" قَالَتْ: فِي السَّمَاءِ، قَالَ: "مَنْ أَنَا؟" قَالَتْ: أَنْتَ رَسُولُ اللَّهِ، قَالَ: "أَعْتِقْهَا فَإِنَّهَا مُؤْمِنَةٌ".

**ترجمه**: د معاویة بن الحکم السلمی نه روایت دې هغه وئیلی دي: ما مونځ وکړو د رسول الله ﷺ سره نو فرنجی وکړو یو سړی د قوم نه، ما ووېل: یرحمک الله، نو خلقو ماته بد بد وکتل، ما ووېل: میندې مو بورې شه ولې ماته ګورئ؟ هغوی شروع شول چې وهل ئې خپل ورنونه په لاسونو خپلو، زه پوهه شوم چې هغوی ما چوپ کوی. وئیلی دی عثمان: هرلکه چې ما هغوی ولیدل چې ما چوپ کوی لکن زه چوپ شوم. هغه وایی: هرکله چې رسول الله ﷺ مونځ وکړو زما مور او پلار دې ترېنه قربان شی، زه ئې ونه وهلم او نه ئې ورټلم او نه ئې راته کنځلې وکړې، بیا هغه ووېل: بیشکه دې مونځ کښې روا نه دی هیڅ شی د خبرو د خلقو نه، بیشکه دا خو تسبیح او تکبیر او لوستل د قرآن دی، څنګه چې رسول الله ﷺ وفرمائیل، ما ووېل: اې د الله رسوله! مونږ داسې قوم یو چې لږ وخت کیږی چې د جاهلیت نه راوتي یو، الله مونږ ته اسلام راوستلو، زمونږ نه اسې کسان دی چې کاهنانو ته ځی. هغه ووېل: تاسو هغوی ته مه ځئ. هغه وایی ما ووېل او زمونږ نه کسان دي چې فالونه نیسې، هغه ووېل: دا یو شی دی چې دوی ئې بیاموځې په خپلو سینو کښې منع دې نه کړی دوی لره. ما ووېل: زمونږ نه سړی دی چې خطونه اوکاږي، هغه ووېل: وو یو نبی د انبیاو نه چې

[1]: صحيح مسلم/المساجد ٧ (٥٣٧)، والسلام ٣٥ (٥٣٧)، سنن النسائي/السهو ٢٠ (١٢١٩)، (تحفة الأشراف: ١١٣٧٨)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/العتق ٦ (٨) مسند احمد (٥/٤٤٧، ٤٤٨، ٤٤٩)، سنن الدارمي/الصلاة ١٧٧ (١٥٤٣) ويأتي هذا الحديث في الأيمان (٣٢٨٢)، وفي الطب (٣٩٠٩) (صحيح)

خط ئې وښتلو د چا خط چې موافق شو نو دغه خبره ده. هغه وايي ما وويل: زما يوه وينځه وه زما ګډې ئې څرولې په طرف د أحد، او جوانيه کښې، زه ورغلم هغې ته يو ځل، ناڅاپه شرمخ يوه ګډه د هغې نه وتختوله، او زه بنی آدم يو، خفه کېږم لکه څنګه چې هغوی خفه کېږي، ما هغه په څپېړه ووهله، نو دا خبره رسول الله ﷺ ته غټه شوه، ما وويل: ايا زه هغه ازاده نه کړم؟ هغه وويل: راوړئ ماته هغه. هغه وايي: ما هغه راوستله هغه ته، هغه وفرمائيل: الله چېرته دی؟ هغې وويل: په اسمان کښې، هغه وفرمائيل: زه څوک يم؟ هغې وويل: ته د الله رسول ئې، هغه وفرمائيل: ازاده ئې کړه بيشکه هغه مؤمنه ده.

**تشريح: قوله:** صليت مع رسول الله ﷺ فعطس رجل من القوم :
معاوية بن الحکم السلمي وائی چه چا ته په مانځه کښې پرنجې راغلو نو په دې باندې ماسره د دينه چه په مانځه کښې ووم (په زوره سره) اووئيل يرحمك الله، زما په دې وينا سره ټولو خلقو د نظرونو غشی ئې په ما باندې راويشتل يعنی هغوی ما ته برند برند کتل، فقلت واثکل امياه، د ثُکل معنی ده د ښځې بچې مړ کيدل چه په هغې افسوس کيدل ظاهر دی او لفظ د وا د ندا يعنی آواز دپاره دې، او أمياه کښې أم د اضافت يا د متکلم طرف ته کيږی او دا الف د ندا دپاره دې او، ه، د سکته دپاره ده نو ددې ترجمه داسې کوی چه، هائې افسوس زما د مور زما په ورکولو باندې، ګويا ددې سړی مرګ راغلو، او په مانځه کښې دې صحابی دا هم اووئيل چه څهٔ چل شوې دې چه تاسو ما ته برند برند ګورئ.

**قوله:** فلما رايتهم يسکتوني لکنی سکت :
دلته جزاء د شرط محذوف ده او په دې جزاء محذوف باندې دا استدراك کوم چه په لکنی سره بيانوی مرتب دې او هغه جزاء محذوف غضبت دې، يعنی ما دوئ ته اوکتل چه ما چپ کول غواړی نو ما له ډيره غصه راغله ځکه چه يو خو ما ته برند دی او په ما باندې زياتې کوی او بله دا چه زما د افسوس په اظهار باندې ما چپ کول غواړی خو زهٔ چپ شوم (د خپل غضب په متقضی مې عمل اونهٔ کړو).

**قوله:** ان هذه الصلوة لا يحل فيها شئ من کلام الناس :
د دينه د حنفيه او حنابله تائيد کيږی، په اصل کښې د کلام فی الصلوة مسئله مختلف فيه ده هغه دا چه د حنفيه په نزد او هم دا قول راجح دې د امام احمد. چه کلام فی الصلوة مطلقا مفسد دې، او د امام مالك مشهور قول دا دې چه کلام قليل عمداً کوم چه د اصلاح د صلوة دپاره وی مفسد نهٔ دې، او د امام شافعی په نزد کلام يسير که په هيره سره وی نو ګنجائش ئې شته دې او کوم چه عمدا وی خوا د اصلاح د صلوة دپاره وی جائز نهٔ دې، ددې حديث نه هم دا بظاهر معلوميږی کوم چه د حنفيه مسلك دې چه مطلقا جائز نهٔ دې، انا قوم حديث عهد بجاهلية. مونږ نوې مسلمانان يو اوس نزدې وخت کښې جاهليت او کفر مو پريخودلو او اسلام کښې داخل شو.

## شرح حديث

**قوله:** و منا رجال ياتون الکهّان، په مونږ کښې بعضې خلق داسې دی څوك به چه کاهنانو ته ورتلل او د هغوی نه به ئې آئينده خبرې معلومولې او بعضې خلق داسې دی څوک چه د مارغانو په ذريعې سره بدشګونی اخلې هغه خلق د بدشګونئ چونکه عادت شوې وو نو ځکه حضور ﷺ اوفرمائيل که دوئ دا په خپل خانونو کښې اومومی نو په دې باندې به مواخذه نهٔ وی د غير اختياری کيدو د وجه نه، فلا يصدهم، خو دا بدشګونی دې دوئ لره د عمل نه منع نهٔ کړی، يعنی که د بدشګونئ خبره ذهن ته بلا اختياره راشی نو راځی دې خو

دا ضروري ده چه ددې په مقتضى باندې عمل او نۀ کړې شي او د کوم کار چه اراده وي هغه دې اوکړي بدشګوني ورسره مانع کيدل نۀ دي پکار.
په دې حديث کښې کاهنانو له تلل او د هغوي د خبرې دتصديق کولو ممانعت مذکور دې، په يو حديث کښې دي چه کوم سړې عراف يا کاهن ته لاړ شي فصدقه بما يقول فقد کفر بما أنزل على محمد ﷺ، کاهن هغه سړې دې کوم چه د راتلونکو کارونو د علم دعوي اوکړي او د معرفت سرائر (دپټو رازونو) مدعي وي، او يو عراف هغه وي کوم چه د غلا شوي مال او ورك شوي مال نشاندهي کوي، کاهنانو ته تلل د دوئ د تصديق په نيت باندې حرام دي دغه شان دوئ له اجرت ورکول هم حرام دي، نهى رسول الله ﷺ عن حلوان الكاهن، امام نووي وغيره حضراتو ددې دحرمت په اجماع باندې نقل کړې ده.
قلت و منا رجال يخطون قال كان نبي من الانبياء يخط.. الخ،
(علم رمل) خط نه مراد علم رمل دې په دې کښې په زمکه باندې څۀ نښې او کرښې راښکلې کيږي دا مشهور او معروف علم دې په دې باندې مستقل تصانيف هم ليکلې شوي دي، ددې مخصوص اصطلاحات وغيره هم دي ددې په ذريعې سره د مخفي امورو استخراج کوئ او کله کله هغه خبره صحيح رااوځي ددې علم رمل تعليم او تعلم په تصريح د علماؤ سره حرام دې، خو چونکه بعضې انبياؤ سره دا علم وو لکه څنګه چه په حديث کښې دي هغوي به دا کولو، بعضو وئيلي دي چه حضرت ادريس عليه السلام وو يا دانيال عليه السلام نو څکه حضور ﷺ د هغې رعايت اوکړو او ددې مطلقا ابطال ئې نۀ دې فرمائيلې بلکه دا ئې اوفرمائيل چه د چا علم رمل د هغه نبي د علم رمل سره موافق وي بس هم هغه معتبر دې ګينى نۀ دې، او ظاهره ده چه دا خبره نۀ شي معلوميدې چه د چا رمل د هغوي د علم رمل سره موافق دې او دچا نۀ دې نو څکه خلاصه هم د منع رااوتله.

## شرح حديث

**قوله:** قلت ان جارية لي كانت ترعى غنيماتٍ :
دې صحابي هم دا سوال اوکړو چه يا رسول الله زما يوه وينځه ده کومه چه زما بيزې څروي په احد غر يا جوانيه طرف ته ، زۀ يوه ورځ ناڅاپه هلته اورسيدلم ما اوکتل چه د رمې په بيزو کښې يوه بيزه کمه ده کومه چه شرمخ تختولې وه زۀ آخر د بنو آدم نه يو انسان يم څنګه چه نورو خلقو ته (په خپل نقصان باندې) تاسف او افسوس وي ما ته هم اوشو نو څکه ما هغه په مخ باندې يوه سپيړه اوهله، فعظم ذالك على رسول الله ﷺ، نو حضور ﷺ زما دا کار ډير غټ اوګرځولو يعنى زما دا وهل ئې يوه لويه خبره او ګناه اوګرځوله (په کوم باندې چه دوئ اويريدل) او اوئې وئيل يا رسول الله آيا زۀ دا آزاده نۀ کړم (چه زما ددې کار تلافي اوشي) په دې باندې حضور ﷺ اوفرمائيل دا وينځه ما ته راوله (چه زۀ ددې امتحان واخلم او اوګورم چه مسلمانه ده يا کافره) هغه وائي چه ما دا د حضور ﷺ په خدمت کښې بوتله حضور ﷺ د دېنه پوښتنه اوکړله چه اوښايه ! الله کوم ځائې دې هغې اووئيل په آسمان کښې، (مطلب دا وو چه په زمکه باندې کوم دا باطل خدايان وغيره دي هغه معبود نۀ دې) حضور ﷺ دويم سوال اوفرمائيلو چه ښۀ اوښايه زۀ څوك يم هغې اووئيل تاسو رسول الله ئې په دې اوريدلو سره حضور ﷺ صحابي ته اوفرمائيل ددې امتحان اوشو دا آزاده کړه دامؤمنه ده.

## (ايمان مقلد هم معتبر دې)

ددې حديث نه بعضې علماؤ دا استدلال کړې دې چه ايمان مقلد په معتبر کيدو باندې

يعنى كوم سړي چه د الله تعالى په وحدانيت او د رسول الله په رسالت باندې دليل قائم نۀ كړي شى د خپلې لاعلمئ يا د كم علمئ د وجه نه بلكه د نورو اهل ايمان تقليد كښې د وحدانيت او رسالت قائل وى نو د هغۀ ايمان معتبر دې لكه څنګه چه ددې وينځې حال وو چه هغې دليل وغيره هيڅ بيان نۀ كړې شو صرف سيدهه ساده جواب ئې وركړو.

[٩٣١]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُونُسَ النَّسَائِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ، عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ السُّلَمِيِّ، قَالَ: لَمَّا قَدِمْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِمْتُ أُمُورًا مِنْ أُمُورِ الْإِسْلَامِ، فَكَانَ فِيمَا عَلِمْتُ أَنْ قَالَ لِي: "إِذَا عَطَسْتَ فَاحْمَدِ اللَّهَ، وَإِذَا عَطَسَ الْعَاطِسُ فَحَمِدَ اللَّهَ فَقُلْ: يَرْحَمُكَ اللَّهُ"، قَالَ: فَبَيْنَمَا أَنَا قَائِمٌ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلَاةِ إِذْ عَطَسَ رَجُلٌ فَحَمِدَ اللَّهَ، فَقُلْتُ: يَرْحَمُكَ اللَّهُ رَافِعًا بِهَا صَوْتِي، فَرَمَانِي النَّاسُ بِأَبْصَارِهِمْ حَتَّى احْتَمَلَنِي ذَلِكَ، فَقُلْتُ: مَا لَكُمْ تَنْظُرُونَ إِلَيَّ بِأَعْيُنٍ شُزْرٍ؟ قَالَ: فَسَبَّحُوا، فَلَمَّا قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنِ الْمُتَكَلِّمُ؟" قِيلَ: هَذَا الْأَعْرَابِيُّ، فَدَعَانِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لِي: "إِنَّمَا الصَّلَاةُ لِقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ وَذِكْرِ اللَّهِ جَلَّ وَعَزَّ، فَإِذَا كُنْتَ فِيهَا فَلْيَكُنْ ذَلِكَ شَأْنَكَ". فَمَا رَأَيْتُ مُعَلِّمًا قَطُّ أَرْفَقَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**ترجمه:** د معاوية بن الحكم السلمي نه روايت دې هغه وئيلى دي: كله چې زه راغلم رسول الله ﷺ ته، ما به يادول څه كارونه د اسلام، په هغه كارونو كښې چې ما د هغه نه ياد كړي وو دا وو چې هغه ماته ويلي وو: كله چې ته پرنجى كوى نو د الله حمد كوه، او كله چې يو كس پرنجى وكړو او د الله حمد ئې ووېلو نو ته ورته وايه: يرحمك الله. هغه وايي: يو ځل زه د رسول الله ﷺ سره ولاړ وم په مانځه كښې، يو سړي پرنجى وكړو، نو د الله حمد ئې وكړو، ما وويل: يرحمك الله، په اوچت اواز سره. خلقو ماته بد بد وكتل تردې چې دا كار باعث شو په ما، نو ما وويل: څه دي تاسو لره چې ماته ګورئ په بدو سترګو؟ هغه وايي: هغوى تسبيح وويله، هركله چې رسول الله ﷺ مونځ خلاص كړو هغه وويل: چا خبرې وكړې؟ هغه ته وويل شول، دى اعرابى، نو رسول الله ﷺ زه راوغوښتلم، ماته ئې وويل: بيشكه مونځ د لوستلو د قرآن لپاره دى، او د الله د ذكر لپاره دى. كله چې ته په هغې كښې ئې نو ستا دې دغه كار وي. ما هيڅ معلم نه دى ليدلى چې هغه د رسول الله ﷺ نه ډېر نرم وي.

**تشريح: قوله:** لما قدمت على رسول الله صلى الله عليه وسلم عُلِّمْتُ امورًا من امور الاسلام فكان فيما علمت، فرمائى چه كله زۀ د حضور ﷺ په خدمت كښې حاضر شوم مدينې منورې ته نو ما ته اسلامى خبرې اوښودلې شوې. ړومبې لفظ علمت د باب تفعيل نه د مجهول صيغه ده او دويم علمت كښې دوه احتماله دې يو خو هغه كومه چه د باب تفعيل نه د مجهول صيغه ده يا د ثلاثي مجرد نه د ماضى معروف صيغه عَلِمت ده

قوله، فقلت ما لكم تنظرون الي باعين شُزرٍ.. الخ، په تاسو څۀ شوې دى چه ما ته په كږو سترګو ګورئ چه هغې ته برند برند كتل وائى يعنى د خفګان كتل. شزر د شزراء جمع ده،

قال فسبحوا، يعنى ددې صحابى په مانځه كښې يرحمك الله وئيلو باندې په شروع كښې خو صحابه كرامو دۀ ته صرف برند برند اوكتل او كله چه روستو دې صحابى په مانځه كښې خبرې كول شروع كړې او صفا صفا ئې اووئيل چه تاسو ما ته ولې برند برند ګورئ نو په دې باندې صحابه ؤ ته ډېر تعجب اوشو او په تعجب كښې بيا بيا هغوى سبحان الله اووئيل.

[الحمد لله ! جلد دوم ختم شو]

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٣٧٩) (ضعيف)